والله يهدي من يشاء الى صراط مستقيم (القرآن)

# فتح الهداية

پښتو شرح

# هدايه

داول ځل لپاره په آسانه معياري پښتو

وهدايې يوه جامع شرحه

زیار او ترتیب


مولوي حبيب الرحمن مدني

فاضل وفاق المدارس العربيه



صداقت كتبخانه

كنړ

حنفی شافعی

بسم اللہ الرحمٰن الرحیم

# کفایت دینی کتب خانہ

## کفایت اللہ ابن صدیق

واٹس ایپ گروپ ٹیلی گرام چینل

اس گروپ میں کتابیں اہل السنۃ والجماعت، حنفی، شافعی، مالکی، حنبلی، دیوبند ، علماء حق کے عقائد کے مطابق ہوں گی مختلف زبانوں میں اسلامی کتابیں پشتو عربی اردو فارسی جیسے تفسیریں، فتاویٰ درسی کتب خارجی کتب و غیرہ۔

وَاللّٰهُ يَهْدِىْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ [القرآن]

# فتح الهداية

## پښتو شرح

# هدايهٔ

د اول ځل لپاره په آسانه معياري پښتو
د هدايې يوه جامع شرحه

د حديثونو تخريج
د متن بشپړ اعراب
صرفي تحقيق
د لغاتو حل

پر فقهي او ضروري معلوماتو
مشتمله يوه جامع مقدمه

تعيين د قول راجح
د هري جملې تر خنګ ژباړه
د عنواناتو اضافه
صورت د مسئلې

**يوولسم ټوک**

فصل في البيع تا كتاب الرّهن (مكمل)


ژباړه او ترتيب:
مولوى حبيب الرحمن مدني
فاضل وفاق المدارس العربيه



صداقت كتب خانه - كندهار

# فهرس

## كِتَابُ إِحْيَاءِ الْمَوَاتِ

## كِتَابُ الرَّهْنِ

# فَصْلٌ فِي الْبَيْعِ

## دا فصل په (بيان دا حكامو د) بيع كي دی

**تشريح**: مخكي ذكر سوه چي "كتاب الكراهية" پر څو فصلونو مشتمل دی چي له هغوی څخه فصل الأكل والشرب... فصل في الاستبراء وغيره يې مخكي بيان كړل او دا مذكوره "فصل في البيع" له هغوی څخه آخري فصل دی او دا فصل يې له فصل في الأكل والشرب وغيره څخه ځكه وروسته كړی دی چي د مخكيني فصلونو احكام بلا واسطه دانسان د جسم سره متعلق دي او د دغه فصل احكام بالواسطه متعلق دي. لهذا دا كثرت اتصال پر بناء دأكل او شرب وغيره فصلونه مخكي بيان كړل سوي دي.

### د خوشايو وغيره بيع

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ السِّرْقِيْنِ فرمايي: او پروا نسته د خوشايو په بيع كي وَيُكْرَهُ بَيْعُ الْعَذِرَةِ او د غايطه موادو بيع مكروه ده وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: لَا يَجُوزُ بَيْعُ السِّرْقِيْنِ أَيْضًا او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي د خوشايو بيع هم جائز نه ده لِأَنَّهُ نَجِسُ الْعَيْنِ ځكه چي هغوی نجس العين دي فَشَابَهَ الْعَذِرَةَ نو هغوی د غايطه موادو په څېر سوه وَجِلْدَ الْمَيْتَةِ قَبْلَ الدِّبَاغِ او د مردار څاروي تر دباغت مخكي والا څرمن په څېر سوه [يعني هغه څرمن چي پخ كړل سوې او رنګ كړل سوې نه وي] وَلَنَا: أَنَّهُ مُنْتَفَعٌ بِهِ زموږ دليل دا دی: چي له خوشايو څخه نفع اخيستل كيږي لِأَنَّهُ يُلْقَى فِي الْأَرَاضِي لِاسْتِكْثَارِ الرَّيْعِ ځكه هغوی په ځمكو كي اچول كيږي د پيداوار اضافه كولو لپاره فَكَانَ مَالًا نو هغه مال سو وَالْمَالُ مَحَلٌّ لِلْبَيْعِ او مال د بيع محل دی بِخِلَافِ الْعَذِرَةِ په خلاف د غايطه موادو لِأَنَّهُ لَا يُنْتَفَعُ بِهَا إِلَّا مَخْلُوطًا ځكه له هغوی څخه نفع نه اخيستل كيږي مګر په داسي حال كي چي هغوی مخلوط [د بل شي سره ګډ كړل سوي] وي وَيَجُوزُ بَيْعُ الْمَخْلُوطِ او د مخلوط بيع جائز ده هُوَ الْمَرْوِيُّ عَنْ مُحَمَّدٍ او همدا له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي وَهُوَ الصَّحِيحُ او همدا صحيح

ده وَكَذَا يَجُوزُ الِانْتِفَاعُ بِالْمَخْلُوطِ لَا بِغَيْرِ الْمَخْلُوطِ فِي الصَّحِيحِ همدارنګه په مخلوط سره نفع اخيستل جائز دي، نه په غير مخلوط سره د صحيح قول مطابق وَالْمَخْلُوطُ بِمَنْزِلَةِ زَيْتٍ خَالَطَتْهُ النَّجَاسَةُ او مخلوط د هغه زيتون تېلو په څېر دی چې نجاست په ګډ سوی وي.

**اللغات**: ﴿السِّرْقِيْن﴾ او السَّرْقِيْن: د څارويو فضله ته وايي يعني خوشايي، خرشينه او داسي نور، ﴿جِلد﴾ څرمن (څرمنه)، پوست. ﴿الميتة﴾ مردار، مردار سوی (يعني هغه حيوان چي په خپل مرګ مړ سوی وي. الْمَيْتَةُ مِنَ الْحَيَوَانِ مَا مَاتَ حَتْفَ أَنْفِهِ) (مصباح)، ﴿عَذِرة﴾ الغائط للانسان. د انسان ګندګي، غايطه مواد، ډکي متيازي، ﴿استكثار﴾ د استفعال د باب مصدر دی: اضافه کول، زياتول، ﴿ريع﴾ فصل، پيداوار، غله، ﴿زيت﴾ زيتون تېل (روغن)، مطلق تېلو (روغنو) ته هم وايي.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي د احنافو په نېز د خوشايو، خرشينو او داسي نورو بيع (خرڅول او رانيول) جائز دي خو د غايطه موادو بيع مکروه ده، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي څرنګه د غايطه موادو بيع صحيح نه ده، همداسي د خوشايو وغيره بيع هم صحيح نه ده؛ ځکه چي خوشايي وغيره نجس العين وي، لهذا خوشايي د غايطه موادو او د مردار د څرمني په څېر سوه، او د غايطه موادو او د داسي څرمني بيع جائز نه ده د نجس العين کېدلو په وجه. نو همداسي به د خوشايو وغيره بيع هم جائز نه وي.

- زموږ دليل دا دی چي خو شايي وغيره قابل انتفاع شی دي (نفع ځني اخيستل کيږي) او د فصل او پيداوار د غټېدو او لويېدو لپاره په ځمکه کي اچول کيږي، نو هغوی د مال په درجه کي سوه، او مال محل د بيع دی، لهذا د خوشايو بيع به هم صحيح وي.

او پاته سوه د غايطه موادو مسئله نو د خالص غائطو بيع که څه هم مکروه ده، لېکن کله چي د هغوی سره خاوري يا ايرې يا کاد وغيره يو ځای کړل سي، نو په دې صورت کي د هغوی بيع هم صحيح کيږي؛ ځکه چي اوس هغوی مخلوط سوه او د مخلوط بيع صحيح ده، همداسي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی او همدا صحيح قول دی، او دا داسي ده لکه د زيتون په تېلو چي يو نجاست ګډ سي، نو له هغوی څخه فايده اخيستل ګنجايش لري، څه حرج پکښي نه وي.

**يادونه**: له خالص غايطه موادو څخه نفع اخيستل جائز دي، نو د هغوی بيع به هم جائز وي. (مجمع الانهر ج: ٢، ص: ٥٢٤)

## د مينځې د بيع يو صورت (او د دې وضاحت چې په معاملاتو کې د يوه کس قول معتبر دی)

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کې] فرمايي وَمَنْ عَلِمَ بِجَارِيَةٍ أَنَّهَا لِرَجُلٍ او څوک چې په يو مينځې خبر سو چې هغه د فلانکي سړي [مينځه] ده فَرَأَىٰ آخَرَ يَبِيعُهَا وَقَالَ بيا دا خبر کس بل څوک وليدی چې هغه مينځه خرڅوي او داسې وايي وَكَّلَنِيْ صَاحِبُهَا بِبَيْعِهَا چې د دې مينځې مالک زه د هغې د خرڅولو وکيل جوړ کړی يم فَإِنَّهُ يَسَعُهُ أَنَّهُ يَبْتَاعُهَا وَيَطَؤُهَا نو ده [سامع] لره جائز دي چې دا مينځه رانيسي او وطي ور سره وکړي لِأَنَّهُ أَخْبَرَ بِخَبَرٍ صَحِيْحٍ لَا مُنَازِعَ لَهُ ځکه چې خرڅونکي [بائع] يو صحيح خبر ورکړی دی چې د هغه هيڅ معارض نسته [يعني د هغه د قول او خبر هيڅ معارض نسته] وَقَوْلُ الْوَاحِدِ فِي الْمُعَامَلَاتِ مَقْبُوْلٌ عَلَىٰ أَيِّ وَصْفٍ كَانَ او په معاملاتو کې د يوه کس قول معتبر دی برابره ده هغه په هر وصف سره وي لِمَا مَرَّ مِنْ قَبْلُ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ مخکې ذکر کړی وَكَذَا إِذَا قَالَ: اشْتَرَيْتُهَا مِنْهُ او همدارنګه کله چې بائع ووايي: دا مينځه ما د هغې له مالک څخه رانيولې ده أَوْ وَهَبَهَا لِيْ يا هغه ما ته هبه کړې ده أَوْ تَصَدَّقَ بِهَا عَلَيَّ يا هغه پر ما صدقه کړې ده [ما ته يې په صدقه کې راکړې ده. نو هم به يې قول منل کيږي] لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی وَهٰذَا إِذَا كَانَ ثِقَةً او دا [ د هغه قول منل] په هغه صورت کې دي کله چې هغه [مُخبر (بائع)] ثقه وي [يعني د اعتماد وړ او باوري کس وي] وَكَذَا إِذَا كَانَ غَيْرَ ثِقَةٍ وَأَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ صَادِقٌ او همدارنګه کله چې هغه غير ثقه [بې باوره] وي خو د سامع غالب ګومان دا وي چې هغه رېښتونی دی [نو هم دا‌غه حکم دی چې قول به يې منل کيږي] لِأَنَّ عَدَالَةَ الْمُخْبِرِ فِي الْمُعَامَلَاتِ غَيْرُ لَازِمَةٍ لِلْحَاجَةِ ځکه چې د حاجت [ضرورت] پر بناء په معاملاتو کې د خبر ورکونکي کس عادل والی ضروري نه دی عَلَىٰ مَا مَرَّ لکه [مخکې] چې تېر سوه وَإِنْ كَانَ أَكْبَرُ رَأْيِهِ أَنَّهُ كَاذِبٌ او که د سامع غالب ګومان دا وي چې هغه درواغجن دی لَمْ يَسَعْ لَهُ أَنْ يَتَعَرَّضَ لِشَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ نو ده لره جائز نه دي چې له دې څخه يو شي ته تعرّض [او دخل اندازي پکښې] وکړي [يعني چې مينځه رانيسي او وطي وغيره وکړي] لِأَنَّ أَكْبَرَ الرَّأْيِ يُقَامُ مَقَامَ الْيَقِيْنِ ځکه چې غالب ګومان د يقين پر ځای درېږي [په بله وينا دا چې غالب ګومان د يقين قائم مقام او د هغه په درجه کې دی].

**اللغات**: ﴿جاریـة﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چې لـه هغوی څخـه یـې یـوه معنـی ده: مینځـه. ﴿یسعه﴾ د سمع د باب مضارع ده. وَسِعَ یَسَعُ سَعَةً: ګنجایش کېدل. په یو شي کې تنګي نه کېدل (پراخي ګکنبي راتلل). مراد ځني جائز کېدل دي. ځکه د یو کار د جائز کېدلو مطلب همدا دی چې په هغه کې تنګي نه کېدل بلکې پراخي او ګنجایش پکښې راتلل (معجم وسیط). ﴿ثقة﴾ مراد: معتمد او باوري کس. قابل اعتماد کس. ﴿یتعرّض﴾ تعرض کول. کار په لرل. په پسې کېدل. (دخل اندازي کول).

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی کـه د یو مینځې په هکله یو سړي ته مثلاً زیـد تـه دا معلومه وي چې دا د خالد مینځه ده او بیا زید ویني چې بل څوک مثلاً حامد هغه مینځه په بازار کې خرڅوي او زید چې پوښتنه ځني وکړه نو هغه وویل چې خالد زه خپل د دغه مینځې د خرڅولو وکیل جوړ کړی یم. نـو اوس زیـد (سامع) لـره د دغـه مینځـې رانیـول او وطـي وغیـره ورسره کـول جـائز دي: ځکـه د معاملاتو په باب کې د یوه کس (فرد واحد) قول او خبر معتبر دی (نو حامد صحیح خبر ورکړی دی). برابره ده هغه یو کس آزاد وي او کـه غـلام. عادل وي او کـه غیر عادل. مسلمان وي او کـه غیـر مسلمان: ځکـه چې معاملات د مختلفو خلکو سره کول کیږي. لهذا که په دې کې د اسلام او عادل والي وغیره قیدونه ولګول سي. نو حرج به لازم سي. والحرج مدفوع في الشرع.

وکذا إلخ: فرمایي که بائع (حامد) د وَكَّلَنِي پر ځای اِشْتَرَيْتُهَا ووایي (چې ما دا مینځه له خالد څخه رانیولې ده). نو هم د دې مینځې رانیول او نفع ځني اخیستل جائز دي: لأنه أخبر بخبر صحیح.

وهذا إلخ: فرمایي که چیري مُخبر (خبر ورکونکی) ثقه او معتمد کس وي. نو د هغه د خبر او قول په منلو کې خو هیڅ حرج نسته. لېکن که هغه ثقه نه وي. خو د ده (سامع) غالب ګومان دا وي چې هغه رښتونی دی. نو په دې وخت کې به هم د هغه خبر منل کیږي: ځکه چې د ضرورت پر بناء د حرج دفع کولو په خاطر په معاملاتو کې د مُخبر عادل والی مشروط او لازم نه دی ګرځول سوی.

لېکن که د ده په غالب ګومان کې مُخبر رښتونی نه وي بلکې درواغجن وي، نو بیا دا جائز نه دي چې خبر یې ومني مینځه رانیسي او وطي ور سره وکړي: ځکه دلته د ده په غالب ګومان کې خبر ورکونکی کس درواغجن دی. او ظن غالب ‌لره یقین درجه حاصله ده. او د مُخبر د یقیني درواغجن کېدو په صورت کې د هغه قول نه منل کیږي. نو په غالب ګومان کې د هغه د درواغجن کېدو په صورت کې به هم د هغه قول نه منل کیږي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَكَذَا إِذَا لَمْ يَعْلَمْ أَنَّهَا لِفُلَانٍ او همدارنګه کله چې هغه [سامع] په دې خبر نه وي چې دا د فلانکي مينځه ده وَلٰكِنْ أَخْبَرَهُ صَاحِبُ الْيَدِ أَنَّهَا لِفُلَانٍ خو قبضې والا [بائع] دا خبر ورکړي چې دا د فلانکي ده وَأَنَّهُ وَكَّلَهُ بِبَيْعِهَا او دا چې هغه فلانکي دئ [يعني زه] د دې مينځې د خرڅولو وکيل جوړ کړی يم أَوِ اشْتَرَاهَا مِنْهُ يا ده [يعني ما] دا مينځه له هغه څخه رانيولې ده وَالْمُخْبِرُ ثِقَةٌ او دا خبر ورکونکی [بائع] ثقه وي قُبِلَ قَوْلُهُ نو قول [خبره] به يې منل کيږي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ ثِقَةً او که هغه ثقه نه وي يُعْتَبَرُ أَكْبَرُ رَأْيِهِ نو د خپل غالب ګومان اعتبار به کيږي لِأَنَّ إِخْبَارَهُ حُجَّةٌ فِي حَقِّهِ ځکه چې د هغه [قبضې والا بائع] خبر ورکول [چې زه وکيل بالبيع يم يا ما دا مينځه څني رانيولې ده] د هغه په خپل حق کې حجت دی وَإِنْ لَمْ يُخْبِرْهُ صَاحِبُ الْيَدِ بِشَيْءٍ او که قبضې والا دئ په هيڅ شي خبر نه کړي فَإِنْ كَانَ عَرَفَهَا لِلْأَوَّلِ نو که دئ [سامع] دا مينځه پېژني چې د اول [يعني د فلانکي] ده لَمْ يَشْتَرِهَا حَتّٰى يَعْلَمَ انْتِقَالَهَا إِلٰى مِلْكِ الثَّانِيْ نو دئ به تر هغه وخته دا نه رانيسي تر دې چې خبر سي په منتقل کېدلو د مينځې د دې دويم کس [قبضې والا] ملکيت ته [يعني تر هغه وخته چې دا ورته معلومه سي چې دا مينځه د قبضې والا بائع ملکيت ته څنګه راغلې ده] لِأَنَّ يَدَ الْأَوَّلِ دَلِيلُ مِلْكِهِ ځکه چې د اول [فلانکي] قبضه د هغه د ملکيت دليل ده وَإِنْ كَانَ لَا يَعْرِفُ ذٰلِكَ او که سامع دا نه پېژني [چې مينځه د هغه فلانکي ده] لَهُ أَنْ يَشْتَرِيَهَا نو ده ته جائز دي چې مينځه رانيسي وَإِنْ كَانَ ذُو الْيَدِ فَاسِقًا که څه هم دا قبضې والا [بائع] فاسق وي لِأَنَّ يَدَ الْفَاسِقِ دَلِيلُ الْمِلْكِ فِي حَقِّ الْفَاسِقِ وَالْعَدْلِ ځکه چې د فاسق قبضه د فاسق او عادل [دواړو] په حق کې د ملکيت دليل ده وَلَمْ يُعَارِضْهُ مُعَارِضٌ او د هغه هيڅ معارض نسته وَلَا مُعْتَبَرَ بِأَكْبَرِ الرَّأْيِ عِنْدَ وُجُوْدِ الدَّلِيْلِ الظَّاهِرِ او د ظاهري دليل د موجود والي په وخت کې ظن غالب لره اعتبار نسته إِلَّا أَنْ يَكُوْنَ مِثْلُهُ لَا يَمْلِكُ مِثْلَ ذٰلِكَ مګر دا چې دغه رقم کس [بائع] د داسي شي نه سي مالک کېدلای فَحِيْنَئِذٍ يُسْتَحَبُّ لَهُ أَنْ يَتَنَزَّهَ نو په هغې وخت کې ده لره مستحب دي چې [له داسي شي او مينځې] څخه پرهيز وکړي وَمَعَ ذٰلِكَ لَوِ اشْتَرَاهَا خو که د دې باوجود

هغه دا رانيسي يُرْجٰى أَنْ يَكُوْنَ فِيْ سَعَةٍ مِنْ ذٰلِكَ نو په دې کې د ګنجائش [جائز کېدلو] اُميد سته لِاعْتِمَادِهِ الدَّلِيْلَ الشَّرْعِيَّ ځکه چې هغه پر شرعي دليل [قبضه] اعتماد کړی دی.

**تشريح**: د مذکوره عبارت حاصل دا دی چې په اول صورت کې يعني چې کله سامع (زيد) ته دا معلومه وي چې دا د فلانکي (خالد) مينځه ده، نو ده ته د مينځې د رانيولو او د وطي کولو اختيار سته. لېکن که ده ته معلومه نه وي چې دا د فلانکي مينځه ده، خو دا مينځه چې د چا په قبضه کې ده (مثلا حامد)، هغه دا خبر ورکړی چې دا د فلانکي مينځه ده او هغه زه د دې د خرڅولو وکيل جوړ کړی يم. يا ما دا مينځه له هغه څخه رانيولې ده، نو فرمايي چې که دا قابض مُخبر (حامد) ثقه وي، نو د هغه قول معتبر دی منل کيږي به، يعني سامع (زيد) لره دُ دې مينځې رانيول جائز دي، او که مُخبر ثقه نه وي، نو بيا ظن غالب لره اعتبار دی، که چيرې د سامع په ظن غالب کې هغه رېښتونی وي، نو مينځه دې رانيسي، کنې احتياط به کوي او نه دې يې رانيسي، لنډه دا چې د غالب ګومان اعتبار به کيږي.

**سوال**: دلته د غالب ګومان اعتبار ولې سوی دی؟.

**جواب**: مُخبر (بائع) چې د خپل ځان په باره کې کوم خبر ورکړی دی چې زه د دې مالک نه يم بلکې فلانکئ (خالد) يې مالک دی، د ده دا خبر او قول خو معتبر او حجت دی، لېکن د فلانکي (خالد) په باره کې چې ده کوم خبر ورکړی دی چې هغه زه د دې مينځې د خرڅولو وکيل جوړ کړی يم دا خبر حجت نه دی؛ نو ځکه مورِ ظن غالب لره اعتبار ورکړی دی، همدا خبره مصنف رَحِمَهُ الله داسې کړې ده چې د مُخبر خبر د هغه په خپل حق کې حجت دی.

وإن لم يُخْبِرْه إلخ: فرمايي که بائع هيڅ خبر ورنه کړي لېکن مشتري (سامع) ته معلومه وي چې دا مينځه د فلانکي کس (خالد) ده، نو تر څو چې مشتري ته دا ښه ښکاره نه سي چې له فلانکي څخه دا مينځه د بائع لاس ته څنګه راغلې ده، تر هغه وخت دې يې نه رانيسي؛ ځکه کله چې ده ته دا معلومه ده چې پر دغه مينځې د فلانکي کس (خالد) قبضه وه، نو دا دليل د دې خبري دی چې صرف همدا فلانکی د هغې مالک دی نو اوس د بل چا ملکيت ته د راتللو لپاره هم څه دليل او سبب پکار دی.

او که مشتري ته دا معلومه نه وي او نه بائع د دې خبر ورکړي، نو مشتري هغه رانيولای سي، که څه هم بائع (قابض) فاسق وي؛ ځکه بائع (چې د هغه په قبضه کې مينځه ده) د هغه قبضه د دې خبره دليل ده چې همدا دئ د هغې مالک دی، برابره ده هغه فاسق وي او که عادل. او بل دا چې د دې يو معارض هم نسته.

**سوال**: د غالب ګومان دلته ولې اعتبار نه دی سوی؟.

**جواب**: ځکه تر غالب ګومان قوي دليل چې هغه ته دليلِ ظاهر ويل سوي دي دلته موجود دی، يعني قبضه د ملکيت دليل موجوده ده، نو ځکه غالب ګومان لره به اعتبار نه وي.

**يادونه**: لأن يد الفاسق... في حق الفاسق والعدل إلخ: په ښكاره له دغه عبارت څخه دا معلوميږي چي كله قبضه د فاسق ده نو هغه د ملكيت دليل ده. برابره ده مشتري (رانيونكى) عادل وي او كه فاسق، لېكن دلته د مقام تقاضا دا ده چي قبضه برابره ده د فاسق وي او كه د عادل. هغه د ملكيت دليل ده. په همدې وجه علامه عيني رَحِمَهُ الله ويي دي چي دا عبارت داسي كېدل پكار وه: "لأن يد المتصرف دليل الملك في حق الفاسق والعادل".

إلا أن يكون مثله إلخ: فرمايي خو كه بائع داسي شی خرڅوي چي د انسان زړه ته نه لوېږي چي هغه دي د دغه شی مالک وي، مثلاً يو غريب كس ډېر قېتمي موټر خرڅوي. يا مثلاً يو جاهل لا علمه كس عربي كتاب خرڅوي، نو دا ظاهراً د غلا دليل دی. په داسي وخت كي مستحب دا ده چي نه يې رانيسي، ځكه تنزّه او احتياط په همدې كي دی. خو كه بيا هم هغه دا شی رانيسي چي ډېر ارزانه وغيره دی. نو څه حرج نسته؛ ځكه په دې صورتونو كي د دليلِ شرعي يعني د ظاهراً قبضې اعتبار كيږي، او هغه دلته موجوده ده (چي ظاهراً پر دغه شي د هغه قبضه ده)، نو ځكه رانيول هم صحيح دي.

## د پورتنى مسئلې بل صورت

وَإِنْ كَانَ الَّذِي أَتَاهُ بِهَا عَبْدًا أَوْ أَمَةً او كه هغه څوک چي و ده ته يې مينځه راوستې ده غلام يا مينځه وي لَمْ يَقْبَلْهَا وَلَمْ يَشْتَرِهَا حَتَّى يَسْأَلَ نو نه به يې قبلوي او نه به يې رانيسي تر دې چي پوښتنه[تحقيق] وكړي لِأَنَّ الْمَمْلُوكَ لَا مِلْكَ لَهُ ځكه چي مملوک كس [غلام] لره ملكيت نسته فَيُعْلَمُ أَنَّ الْمِلْكَ فِيهَا لِغَيْرِهِ نو معلوميږي چي په دې مينځه كي د بل چا ملكيت دی فَإِنْ أَخْبَرَهُ أَنَّ مَوْلَاهُ أَذِنَ لَهُ بيا كه دا غلام [يا مينځه] دا خبر وركړي چي د ده مالک و ده ته [يعني ما ته] اجازت راكړی دی وَهُوَ ثِقَةٌ اودئ [خبر وركونكى غلام] ثقه وي قُبِلَ نو قول به يې منل كيږي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ ثِقَةً او كه ثقه نه وي يُعْتَبَرُ أَكْبَرُ الرَّأْيِ نو د غالب ګومان اعتبار به كيږي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ رَأْيٌ او كه [په دې باره كي] ده لره هيڅ رايه نه وي [چي هغه رښتونى دی. كه نه...] لَمْ يَشْتَرِهَا نو بيا دي هغه مينځه نه رانيسي لِقِيَامِ الْحَاجِرِ د مانع د موجود والي په وجه فَلَا بُدَّ مِنْ دَلِيلٍ نو ځكه چاره نسته له يو دليل څخه [يعني د يو دليل موجودېدل ضروري دي چي په هغه سره حقيقيت معلوم سي چي دا د چا مينځه ده].

**اللغات**: ﴿حاجر﴾ د نصر له بابه د فاعل صيغه ده: مانع، منع كونكى.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده كه مينځي يا غلام د ځان سره د خرڅلاو لپاره يوه مينځه راوستې وي بازار يا منډۍ وغيره ته، نو دا خبره خو ښكاره ده چي مملوک د دې مينځي مالک كېدلای نه سي، بلكي دا د يو

مال چا ملکیت دی. لهذا له تحقیق او پلټنې ځخه بغیر به هیڅ تصرف نه پکښې کیږي. نه دي یې رانیسي او نه دي بغیر له تحقیقه داسې مینځه په هدیه کې قبلوي. ها! که دا غلام یا مینځه مشتري ته ووایي چې: زما مالک ما ته د دغه تصرف اجازت راکړی دی او دا خبر ورکونکی غلام یا مینځه ثقه او د اعتماد وړ وي. نو قول یې منل کیدای سي، لیکن که ثقه نه وي. نو د ظن غالب اعتبار به کیږي. او که د مشتري هیڅ رایه مقرره نه سي بلکې په شک کې وي. نو بیا دي یې نه رانیسي: ځکه چې مانع موجو دی او هغه د بائع رقیق کیدل دي. نو تر څو چې هیڅ دلیل ترلاسه نه سي. نه دي یې رانیسي.

## د خاوند تر مرګ وروسته ښځې ته د ثلاثاً طلاق د خبر رسیدلو حکم

قال [امام محمد رحمه الله په جامع صغیر کې] فرمایي وَلَوْأَنَّ امْرَأَةً أَخْبَرَهَا ثِقَةٌ أَنَّ زَوْجَهَا الْغَائِبَ مَاتَ عَنْهَا او که چیرې ښځې ته یو ثقه کس دا خبر ورکړي چې د هغې [یعنې ستا] غائب خاوند مړ سو أَوْ طَلَّقَهَا ثَلَاثًا یا هغې ته یې درې طلاقه ورکړل أَوْكَانَ غَيْرَثِقَةٍ وَأَتَاهَا بِكِتَابٍ مِنْ زَوْجِهَا بِالطَّلَاقِ یا دا خبر ورکونکی کس غیر ثقه وي خو د خاوند له طرفه هغې ته د طلاق خط [طلاقنامه] راوړي وَلَا تَدْرِيْ أَنَّهُ كِتَابُهُ أَمْ لَا او دا ښځه په دې نه پوهیږي چې دا د هغه ازما د خاوند ا خط دی. که نه إِلَّا أَنَّ أَكْبَرَ رَأْيِهَا أَنَّهُ حَقٌّ خو د هغې غالب ګومان دا وي چې دا ریښتیا دی يَعْنِيْ بَعْدَ التَّحَرِّيْ یعني له تحري [غور او فکر کولو] ځخه وروسته فَلَا بَأْسَ بِأَنْ تَعْتَدَّ ثُمَّ تَتَزَوَّجَ نو بیا پروا نسته په دې کې چې دا ښځه عده تېره کړي بیا [د بل چا سره] واده وکړي لِأَنَّ الْقَاطِعَ طَارِئٌ ځکه چې دلته [د نکاح] قطع کونکی شی عارضي دی [چې هغه مرګ یا طلاق دی] وَلَا مُنَازِعَ او هیڅ معارض هم نسته وَكَذَا لَوْ قَالَتْ لِرَجُلٍ: طَلَّقَنِيْ زَوْجِيْ وَانْقَضَتْ عِدَّتِيْ او همدارنګه که یوه ښځه یو سړي ته ووایي: چې زما خاوند ما ته طلاق راکړی او زما عده تېره سوه [لهذا اوس ته زما سره واده او نکاح وکړه!] فَلَا بَأْسَ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا نو هیڅ پروا نسته په دې کې چې د هغې سره نکاح وکړي [ځکه د هغې د قول هیڅ معارض نسته. لیکن دا حکم هلته دی چې کله د ده غالب ګومان دا وي چې هغه ریښتونې ده] وَكَذَا إِذَا قَالَتِ الْمُطَلَّقَةُ الثَّلَاثُ: انْقَضَتْ عِدَّتِيْ او همدارنګه که په دریو طلاقو طلاقه سوې ښځه ووایي: چې زما عده تېره سوه وَتَزَوَّجْتُ بِزَوْجٍ آخَرَ وَدَخَلَ بِيْ او بیا ما د بل خاوند سره نکاح [هم] وکړه او هغه په ما دخول وکړی ثُمَّ طَلَّقَنِيْ وَانْقَضَتْ عِدَّتِيْ بیا هغه ما ته طلاق راکړی او زما دا عده [هم] تېره سوه [په لنډه توګه دا چې ما حلاله وکړه. نو اوس

دې اول خاوند ته زما سره نکاح وکړي ] فَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَتَزَوَّجَهَا الزَّوْجُ الْأَوَّلُ نو پروا نسته په دې کې چې اولنی خاوند د هغې سره نکاح وکړي [ځکه چې دلته هم د هغې د قول او خبر هيڅ معارض او منازع نسته] وَكَذَا لَوْ قَالَتْ جَارِيَةٌ او همدارنګه که يو مينځه ووايي كُنْتُ أَمَةَ فُلَانٍ فَأَعْتَقَنِي زه د فلانکي مينځه وم بيا هغه زه آزاده کړم [نو د هغې قول هم معتبر او د منلو قابل دی او د هغې سره نکاح کول جائز دي] لِأَنَّ الْقَاطِعَ طَارِئٌ ځکه چې قاطع عارضي دی [نو ځکه دلته هم د فرد واحد قول معتبر منل سوی دی. او د شهادت نصاب او عدالت ضروري نه دی ګرځول سوی].

**اللغات**: ﴿قاطع﴾ د فتح د باب فاعل دی: غوڅونکی. ختمونکی. له منځه وړونکی. ﴿طارئ﴾ د فتح د باب فاعل دی. د دې لفظ څو معناوي دي: عارضي (عارضېدونکی) او وروسته واقع کېدونکی (وروسته راتلونکی) او نا څاپه واقع کېدونکی. (دلته د عارضي او وروسته واقع کېدونکی په معنیٰ سره دی. ځکه دلته هغه د مقارن ضد دی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د يو ښځي خاوند غائب وو. يو ثقه يعني معتبر او معتمد کس هغې ته خبر ورکړی چې ستا خاوند مړ سو يا ستا خاوند خو تا ته درې طلاقه درکړل. يا دا خبر ورکونکی کس (مُخبِر) خو ثقه نه وي لېکن د خاوند له طرفه د طلاق نامې خط ښځي ته پېښ کړي او ښځي ته نه معلومېږي چې دا د هغه خط دی که نه. لېکن له تحرّی او فکر څخه وروسته د هغې ظنِ غالب دا سي چې مُخبِر رېښتونی دی، نو هغې لره جائز دي چې د هغه پر خبره اعتبار او باور وکړي او عده تېره کړي او خپل دويمه نکاح وکړي؛ ځکه په مذکوره صورت کې د نکاح قاطع (د نکاح ختمونکی) يو عارضېدونکی شی دی چې هغه مرګ يا طلاق دی، او قاطع مقارن او متصل نه دی. او د طاري او عارضي شيانو په هکله د يوه ثقه کس قول هم معتبر دی، او بل دا چې دلته د مُخبِر د خبري هيڅ معارض نسته (يعني د خاوند د نه مړ کېدلو يا طلاق نه ورکولو بل خبر او داسې نور).

**سوال**: د دې څه مطلب دی چې دا قاطع طاري دی، نه مقارن.

**جواب**: قاطع پر دوه قسمه دی: ① طاري، ② مقارن، د طاري مطلب دا دی چې دا له مخکي څخه د عقد قاطع نه دی بلکي وروسته عارض سوی او واقع سوی دی، او د مقارن مطلب دا دی چې د عقد قاطع له مخکي څخه موجود وي، ګواکي عقد له سره فاسد دی، او اُصول دا دی لکه اوس چې مو ذکر کړه چې د طاري قاطع په هکله يو ثقه هم معتبر دی يا يو غير ثقه چې د هغه په هکله ظنِ غالب دا وي چې رېښتونی دی، او د قاطع مقارن په هکله د شهادت نصاب مع عدالت ضروري دی (يعني دوه سړيان يا يو سړی او دوې ښځي چې هغه به هم عادلان وي)، او يوازې د يوه کس قول په دې هکله معتبر نه دی.

**وكذا لو قالت إلخ**: له دې ځايه تر آخره عبارت آسانه دی، نوري تشريح ته اړتيا نه لري.

## د قاطع مقارن بيان او حکم

وَلَوْ أَخْبَرَهَا مُخْبِرٌ أَنَّ أَصْلَ النِّكَاحِ كَانَ فَاسِدًا او که يو خبر ورکونکی کس ښځي ته دا خبر ورکړي چي اصل نکاح فاسده وه [چي د فلانکي سړي سره ستا نکاح صحيح نړل سوې نه وه بلکي فاسده وه] أَوْ كَانَ الزَّوْجُ حِيْنَ تَزَوَّجَهَا مُرْتَدًّا يا خاوند چي کله د هغې [يعني ستا] سره نکاح کړې وه هغه مرتد وو أَوْ أَخَاهَا مِنَ الرَّضَاعَةِ يا د هغې [يعني يا ستا] رضاعي ورور وو لَمْ يُقْبَلْ قَوْلُهُ نو د هغه قول به نه منل کيږي حَتّٰى يَشْهَدَ بِذٰلِكَ رَجُلَانِ أَوْ رَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ تر دې چي په دې باره کي دوه سړيان يا يو سړی او دوې ښځي ګواهي ورکړي وَكَذَا إِذَا أَخْبَرَهُ مُخْبِرٌ أَنَّكَ تَزَوَّجْتَهَا وَهِيَ مُرْتَدَّةٌ او همدارنګه که يو مُخبِر سړي ته دا خبر ورکړي چي تا په داسي حال کي د هغه ښځي سره نکاح کړې وه چي هغه مرتده وه أَوْ أُخْتُكَ مِنَ الرَّضَاعَةِ يا ستا رضاعي خور وه لَمْ يَتَزَوَّجْ بِأُخْتِهَا نو دا سړی به د هغې د خور سره نکاح نه کوي [ځکه چي د دغه مُخبِر کس قول معتبر نه دی، نو هغه ښځه يې له نکاح څخه نه ده وتلې، لهذا که د هغې د خور سره نکاح وکړي نو جامع بين الأختين به سي] أَوْ أَرْبَعٍ سِوَاهَا او نه له هغې څخه بغيرو د څلورو ښځو سره [يا په بله وينا دا چي نه له هغې څخه بغير د څلورمي ښځي سره. مطلب دا چي هغه ښځه يې له نکاح څخه نه ده وتلې، نو اوس که دئ له هغې څخه بغير د نورو څلورو ښځو سره نکاح وکړي، نو په خپل نکاح کي به د پنځو ښځو جمع کونکی سي؛ ځکه چي د دې مُخبِر کس قول معتبر نه دی تر هغه وخته...] حَتّٰى يَشْهَدَ بِذٰلِكَ عَدْلَانِ تر دې چي په دې باره کي دوه عادله کسان ګواهي ورکړي لِأَنَّهُ أَخْبَرَ بِفَسَادٍ مُقَارِنٍ ځکه چي هغه د داسي فساد [يعني د عقدِ نکاح د داسي فاسدېدلو] خبر ورکړی دی کوم چي [د عقد نکاح سره] مقارن دی وَالْإِقْدَامُ عَلَى الْعَقْدِ يَدُلُّ عَلٰى صِحَّتِهِ وَإِنْكَارِ فَسَادِهِ او پر عقد نکاح [د هغه] اقدام کول د عقد پر صحيح کېدلو او د هغه د فاسدېدلو پر انکار دلالت کوي [يعني ده چي اول د هغه ښځي سره پر نکاح اقدام او وراندېتوب کړی دی، دا پر دې دلالت کوي چي ده په نېز د هغې سره د ده نکاح صحيح وه او فاسده نه وه] فَثَبَتَ الْمُنَازِعُ بِالظَّاهِرِ نو په ظاهري توګه منازع ثابت سو.

**اللغات**: ﴿مقارن﴾ د مقارن له بابه د اسم فاعل صيغه ده: متصل، جوخت، يو د بل سره يو ځای.

**تشريح**: په عبارت کي څو صورتونه ذکر سوه، په دې ټولو صورتونو کي د نکاح قاطع طاري نه دی بلکي مقارن دی، چي د هغه اُصول مخکي ذکر سو يعني په قاطعِ مقارن کي نصاب شهادت مع عدالت شرط دی، نو تر څو چي دوه عادله کسان يا يو عادل کس او دوې عادلي ښځي د دغه خبري ګواهي ورنه

کړي. تر هغه به د مُخبِر قول نه منل کيږي او نه به يې د قول طرف ته توجّه کيږي، او دلته منازع او معارض هم موجود دی؛ ځکه که داسي خبره وای نو پر نکاح به اقدام نه کېدلای. بلکي دا اقدام پر دې خبره دلالت کوي چي نکاح صحيح ده او فساد طاري دی، او مُخبِر دا ويل غواړي چي له سره فساد سته، يعني فساد مقارن دی، نو ځکه نصاب شهادت مع عدالت شرط دی.

**يادونه :** لم يتزوّج بأختها إلخ: ځکه که د مُخبِر قول معتبره وای، نو نکاح به له سره ختم سوې وای. بيا به د هغې د خور سره په نکاح کولو کي څه حرج نه وای. همدارنګه که قول يې معتبر وای. نو له هغې څخه بغير د څلورو ښځو سره به نکاح جائز وای، خو معتبر نه دی، نو ځکه له هغې څخه بغير د نورو څلورو ښځو سره د هغه نکاح صحيح نه ده، بلکي د دريو سره صحيح ده.

## د قاطع طاري بيان او حکم

بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الْمَنْكُوحَةُ صَغِيْرَةً په خلاف د هغه صورت کله چي منکوحه کوچنۍ وي فَأَخْبَرَ الزَّوْجُ أَنَّهَا ارْتَضَعَتْ مِنْ أُمِّهِ أَوْ أُخْتِهِ بيا خاوند ته دا خبر ورکول سي چي هغې [يعني ستا کوچنۍ منکوحې] د هغه د مور [يعني ستا د مور] يا خور شيدې رودلي دي حَيْثُ يُقْبَلُ قَوْلُ الْوَاحِدِ فِيْهِ نو په دې باره کي به د يوه کس قول منل کيږي لِأَنَّ الْقَاطِعَ طَارِئٌ ځکه چي دلته [د نکاح] قطع کونکی طاري دی وَالْإِقْدَامُ الْأَوَّلُ لَا يَدُلُّ عَلَى انْعِدَامِهِ او اولنی اقدام د رضاعت پر نشتوالي دلالت نه کوي فَلَمْ يَثْبُتِ الْمُنَازِعُ نو منازع ثابت نه سو فَافْتَرَقَا لهذا دواړه مسئلې سره جلا سوې وَعَلَى هٰذَا الْحَرْفِ يَدُوْرُ الْفَرْقُ او پر همدغه نکته د فرق دار ومدار دی وَلَوْ كَانَتْ جَارِيَةً صَغِيْرَةً لَا تُعَبِّرُ عَنْ نَفْسِهَا فِيْ يَدِ رَجُلٍ يَدَّعِيْ أَنَّهَا لَهُ او که يو کوچنۍ مينځه کوم چي د خپل ځان په هکله تعبير [ځان ښوونه] نه سي کولای د داسي سړي په قبضه کي وه چي هغه دعوىٰ کوله دا زما مينځه ده فَلَمَّا كَبُرَتْ لَقِيَهَا رَجُلٌ فِيْ بَلَدٍ آخَرَ فَقَالَتْ: أَنَا حُرَّةُ الْأَصْلِ بيا چي کله هغه غټه سوه [او] په يو بل ښار کي د هغې سره يو سړی مخامخ سو نو هغې وويل: چي زه له اصله آزاده يم لَمْ يَسَعْهُ أَنْ يَتَزَوَّجَهَا نو هغه سړي لره جائز نه دي چي د هغې سره نکاح وکړي لِتَحَقُّقِ الْمُنَازِعِ وَهُوَ ذُو الْيَدِ ځکه چي منازع يعني قبضې والا [قابض] موجود دی [کوم چي دعوىٰ کوي چي دا زما مينځه ده] بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کوم چي [څه] مخکي تېر سو.

**اللغات**: ﴿ارتضعت﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: تی رودل. شیدې رودل.
﴿طارئ﴾ د فتح د باب فاعل دی: عارضېدونکی. وروسته واقع کېدنکی (وروسته راتلونکی). ﴿حرف﴾ د دې لفظ یوه معنیٰ ده: نکته. طرز او طریقه. ﴿لقیها﴾ د سمع د باب ماضي ده: ملاقات کول. لیدل مخامخ کېدل او استقبال کول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که دیو سړي په نکاح کي یوه کوچنۍ شیدې رودونکې نجلۍ وي (چي د هغې نکاح په همدې کوچنیوالي کي ور سره تړل سوې وي). او خاوند ته یو څوک راسي او خبر ور کړي چي هغې خوستا د مور یا خور شیدې رودلي دي. نو په دې هکله د دغه یوه کس قول معتبر دی: ځکه چي دلته د نکاح قاطع طاري دی. او په مخکینیو صورتونو کي مقارن وو (کما هو الظاهر). نو دلته هیڅ منازع او معارض نسته. په خلاف د اول صورت چي هلته معارض موجود وو.

والإقدام إلخ: فرمايي داسي هم نه سي کېدلای چي پر نکاح اقدام کول د انعدم رضاعت (شیدې نه رودلو) دلیل ومنل سي (یعني دغه خاوند چي اول د دې کوچنۍ نجلۍ پر نکاح اقدام کړی دی. دا د دې خبري دلیل نه سي کېدلای چي هغه د ده لپاره حلاله وه او هغې د ده د مور یا خور شیدې یې رودلي نه وې): ځکه کله چي د نکاح تړلو په وخت کي د رضاعت (شیدې رودلو) علم نه وو. نو ګواکي قدام صحیح سو او کله چي اقدام صحیح سو. نو هغه منازع نه سي جوړېدای او د خبر واحد په منلو کي مانع هم نه سي جوړېدای. لهذا مخکنۍ مسئله او دا مسئله دواړې سره جلا سوې. او پر همدې نکته د فرق دار ومدار دی او په همدغه نکته او طریقه سره د فرق پته معلومېږي. یعني کله چي د چا د قول او خبر منازع وي نو قول واحد (د یوه کس قول) معتبر نه دی. او کله چي منازع نه وي، نو قول واحد معتبر دی. منل کېږي به.

ولو كانت جارية إلخ: اوس ذکر سوه چي که دیو چا د قول معارض وي. نو بیا به یې قول نه منل کېږي. لهذا که دیو کس په قبضه کي دومره کوچنۍ مینځه وي چي د خپل ځان ترجماني او اظهار نه سي کولای. او دا کس وایي چي دا زما مینځه ده. بیا چي کله هغه مینځه غټه سي. نو یو چا ته داسي وایي چي زه له سره آزاده یم. مینځه بالکل نه یم. نو د دې مینځي قول معتبر نه دی: ځکه قبضه د هغې د قول معارض موجوده ده. یا په بله وینا دا مینځه چي د چا په قبضه کي ده کوم چي د هغې د مینځي والي دعویٰ کوي. هغه موجود دی. لهذا د هغې دا وینا چي زه حرة الاصل یم صحیح نه ده. نو ځکه شرعي شهادت پېشول ضروري دي. او پاته سو مخکینی صورت یعني کله چي مینځه ووایي چي زه د فلانکي مینځه یم او هغه زه آزاده کړې یم (کنتُ أمةً لفلانٍ فأعتقني). نو قول معتبر او مقبول وو: ځکه چي

هيڅ معارض موجود نه وو (نو ځکه د يوه قول قول معتبر سوی وو. او شرعي شهادت لازم سوی نه وو). او دلته معارض موجود دی. لهذا په دواړو مسئلو کي فرق ښکاره سو.

## له شراب خرڅونکي مسلمان څخه د خپل قرض اخيستلو حکم

قَالَ: وَإِذَا بَاعَ الْمُسْلِمُ خَمْرًا فرمايي: او کله چي مسلمان شراب خرڅ کړي وَأَخَذَ ثَمَنَهَا او د هغوی قيمت واخلي وَعَلَيْهِ دَيْنٌ حال دا چي پر هغه قرض باندي وي فَإِنَّهُ يُكْرَهُ لِصَاحِبِ الدَّيْنِ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ نو د قرض مالک (قرضخواه) لره دا مکروه دي چي له دغه مسلمان څخه خپل قرض واخلي وَإِنْ كَانَ الْبَائِعُ نَصْرَانِيًّا او که بائع (خرڅونکی) نصراني وي فَلَا بَأْسَ بِهِ نو بيا په دې کي څه پروا نشته وَالْفَرْقُ أَنَّ الْبَيْعَ فِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ قَدْ بَطَلَ او (په دواړو صورتونو کي) فرق دا دی چي په اول صورت کي بيع باطله ده لِأَنَّ الْخَمْرَ لَيْسَ بِمَالٍ مُتَقَوَّمٍ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ ځکه د مسلمان په حق کي شراب متقوم (قيمتداره) مال نه دی فَبَقِيَ الثَّمَنُ عَلَى مِلْكِ الْمُشْتَرِي لهذا (په اول صورت کي) ثمن د مشتري پر ملکيت پاته سوه فَلَا يَحِلُّ أَخْذُهُ مِنَ الْبَائِعِ نو ځکه له بائع (مسلمان) څخه د هغه اخيستل روا نه دي وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي صَحَّ الْبَيْعُ او په دويم صورت کي بيع صحيح ده لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوَّمٌ فِي حَقِّ الذِّمِّيِّ ځکه چي شراب د ذمي په حق کي متقوم مال دی فَمَلَكَهُ الْبَائِعُ نو بائع (ذمي) د هغه (ثمن) مالک سو فَيَحِلُّ الْأَخْذُ مِنْهُ نو ځکه له بائع څخه اخيستل هم روا دي.

**اللغات:** ﴿خمر﴾ شراب. ﴿دين﴾ قرض، پور.

**تشريح:** د عبارت مختصره حاصل دا دی چي د مسلمان په حق کي شراب متقوم مال نه دی او د غير مسلمان (نصراني وغيره) په حق کي متقوم مال دی، لهذا که د يو کس پر بل چا قرض باندي وي او هغه مقروض شراب خرڅ کړي او د شرابو په ثمن د دغه کس قرض اداء کوي، نو د دې دوه صورتونه دي: دا بائع (خرڅونکی) به مسلمان وي يا به غير مسلمان يعني نصراني وغيره وي. که چيري غير مسلمان وي، نو څرنګه چي هغه د شرابو د ثمن مالک سوی دی، نو ځکه قرضخواه لره جائز دي چي له هغه څخه خپل قرض واخلي. او که بائع مسلمان وي، نو اخيستل ورته جائز نه دي، ځکه چي مسلمان خپله د دې ثمن مالک سوی نه دی بلکي ثمن د مشتري په ملکيت کي پاته دی او مشتري يې مالک دی. نو ځکه دې قرضخواه ته له مسلمان بائع څخه د هغه اخيستل روا نه دي.

## د احتکار (ذخیره اندوزی) حکم

قَالَ [امام محمد رحمة الله فرمايي] وَيُكْرَهُ الاِحْتِكَارُ فِي أَقْوَاتِ الآدَمِيِّينَ وَالْبَهَائِمِ فرمايي: او مکروه دی احتکار [ذخیره کول او زېرمه کول] په خوراکي توکو [او غلو] کې د انسانانو او څارويو إِذَا كَانَ ذَلِكَ فِي بَلَدٍ يَضُرُّ الاِحْتِكَارُ بِأَهْلِهِ [په دې شرط] کله چې دا په داسي ښار کې وسي چې د هغه ښار خلګو ته احتکار ضرر [نقصان] کوي وَكَذَلِكَ التَّلَقِّي او همدارنګه تلقی فَأَمَّا إِذَا كَانَ لَا يَضُرُّ لېکن که هغه ضرر نه کوي [يعني د هغه ښار خلکو ته نقصان نه کوي] فَلَا بَأْسَ بِهِ نو څه پروا پکښې نسته وَالأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] او اصل په دې باره کې د نبي کريم ﷺ دا فرمان دی الْجَالِبُ مَرْزُوقٌ وَالْمُحْتَكِرُ مَلْعُونٌ چې راوړونکی نصيبور [بنه نصيب او رزق لرونکی] دی او ذخيره کونکی [راګرځونکی] لعنتي [رټل سوی] دی وَلِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْعَامَّةِ او ځکه چې د دې سره د عوامو [عامو خلکو] حق متعلق دی وَفِي الِامْتِنَاعِ عَنِ الْبَيْعِ إِبْطَالُ حَقِّهِمْ وَتَضْيِيقُ الْأَمْرِ عَلَيْهِمْ نو [د خوراکي توکو] له بيع څخه په منع کېدو کې د عوامو د حق باطلول او پر هغو د معاملې تنګول سته فَيُكْرَهُ إِذَا كَانَ يَضُرُّ بِهِمْ ذَلِكَ نو ځکه مکروه به وي کله چې دا [احتکار وغيره] هغو ته ضرر کوي بِأَنْ كَانَتِ الْبَلْدَةُ صَغِيرَةً په دې توګه چې ښار کوچنی وي بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَضُرَّ په خلاف د هغه صورت کله چې دا ضرر نه کوي بِأَنْ كَانَ الْمِصْرُ كَبِيرًا په دې توګه چې ښار غټ وي لِأَنَّهُ حَابِسٌ مِلْكَهُ مِنْ غَيْرِ إِضْرَارٍ بِغَيْرِهِ ځکه [په دې صورت کې] هغه د خپل ملکيت راګرځونکی [ذخيره کونکی] دی بغير له ضرر رسولو و بل چا ته وَكَذَلِكَ التَّلَقِّي عَلَى هَذَا التَّفْصِيلِ او همدارنګه تلقي هم پر دغه تفصيل ده لِأَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [2] نَهَى عَنْ تَلَقِّي الْجَلَبِ وَعَنْ تَلَقِّي الرُّكْبَانِ ځکه چې نبي ﷺ له تلقي جلب او تلقي رکبان څخه منع کړې ده قَالُوا: هَذَا إِذَا لَمْ يُلَبِّسِ الْمُتَلَقِّي عَلَى التُّجَّارِ سِعْرَ الْبَلْدَةِ مشائخو رحمهم الله فرمايلي دي: چې دا [حکم] په هغه صورت کې دی کله چې تلقي کونکی کس

---

[1] تخريج: أخرجه ابن ماجة في كتاب التجارات، باب الحكرة والجلب، حديث رقم: ۲۱۵۳.

[2] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب البيوع، باب تحريم تلقي الجلب، حديث رقم: ۱۶.

پر تاجرانو د ښار نرخ پټ نه کړي فَإِنْ لَبَّسَ لېکن هغه نرخ هم پټ کړي فَهُوَ مَكْرُوهٌ فِي الْوَجْهَيْنِ نو دا په دواړو صورتونو کي مکروه دي لِأَنَّهُ غَادِرٌ بِهِمْ ځکه چي هغه د تاجرانو سره فرېب [او خيانت] کونکی دی.

**اللغات**: ﴿أقوات﴾ جمع د قُوْت ده: د خوړلو شيان. خوراکي توکي. او د قُوْت د لفظ بله معنیٰ ده: د ګزارې خوراک. ﴿الاحتکار﴾ د افتعال د باب اسم مصدر دی: ذخيره کول. زېرمه کول. احتکار دې ته وايي چي انسان غله (يعني غنم، وربجي) او داسي نور په دې نيت د ځان سره ذخيره کړي چي کله ګراني جوړه سي. نو بيا به يې خرڅ کړم. داسي کس ته محتکر وايي. ﴿التلقي﴾ د تفعل د باب اسم مصدر دی: ملاقي کېدل. ملاو يېدل. تلقي دې ته وايي چي. کله ښار ته قافله را روانه وي کوم چي يې غله او خوراکي توکي را اخيستي وي او يو ښاري کس ژر له ښاره بهر مخ ته ورسي د هغو سره ملاقي سي او دا شيان ځني رانيسي او د ګټي تر لاسه کولو په غرض يې ښار ته راوړي. داسي کس ته متلقي وايي. تلقي جَلَب او تلقي رُکبان: د دواړو مراد بالکل سره نژدې دی او دا دواړه په يوه حديث کي نه بلکي په دوو جلا حديثونو کي ذکر سوي دي چي د تشريح په آخر کي به يې وضاحت وکړو. تلقي رُکبان دې ته وايي چي څوک له ښاره بهر خاص د قافلې والا (کوم چي ښار ته را روانه وي) سره ملاقي سي او په مذکوره نيت غله يا بل سامان ځني رانيسي او تلقي جلب عام دی که د قافلې والا سره ملاقي سي يا له ښاره بهر چي کوم صحرايي علاقې يا نور ځايونه دي چي له هغوی څخه دغه ښار ته غله وغيره راځي هلته ولاړ سي او په مذکوره نيت غله وغيره ځني رانيسي. ﴿جَلَب﴾ (بفتح اللام) هغه څه چي له بل ځايه راوړل سوي وي. هغه د تجارت سامان. اوښان وغيره چي له بل ښار او بلي علاقې څخه راوړل سي. ﴿الرُّکبان﴾ جمع د راکب ده: سپاره کسان. قافلې والا. ﴿جالب﴾ د نصر له بابه د اسم فاعل صيغه ده: جلبونکی. راوړونکی. له جالب څخه هغه کس مراد دی کوم چي خپل ښار ته له بهر څخه غله راوړي او خرڅوي يې وي نو هغه مرزوق دی. ځکه چي خلکو ته په دې سره نفع رسيږي. نو هغه ته د مسلمانانو د دعاء برکات رسيږي. ﴿مرزوق﴾ د نصر له بابه اسم مفعول دی: نصيبور. ښه نصيب او بخت والا. ښه حصې والا (معجم الوسيط). ﴿ملعون﴾ د فتح له بابه اسم مفعول دی: لعنت پر سوی. ملعون پر دوه قسمه دی: ① د الله ﷻ له رحمت څخه لېري کېدل. دا قسم فقط د کفارو لپاره خاص دی. ② له نېکانو او د صالحينو له مقام څخه لېري کېدل. دلته په عبارت کي همدا معنیٰ مراد ده: ځکه د اهلِ حق په نېز د ګناه کبيره په کولو سره بنده له ايمانه نه وځي (اشرف الهدايه). ﴿تجار﴾ جمع د تَاجِر ده: کاروبار او تجارت کونکي. ﴿سعر﴾ نرخ. رېټ. ﴿لبّس﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: حقيقت پټول. په يو شي کي ابهام کول. ﴿غادر﴾ د فاعل صيغه ده. له ضرب. نصر او سمع تېرلو څخه راځي. د دې لفظ يوه معنیٰ ده: فرېب او غدر کونکی. خيانت او دوکه کونکی.

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی چې که يو ښار کوچنی وي آبادي يې لږ وي چې احتکار وغيره د هغه ښار اوسېدونکو ته تاوان رسوي، نو په دې صورت کې نه د انسانانو د غلې احتکار جائز دی او نه د څاريو د وابښو وغيره احتکار جائز دی بلکې مکروه تحريمي دی. او د کراهت وجه يې دا ده چې نبي کريم ﷺ جالب ته مرزوق ويلي دي. لېکن محتکر ېې ملعون ګرځولی دی.

او عقلي دليل دا دی چې د غلې سره د عوامو حق متعلق دی، لهذا د هغه په راګرځولو او ذخيره کولو سره عوامو ته نقصان رسيږي، نو ځکه دا صورت جائز نه دی.

لېکن که څوک په يو لوی غټ ښار کې احتکار وکړي چې په هغه سره ښاريانو ته ضرر نه رسيږي. نو بيا په داسې کولو کې څه حرج نشته؛ ځکه دا احتکار د مکروه والي اصل علت ضرر دی. لېکن کله چې د ښاريانو لپاره احتکار مضر نه وي، نو بيا که څوک غله ذخيره کړي نو هغه د خپل ملکيت ذخيره کونکی او راګرځونکی دی او د خپل ملکيت په راګرځولو کې څه حرج نشته.

وكذا التلقي إلخ : فرمايي چې په تلقي جلب وغيره کې هم داغه تفصيل دی چې که تلقی د ښاريانو لپاره مضر وي، نو مکروه ده. کنې مکروه نه ده. د تلقي ممانعت هم په حديث سره ثابت دی کوم چې په عبارت ذکر سو.

مشائخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي چې مذکوره تفصيل هغه وخت دی کله چې دا متلقي کس له قافلې والا څخه د ښار نرخ پټ نه کړي بلکې د ښار نرخ ور وښيي. او که د ښار نرخ پټ کړي او په چل ول او دوکه سره په کم نرخ غله څني واخلي. نو دا په هر صورت کې مکروه دي. برابره ده تلقي د ښار لپاره مضر وي او که نه وي؛ ځکه چې اوس دا متلقي کس دوکه باز او فرېبکاره دی.

مصنف رَحِمَهُ الله چې کوم حديث نقل کړی دی. دا په اصل کې دوه حديثونه دي. اول حديث "نهى عن تلقي الجلب" دا جلا دی چې هغه مسلم روايت کړی دی او دويم "نهى عن تلقي الركبان" جلا حديث دی. دا متفق عليه دی او مطلب د دواړو يو دی. (احسن الهدايه)

## احتکار په کومو شيانو کې کيږي (د فقهاؤ قولونه)

وَتَخْصِيصُ الاِحْتِكَارِ بِالأَقْوَاتِ كَالْحِنْطَةِ وَالشَّعِيرِ وَالتِّبْنِ وَالْقَتِّ قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ او د احتکار خاصول د خوراکي توکو [غلو] سره لکه غنم، اوربشې، پرور، وابښه دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُويُوسُفَ [1] : كُلُّ مَا أَضَرَّ بِالْعَامَّةِ حَبْسُهُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي : هر هغه شی چې د هغه

---

[1] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله. قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وكره احتكار قوت البشر، كتبن وعنب ولوز ؛ (قوت) البهائم، وقال العلامة ابن عابدين رَحِمَهُ الله: والتقييد بقوت البشر قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله ومحمد رَحِمَهُ الله وعليه الفتوى. كذا في الكافي (رد المحتار ج:٥، ص:٢٨٢)؛ [القول الراجح ج:٢، ص:٣٠٤]

راګرځول [ذخيره کول] عوامو ته ضرر کوي فَهُوَاحْتِكَارٌ نو دا احتکار دی وَإِنْ كَانَ ذَهَبًا أَوْ فِضَّةً أَوْ ثَوْبًا که څه هم هغه سره زر يا سپين زر يا کپړه وي وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ قَالَ: لَا احْتِكَارَ فِي الثِّيَابِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي هغه فرمايلي دي: په کپړو کي احتکار نسته فَأَبُويُوسُفَ اِعْتَبَرَحَقِيقَةَ الضَّرَرِ نو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د حقيقي ضرر اعتبار کړی دی إِذْ هُوَ الْمُؤَثِّرُ فِي الْكَرَاهَةِ ځکه چي همهغه په کراهت [مکروه کېدلو] کي اثر کونکي دی وَأَبُوحَنِيفَةَ اعْتَبَرَ الضَّرَرَ الْمَعْهُودَ الْمُتَعَارَفَ او امام صاحب رَحِمَهُ الله د معهود او عرفي ضرر اعتبار کړی دی.

**اللغات**: ﴿تبن﴾ پرور، ﴿قت﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: شپيشتي هغه که وچي وي او که تازه (حاشيه)، خو په معجم کي ليکل سوي دي: الفصفصة اليابسة (معجم الوسيط). ﴿معهود﴾ د سمع د باب مفعول دی: معلوم، مشهور او معروف. ﴿متعارف﴾ د تفاعل د باب اسم مفعول دی: په عُرف کي مشهوره او پېژندل سوی، په عرف کي رواج. د عُرف مطابق.

**تشريح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول مطابق احتکار فقط د انسانانو او څارويو په غذا کي کيږي او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دا دی چي هر هغه شی چي د هغه په راګرځولو او ذخيره کولو سره عوامو ته ضرر رسيږي، نو هغه احتکار دی، برابره ده هغه که هر شی وي. د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دا دی چي په کپړو کي احتکار نه کيږي؛ ځکه چي د بدن وده او د بدن ولاړه په غذا سره ده. نه په کپړو سره.

خلاصه د کلام دا چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د حقيقي ضرر اعتبار کړی دی برابره ده هغه په هر شي کي وي، او امام صاحب رَحِمَهُ الله د معهود او متعارف ضرر اعتبار کړی دی او هغه د غذاګانو او خوراکي توکو په راګرځولو کي دی.

## د احتکار (ذخيره اندوزی) د مودت بيان

ثُمَّ الْمُدَّةُ إِذَا قَصُرَتْ بيا که [د ذخيره کولو او راګرځولو] مودت کم وي لَايَكُونُ احْتِكَارًا نو دا احتکار نه دی لِعَدَمِ الضَّرَرِ د ضرر د نشتوالي په وجه وَإِذَا طَالَتْ او که ډېر مودت وي يَكُونُ احْتِكَارًا مَكْرُوهًا نو دا مکروه احتکار دی لِتَحَقُّقِ الضَّرَرِ د ضرر ثابتېدلو په وجه ثُمَّ قِيلَ: هِيَ مُقَدَّرَةٌ بِأَرْبَعِينَ يَوْمًا بيا ويل سوي دي: چي دا مودت په څلوېښتو ورځو سره اندازه کړی سوی دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ

وَالسَّلَامُ [1] : «مَنِ احْتَكَرَ طَعَامًا أَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه: څوک چې څلوېښت شپې احتکار وکړي فَقَدْ بَرِئَ مِنَ اللهِ وَبَرِئَ اللهُ مِنْهُ» نو هغه له الله ﷻ څخه بري دی او الله ﷻ له هغه څخه بري دی وَقِيْلَ: بِالشَّهْرِ او ويل سوي دي: چې [د احتكار مودت] په يوې مياشتې سره [مقدر دی] لِأَنَّ مَا دُوْنَهُ قَلِيْلٌ عَاجِلٌ ځکه تر يوې مياشتي كم مودت لږ [او] بېړنی دی وَالشَّهْرُ وَمَا فَوْقَهُ كَثِيْرٌ آجِلٌ او يوه مياشته او تر هغې زيات مودت زيات [او] ځنډنی دی وَقَدْ مَرَّ فِيْ غَيْرِ مَوْضِعٍ او دا بحث خو څو ځايه تېر سوی دی وَيَقَعُ التَّفَاوُتُ فِي الْمَأْثَمِ بَيْنَ أَنْ يَتَرَبَّصَ الْعِزَّةَ وَبَيْنَ أَنْ يَتَرَبَّصَ الْقَحْطَ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ او په ګناه کي تفاوت واقع کيږي په مينځ د دې کي چې څوک د ګراني [ګرانښت] انتظار کوي او په مينځ د دې کي چې (العياذ بالله) د وچکالۍ انتظار کوي [يعني د ګرانۍ او وچکالۍ واقع کېدلو په غرض د احتكار او انتظار کونکو کسانو تر مينځ د ګناه په اعتبار سره فرق او توپير دی. ځکه د وچکالۍ په غرض د احتكار کونکي کس ګناه زياته ده] وَقِيْلَ: الْمُدَّةُ لِلْمُعَاقَبَةِ فِي الدُّنْيَا او ويل سوي دي: چې مودت په دنيا کي د سزا ورکولو لپاره دی أَمَّا يَأْثَمُ وَإِنْ قَلَّتِ الْمُدَّةُ لېکن نور هغه [دآخرت په اعتبار سره] خامخا ګناهکاره کيږي که څه هم مودت کم وي وَالْحَاصِلُ أَنَّ التِّجَارَةَ فِي الطَّعَامِ غَيْرُ مَحْمُوْدَةٍ خلاصه دا چې د غلې تجارت ښه نه دی.

**اللغات**: ﴿قصرت﴾ د کرُم ماضي ده: کمېدل. لنډېدل. لږېدل. ﴿ضرر﴾ نقصان. تاوان. ﴿مقدرة﴾ د تفعيل د باب مؤنث مفعول دی: ټاکل سوی. اندازه کړی سوی. متعين. ﴿مأثم﴾ مصدر ميمي دی: ګناه. ﴿يتربص﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: انتظار كول. درنګ كول. ايسارېدل. تم کېدل. ﴿العزة﴾ د دې لفظ يوه معنیٰ ده: ګراني. د شيانو نرخ لوړېدنه. ﴿عاجل﴾ بېړه کونکی. اوسنی. فوراً. ژر. (مراد ځني لنډ وخت دی). ﴿آجل﴾ وروستنی. ځنډنی. (مراد ځني ډېر وخت دی).

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی که څوک د معمولي وخت مثلاً د يو څو ورځو لپاره احتكار وكړي (غله ذخيره کړي). نو څرنګه چې په دې صورت کي د خلکو ضرر نسته؛ لهذا داسي صورت مکروه نه دی. خو که د احتكار مودت يوه مياشته يا تر دې زيات وي. نو دا مکروه دي؛ ځکه په دې کي د خلکو ضرر دی او مخکي ذکر سوه چې د کراهت مدار پر همدې ضرر او نقصان دی.

---

[1] تخريج: أخرجه الحاكم في المستدرك، كتاب البيوع، حديث رقم: ٢١٦٥.

ثم قيل إلخ: فرمايي چي د احتکار د مودت په هکله يو قول دا دی چي تر څلوېښتو ورځو پوري احتکار مکروه دی او تر هغه کم صحيح دی؛ ځکه په حديث کي تر دغومره ورځو پوري د غلې راګرځونکي په هکله وعيد راغلی دی.

دويم قول دا دی چي يوه مياشته يا تر دې زياتي ورځي احتکار کول مکروه دي؛ ځکه په عامه توګه خلک د يوې مياشتي مودت کثير او آجل (ځنډنی) ګڼي او تر دې کم قليل او عاجل ګڼي.

وروسته فرمايي چي په کتاب الصلاة او کتاب السلم وغيره کي په دې هکله بحث تېر سوی دی.

ويقع التفاوت إلخ: د دې حاصل دا دی چي څوک د ګرانۍ واقع کېدلو په انتظار کي احتکار کوي او بل څوک د وچکالۍ واقع کېدلو په انتظار کي احتکار کوي، نو په داسي دوو کسانو کي د ګناه په اعتبار سره هم تفاوت دی؛ ځکه ښکاره خبره ده کوم څوک چي د وچکالۍ انتظار کوي چي پر اُمت به کله وچکالي راسي، د هغه ګناه تر داسي کس ډېره زياته ده کوم چي فقط د ګرانۍ په انتظار ناست وي؛ ځکه د وچکالۍ منتظر خو ګواکي د خلکو مرګ او قتل ته آماده دی، او د نفس قتل د مال له قتل څخه غټه ګناه ده (په بله وينا دا چي د نفس اخيستل د مال له اخيستو څخه لويه ګناه ده).

وقيل إلخ: فرمايي د مودت په هکله يو قول دا دی چي مودت صرف د دنياوي سزا لپاره دی. يعني که په اسلامي هيواد کي څوک احتکار کوي، نو امام او قاضي به د احتکار مودت ته ګوري او د هغه مطابق به سزا ورکوي، کنې ګناه خو په هر حال کي پر هغه سته، مودت برابره ده کم وي او که زيات وي. لهذا غوره همدا ده چي انسان له غلې څخه بغير د يو بل شي تجارت وکړي؛ ځکه په دې کي عموماً نيت خرابيږي او د احتکار پلان ته زړه مائله کيږي.

**يادونه**: احتکار هغه وخت مکروه دی کله چي د عامو خلکو لپاره مضر وي. او د غلې تجارت هغه وخت ښه او محمود نه دی کله چي په دې سره د تاجر نيت د احتکار وي، کنې دا ښه او محمود دی؛ ځکه چي کسب کونکی د الله جل جلاله دوست دی. (سکب الانهر ج: ۲، ص: ۴۷۸)

## د خپل جايداد غله ذخيره کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنِ احْتَكَرَ غَلَّةَ ضَيْعَتِهِ فرمايي: او څوک چي د خپل ځمکي غله [پيداوار] ذخيره کړي أَوْمَا جَلَبَهُ مِنْ بَلَدٍ آخَرَ يا هغه غله ذخيره کړي کوم چي يې له بل ښاره راوړې وي فَلَيْسَ بِمُحْتَكِرٍ نو هغه احتکار کونکی نه دی أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّهُ خَالِصُ حَقِّهِ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ حَقُّ الْعَامَّةِ کوم چي اول [يعني د خپل ځمکي غله ذخيره کول] دي نو ځکه چي هغه خالص د ده خپل حق دی چي د هغه سره د عوامو

حق متعلق نه دی أَلَا تَرَى أَنَّ لَهُ أَنْ لَا يَزْرَعَ آيا ته نه ګورې چې هغه ته دا اختيار سته چې خپله غله ونه کړي فَكَذٰلِكَ لَهُ أَنْ لَا يَبِيْعَ نو همداسي به دا اختيار هم ورته وي چې خرڅه يې نه کړي وَأَمَّا الثَّانِيْ فَالْمَذْكُوْرُ قَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ او کوم چې دويم [يعني له بل ښاره راوړل سوې غله ذخيره کول] دي نو دا ذکر سوی حکم د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ حَقَّ الْعَامَّةِ إِنَّمَا يَتَعَلَّقُ بِمَا جُمِعَ فِي الْمِصْرِ وَجُلِبَ إِلَى فِنَائِهَا ځکه د عوامو حق د هغه غلې سره متعلق دی کوم چې په ښار کي جمع کړل سي، او د ښار اطرافو ته راوړل سي وَقَالَ أَبُوْ يُوْسُفَ: يُكْرَهُ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چې دا هم مکروه دي لِإِطْلَاقِ مَا رَوَيْنَا زموږ د روايت کړده حديث د مطلقوالي په وجه وَقَالَ مُحَمَّدٌ: كُلُّ مَا يُجْلَبُ مِنْهُ إِلَى الْمِصْرِ فِي الْغَالِبِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: هر هغه ځای چې له هغه ځخه غالباً [عموماً] ښار ته غله راوړل کيږي فَهُوَ بِمَنْزِلَةِ فِنَاءِ الْمِصْرِ نو هغه د ښار ذ اطرافو په درجه کي دی يَحْرُمُ الْاِحْتِكَارُ فِيْهِ [نو] په هغه غله کي احتکار کول مکروه دي [کوم چې له داسي ځای ځخه راوړل سوې وي] لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْعَامَّةِ بِهِ ځکه چې د هغه غلې سره د عوامو حق متعلق دی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْبَلَدُ بَعِيْدًا لَمْ تَجْرِ الْعَادَةُ بِالْحَمْلِ مِنْهُ إِلَى الْمِصْرِ په خلاف د هغه صورت کله چې ښار ګوتې ليري وي چې له هغه ځخه وښار ته د غلې راوړلو عادت [رواج] جاري نه وي لِأَنَّهُ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ حَقُّ الْعَامَّةِ ځکه چې د هغه سره د عوامو حق متعلق نه دی.

**اللغات**: ﴿الضيعة﴾ پيداوار والا ځمکه، غله داره ځمکه، ﴿جلب﴾ د نصر د باب ماضي ده: له بل ځايه راوړل. ﴿فِنَاء﴾ (بكسر الفاء): د کور اطرافو والا خالي ځمکه او خالي ميدان، يعني د کور په اطرافو کي چې کومي خالي ځمکي وي په اصل کي فِنَاء هغه ته وايي، دلته د ښار اطرف ځني مراد دي. او فَنَاء (بفتح الفاء): پنا کېدلو او هلاکېدلو ته وايي.

**تشریح**: **مسئله**: دا ده چې کله د احتکار مکروه کېدلو وجه د عوامُ النّاس ضرر دی، نو که څوک د خپلي ځمکي غله يا د يو بل ښار ځخه راوړل سوې غله راوګرځوي (ذخيره يې کړي)، نو دا صورتونه له کراهت ځخه خالي دي: ځکه په دې دواړو صورتونو کي د ذخيره کړل سوي غلې سره د عوامو حق

متعلق نه دی، او بل دا چي څرنګه سړي ته دا حق سته چي خپله غله نه وکړي، نو همداسي به ده ته دا اختيار هم وي چي هغه خرڅه نه کړي.

خو دا دويم صورت چي له بل ښار څخه د راوړل سوې غلې احتکار کول په دې باره کي مذکوره قول صرف د امام صاحب رَحِمَهُ الله دی؛ ځکه د هغه په نېز د هغه غلې سره د عوامو حق متعلق کيږي کوم چي په ښار کي جمع کول کيږي او هلته خرڅول کيږي که په هغه کي څوک احتکار وکړي، نو دا مکروه دي، لېکن که له يو بل عليحده ښار څخه راوړل سي او ذخير کړل سي نو مکروه نه دي (او

صاحب د احسن الهدايې رَحِمَهُ الله د دغه عبارت "بما جمع في المصر وجلب إلى فنائها" تشريح داسي کړې ده چي: د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه غلې سره د خلکو حق متعلق کيږي کوم چي له يو خاص ښار څخه رانيول سي او د هغه په فنا کي ذخيره کړل سي. والله اعلم).

امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي څرنګه په حديث کي مطلقاً "اَلْمُحْتَكِرُ مَلْعُوْنٌ" ويل سوي دي، نو ځکه دا احتکار مذکوره (دويم) صورت هم مکروه دی.

امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي که له يو داسي ځايه غله راوړي او ذخيره يې کړي چي په عامه توګه له هغه ځايه دغه ښار ته غله راځي، نو هغه د ښار د فناء په حکم کي دی، لهذا دا صورت مکروه دی. لېکن که د يو بل ليري ښار څخه غله راوړي او ذخيره يې کړي چي عموماً له هغه ښاره د دې ښار خلک غله نه راوړي، نو دا صورت مکروه نه دی؛ ځکه په دې صورت کي د ذخيره کړل سوي غلې سره د عوامو حق متعلق نه دی. (احسن الهدايه)

## د باچا له طرفه د ربړ او نرخ د ټاکل کېدلو حکم

قَالَ: وَلَا يَنْبَغِيْ لِلسُّلْطَانِ أَنْ يُسَعِّرَ عَلَى النَّاسِ فرمايي: او باچا ته پکار نه دي چي پر خلکو نرخ وټاکي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ. ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي «لَا تُسَعِّرُوا [1] فَإِنَّ اللهَ هُوَ الْمُسَعِّرُ الْقَابِضُ الْبَاسِطُ الرَّازِقُ» تاسي نرخ مه ټاکئ ځکه الله تعالیٰ نرخ ټاکونکی، قبضه کوونکی، پراخي راوستونکی او روزي رسونکی دی وَلِأَنَّ الثَّمَنَ حَقُّ الْعَاقِدِ او ځکه چي ثمن د عقد کوونکي حق دی فَإِلَيْهِ تَقْدِيْرُهُ نو د ثمن اندازه کول [ټاکل] به وهمده ته [حواله] وي فَلَا يَنْبَغِيْ لِلْإِمَامِ أَنْ يَتَعَرَّضَ لِحَقِّهِ نو ځکه باچا ته پکار نه دي چي د ده په حق کي داخل اندازي وکړي إِلَّا إِذَا تَعَلَّقَ بِهِ دَفْعُ ضَرَرِ

الْعَامَّةِ مګر دا چي کله چي د دې [نرخ ټاکلو] سره له عوامو څخه د ضرر دفع کول متعلق وي عَلیٰ مَا نُبَيِّنُ چي دا به [څه وروسته] موږ بيان کړو وَإِذَا رُفِعَ إِلَى الْقَاضِيْ هٰذَا الْأَمْرُ او کله چي قاضي ته دا معامله پېش کړل سي [يعني قاضي ته دا شکايت ورسيږي چي فلانی کس احتکار کوي] يَأْمُرُ الْمُحْتَكِرَ بِبَيْعِ مَا فَضَلَ عَنْ قُوْتِهِ وَقُوْتِ أَهْلِهِ نو قاضي به هغه احتکار کونکی کس امر کوي په خرڅولو سره د هغه [ټوله] غلې کوم چي د ده او د ده د کورنۍ له خوراکې څخه اضافه سي عَلیٰ اِعْتِبَارِ السَّعَةِ فِيْ ذٰلِكَ په دې باره کي د ګنجايش کېدلو په اعتبار سره [يعني څکه چي د ځان او کورنۍ لپاره غله او خوراکه راګرځول او ذخيره کول ګنجايش لري] وَيَنْهَاهُ عَنْ الْاِحْتِكَارِ او هغه به له احتکار څخه منع کوي فَإِنْ رُفِعَ إِلَيْهِ مَرَّةً أُخْرٰى او که قاضي ته بيا دا معامله پېش کړل سي حَبَسَهُ نو قاضي به هغه احتکار کونکی کس بندي کوي وَعَزَّرَهُ عَلیٰ مَا يَرٰى او هغه ته به سزا ورکوي څومره [او کومه] سزا چي قاضي مناسب وګڼي زَجْرًا لَهُ هغه ته د تنبيه ورکولو [او د هغه د منع کولو] لپاره وَدَفْعًا لِلضَّرَرِ عَنِ النَّاسِ او له خلګو څخه د ضرر دفع کولو لپاره.

**اللغات**: ﴿يسعّر﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: نرخ ټاکل (نرخ ايښودل)، ريښتيا متعيّنول. ﴿القابض﴾ د الله ﷻ له نومونو څخه يو نوم دی: په خپل قبضه کي نيونکی. برلاسی. ﴿باسط﴾ دا هم د الله ﷻ له نومونو څخه يو نوم دی: پراخونکی او پراخي راوستونکی. ﴿تقدير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: ټاکل. مقرر کول. اندازه کول. ﴿عزر﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: سزا ورکول. رټل او غندل. ﴿زَجْرًا﴾ د نصر د باب مصدر دی: تنبيه ورکول. له بدی څخه منع کول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده چي د وخت باچا او واکمن لره مناسب نه دي چي د شيانو لپاره يو ولاړ او درېدلی نرخ متعيّن کړي؛ څکه په حديث کي له دې څخه منع سوې ده چي هر شی د الله ﷻ په تصرّف کي دی. له خپل ځانه په هغه کي کمي بيشي کول مناسب نه دي. او بل دا چي ثمن د عاقد حق دی. لهذا د هغه ټوله ذمه واري به هم د عاقد پر ذمه وي، باچا يا بل کس لره به په هغه کي د څه دخل اندازي کولو اختيار نه وي. خو که عاقد زيات ثمن متعين کړي او په ګران قيمت سره خپل شيان خرڅوي. نو څرنګه چي په دې کي د عوامو ضرر دی. نو څکه د ضرر دفع کولو لپاره دي باچا په

هغه کې دخل اندازي وکړي او د شيانو لپاره دې يو متعين رېټ مقرر کړي. د دې لپاره چې عوام له ضرر او نقصانه خوندي کړل سي.

إذا رفع إلخ: د دې حاصل دا دی که يو څوک احتکار کوي او خلک قاضي ته ولاړ سي او د هغه شکايت وکړي، نو د قاضي ذمه واري دا ده چې اول هغه کس په مينه او نرمي سره پوه کړي او هغه ته حکم وکړي چې د خپل ځان او کورنۍ لپاره د غذا او خوراکې له راګرځولو څخه وروسته نور پاته غله خرڅه کړي او د آينده لپاره له احتکار څخه منع سي. لېکن که بيا هم هغه منع نه سي او قاضي ته بيا د هغه شکايت ورسيږي، نو اوس دې قاضي هغه بندي کړي او د خپل رايې مطابق دې مناسبه سزا ورکړي. د دې لپاره چې دا قيد او تعزير د دغه کس لپاره زجر او تنبيه سي چې هغه منع سي او خلک له ضرر او نقصانه هم وساتل سي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

فَإِنْ كَانَ أَرْبَابُ الطَّعَامِ يَتَحَكَّمُونَ وَيَتَعَدَّوْنَ عَنِ الْقِيمَةِ تَعَدِّيًا فَاحِشًا بيا که چيرې د غلې مالکان [غله فروشان] تحکّم کوي او له قيمت څخه ډېر زيات تېری کوي وَعَجَزَ الْقَاضِي عَنْ صِيَانَةِ حُقُوقِ الْمُسْلِمِينَ إِلَّا بِالتَّسْعِيرِ او قاضي د مسلمانانو د حقونو له حفاظت څخه عاجزه سي مګر په نرخ ټاکلو سره [چې صرف په نرخ ټاکلو سره د هغوی د حقوقو حفاظت کيږي] فَحِينَئِذٍ لَا بَأْسَ بِهِ بِمَشُورَةٍ مِنْ أَهْلِ الرَّأْيِ وَالْبَصِيرَةِ نو په دې وخت کې څه حرج نسته په نرخ ټاکولو کې د رايې او بصيرت والا خلکو په مشوره سره فَإِذَا فَعَلَ ذٰلِكَ وَتَعَدّٰى رَجُلٌ عَنْ ذٰلِكَ وَبَاعَ بِأَكْثَرَ مِنْهُ بيا کله چې قاضي داسې وکړي او يو سړی له دې څخه تېری وکړي او تر هغه [ټاکل سوي نرخ] په زيات قيمت خرڅول وکړي أَجَازَهُ الْقَاضِي نو قاضي به د هغه بيع جائز ګرځوي [يعني ماتوي به يې نه] وَهٰذَا ظَاهِرٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز خو دا ښکاره ده لِأَنَّهُ لَا يَرَى الْحَجْرَ عَلَى الْحُرِّ ځکه هغه پر آزاد کس بنديز [او منع] کول جائز نه ګڼي وَكَذَا عِنْدَهُمَا او همداسې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز [هم ښکاره ده] إِلَّا أَنْ يَكُونَ الْحَجْرُ عَلَى قَوْمٍ بِأَعْيَانِهِمْ مګر دا چې بنديز پر معيّن قوم وي وَمَنْ بَاعَ مِنْهُمْ بِمَا قَدَّرَهُ الْإِمَامُ او له دوی [غله فروشانو] څخه چې کوم يو د امام پر ټاکل سوي نرخ خرڅول وکړي صَحَّ نو صحيح دي لِأَنَّهُ غَيْرُ مُكْرَهٍ عَلَى الْبَيْعِ ځکه هغه پر بيع مجبور کړی سوی نه دی هَلْ يَبِيعُ الْقَاضِي عَلَى

الْمُحْتَكِرِ طَعَامَهُ مِنْ غَيْرِ رِضَاهُ [او] آيا قاضي د احتکار کونکي له رضا څخه بغير د هغه غله خرڅولای سي قِيْلَ: هُوَ عَلَى الِاخْتِلَافِ الَّذِيْ عُرِفَ فِيْ بَيْعِ مَالِ الْمَدْيُوْنِ [نو په دې اړه] ويل سوي دي: چي دا پر هاغه اختلاف دي کوم چي د مقروض کس د مال د بيع په هکله پېژندل سوی دی وَقِيْلَ: يَبِيْعُ بِالِاتِّفَاقِ او ويل سوي دي: چي بالاتفاق به يې خرڅوي لِأَنَّ أَبَا حَنِيْفَةَ يَرَى الْحَجْرَ لِدَفْعِ ضَرَرٍ عَامٍّ ځکه چي امام صاحب رَحِمَهُ الله د عام ضرر دفع کولو لپاره بنديز روا ګڼي وَهٰذَا كَذٰلِكَ او دا همداسي ده.

**اللغات**: ﴿أرباب﴾ جمع د رَبٌّ ده. دا لفظ بغير له اضافته خو صرف د الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره خاص دی خو په اضافت سره يې پر بل چا هم اطلاق کيږي لکه دلته چي طعام ته مضاف سوی دی. د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه يې يوه معنیٰ ده: مالک، خاوند. ﴿تعدّيًا فاحشًا﴾ ډېر زيات تجاوز (تېری)، مطلب يې دا دی چي په دوچنده قيمت سره يې خرڅوي. ﴿الحَجْر﴾ د نصر د باب مصدر دی: منع کول، ممانعت، بنديز لګول.

**تشريح**: **مسئله**: دا ده که غله فروشان تجاوز کوي او ډېر زيات قيمت اخلي (مثلاً د ۵۰۰ پر غلې ۱۰۰۰ غواړي)او حالت دومره کړ کېچن وي چي له نرخ ټاکلو څخه بغير په بله توګه قاضي د مسلمانانو د حقوقو حفاظت نه سي کولای، نو اوس هغه ته پکار دي چي په دې اړه د ماهرينو او پوهانو سره مشوره وکړي او د شيانو لپاره يو معلوم نرخ او رېټ متعيّن کړي.

او که د نرخ تر متعيّنولو وروسته بيا هم يو کس زيات قيمت اخلي يعني په زيات قيمت خرڅول کوي (کوم چي مجهول عکس وي او قاضي ته معلوم نه وي)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز قاضي دي د هغه بيع فسخ او ماته نه ګرځوي بلکي هغه دي صحيح ګرځوي، په داسي کولو کي څه حرج نسته: ځکه امام صاحب رَحِمَهُ الله پر آزاد کس د بنديز لګولو او جبر کولو قائل نه دی، او همدا حکم دلته د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هم دی، ځکه صاحبين رَحِمَهُمَا الله خو پر معلوم کس او معلوم جماعت باندي بنديز لګول جائز ګڼي، او دلته هغه زيات قيمت اخيستونکی کس مجهول دی، نو ځکه د هغه په هکله به حجر نه کيږي.

ومن باع إلخ: فرمايي کوم څوک چي د امام او قاضي پر ټاکل سوي رېټ خرڅول کوي، دا هم صحيح ده؛ ځکه چي هغه په دغه رېټ سره پابند او مکلّف ګرځول سوی دی، پر بيع نه دی مجبوره کړی سوی، لهذا د هغه بيع صحيح ده.

وهل يبيع إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چې که يو کس غله ذخيره کړي وي او د ځان سره يې راګرځولې وي، آيا اوس قاضي د هغه له اجازت نه بغير دا غله خرڅولای سي.

فرمايي په دې هکله دوه قولونه دي: (۱) څرنګه چې د مقروض (پور وړي) د مال په هکله د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی، همداسي دلته هم د دې حضراتو اختلاف دی. يعني که يو څوک مقروض وي قرضونه پرې باندي وي او د هغه سره دومره مال (سامان) وي چې د خلکو (قرضخواهانو) قرضونه په اداء کېدلای سي، لېکن بيا يې هم هغه نه اداء کوي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قاضي په جبر او زور سره د هغه مال نه سي خرڅولای، خو صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چې که د مقروض سره مال وي او بيا يې هم هغه نه خرڅوي او قرض نه اداء کوي، نو قاضي هغه خرڅولای سي: ځکه کله چې د مال باوجود هم هغه قرض نه اداء کوي نو ګواکي قرضخواهانو ته ضرر رسوي. لهذا د هغه مال به خرڅول کيږي او د قرضخواهانو قرضونه به په اداء کول کيږي.

(۲) دويم قول دا دی چې دلته بالاتفاق قاضي لره جائز دي چې د دغه محتکر مال خرڅ کړي: ځکه هغه عوامو ته ضرر او تاوان رسوي، او د ضرر عام لېري کولو په وخت کي امام صاحب هم د حجر او بنديز قائل دی، نو ځکه د محتکر له خوښې او اجازت څخه بغير به د هغه مال خرڅول جائز وي. (احسن الهدايه)

**يادونه (۱):** بغير له ضرورته نرخ او ريټ ټاکل مکروه دي. (شامي ج: ۵. ص: ۲۵۶)

**يادونه (۲):** د ظلم و زياتوب په وخت کي پر قاضي نرخ ټاکل واجب دي. (پورتنی حواله)

## د فتنې او بغاوت په ورځو کي د وسلې (اسلحې) خرڅولو حکم

قَالَ: وَيُكْرَهُ بَيْعُ السِّلَاحِ فِي أَيَّامِ الْفِتْنَةِ فرمايي: او د فتنې په ورځو کي وسله خرڅول مکروه دي مَعْنَاهُ مِمَّنْ يُعْرَفُ أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْفِتْنَةِ د دې مطلب دا دی چې پر داسي کس اخرڅول مکروه دي ا چې د هغه په هکله دا معلومه وي چې له فتنه ګرو څخه دی لِأَنَّهُ تَسْبِيبٌ إِلَى الْمَعْصِيَةِ ځکه چې دا د معصيت سبب جوړېدل دي [يعني پر فتنه ګرو وسله خرڅول معصيت او فتنې ته لاره هوارول او د هغه سبب ګرځېدل دي] وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي السِّيَرِ او په کتاب السير کي مونږ د دې بيان کړی دی وَإِنْ كَانَ لَا يُعْرَفُ أَنَّهُ مِنْ أَهْلِ الْفِتْنَةِ او که دا معلومه نه وي چې هغه له فتنه ګرو څخه دی لَا بَأْسَ بِذَلِكَ نو بيا په دې کي څه حرج نسته لِأَنَّهُ يَحْتَمِلُ أَنْ لَا يَسْتَعْمِلَهُ فِي الْفِتْنَةِ ځکه [په دې صورت کي] دا احتمال سته چې هغه

به يې په فتنه کې استعمال نه کړي فَلَا يُكْرَهُ بِالشَّكِ نو [صرف] د شک په وجه به هغه نه مکروه کيږي قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ الْعَصِيْرِ مِمَّنْ يُعْلَمُ أَنَّهُ يَتَّخِذُهُ خَمْرًا او د انګور د رَسْ [اوبو] په خرڅولو کې څه پروا نسته پر داسې کس چې د هغه په هکله دا معلومه وي چې شراب ځنې جوړوي لِأَنَّ الْمَعْصِيَةَ لَا تُقَامُ بِعَيْنِهِ بَلْ بَعْدَ تَغْيِيْرِهِ ځکه چې معصيت په عينِ رَسْ [اوبو] سره نه قايميږي بلکې د هغه تر متغيّر کېدو وروسته قايميږي بِخِلَافِ بَيْعِ السِّلَاحِ فِيْ أَيَّامِ الْفِتْنَةِ په خلاف د فتنې په ورځو کې د وسلې خرڅولو لِأَنَّ الْمَعْصِيَةَ تَقُوْمُ بِعَيْنِهِ ځکه چې معصيت په عينِ وسله سره قايميږي.

**اللغات:** ﴿تسبيب﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: سبب جوړول، سبب جوړېدل (سبب ګرځېدل)، ﴿معصية﴾ ګناه، نافرماني. ﴿عصير﴾ د انګورو نچوړل سوي اوبه، چې هغه ته د انګورو رسْ، د انګورو ځوښا (شېره) هم وايي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله د يو عادل امام او باچا په خلاف ځيني بد انجامه خلک په ناحقه بغاوت او سرکښي وکړي او فتنه وفساد جوړ کړي، نو په دې وخت کې پر داسې کس کوم چې له دې باغيانو څخه وي وسله خرڅول مکروه دي؛ ځکه په دې وخت کې پر هغه خرڅول اعانت على المعصية دی او د ګناه سبب جوړېدل دي او الله تعالیٰ له "تعاون على الإثم" څخه منع کړې ده، فرمايي ﴿وَلَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْإِثْمِ وَالْعُدْوَانِ﴾، صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله وايي چې په مورد په كِتَابُ السِّيَر کې په دې هلکه پوره بحث کړی دی.

خو که معلومه سي چې رانيونکی کس (مشتري) له باغيانو او فتنه ګرو څخه نه دی، نو بيا پر هغه وسله خرڅول څه پروا نه لري؛ ځکه کېدای سي چې هغه دا په بغاوت کې استعمال نه کړي، لهذا محض د شک پر بنياد دا بيع نه مکروه کيږي.

دويمه مسئله دا ده چې که د يو سړي په هکله دا يقيني معلومه وي چې هغه شراب جوړوي او خرڅوي يا يې خپله چيښي، که پر داسې سړي د انګورو اوبه او شېره خرڅه کړل سي، نو په دې کې هم څه حرج او پروا نسته؛ ځکه د انګورو له اوبو څخه سمدستي (براه راست) شراب نه جوړيږي، بلکې هغه ګرسول کيږي، وچول کيږي مطلب دا چې له څو پړاوونو څخه تيريږي بيا شراب ځني جوړيږي، لهذا کله چې دلته معصيت خاص د انګورو په اوبو (عينِ عصير) سره نه قايميږي، نو ځکه دا به په تعاون على الإثم کې داخل نه وي او بيع به يې صحيح وي.

او وسله داسي نه ده؛ ځکه د فتنې او فساد په زمانه کې خاص په همدې وسله (عينِ وسله) سره معصيت قايميږي چې همدا وسله د وژلو، زخمي کولو او وحشت خپرولو آله ده. نو ځکه په داسي وخت کې پر فتنه ګر او باغي کس وسله خرڅول مکروه دي.

## داسي خلکو ته کور په کرایه ورکول چې هغوی پکښي یو غیرِ شرعي کار کوي (حکم او تفصیل)

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کې] فرمايي وَمَنْ آجَرَ بَيْتًا لِيُتَّخَذَ فِيهِ بَيْتُ نَارٍ أَوْ كَنِيسَةٌ أَوْ بِيْعَةٌ او څوک چې کور په کرايه ورکړي د دې لپاره چې په هغه کې [د مجوسيانو] اُور خانه جوړه کړل سي يا [د يهودو] کليسا يا [يا د عيسايانو کليسا] ګرجا أَوْيُبَاعُ فِيهِ الْخَمْرُ يا [د دې لپاره چې] په هغه کې شراب خرڅول کيږي بِالسَّوَادِ په کلي [صحرايي سيمه او علاقه] کې [يعني دا کور له ښاره بهر په صحرايي علاقه کې وي] فَلَا بَأْسَ بِهِ نو په دې کې څه پروا نسته وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دی وَقَالَا: ۞ لَا يَنْبَغِي أَنْ يُكْرِيَهُ لِشَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې له دغو څخه د يوه شي لپاره هم کور په کرايه ورکول جائز نه دي لِأَنَّهُ إِعَانَةٌ عَلَى الْمَعْصِيَةِ ځکه چې دا پر ګناه مدد ورسره کول دي وَلَهُ: أَنَّ الْإِجَارَةَ تَرِدُ عَلَى مَنْفَعَةِ الْبَيْتِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې اجاره د کور پر منفعت واردیږي وَلِهٰذَا تَجِبُ الْأُجْرَةُ بِمُجَرَّدِ التَّسْلِيمِ په همدې وجه محض [د کور] په ورسپارلو سره کرايه واجبيږي وَلَا مَعْصِيَةَ فِيهِ او خپله په اجاره کې هيڅ معصيت نسته وَإِنَّمَا الْمَعْصِيَةُ بِفِعْلِ الْمُسْتَأْجِرِ ځکه معصيت خو د هغه کس په فعل کې دی کوم چې په کرايه نيونکی دی [يعني کوم چې د کليسا يا د شراب وغيره جوړولو په نيت کور او ځای په کرايه نيسي. معصيت خو دهغه په دې کړنه کې دی] وَهُوَ مُخْتَارٌ فِيهِ او هغه په دې [يعني د معصيت کولو يا نه کولو په] باره کې اختيارمن دی فَقُطِعَ نِسْبَتُهُ عَنْهُ نو د فعل [معصيت] نسبت له هغه [په کرايه ورکونکي او اجارې] څخه ختم سو وَإِنَّمَا قَيَّدَهُ بِالسَّوَادِ او دا صورت يې ځکه په کلي [صحرايي علاقه] سره مقيد کړی

---

۞ **القول الراجح:** قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، لأن قولهما معمول عليه. و (أيضاً) قولهما مبنى على الاحتياط. ومنع هذه الإجارة مظنة التهمة. قال العلامة طاهر بن عبد الرشيد البخارى رَحِمَهُ الله: ولو آجر نفسه من ذمي ليعصر له فيتخذ خمراً. يكره... (خلاصه ج:۴، ص:۳۴۶). وقال العلامة الشبلى رَحِمَهُ الله فى الحاشية: قال فخر الإسلام: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله قياس، وقولهما استحسان وهكذا فى رد المحتار (ج:۵، ص:۲۷۸). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۰۶]

دي لِأَنَّهُمْ لَا يُمَكَّنُوْنَ مِنْ اتِّخَاذِ الْبِيَعِ وَالْكَنَائِسِ وَإِظْهَارِ بَيْعِ الْخُمُوْرِ وَالْخَنَازِيْرِ فِي الْأَمْصَارِ ځکه په ښارو کي کفارو ته قدرت نه ورکول کيږي [يا قادر نه دي] د ګرجاوو او کليساوو د جوړولو او د شرابو او خنزيرانو د خرڅولو لِظُهُوْرِ شَعَائِرِ الْإِسْلَامِ فِيْهَا ځکه چي په ښارو کي اسلام ښکاره [غالب] وي بِخِلَافِ السَّوَادِ په خلاف د کلي [صحرايي علاقې] قَالُوْا: هٰذَا كَانَ فِي سَوَادِ الْكُوْفَةِ مشايخو رَحِمَهُمُ الله فرمايلي دي: دا [حکم] صرف د کوفې د کلو [صحرايي سيمو] په هکله وو لِأَنَّ غَالِبَ أَهْلِهَا أَهْلُ الذِّمَّةِ ځکه چي د هغه زياتره اوسېدونکي ذميان وه أَمَّا فِي سَوَادِنَا فَأَعْلَامُ الْإِسْلَامِ فِيهَا ظَاهِرَةٌ ياته سوه زموږ کلي نو په هغوی کي د اسلام نښي [شعائر] ښکاره دي فَلَا يُمَكَّنُوْنَ فِيْهَا أَيْضًا نو ځکه په هغوی کي به هم کفارو اذميانوا ته قدرت نه ورکول کيږي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا صحيح ده.

**اللغات**: ﴿كَنِيْسَة﴾ د يهوديانو کليسا (عبادت خانه)، او ځيني وخت يې د عيسايانو پر کليسا هم اطلاق کيږي. ﴿بِيْعَة﴾ ګرجا، د عيسايانو (نصاراوو) کليسا، د کافرانو عبادت خانه. ﴿سواد﴾ د ښار اطراف، د صحرا کلي او صحرايي علاقه کوم چي د ښار په اطرافو کي وي.

**تشريح: صورتِ د مسئلي**: دا دی چي د ښار په اطرافو کي يا په بله وينا دا چي له ښاره بهر په صحرايي علاقه کي که مسلمان کس يو مجوسي ته خپل کور په کرايه ورکړي چي په هغه کي خپل د عبادت لپاره اُورخانه جوړه کړي. يا يهودي ته يې ورکړي چي خپل کليسا پکښې جوړه کړي. يا عيسايانو (نصاریٰ وو) ته يې ورکړي چي خپل کليسا (ګرجا) پکښې جوړه کړي. يا يو سړي ته يې ورکړي چي هغه خپل شراب خانه پکښې جوړه کړي (او دا ټوله په صحرا يعني په داسي علاقه او کلي کي وي کوم چي له ښاره بهر وي)، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې کي څه حرج نسته. خو صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي دا اعانت على المعصية دی او په قرآن کي له تعاون على الإثم څخه منع سوې ده. نو ځکه د مذکوره يوه شي لپاره هم کور په کرايه ورکول جائز نه دي.

له أن الإجارة إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي د اجارې مقصد د کور منفعت او فايده ده؛ ځکه محض په کرايه ورکولو سره د کور نفع او کرايه شروع کيږي، برابره ده څوک پکښې اوسيږي، که نه. لهذا په نفسِ اجاره کي څه معصيت نسته. نو دا به جائز وي، معصيت خو د هغه خلکو په افعالو کي وي کوم چي کور په کرايه نيسي، او هغه خلک خود مختاره دي برابره ده معصيت کوي. که يې نه کوي. نو د يو چا فعل د بل چا (مؤجر او اجارې) وطرف ته منسوب کول او هغه باطل ګرځول

صحیح نه دي (په بله وینا دا چي مستأجر خپله فاعل مختار دی. نو کوم څه چي د فاعل مختار اثر دی. د هغه نسبت د بل چا وطرف ته نه کيږي لکه څرنګه چي همدا أصول دی).

**يادونه:** خو په دغه دلیل کي دا شبهه سته چي پر باغي کس د وسلې خرڅولو په مسئله او په دې مسئله کي هيڅ فرق نسته؛ ځکه د معصيت قايمېدل چي څرنګه د وسلې په بيع کي سته، همداسي دلته هم سته، فتدبّر.

**وإنما قيده بالسواد إلخ:** فرمايي د سَواد يعني د صحراء د کلي او علاقې د قيد لګولو وجه دا ده چي په ښارونو کي اسلام او د اسلامي شعائرو رواج او غلبه وي او د ښار په هر ګوټ کي د اسلامي شعائرو آوازه پورته وي، نو ځکه په ښارونو کي د کفري شعائرو اجازت نسته، خو په صحرايي کلو او علاقو کي د اسلامي شعائرو غلبه کمه وي، نو ځکه هلته مشرکين وغيره په آساني سره خپل عبادت خانه، شراب خانه وغيره جوړولای سي. (او زموږ په اوسني وخت کي خو معامله ددې برعکس ده چي په ښار کي خود کفري شعائرو بازار ګرم وي لېکن په صحرايي علاقو کي د بازار په نسبت د اسلام او اسلامي شعائرو زياته پابندي کيږي).

خو مشايخو ددې غوره وضاحت کړی دی، هغوی فرمايي چي د سَواد قيد صرف د کوفې ښار په حق کي وو، چي د هغه وخت د کوفې د ښار په صنحرايي علاقو کي اکثره اوسېدونکي ذميان وه، لېکن د کوفې څخه بغير په نورو ښارو کي په دې هکله ښار او صحرايي علاقې ټوله سره برابره دي، نو ځکه د ښارو په څېر په صحرايي علاقو کي هم ددې اجازت نسته، همدا غوره او مختاره قول دی او همدا شمس الائمه او داسي نورو اختيار کړی دی.

## د ذمي شراب په أجرت له يوه ځای څخه بل ځای ته وړل

قَالَ: وَمَنْ حَمَلَ لِذِمِّيٍّ خَمْرًا فرمايي: او څوک چي [په أجرت] د ذمي لپاره شراب يوسي فَإِنَّهُ يَطِيبُ لَهُ الْأَجْرُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د هغه لپاره أجرت [اخيستل] حلال دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ: يُكْرَهُ لَهُ ذٰلِكَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي د هغه لپاره دا مکروه دي لِأَنَّهُ إِعَانَةٌ عَلَى الْمَعْصِيَةِ ځکه دا پر معصيت مدد ورسره کول دي وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] لَعَنَ فِي الْخَمْرِ عَشْرًا او په صحيح روايت سره ثابت دي چي نبي کريم ﷺ د شرابو په هکله پر لسو کسانو لعنت کړی دی حَامِلَهَا وَالْمَحْمُولَ إِلَيْهِ [چي يو له هغوی څخه] د شرابو وړونکی

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الأشربة، باب في ... حديث رقم ۳۶۷۴.

[دی] او [بل] چا ته چې شراب ور وړل کیږي لَهُ: أَنَّ الْمَعْصِيَةَ فِيْ شُرْبِهَا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چې معصیت د شرابو په چیښلو [خوړلو] کې دی وَهُوَ فِعْلُ فَاعِلٍ مُخْتَارٍ او دا [چیښل د شرابو] د اختیارمن فاعل فعل دی [یعني هغه د شرابو چیښلو په هکله خود مختاره دی] وَلَيْسَ الشُّرْبُ مِنْ ضَرُوْرَاتِ الْحَمْلِ او د شرابو چیښل د وړلو د لوازماتو څخه نه دي [یعني د شرابو له وړلو څخه دا نه لازمیږي چې هغه به یې چیښي هم] وَلَا يُقْصَدُ بِهِ او نه په وړلو سره هغه مراد ول کیږي [په بله وینا دا چې نه د وړونکي دا مقصد وي چې زه به یې هم چیښم. بلکې د هغه مقصد اُجرت وي] وَالْحَدِيْثُ مَحْمُوْلٌ عَلَى الْحَمْلِ الْمَقْرُوْنِ بِقَصْدِ الْمَعْصِيَةِ او [مذکوره] حدیث پر هغه وړلو حمل کړی سوی دی کوم چې د معصیت د ارادې سره متصل وي [یعني چې د چیښلو وغیره په نیت سره شراب یووسي].

**اللغات**: ﴿حمل﴾ د ضرب ماضي ده: پورته کول او وړل، بارول. ﴿یطیب﴾ د ضرب مضارع ده: حلال کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز که مسلمان د یو ذمي کس شراب یووسي، نو دغه مسلمان ته له هغه ذمي څخه خپل اُجرت او مزدوري اخیستل جائز دي، خو صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چې دا اعانت علی المعصیت دی او په حدیث کې چې د شرابو په هکله کوم لس خلک ملعونین ګرځول سوي دي، له هغوی څخه یو د شرابو حامل (وړونکی) هم دی. لهذا د دې وجوهاتو پر بناء به د شرابو اُجرت مکروه وي.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چې اصل اعتبار معصیت لره دی او معصیت د شرابو په چیښلو کې دی، نه په وړلو کې، او چیښل د فاعل مختار فعل دی. لهذا هغه د بل چا یعني د حامل وطرف ته نه سي منسوب کول کېدای. همدارنګه د حامل مقصد خپل اُجرت دی، نه شراب چیښل، لهذا د شرابو په اُجرت کې به کراهت نه وي. او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله د پېش کرده حدیث جواب دا دی چې حامل هغه وخت په ملعونینو کې شاملیږي چې د شراب چیښلو په قصد حمالي وکړي. خو که هغه د اُجرت ترلاسه کولو په خاطر حمالي کوي. نو په وعید کې نه داخلیږي.

## د مکې مبارکې کورونه او ځمکې خرڅول یا په اجرت ورکول

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِبَيْعِ بِنَاءِ بُيُوْتِ مَكَّةَ فرمايي: او پروا نسته د مکې مکرمې د کورو د بناء په خرڅولو کې وَيُكْرَهُ بَيْعُ أَرْضِهَا خو د مکې ځمکه خرڅول مکروه دي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز دی وَقَالَا ❁: لَا بَأْسَ بِبَيْعِ أَرْضِهَا أَيْضًا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د مکې د ځمکې په خرڅولو کې هم پروا نسته وَهٰذَا رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه [هم] یو روایت دی لِأَنَّهَا مَمْلُوْكَةٌ لَهُمْ ځکه چې د مکې ځمکه د همدوی [اهلِ مکه] لپاره ده لِظُهُوْرِ الْاِخْتِصَاصِ الشَّرْعِيِّ بِهَا ځکه د مکې په ځمکه کې شرعي اختصاص [توارث] ښکاره دی [له شرعي اختصاص څخه مراد په ځمکه کې وراثت جاري کېدل (یو بل ته په میراث کې پاتېدل) او په موارېثو کې تقسیمول دي] فَصَارَ كَالْبِنَاءِ نو [د مکې د ځمکې] بیع د بناء [د بیع] څېر سوه وَلِأَبِي حَنِيْفَةَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ❶ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل د نبي کريم ﷺ دا فرمان دی أَلَا إِنَّ مَكَّةَ حَرَامٌ لَا تُبَاعُ رِبَاعُهَا وَلَا تُوْرَثُ خبردار! مکه مکرمه حرامه ده چې د هغې احاطه د ځمکې به نه خرڅول کیږي او نه به میراث کیږي [یعني نه به په میراث کې تقسیمول کیږي].

وَلِأَنَّهَا حَرَّةٌ مُحْتَرَمَةٌ او ځکه چې مکه یو محترمه ځمکه ده [حَرَّة هغه ځمکې ته وایي چې توري ډبرې پکښې وي او که حُرَّة (بضم الحاء) سي نو د حُرَّة یو معنیٰ ده آزاده او بله معنیٰ یې ده کریم (کثیر الخیر او غوره) نکه په حاشیه کې چې هم دا معنیٰ مذکوره ده. نو بیا د دې جملې ولأنها... معنیٰ ده: او ځکه چې د مکې ځمکه آزاده یې ډېره غوره) او محترمه ده] لِأَنَّهَا فِنَاءُ الْكَعْبَةِ ځکه چې د مکې ځمکه د کعبې فناء [اطراف] دي وَقَدْ ظَهَرَ آثَارُ التَّعْظِيْمِ فِيْهَا او د مکې په ځمکه کې د تعظیم اثر ښکاره سوی دی حَتّٰى لَا يُنَفَّرَ صَيْدُهَا همدا وجه ده چې نه به د مکې ښکاره ترهول کیږي وَلَا يُخْتَلٰى خَلَاهَا او نه به یې وابنه رېبل کیږي وَلَا يُعْضَدُ شَوْكُهَا او نه به یې اغزي ماتول کیږي فَكَذَا فِي حَقِّ الْبَيْعِ نو همداسې به د بیع په حق کې هم [د تعظیم اثر ښکاره کیږي] بِخِلَافِ الْبِنَاءِ په خلاف د بناء [یعني د مکې په ځمکه کې جوړ سوی کور او ځای] لِأَنَّهُ خَالِصُ مِلْكِ الْبَانِيْ ځکه

---

❁ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، قال العلامه [illegible]
للعيني وبه يفتى (مجمع الأنهر ج:۴، ص:۲۱۲) [illegible]
نكير وهو من أقوى الحجج (تبيين الحقائق ج [illegible])

❶ تخريج: أخرجه دار قطني في [illegible]

چي هغه خالص د جوړونکي کس ملکيت دی وَيُكْرَهُ إِجَارَتُهَا أَيْضًا او د مکې ځمکه په اجاره [په اُجرت او کرايه] ورکول هم مکروه دي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ❷ : «مَنْ آجَرَ أَرْضَ مَكَّةَ فَكَأَنَّمَا أَكَلَ الرِّبَا» ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: څوک چې د مکې ځمکه په اجاره ورکړي نو ګواکي هغه سود وخوړی وَلِأَنَّ أَرَاضِيَ مَكَّةَ تُسَمَّى السَّوَائِبَ ❸ عَلَى عَهْدِ رَسُولِ اللهِ ﷺ او ځکه چې د مکې ځمکي به د نبي ﷺ په زمانه کي په "سوائب" سره نومول کېدې مَنْ احْتَاجَ إِلَيْهَا سَكَنَهَا څوک چې به ورته محتاجه وو هغه به پکښې اوسېدی وَمَنِ اسْتَغْنَى عَنْهَا او څوک چې به ځني مستغني سو [يعني احتياج او ضرورت به يې ختم سو] أُسْكِنَ غَيْرُهُ نو بيا به هغه بل څوک [پکښې] اوسوی [يعني بيا به يې دا د مکې مبارکي ځمکه او ځای بل چا ته پرېښوول].

**لغات:** ﴿بناء﴾ جوړ سوي څه. جوړ سوی ځای. ودانۍ. ﴿رِبَاع﴾ جمع د رَبْعٌ ده (لکه سِهَام چي جمع د سَهْمٌ ده) د رَبْعٌ څو معناوي دي: ① د يو قوم هغه ځای چي ورته راځي او پر او پکښې کوي. ② کور. ③ د کور شا, خوا (ځمکي). او نوري معناوي يې هم نقل سوي دي (معجم الوسيط). ﴿حرّة﴾ د دې وضاحت په ترجمه کي وسو. ﴿محترمة﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث اسم مفعول صيغه ده: د احترام او درناوي وړ. داسي څه چي د هغه خيال ساتل پر انسان لازم وي. ﴿ينفّر﴾ د تفعيل د باب د مضارع ده. تنفير: د دې باب يوه معنیٰ ده: ترهول او بېرول. تنکول. ﴿لا يُختلى﴾ د افتعال له بابه د نفي مجهول صيغه ده: د دې باب يوه معنیٰ ده: پرېکول. ريبل. ﴿خَلَاهَا﴾ الخَلى: وابنه. وچ وي او که لانده (معجم الوسيط). ﴿سوائب﴾ جمع د سَائِبَةٌ ده. د دغه لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه يې دوې معناوي دا دي: ① داسي شی چي پر هغه د هيچا ولايت نه وي، همدارنګه هغه مال چي مالک خپل قبضه ځني ختمه کړي خو د بل چا په ملکيت کي يې هم ور نه کړي. ② او ابن فارس ويلي دي چي هغه څه ته هم وايي چي د هغه په باره کي نهي وارد سوي وي او له هغه څخه منع سوې وي. ﴿استغنى﴾ د استفعال د باب ماضي ده: مستغني کېدل. بې پروا کېدل (يو شي ته احتياج نه لرل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د مکې د ښار بناء يعني د مکې په ځمکه کي جوړ سوي ځايونه (يعني کورونه. عمارتونه وغيره) بالاتفاق خرڅول کېدای سي. لېکن د مکې د ځمکو په هکله اختلاف دی. امام صاحب رَحِمَهُ الله د هغه بيع مکروه ګرځوي. او صاحبين رَحِمَهُمَا الله د بناء په څېر د هغه بيع هم جائز ګڼي او د امام صاحب رَحِمَهُ الله هم يو روايت داسي دی.

---

❷ تخريج: أخرجه دار قطني نحوه في كتاب البيوع، حديث رقم: ۲۹۶۶.

❸ تخريج: أخرجه دار قطني في كتاب البيوع، حديث رقم: ۳۰۰۰.

**د صاحبينو دليل:** دا دى چي د مکې خلک چي څرنګه د بناء مالکان دي، همداسي د ځمکي يې هم مالک دي، او د بناء بيع دوى ته جائز ده، لهذا د ځمکي بيع به هم ورته جائز وي.

همدارنګه د مکې مبارکې په ځمکه کي اختصاص شرعي ثابت دى، له اختصاص شرعي څخه مراد وراثت جاري کېدل دي، او په وراثت کي هم د بيع په څېر ملکيت (ديوه کس له طرفه بل چا ته) منتقل کيږي. لهذا کله چي اختصاص شرعي جائز دي، نو بيع به هم جائز وي، ځکه دواړه هَم معنىٰ (په يوه معنى) سره دي.

**د امام صاحب دليل:** هغه حديث دى کوم چي په عبارت کي ذکر سو چي په هغه کي د مکې حرمت او د مکې د ځمکي حرمت او په هغه کي د وراثت نه جارېدلو حکم بيان سوى دى.

عقلي دليل دا دى چي مکه د کعبې په فناء کي داخله ده او دا ښکاره خبره ده چي کعبه (بيت الله) قابل احترام او ممنوع البيع ده، لهذا مکه کوم چي د مکې په فناء کي داخله ده هغه هم قابلِ احترام ده او په هغه کي هم د کعبې د تعظيم اثر ښکاره سوى دى، همدا وجه ده چي څوک نه د مکې په ښکار پسې کېدلاى سي او نه د هغه وابښه رېبلاى سي تر دې چي ځوزان يې هم نه سي کښلاى. لهذا کله چي په دې ټولو شيانو کي د تعظيم اثر ښکاره دى. نو په بيع کي به يې هم تعظيم کيږي او د تعظيم په خاطر به د مکې د ځمکو خرڅول جائز نه وي.

بخلاف البناء إلخ: فرمايي چي د بناء مسئله د دې برعکس ده؛ ځکه بناء خالص د باني (جوړونکي) حق ده، نو ځکه د هغه خرڅول به جائز وي، او پاته سوه ځمکه پر هغه قياسول صحيح نه دي.

ويكره إجارتها إلخ: فرمايي د مکې مکرمې ځمکه په اُجرت ورکول مکروه دي؛ ځکه په حديث کي له دې څخه منع سوې ده او داسي کس سود خور ګرځول سوى دى، او بل دا چي د نبي کريم ﷺ په زمانه کي د مکې ځمکو ته سَوَائِب ويل کېده، سَوَائِب جمع د سَائِبَةٌ ده، مراد يې داسي شى دى چي هيڅ مالک يې نه وي او هر څوک له هغه څخه نفع اخيستلاى سي. همدا وجه ده چي د نبي ﷺ په زمانه کي هلته ضرورت مند خلک اوسېدل او د چا ضرورت چي به ختم سو، هغه به نقل سو او د مکې ځاى به يې بل ضرورت مند ته پرېښووى، معلومه سوه چي هغه په اجاره ورکول صحيح نه دي. (احسن الهدايه)

## دوکاندار ته په قرض درهم وغيره ايښوول او بيا د خپلي خوښي مطابق شيان ځني وړل

وَمَنْ وَضَعَ دِرْهَمًا عِنْدَ بَقَّالٍ يَأْخُذُ مِنْهُ مَا شَاءَ او څوک چي ديو دوکاندار سره درهم کښېږدي [پر دې شرط] چي دئ به له هغه [دوکاندار] څخه اخلي هغه څه چي خوښه يې وي يُكْرَهُ لَهُ ذٰلِكَ نو داسي کول د ده لپاره مکروه دي لِأَنَّهُ مَلَّكَهُ قَرْضًا جَرَّ بِهِ نَفْعًا ځکه چي ده هغه دوکاندار مالک جوړ کړى د

داسي قرض چې په هغه سره ده نفع حاصله کړه وَهُوَ أَنْ يَأْخُذَ مِنْهُ مَا شَاءَ حَالًا فَحَالًا او نفع دا ده چې دئ له هغه څخه وقتاً فوقتاً څه چې يې خوښه وي هغه اخلي وَنَهَى رَسُولُ اللهِ ﷺ عَنْ قَرْضٍ جَرَّ نَفْعًا او نبي کريم ﷺ له داسي قرض څخه منع کړې ده کوم چې نفع را کش کړي وَيَنْبَغِي أَنْ يَسْتَوْدِعَهُ او پکار دا ده چې په وديعت [امانت] کي يې ورته کښېږدي ثُمَّ يَأْخُذَ مِنْهُ مَا شَاءَ جُزْءًا فَجُزْءًا بيا دي له هغه [دوکاندار] څخه څه چې يې خوښه وي لږ، لږ اخلي لِأَنَّهُ وَدِيعَةٌ ځکه چې دا وديعت دی وَلَيْسَ بِقَرْضٍ او قرض نه دی حَتَّى لَوْ هَلَكَ همدا وجه ده که درهم ضايع سي لَا شَيْءَ عَلَى الْآخِذِ نو پر اخيستونکي [دوکاندار] هيڅ شی نسته.

**اللغات**: ﴿بقال﴾ په اصل کي سبزي فروش ته وايي، خو بيا دا لفظ عام سو او د مالکي مسالې وغيره پر خرڅونکي يې هم اطلاق وسو. ﴿يستودع﴾ د استفعال د باب مضارع ده: و چا ته خپل مال او شی په امانت اېښوول، امانتاً پرېښوول. ﴿وديعة﴾ امانت، په امانت اېښوول سوي څه.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که څوک مثلاً يو درهم هغه دوکاندار ته کښېږدي چې له هغه څخه سبزيجات راوړي، د دې لپاره چې له هغه څخه به وقتاً فوقتاً د خپل خوښې مطابق شيان وړي (يعني د درهم اېښولو په وخت کي دغه شرط ولګوي چې زه به يو وخت نه بل وخت ستا څخه لږ، لږ دا شيان وړم)، نو دا صورت مکروه دی؛ ځکه چې د هغه دا درهم د دوکاندار سره قرض دی او داسي قرض دی چې هغه ته د دې نفع حاصلېږي، او نفع دا ده چې هغه د دې درهم اېښولو په ذريعه له دوکاندار څخه وقتاً فوقتاً شيان وړي، لنډه دا چې دا نفع ده او په حديث کي له داسي قرض څخه منع سوې ده چې په هغه سره قرض ورکونکي ته نفع حاصلېږي، نو ځکه دا صورت مکروه دی.

وينبغي إلخ: فرمايي غوره صورت دا دی چې دوکاندار ته درهم وديعتاً (امانتاً) کښېږدي او په هغه وخت کي دې د څه اخيستلو صراحت نه کوي (يعني مذکور شرط دې نه لګوي) او بيا دې له دوکاندار څخه شيان وړي، نو دا صورت مکروه نه دی؛ ځکه اوس دا درهم امانت دي، نه قرض (او امانت په "کُلُّ قرضٍ جَرَّ نفعًا" کي داخل نه دی). همدا وجه ده که په دې صورت کي درهم له دوکاندار څخه ضايع سي، نو پر هغه ضمان (تاوان) نه لازمېږي، ځکه مخکي ذکر سوه چې د وديعت ضمان نه واجبېږي، خو د قرض ضمان واجبېږي.

❀❀❀

# مَسَائِلُ مُتَفَرِّقَةٌ

## بېلابېلي مسئلې

**تشريح**: تر دې عنوان لاندې د مخکنيو بابونو او فصلونو سره متعلق بېلابېلي مسئلې بيانول کېږي، لکه مخکې چې هم دا خبره څو ځله ذکر سوې دي.

### په قرآن مجيد کې تعشير او د نښاناتو لګولو حکم

قَالَ: وَيُكْرَهُ التَّعْشِيرُ وَالنَّقْطُ فِي الْمُصْحَفِ فرمايي: او مکروه دي تعشير [پر هرو لسو آيتونو علامت (نښه) لګول] او نقطې لګول په قرآن کريم کې لِقَوْلِ ابْنِ مَسْعُودٍ ﷺ: جَرِّدُوا الْقُرْآنَ د ابن مسعود ﷺ د فرمان په وجه: چې تاسي قرآن [له غيرِ قرآن څخه] خالي کړئ! وَيُرْوٰى: جَرِّدُوا الْمَصَاحِفَ او روايت سوی دی: چې تاسي قرآنونه [له غيرِ قرآن څخه] خالي کړئ! [يعنې په بل روايت کې د القرآن پر ځای د مصاحف لفظ راغلی دی] وَفِي التَّعْشِيرِ وَالنَّقْطِ تَرْكُ التَّجْرِيْدِ او په تعشير او نقطې لګولو کې [د قرآن] خالي کولو پرېښوول سته وَلِأَنَّ التَّعْشِيرَ يُخِلُّ بِحِفْظِ الْآيِ او ځکه چې تعشير د آيتونو په يادښت کې خلل اچوي وَالنَّقْطُ بِحِفْظِ الْإِعْرَابِ او نقطې پر لګول د اعراب په يادښت کې خلل اچوي اِتِّكَالًا عَلَيْهِ پر هغوی د اعتماد [بروسه] کولو په وجه فَيُكْرَهُ نو ځکه دا به مکروه وي قَالُوْا: فِيْ زَمَانِنَا لَا بُدَّ لِلْعَجَمِ مِنْ دَلَالَةٍ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چې زموږ په زمانه کې د عجمو لپاره څه دلالت [نښه او علامت] ضروري دی فَتَرْكُ ذٰلِكَ إِخْلَالٌ بِالْحِفْظِ وَهِجْرَانٌ لِلْقُرْآنِ نو د دې [تعشير او نقطو] پرېښوول [د قرآن] په يادښت کې خلل اچونکې دي او د قرآن پرېښوولو سبب دي فَيَكُوْنُ حَسَنًا نو ځکه دا به ښه [مستحسن] وي.

**اللغات**: ﴿تعشير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: تر هرو لسو آيتو وروسته علامت (نښه) لګول، ﴿النَّقْط﴾ د نصر د باب مصدر دی: پر لفظ نقطې (ټکي) لګول، ﴿الْمُصْحَف﴾ او مَصْحَف: وقايه لرونکی کتاب، مراد ځني قرآن کريم وي، جمع: مَصَاحِف، ﴿جرِّدُوا﴾ د تفعيل له بابه د جمع مذکر امرِ

حاضر صیغه ده: خالي کول، خالي پرېښوول. ﴿یخل﴾ د افعال د باب مضارع ده: خلل اچول (نقصان رسول).

**تشریح**: د مذکوره عبارت حاصل دی چي موږ ته د قرآن د تجرید حکم سوي. یعني قرآن له غیر قرآن څخه خالي کړئ! (مطلب دا چي کوم څه له قرآن څخه نه وي هغه مه ورسره لیکئ وغیره)، په همدې وجه په اولني دور کي دا حکم وو چي پر قرآن کریم نقطې او اعراب لګول، یا پر هرو لسو آیتونو علامت او نښان لګول او لکه رکوع تاکل دا مکروه دي؛ ځکه هغه وخت د دوی (عربو) لپاره دا شیان مُخل وه چي دوی به پر دې نښاناتو وغیره اعتماد وکړي او په دې توګه به د قرآن یادښدل پرېږدي یا دا به د قرآن په یادولو کي مخل سي.

لېکن وروسته مشایخو وویل چي زموږ په زمانو کي خصوصاً د عجمو لپاره اعراب او نقطې لګول ضروري دي؛ ځکه له دې څخه بغیر قرآن نه سي ویلای، نو د دوی په حق کي اعراب وغیره لیکل ضروري دي، همداسي تعشیر او نور نښانات لګول مستحسن دي، همدا وجه ده چي د نن سبا په نسخو کي د دې اهتمام سوی دی (ځکه د زمان او مکان په اختلاف سره احکام هم مختلف کېږي).

## د قرآن ښایسته کولو وغیره حکم او مسجد ته د ذمیانو داخلېدلو حکم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِتَحْلِيَةِ الْمُصْحَفِ فرمایي: او څه پروا نسته د قرآن په ښکلي کولو کي لِمَا فِيْهِ مِنْ تَعْظِيْمِهِ ځکه په دې کي د قرآن تعظیم سته وَصَارَ كَنَقْشِ الْمَسْجِدِ وَتَزْيِيْنِهِ بِمَاءِ الذَّهَبِ او دا داسي سوه لکه د مسجد نقش ونګار او [لکه] مسجد د سرو زرو په اوبو سره ښایسته کول وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ مِنْ قَبْلُ او موږ مخکي د دې یادونه کړې ده قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِأَنْ يَدْخُلَ أَهْلُ الذِّمَّةِ الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ فرمایي: او څه پروا نسته په دې کي چي داخل سي ذمیان مسجد حرام ته وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُكْرَهُ ذٰلِكَ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي: دا مکروه دي وَقَالَ مَالِكٌ: يُكْرَهُ فِيْ كُلِّ مَسْجِدٍ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي چي: په هر مسجد کي مکروه دي لِلشَّافِعِيِّ قَوْلُهُ تَعَالٰى: ﴿إِنَّمَا الْمُشْرِكُوْنَ نَجَسٌ فَلَا يَقْرَبُوا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ بَعْدَ عَامِهِمْ هٰذَا﴾ [التوبة: ٢٨] د امام شافعي رَحِمَهُ الله دلیل د الله تعالیٰ دا فرمان دی: مشرکان نجس دي نو هغوی دي مسجد حرام ته نه نژدې کېږي وروسته د دوی تر دغه کال وَلِأَنَّ الْكَافِرَ لَا يَخْلُوْ عَنْ جَنَابَةٍ او ځکه چي کافر له جنابت څخه نه خالي کېږي لِأَنَّهُ لَا يَغْتَسِلُ اغْتِسَالًا يُخْرِجُهُ عَنْهَا ځکه هغه داسي غسل نه کوي چي له جنابته یې وباسي وَالْجُنُبُ يُجَنَّبُ الْمَسْجِدَ او

جنب کس له مسجد څخه لیري کول کیږي [یعني له مسجد څخه د هغه د لیري تېرېدلو حکم سوی دی]
وَبِهٰذَا يَحْتَجُّ مَالِكٌ او په همدې [د امام شافعي په دلیل سره] امام مالک رَحِمَهُ الله دلیل نیسي وَالتَّعْلِيْلُ
بِالنَّجَاسَةِ عَامٌّ او په نجاست سره علت بیانول [چې مشرکان نجس دي] عام دی فَيَنْتَظِمُ الْمَسَاجِدَ
كُلَّهَا نو ځکه ټولو مسجدونو لره به شامل وي وَلَنَا مَا رُوِيَ [1] : أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ
أَنْزَلَ وَفْدَ ثَقِيْفٍ فِيْ مَسْجِدِهِ وَهُمْ كُفَّارٌ زموږ دلیل دا روایت دی: چې نبي کریم ﷺ د ثقیف [قبیلې]
وفد په خپل مسجد کې میشت کړی [یعني د بنو ثقیف قبیلې له طرفه راغلي خلک یې په خپل مسجد کې
کښېنول] وَلِأَنَّ الْخُبْثَ فِيْ اعْتِقَادِهِمْ او ځکه چې خباثت د هغوی په عقیدو کې وي [نه په اجسامو کې]
فَلَا يُؤَدِّيْ إِلٰى تَلْوِيْثِ الْمَسْجِدِ نو هغه به د مسجد ګنده کولو سبب نه ګرځي وَالْآيَةُ مَحْمُوْلَةٌ عَلَى
الْحُضُوْرِ اسْتِيْلَاءً وَاسْتِعْلَاءً او آیت محمول دی د غلبې او برلاسي په توګه پر حاضرېدلو [یعني چې
مشرکان مسجد حرام ته د غلبې او تعلی په توګه داخل سي] أَوْ طَائِفِيْنَ عُرَاةً یا [محمول دی پر حاضرېدلو] په
داسې حال کې چې په لڅه طواف کونکي وي [یعني چې د لڅ او بربنډ طواف کولو په نیت مسجد حرام ته
داخل سي] كَمَا كَانَتْ عَادَتُهُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ لکه څرنګه چې د جاهلیت په زمانه کې دا د هغوی عادت وو.

**اللغات:** ﴿تحلیة﴾ د تفعیل د باب مصدر دی، حَلّٰى يُحَلِّيْ تَحْلِيَةً: په زېور سره ښایسته کول، په یو شي زېورات اغوستل، ښکلي کول. ﴿تعظیم﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: تعظیم کول، احترام او درناوی کول. ﴿تعلیل﴾ مخکنی صیغه ده. د دې باب یوه معنیٰ ده: علت بیانول، معلول کول. ﴿یُجنَّب﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: لیري کول، لیري کېدل (متعدي او لازمي). ﴿تلویث﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: ملوّث کول، ګنده کول. ﴿عراة﴾ جمع د عَارٍ ده: لڅ، بربنډ. ﴿استیلاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: غلبه کول، قبضه کول.

**تشریح:** په دې عبارت کې دوې جلا مسئلې بیان سوي دي:

(۱)... څرنګه چې مسجد د سرو زرو په اوبو سره رنګول او ښایسته کول جائز دي، همداسې د قرآن مجید ښایسته کول هم جائز دي؛ ځکه په دې کې یو ډول تعظیم دی، او په قرآن کریم کې د داسې شیانو احترام کوونکی کس متقي ګرځول سوی دی، الله تعالیٰ فرمایي: ﴿وَمَنْ يُعَظِّمْ شَعَائِرَ اللهِ فَإِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ﴾ [سورة الحج: ۳۲]

---

[1] تخریج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الامارة، باب ما جاء فيخبر مكة، حديث رقم:۳۰۲۶.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چې زموږ په نيز کفار مسجد حرام او ټولو مسجدونو ته داخلېدلای سي.

امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چې له مسجد حرام څخه بغير نورو مسجدونو ته داخلېدلای سي. امام مالک رَحِمَهُ الله فرمايي چې نه مسجد حرام ته داخلېدلای سي او نه نورو مساجدو ته.

**د امام شافعي دليل:** هغه آيت دی چې په هغه کې مشرکين نجس ګرځول سوي دي او مسجد حرام ته له ورنژدې کېدلو څخه منع کړل سوي دي.

او عقلي دليل يې دا دی چې کافر عموماً جنب وي ځکه هغه داسې غسل نه کوي چې له جنابته يې پاک کړي. او جنب کس له مسجد څخه منع دی. نو ځکه کافر لره به هم مسجد حرام ته داخلېدل صحيح نه وي. او څرنګه چې په آيت کې فقط د مسجد حرام له قربت څخه منع سوې ده. نو ځکه له مسجد حرام څخه بغير نورو مساجدو ته د کفارو داخلېدل به ممنوع نه وي.

**د امام مالک دليل:** هم داغه دی. خو هغه فرمايي چې کله مسجد حرام ته د نه داخلېدلو علت نجاست دی او دا علت په ټولو کفارو کې موجود دی او ټوله مسجدونه د الله کورونه دي. نو ځکه د نورو مساجدو په حق کې به هم دا علت جاري کيږي او څرنګه چې مسجد حرام ته د دوی داخله ممنوع ده. همداسې به هر مسجد ته د دوی داخله ممنوع وي.

**زموږ دليل:** دا دی چې نبي کريم ﷺ د بنو ثقيف وفد په مسجد نبوي کې کښېنولی وو. حال دا چې هغوی ټوله کافران وه. معلومه سوه چې مسجد ته د کافر داخلېدلو ګنجايش سته. او عقلي دليل دا دی چې نجاست او خباثت خو د دوی اجسامو کې نه. بلکې په اعتقاد او عقيده کې يې وي. او په اعتقادي نجاست سره د مسجد ګنده کېدلو هيڅ خطره نسته.

او پاته سو امام شافعي او امام مالک رَحِمَهُمَا الله چې په کوم آيت سره دليل نيولی دی. د هغه يو جواب دا دی چې په هغه کې د تسلّط او غلبې په انداز سره يا د تکبّر او سرلوړی په انداز سره مسجد حرام ته د مشرکينو داخلېدل ممنوع ګرځول سوي دي. عام حالتونه له دې څخه مستثنیٰ دي.

او دويم جواب دا دی چې مشرکينو به د جاهليت په زمانه کې په لڅ بدن د بيت الله طواف کاوی. نو په دې آيت کې الله جَلَّ جَلَالُهُ مسجد حرام ته په داسې توګه له داخلېدو څخه منع وکړه، کنې په مطلق دخول کې هيڅ حرج نسته. (احسن الهدايه)

## له خسي کس څخه خدمت اخيستل، او د خسي کولو حکم

قَالَ: وَيُكْرَهُ اِسْتِخْدَامُ الْخِصْيَانِ فرمايي: او مکروه دي خدمت اخيستل له خسي کړل سوو کسانو څخه لِأَنَّ الرَّغْبَةَ فِي اسْتِخْدَامِهِمْ حَثُّ النَّاسِ عَلٰى هٰذَا الصَّنِيْعِ. ځکه له هغوی څخه په خدمت اخيستلو کې رغبت کول پر دغه فعل [خسي کولو] د خلکو پارول سته وَهُوَ مُثْلَةٌ مُحَرَّمَةٌ او دا مثله

کول دي کوم چي حرام دي قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِخِصَاءِ الْبَهَائِمِ وَإِنْزَاءِ الْحَمِيْرِ عَلَى الْخَيْلِ فرمايي: او پروا نسته د چارپايانو په خسي کولو کي او پر [ماده] آسونو د خرو په خېږلو [جفتي کولو] کي لِأَنَّ فِي الْأَوَّلِ مَنْفَعَةً لِلْبَهِيمَةِ وَالنَّاسِ ځکه په اول [د چارپای په خسي کولو] کي د چارپای او خلکو دواړو نفع ستته وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ رَكِبَ الْبَغْلَةَ او په صحيح روايت سره ثابت دي چي نبي کريم ﷺ پر غاتره سپور سوی دی فَلَوْ كَانَ هٰذَا الْفِعْلُ حَرَامًا که چيري دا فعل حرام وای لَمَا رَكِبَهَا نو پر غاتري به نبي ﷺ سپور سوي نه وای لِمَا فِيْهِ مِنْ فَتْحِ بَابِهِ ځکه په دې [د غاتري په سپرېدو] کي د دغه فعل دروازه خلاصېدل ستته.

**اللغات**: ﴿خِصْيَان﴾ جمع د خَصِيٌّ ده: خسي، يعني هغه کس چي خوټي يې ټکول سوي يا کښل سوي وي، ﴿حث﴾ د فتح د باب مصدر دی: راپارول، رغبت ورکول، ﴿صنيع﴾ کړنه، کاروايي، ﴿مُثلة﴾ (بضم الميم) پزه، غوږونه وغيره ورپرېکول، بدن مسخ کول، مَثُلَة (بفتح الميم): سزا، عزاب، د پخوانيو اُمتونو عبرتناکه سزاګاني، جمع: مَثُلَات، ﴿إنزاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: نر پر ماده خېږول (جفتي په کول)، ﴿حمير﴾ خرونه، ﴿بغلة﴾ غاتره (غاطره)، خچره، جمع: بِغَال.

**تشريح**: په دې عبارت کي دوې (۲) مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چي له خسي کس او خسي مزدور څخه خدمت اخيستل مکروه دي؛ ځکه کله چي سړی له هغه څخه خدمت واخلي او وويني چي داسي کس د نورو په نسبت له شرارت څخه پاک دی او بغير له څه شر څخه خدمت کوي، نو د هغه سړي په زړه کي به دا داعيه پيدا سي چي نورو خلکو ته د دې رغبت ورکړي چي تاسي هم خپل نوکران وغيره سنت کړئ! ځکه څرنګه چي د حيوان په خسي کولو کي فايده ستته چي په خسي کولو سره هغه ښه چاغيږي، همداسي د انسان هم فايده پکښي ستته چي په خسي کولو سره د هغه له شرّ وغيره څخه خلک محفوظ پاتيږي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چي د حيوان په خسي کولو کي هيڅ حرج نسته؛ ځکه په دې کي د حيوان هم نفع ده چي چاغ تکړه به سي او د خلکو هم پکښي نفع ده چي هغوی به يې له شرارت څخه محفوظ وي. همدارنګه خر پر اسپي (آسي) خېږول چي غاتره پيداسي جائز دي؛ ځکه نبي کريم ﷺ پر غاتري سپور سوی دی. که چيري دا فعل ممنوع وای. نو هغوی ﷺ به هيڅکله هم پر غاتري نه سپرېدلای؛ ځکه د نبي ﷺ سپرېدل به د يو ممنوع فعل واقع کېدلو ذريعه جوړېدلای، حال دا چي له

هیڅ یو نبي څخه هم د داسي عمل صدور ناممکن دی چي هغه دیو ممنوع فعل ذریعه وګرځي. نو معلومه سوه چي دا فعل (انزاء الحمیر علی الخیل) ممنوع نه دی.

## د مریض یهودي یا نصراني عیادت کول

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِعِيَادَةِ الْيَهُودِيِّ وَالنَّصْرَانِيِّ فرمايي: او پروا نسته د [ناروغه] یهودي او نصراني په عیادت کولو کي لِأَنَّهُ نَوْعُ بِرٍّ فِيْ حَقِّهِمْ ځکه دا د هغو په حق کي یو ډول نېکي ده وَمَا نُهِينَا عَنْ ذٰلِكَ او مونږ له دې انېکي کولو] څخه نه یو منع سوي وَقَدْ صَحَّ أَنَّ النَّبِيَّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] عَادَ يَهُوْدِيًّا مَرِضَ بِجِوَارِهِ او په صحیح حدیث سره ثابت دي چي نبي کریم ﷺ د یوه یهودي [همسایه] عیادت وکړی کوم چي د نبي کریم ﷺ په همسایه توب کي ناروغه وو.

**اللغات**: ﴿عیادة﴾ عیادت (بیمار پرسي). یعني د مریض لیدني کتني او د هغه حال پوښتني ته ورتلل. پر مریض (ناروغه) پوښتنه کول. ﴿بر﴾ نېکي. احسان.

**تشریح**: مسئله ښکاره ده چي د یهودي او نصراني یا د یو بل کافر په عیادت کولو کي څه حرج نسته؛ ځکه اسلام د خیر او نېکی له کاره منع نه ده کړې، او له نبي کریم ﷺ څخه د یهودي عیادت کول ثابت دي. او د مجوسي د عیادت په هکله له احنافو څخه دوه قوله نقل سوي دي، خو اصح دا ده چي هغه هم جائز دی، لهذا د فاسق عیادت خو به په درجه اولیٰ جائز وي.

خو که څوک داسي مریض وي چي د خلکو په راتګ سره یې تکلیف زیاتیږي، نو په دې صورت کي عیادت مکروه دی. (شامي ج:۵، ص:۲۴۸)

## په دعا کي د "اسئلك بمعقد العزمن عرشك" د ویلو حکم

قَالَ: وَيُكْرَهُ أَنْ يَقُوْلَ الرَّجُلُ فِيْ دُعَائِهِ: أَسْأَلُكَ بِمَعْقِدِ الْعِزِّ مِنْ عَرْشِكَ فرمايي: او مکروه دي دا چي سړی په خپل دعا کي ووايي: (اې الله!) زه ستا څخه سوال [خواست] کووم په مقام سره د تړل کېدلو د عزت ستا له عرش څخه وَلِلْمَسْأَلَةِ عِبَارَتَانِ او د دې مسئلي دوه عبارته [نقل سوي] دي هٰذِهِ [یو خو] دغه عبارت [دی. یعني مَعْقِدِ العِزّ] وَمَقْعَدُ الْعِزِّ او [بل] مَقْعَدُ العِزّ دی وَلَا رَيْبَ فِيْ كَرَاهَةِ الثَّانِيَةِ او د دې دویم عبارت په مکروه والي کي هیڅ شک نسته لِأَنَّهُ مِنَ الْقُعُوْدِ ځکه دا [مقعد] له قعود څخه

[1] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الجنائز، باب إذا أسلم الصبي فمات، حديث رقم: ۱۳۵۶، ۱۳۶۰.

[مشتق] دی [چي د هغه معنیٰ ده: کښېښتل] وَكَذَا الْأُوْلٰى او همداسي اول عبارت [هم مکروه دی] لِأَنَّهُ يُوْهِمُ تَعَلُّقَ عِزِّهِ بِالْعَرْشِ ځکه هغه د عرش سره د باري تعالیٰ د عزت متعلق کېدلو وهم پیدا کوي وَهُوَ مُحْدَثٌ حال دا چي عرش حادث دی وَاللّٰهُ تَعَالٰى بِجَمِيْعِ صِفَاتِهٖ قَدِيْمٌ او الله تعالیٰ د خپل ټولو صفاتو سره قدیم دی وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ لَا بَأْسَ بِهٖ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی چي په دې کي [یعني د مذکوره دعاء په ویلو کي] څه حرج نسته وَبِهٖ أَخَذَ الْفَقِيْهُ أَبُو اللَّيْثِ او همدا فقیه ابو اللیث رَحِمَهُ الله اختیار کړي دي لِأَنَّهُ مَأْثُوْرٌ عَنِ النَّبِيِّ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه دا له نبي ﷺ څخه نقل سوي دي رُوِيَ أَنَّهُ كَانَ مِنْ دُعَائِهٖ: [لکه څرنګه چي] روایت سوی دی چي د نبي ﷺ له دعاګانو څخه دا [دعا] هم وه اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُكَ بِمَعْقِدِ الْعِزِّ مِنْ عَرْشِكَ وَمُنْتَهَى الرَّحْمَةِ مِنْ كِتَابِكَ اې الله! زه ستا څخه سوال کوم ستا له عرش څخه د عزت تړل کېدو د مقام په واسطه سره او ستا له کتاب څخه د رحمت د انتها [په واسطه سره] وَبِاسْمِكَ الْأَعْظَمِ وَجَدِّكَ الْأَعْلٰى وَكَلِمَاتِكَ التَّامَّةِ او ستا په ستر نوم سره او ستا په لوړ عظمت سره او ستا په بشپړو کلماتو سره [سوال او خواست کوم] وَلٰكِنَّا نَقُوْلُ: هٰذَا خَبَرُ وَاحِدٍ خو موږ [په جواب کي] وایو چي: دا خبر واحد دی فَكَانَ الْاِحْتِيَاطُ فِي الْاِمْتِنَاعِ لهذا احتیاط په منع کېدلو کي دی [چي په داسي عبارت او الفاظو سره دعاء نه وسي].

**اللغات**: ﴿مَعقِد﴾ د اسم ظرف صیغه ده: د تړل کېدلو مقام، د غوټي تړل کېدلو (غوټه کېدلو) ځای، ﴿محدث﴾ د افعال له بابه د مفعول صیغه ده: نوی پیداسوی، مخلوق، ﴿جَدّ﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: عظمت، لویي (بزرګي)، ﴿امتناع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: منع کېدل، ځان ساتل.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي په دعاء کې داسي الفاظ ویل مکروه دي چي په هغوی کي د شرک وهم وي، یا د باري تعالیٰ د شان نقص پکښې وي؛ الله تعالیٰ د خپل ټولو صفاتو سره قدیم دی او ټوله عالم حادث دی، تر دې چي عرش او کرسي هم حادث دي، نو داسي کلمات ویل د ابهام په وجه مکروه دي چي په هغه کي د الهي عزت مقام او قرارګاه ثابتیږي یا مقامِ عزت پکښې معلومیږي، نو په مذکوره الفاظو "اسئلك بِمَعْقِدِ العزّ من عرشك" یا "بِمَقْعَدِ العز من عرشك" دواړه مکروه دي؛ اول

خو ځکه چي مَعْقد له عقد څخه مشتق دی چي د هغه معنیٰ ده "د تړل کېدلو (غوټه کېدلو) مقام". نو د "اسئلك بمعقد العزمن عرشك" معنیٰ ده: (ای الله!) ستا له عرش څخه د عزت تړل کېدلو د مقام په واسطه او وسیله سره خواست کوم. نو په دې الفاظو کي عرش د عزت ورسره تړل کېدلو ځای شمېرل د حدوث وهم پیدا کوي، یعني څرنګه چي عرش قدیم نه دی بلکي حادث دی نو همداسي به "عزة المتعلق بعرش" هم حادث وي، حال دا چي هغه محل د حادث والي کېدل باطل دي.

او په دویم صورت کي "مَقْعَد" له قعود څخه مشتق دی چي د هغه معنیٰ ده: ځای د کښېنستلو. یعني له عرش څخه په مقام د کښېنستلو د عزت سره (سوال کوم). یعني عرش کوم چي د عزت مَقَر (قرارګاه) ده. مطلب دا چي په دې صورت کي پر عرش (د الله) تمکّن ثابتیږي، کوم چي د تجسم او مجسمې قول دی (چي په دې سره الله لره جسم ثابتیږي) او دا بالکل باطل دي.

**یادونه:** د عقائدو په کتابو او د هغوی په شروحاتو کي د تمکّن علی العرش، د عالَم د حادث والي او د باري تعالیٰ د ذات پر ازلیت او د هغه د صفاتو د قدیم والي په هکله په ښه تفصیل سره بیان سوی دی، د نور وضاحت شائقین دي هغه مطالعه کړي.

وعن أبي يوسف إلخ: خو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز د دغه کلماتو په واسطه دعاء کولو کي څه حرج نسته؛ ځکه له نبي کریم ﷺ څخه داسي دعاء کول ثابت دي، لهذا که په دې کي څه ډول وهم وای، نو رسول الله ﷺ به د دې کلماتو په واسطه دعاء نه کولای.

خو زموږ له طرفه جواب دی چي دغه حدیث خبر واحد دی، همدارنګه ځیني حضراتو هغه ضعیف ګرځولی دی او ځینو له موضوعاتو څخه شمېرلی دی، نو ځکه اخوط همدا ده چي د داسي موهومه کلماتو په واسطه دعاء نه وسي. او بل دا چي که له نبي کریم ﷺ څخه په یقیني توګه داسي دعاء ویل ثابت هم سي، نو هم زموږ لپاره دا ډول دعاء نه خپلول غوره دي؛ ځکه د رسول او نبي ایمان د ټولو له ایمان څخه زیات قوي وي. چي په هغه کي د تېروتلو هیڅ تصوّر نه سي کېدلای، خو موږ د دومره قوي درجې ایمان والا نه یو او زموږ تېروتل ممکن دي، نو ځکه زموږ په حق کي احتیاط غوره دی. (احسن الهدایه)

## په دعا کي "بحق فلان" او داسي نور الفاظ ویل

وَيُكْرَهُ أَنْ يَقُوْلَ الرَّجُلُ فِيْ دُعَائِهِ او مکروه دي دا چي سړی په خپل دعاء کي ووايي بِحَقِّ فُلَانٍ أَوْ بِحَقِّ أَنْبِيَائِكَ وَرُسُلِكَ په حق د فلانکي سره یا په حق ستا د نبیانو او رسولانو سره لِأَنَّهُ لَا حَقَّ لِلْمَخْلُوْقِ عَلَى الْخَالِقِ ځکه چي پر خالق تعالیٰ د مخلوق هیڅ حق نسته.

**تشريح**: يعني د چا د حق په واسطه سره دعا کول (د چا د حق واسطه ورکول) مکروه دي؛ ځکه پر الله تعالیٰ د هيچا هم هيڅ ډول حق نسته. الله تعالیٰ چي يې چا ته ورکوي، دا د هغه خالص فضل دی، او څوک چي نيسي، دا د هغه عدل دی.

**يادونه**: صاحب د اشرف الهدايې ليکلي دي چي که له "حق" څخه د هغه خپله عامه معنیٰ مراد نه کړی سي، بلکي له هغه څخه د حرمت او عظمت يا په بله وينا د وسيلې معنیٰ ځني مراد کړ سي. نو په دې کي څه حرج نسته. او زموږ د مشايخو په شجرو کي چي دا لفظ مستعمل وي. نو هغه فقط د توسّل په معنیٰ سره دی او وسيله جائز ده. بيا فرمايي چي زموږ (د هندوستان وغيره والاوو) په ژبه کي دا لفظ د توسّل په معنیٰ سره استعمالول ښکاره دي، لهذا پر هغه به د کراهت حکم نه کيږي. حال دا چي په يو حديث سره هم د دې تائيد کيږي: اللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْئَلُكَ بِحَقِّ السَّائِلِيْنَ عَلَيْكَ.... (الحديث في رد المحتار ج: ۵، ص: ۲۵۴)

## د شطرنج، نرد وغيره د لوبي حکم

قَالَ: وَيُكْرَهُ اللَّعِبُ بِالشِّطْرَنْجِ وَالنَّرْدِ وَالْأَرْبَعَةَ عَشَرَ وَكُلِّ لَهْوٍ او مکروه دي لوبي کول په شطرنج او نرد سره او په څوارلس ګيټی سره او هر ډول لهو [بې ځايه او چټی کار] لِأَنَّهُ إِنْ قَامَرَ بِهَا ځکه که د دې لوبو په ذريعه خمار وکړي فَالْمَيْسِرُ حَرَامٌ بِالنَّصِّ نو هغه ميسر [خمار] دي کوم چي په نصِ قرآني سره حرام دی وَهُوَ اسْمٌ لِكُلِّ قِمَارٍ. او ميسر نوم دی د هر خمار [يعني هر خمار ته ميسر وايي] وَإِنْ لَمْ يُقَامِرْ او که [په دې لوبو سره] خمار نه وکړي فَهُوَ عَبَثٌ وَلَهْوٌ نو هغه عبث [بې ځايه] او لهو دي وَقَالَ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ[1]: لَهْوُ الْمُؤْمِنِ بَاطِلٌ إِلَّا الثَّلَاثَ او نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: د مؤمن [هر] لهو کار باطل دی ماسوا له دريو کارو څخه تَأْدِيْبُهُ لِفَرَسِهِ ① [يو] د مؤمن خپل آس ته طريقې ور زده کول [شاهسواري] وَمُنَاضَلَتُهُ عَنْ قَوْسِهِ ② [دويم] له خپل کمان څخه غشي غورځول وَمُلَاعَبَتُهُ مَعَ أَهْلِهِ ③ [دريېم] له خپل کور والا [ښځي] سره لوبي کول وَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ: يُبَاحُ اللَّعِبُ بِالشِّطْرَنْجِ او ځيني خلکو ويلي دي: چي د شطرنج لوبه کول روا دي لِمَا فِيْهِ مِنْ تَشْحِيْذِ الْخَوَاطِرِ وَتَذْكِيَةِ الْأَفْهَامِ ځکه په دې کي د ذهنونو تېزول او د فهمونو ځېرکول سته [يعني په دې سره

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في كتاب الجهاد، باب في الرمي، حديث رقم: ۲۵۱۳.

د انسان ذهن او فهم تيزېږي او ځراکت يې زياتيږي] وَهُوَ مَحْكِيٌّ عَنِ الشَّافِعِيِّ او همدا له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي لَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ زموږ د ليل د نبي ﷺ دا فرمان دی «مَنْ لَعِبَ [2] بِالشِّطْرَنْجِ وَالنَّرْدَشِيرِ څوک چي د شطرنج او نرد شير لوبه وکړي فَكَأَنَّمَا غَمَسَ يَدَهُ فِيْ دَمِ الْخِنْزِيرِ» نو ګواکي هغه د خنزير په وينو کي لاس غوټه [غوپه] کړی وَلِأَنَّهُ نَوْعُ لَعِبٍ يَصُدُّ عَنْ ذِكْرِ اللهِ وَعَنِ الْجُمَعِ وَالْجَمَاعَاتِ او ځکه چي دا [شطرنج وغيره] يو داسي ډول لوبه ده چي څوک د الله جَلَّ جَلَالُهُ له ذکر او له جمعو او جماعاتو څخه منع کوي فَيَكُونُ حَرَامًا نو ځکه به حرام وي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي «مَا أَلْهَاكَ [3] عَنْ ذِكْرِ اللهِ څه چي تا د الله جَلَّ جَلَالُهُ له ذکر څخه غافله کړي فَهُوَ مَيْسِرٌ» نو هغه ميسر دی ثُمَّ إِنْ قَامَرَ بِهِ بيا که څوک په دې لوبه [شطرنج وغيره] سره خمار کوي تَسْقُطُ عَدَالَتُهُ نو د هغه عدالت [عادل والی] ساقطيږي وَإِنْ لَمْ يُقَامِرْ او که خمار نه په کوي لَا تَسْقُطُ نو عدالت يې نه ساقطيږي لِأَنَّهُ مُتَأَوِّلٌ فِيْهِ ځکه په دې صورت کي هغه تأويل کونکی دی [چي زه يې د ذهن تېزولو لپاره کوم. يا دا رنګه بل تأويل].

**اللغات**: ﴿لَعِب﴾ د سمع د باب مصدر دی: لوبي او بازي کول. ﴿شَطْرَنْج﴾ او شِطْرَنْج (دا لفظ په عربي کي عموماً د شين په کسره سره استعماليږي، همدا يې مختار لغت دی). سترنج. د پخواني وخت يوه مشهوره لوبه ده. صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: "لُعْبَةٌ تُلْعَب عَلَىٰ رُقْعَةٍ وتُمثِّلُ دَوْلَتَـيْن مُتَحَارِبَتَيْنِ بِاثْنَتَيْنِ وَثَلَاثِيْنَ قِطْعَةً... إلخ" (يعني دا يو ډول لوبه ده چي پر داسي پارچه [او تخته] باندي کيـږي چي هغه څلور شپېته (۶۴) خانې لري او د دوو جنګي ملکونو په شکل پر دوو دېرش (۳۲) دانو (ګټو) باندي لوبول کيـږي. يعني په هغه کي له دواړو طرفو څخه د هر طرف والا لوبغاړی خپل ځان يو جنګي ملک تصور کوي او دوی په خپل مينځ کي په (۳۲) ګټو او دانو سره مقابله کوي. او په دې (۳۲) ګټو کي دوه ګټي د باچا او دوه ګټي د وزير په توګه لوبول کيـږي، او پاته ګټي د فوج او داسي نورو په توګه لوبول کيـږي). ﴿نَـرْد﴾ دا هم يو ډول لوبه ده چي د ايران پخواني باچا "ارد شير بن بابک" ايجاد کړې وه (دا لوبه پر تېبل باندي کيـږي. او د ډبرو او دوو غميانو په ذريعه لوبول کيـږي. په اوسني عربي کي "الطَّاوِلَة" ورته وايي). ﴿أربعـة عشـر﴾ ويـل سوي

---

[2] تخريج: أخرجه ابو داؤد فى كتاب الأدب، باب فى النهى عن اللعب بالرد، حديث رقم:۴۹۳۹.

[3] تخريج: أخرجه البيهقى فى شعب الإيمان، باب فى تحريم الملاعب، ج:۵، حديث رقم:۶۵۱۹.

دي چې دا يو ډول لوبه وه چې يهودو به کوله. او د دې لفظ خپله معنیٰ ده ځوارلس چې په ځوارلس دانو (ګټو) وغيره سره به لوبول کېده. ﴿اللهو﴾ په عربي قاموسونو کې د دغه لفظ دا معناوي نقل سوي دي: ① ... "التَّرْوِيْحُ عَنِ النَّفْسِ بِمَا لَا تَقْتَضِيْهِ الْحِكْمَةُ" (په داسې کار او داسې شي سره نفس ته راحت او سکون ور کول چې هغه بالکل د حکمت او پوهې خلاف وي). ② د نفسي خواهش لوبې او بازی. ③ لغو او بې ځايه کار. ﴿مناضلة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: غشي غورځونه. غشي ويشتنه. ﴿ملاعبة﴾ مخکنی صيغه ده: د ښځي سره لوبې او ساتېرى کول. ﴿خواطر﴾ جمع د خَاطِرٌ ده. د دې لفظ څو معناوي دي: ① هغه امر يا تدبير کوم چې په زړه کې تېر سي. ② خيال. ③ او کله مجازاً پر زړه. نفس او ذهن باندې يې هم اطلاق کيږي. ﴿ألهاك﴾ د افعال د باب ماضي ده: په لهو مبتلا کول. غافل کول (په غفلت کې اچول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز شطرنج، نرد او ځوارلس ګيټې والا لوبه او دا ډول نورې لوبې مکروه دي؛ ځکه که په دې لوبو کې د خمار اړخ وي، نو د دوی حرمت په نصّ سره ثابت دی او که د خمار اړخ پکښې نه وي، نو دا ټولې لوبې عبث او لغو کارونه دي کوم چې حرام دي او په حديث کې د مؤمن ټولو لوبو ته باطل ويل سوي ما سوا له دريو لوبو څخه: ① شاهسواري (پر آس سپرېدنه)، ② تيراندازي (غشي ويشتنه او ښکار زده کونه)، ③ د خپلې ښځې سره ملاعبت او ساتېرى.

وقال بعض الخ: ځيني حضراتو شطرنج جائز ګرځولی دی: ځکه چې په دې سره بيدار مغزي حاصليږي او د انسان ذهن په تېزيږي، نو ځکه شطرنج کول به روا وي.

ولنا الخ: څرنګه چې زموږ په نېز شطرنج او داسې نورې لوبې مکروه دي، نو زموږ دليل دا دی چې نبي کريم ﷺ فرمايلي دي: د شطرنج او نرد لوبونکی کس داسې دی لکه د خنزير (کوم چې نجس العين دی) په وينه کې چې لاس غوټه کوي او د خنزير په وينه سره يې مرداروي، د حديث شريف مطلب دا دی چې څرنګه يو مسلمان د خنزير په وينه کې لاس وهل نه خوښوي، همداسې له شطرنج وغيره څخه ځان ساتل پکار دي. او بل دا چې دا ټوله داسې د شوق لوبې دي چې که په دوی انسان مشغوله سي، نو د لمانځه حتی د جمعې او جماعت څخه غافليږي، نو ځکه به حرام وي؛ ځکه په حديث شريف کې له ذکر الله څخه غافلونکي هر شي ته "مَيْسِر" ويل سوي دي، او دا شيان هم انسان د الله جل جلاله له ذکر څخه غافل ګرځوي، نو ځکه دا به هم حرام وي.

ثم إن الخ: فرمايي که څوک په شطرنج وغيره سره خمار کوي، نو د هغه عادل والي ساقطيږي. لېکن که خمار نه په کوي، نو عدالت يې نه ساقطيږي خو مجروح ضرور ګرځي، او عدالت يې ځکه نه ساقطيږي؛ چې کېدای سي هغه دا تأويل کوي چې زه يې د ذهن تېزولو لپاره کوم.

## شطرنج کونکو ته سلام ويل

وَكَرِهَ أَبُوْيُوْسُفَ وَمُحَمَّدٌ التَّسْلِيمَ عَلَيْهِمْ او مکروه ګرځولي دي صاحبينو رَحِمَهُمَا الله پر شطرنج کونکو سلام اچول تَحْذِيرًا لَهُمْ چي د دوی لپاره تنبيه سي وَلَمْ يَرَ أَبُوحَنِيفَةَ بِهِ بَأْسًا او امام صاحب رَحِمَهُ الله په دې کي څه حرج نه دی ليدلی لِيُشْغَلَهُمْ عَمَّا هُمْ فِيهِ د دې لپاره چي دا سلام دوی مشغوله کړي له هغه څه څخه په څه کي چي دوی [لګيا] دي [يعني چي له شطرنج وغيره څخه يې مشغوله کړي].

**اللغات**: ﴿تسليم﴾ د تفعيل د باب مصدر دی. د دې باب يوه معنیٰ ده: بل ته سلام کول. سلام اچول. ﴿تحذير﴾ مخکنی صيغه ده: يو څوک له يو شي څخه بېرول (ډارول). تنبيه ورکول.

**تشريح**: صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي څوک شطرنج، نرد وغيره کوي، پر هغو به قصداً سلام نه اچول کيږي؛ چي په دې سره هغو ته عبرت حاصل سي او چي د سلام قطع کول د دوی لپاره تنبيه سي. امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي داسي خلکو ته په سلام کولو کي څه حرج نسته؛ ځکه په کوم وخت کي چي پر هغو سلام اچول کيږي، نو کم از کم په دې لږ وخت کي خو به له شطرنج وغيره څخه د هغوی بدبختانو پام او توجّه اوښتې وي.

## د مأذون غلام د هديې او دعوت وغيره د قبلولو حکم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِقَبُوْلِ هَدِيَّةِ الْعَبْدِ التَّاجِرِ فرمايي: او پروا نسته د تاجر غلام په هديه قبلولو کي وَإِجَابَةِ دَعْوَتِهِ او د هغه د دعوت [او مېلمستيا] په قبلولو کي وَاسْتِعَارَةِ دَابَّتِهِ او د هغه د سپارلي په عاريتاً اخيستلو کي [يعني چي څوک له تاجر غلام څخه د هغه آس وغيره په خواست واخلي] وَتُكْرَهُ كِسْوَتُهُ الثَّوْبَ خو مکروه دي د تاجر غلام کپړه ورکول [يعني چي هغه چا ته کپړه ورکړي] وَهَدِيَّتُهُ الدَّرَاهِمَ وَالدَّنَانِيْرَ او د هغه د دراهمو او دنانيرو هديه کول وَهٰذَا اِسْتِحْسَانٌ او دا استحسان دی وَفِي الْقِيَاسِ كُلُّ ذٰلِكَ بَاطِلٌ او په قياس کي دا ټوله باطل دي لِأَنَّهُ تَبَرُّعٌ ځکه چي دا تبرّع ده وَالْعَبْدُ لَيْسَ مِنْ أَهْلِهِ او غلام د تبرّع اهل نه دی وَجْهُ الْاِسْتِحْسَانِ: أَنَّهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] قَبِلَ هَدِيَّةَ سَلْمَانَ رضي الله عنه

---

[1] تخريج: أخرجه الحاكم في المستدرک في کتاب المعرفة، ذکر سلمان الفارسي، حديث رقم:۶۵۴۳.

حِينَ كَانَ عَبْدًا د استحسان دليل دا دى: چي نبي كريم ﷺ د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه هديه قبوله كړه په داسي حال كي چي هغه غلام وو وَقَبِلَ هَدِيَّةَ بَرِيرَةَ رَضِيَ اللهُ عَنْهَا [2] وَكَانَتْ مُكَاتَبَةً او د حضرت بريره رضي الله عنها هديه يې قبوله كړه حال دا چي هغه مكاتبه وه وَأَجَابَ رَهْطٌ مِنَ الصَّحَابَةِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ دَعْوَةَ مَوْلَى أَبِي أُسَيْدٍ وَكَانَ عَبْدًا او د صحابه وو يو جماعت د حضرت اسيد رضي الله عنه د غلام دعوت قبول كړى حال دا چي هغه غلام وو وَلِأَنَّ فِي هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ ضَرُورَةً لَا يَجِدُ التَّاجِرُ بُدًّا مِنْهَا او ځكه چي په دې شيانو [هديه. دعوت وغيره] كي داسي ضرورت دى چي تاجر [كاروباري] له هغه څخه چاره نه لري وَمَنْ مَلَكَ شَيْئًا او څوک چي ديو شي ملكيت لري [په بله وينا دا چي كوم كس ديو شي مالک وي] يَمْلِكُ مَا هُوَ مِنْ ضَرُورَاتِهِ نو هغه كس د دې شي د لوازماتو ملكيت هم لري وَلَا ضَرُورَةَ فِي الْكِسْوَةِ وَإِهْدَاءِ الدَّرَاهِمِ او په كپړه وركولو او د دراهمو په هديه كولو كي هيڅ ضرورت نسته فَبَقِيَ عَلَىٰ أَصْلِ الْقِيَاسِ نو ځكه دا پر اصل قياس باقي پاته سوه [چي د تاجر غلام لپاره دا به دي].

**اللغات**: ﴿استعارة﴾ د استفعال د باب مصدر دى: : په عاريت اخيستل، په خواست غوښتل (مثلاً يو چا ته خواست كول چي ته! ديو څو وخت لپاره دا شى په قرضِ حسنه راكړه!). ﴿كسوة﴾ د دې لفظ يوه معنىٰ ده: په بل چا كپړه او جامه اغوښتل، يعني بل چا ته كپړه او جامه وركول.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دى چي كه مأذون لهٗ فى التجارة غلام چا ته معمولي غوندي هديه پېش كړي، نو جائز دي، همدارنگه كه چا ته دعوت وكړي، نو جائز دي، همدارنگه د هغه آس وغيره په عاريت اخيستل جائز دي، لېكن كه دا غلام په هديه كي كپړه يا دراهم او دنانير وغيره پېش كړي، نو د هغه قبلول مكروه دي؛ او په اول صورت كي چي كوم جواز دى، هغه د استحسان له رويه دى، كنې قياساً هغه هم باطل دى؛ ځكه غلام د عدمِ ملكيت په وجه د تبرّع اهل نه دى، او دا ټوله تبرّعات دي.

وجه الاستحسان إلخ: ① د استحسان دليل دا دى چي د حضرت سلمان فارسى رضي الله عنه هديه نبي كريم ﷺ قبوله كړه ا هغه په دغه حالت كي ا وو، بيا صديق اكبر رضي الله عنه هغه رانيوى آزاد يې كړى.
②او بل دا چي حضرت عائشې رَضِيَ اللهُ عَنْهَا له نبي كريم ﷺ څخه پوښتنه وكړه چي خلک

---

[2] تخريج: أخرجه البخاري في كتاب النكاح، باب الحرة تحت العبد، حديث رقم:٥٠٩٧.

حضرت بريره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا ته صدقه راوړي او هغه له دې صدقې څخه موږ ته هم څه را استوي. نو نبي ﷺ وفرمايل چې دا د هغې لپاره صدقه ده او زموږ لپاره هديه ده، او حضرت بريره په هغه وخت کې مکاتبه وه

**يادونه:** علامه زيلعي رَحِمَهُ الله فرمايي، چې د حديث په يوه طريقه کې مې هم دا نه وموندل چې بريره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا په هغه وخت کې مکاتبه وه، خو په مصنف ابن عبد الرزاق کې له حضرت عروه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه دومره نقل سوي دي چې حضرت عائشې په داسې حال کې حضرت بريره رانيولې وه چې هغه مکاتبه وه او هغه يې د اته (۸) اوقيو په عوض کې رانيولې وه، او حضرت بريره رَضِيَ اللهُ عَنْهَا د بدل کتابت يوه اوقيه هم نه وه اداء کړې.

③ ابو سعيد کوم چې د ابو اسيد غلام وو، هغه يو وخت د واده د ډوډۍ دعوت پېش کړی، نو د صحابه وو يو جماعت د هغه دعوت قبول کړی، لېکن دا حديث غريب دی او د هغه پر ځای يو بل مرفوع حديث د دليل په توګه موجود دی: عن أنس بن مالك رَضِيَ اللهُ عَنْهُ قال: كان رسول الله ﷺ يعود المريض ويتبع الجنازة ويجيب دعوة المملوك (أخرجه الترمذي وابن ماجة).

او بل دا چې څوک تجارت او کاروبار کوي هغه لره د معمولي دعوت او مېلمستيا ضرورت خامخا پېښېږي (او مأذون له غلام هم تاجر دی)، نو ځکه دا جائز کېدل پکار دي.

## د لقيط لپاره د تصرّف کولو حکم

قَالَ: وَمَنْ كَانَ فِي يَدِهِ لَقِيطٌ لَا أَبَ لَهُ فرمايي: او د چا په قبضه کې چې داسې لقيط بچی وي چې پلار ورلره نه وي [يعني د پلار هيڅ پته او درک يې نه معلومېږي چې څوک او چيرې دی] فَإِنَّهُ يَجُوزُ قَبْضُهُ الْهِبَةَ وَالصَّدَقَةَ لَهُ نو جائز دي هغه کس لره [د لقيط] پر هبه او صدقه قبضه کول د لقيط لپاره وَأَصْلُ هٰذَا أَنَّ التَّصَرُّفَ عَلَى الصِّغَارِ أَنْوَاعٌ ثَلَاثَةٌ او د دې اصل دا دی چې پر کوچنيانو تصرّف لرل درې قسمه دي نَوْعٌ هُوَ مِنْ بَابِ الْوِلَايَةِ يو قسم تصرّف د ولايت له باب څخه دی لَا يَمْلِكُهُ إِلَّا مَنْ هُوَ وَلِيٌّ چې له ولي څخه بغير بل څوک د هغه ملکيت [اختيار] نه لري [يعني صرف ولي يې مالک دی] كَالْإِنْكَاحِ وَالشِّرَاءِ لکه نکاح ورکول او رانيول وَالْبَيْعِ لِأَمْوَالِ الْقِنْيَةِ او [لکه د بچي] د خالص مالونو خرڅول [کوم چې خالص د بچي د نفع اخيستو لپاره ساتل سوي وي، نه د تجارت او کاروبار لپاره. لکه د بچي لپاره درول سوي غوا]

لِأَنَّ الْوَلِيَّ هُوَ الَّذِي قَامَ مَقَامَهُ بِإِنَابَةِ الشَّرْعِ ځکه چې همدا ولي د بچي قائم مقام [نائب] دی، د شریعت په نائب جوړولو سره [چې شریعت هغه د بچي نائب کړی دی] وَنَوْعٌ آخَرُ مَا كَانَ مِنْ ضَرُوْرَةِ حَالِ الصِّغَارِ او بل قسم هغه تصرّف دی کوم چې د کوچنیانو د حالت له ضرورت څخه وي وَهُوَ شِرَاءُ مَا لَا بُدَّ لِلصَّغِيْرِ مِنْهُ وَبَيْعُهُ او دا د هغه شیانو رانیول دي چې له هغه څخه د کوچني چاره نه وي او د هغوی خرڅول دي وَإِجَارَةُ الْأَظْآرِ او [کوچنیانو ته] شیدې ورکونکي ښځي په اُجرت نیول دي وَذٰلِكَ جَائِزٌ مِمَّنْ يَعُوْلُهُ وَيُنْفِقُ عَلَيْهِ او دا [قسم تصرّف] د هغه کس له طرفه جائز دی کوم چې د بچي پالنه کوي او پر هغه نفقه کوي كَالْأَخِ وَالْعَمِّ وَالْأُمِّ وَالْمُلْتَقِطِ لکه ورور، اکا، مور او ملتقط إِذَا كَانَ فِي حِجْرِهِمْ [په دې شرط] کله چې بچی د دوی په غېږه [پالنه] کي وي وَإِذَا مَلَكَ هٰؤُلَاءِ هٰذَا النَّوْعَ او کله چې دا کسان هم د دغه قسم تصرّف ملکیت لري فَالْوَلِيُّ أَوْلٰى بِهِ نو ولي به په درجه اولیٰ د دې ملکیت لري إِلَّا أَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ فِي حَقِّ الْوَلِيِّ أَنْ يَكُوْنَ الصَّبِيُّ فِي حِجْرِهِ خو د ولي په حق کي دا شرط نه دی چې بچی به د هغه په غېږه [پالنه] کي وي.

**اللغات**: ﴿لقيط﴾ راپورته کړی سوی (رااخیستل سوی) بچی، مراد ځني هغه بچی دی کوم چې په یو ځای یا لاره کي پروت وموندل سي او سړی یې راپورته کړي، داسي کوچني ته لقیط وایي، او د هغه راپورته کونکي (رااخیستونکي) ته مُلتَقِط وایي. ﴿قِنْیة﴾ او قُنْیة: په اصل کي هغه څاروی ته وایي کوم چې د پاللو لپاره وي، نه د ذبح کولو او خرڅولو لپاره (یعني هغه بزه، مېږه، غوا، اوښه او داسي نور کوم چې د دې لپاره پالل کېږي چې شیدې، بچي وغیره ځني حاصل کړل سي)، همدارنګه هغه شی او هغه مال چې انسان خالص د خپل ځان لپاره ساتلی وي، نه د تجارت لپاره. ﴿أظآر﴾ هغه ښځه چې د بل چا ځوی ته شیدې ورکوي. المُرْضِعَةُ لِغَيْرِ وَلَدِهَا. ﴿یعول﴾ د نصر د باب مضارع ده، د دې باب څو معناوي دي چې د صلې په بدلون سره یې معنیٰ هم بدلیږي. کله چې د دې باب په صِله کي بچی یا اولاد راسي، نو معنیٰ یې ده: د معاش کفالت کول. یعني د بچي د خوراک، څښاک او کپړو خرڅه او ذمه واري په خپله غاړه اخیستل. پالنه یې کول. ﴿حجر﴾ غېږه، پرورش او پالنه.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که څوک په یو ځای او لاره کي یو بې پلاره بچی پروت وموندي او راپورته یې کړي چې داسي بچي ته لقیط وایي، نو دغه کس لره جائز دي چې د دې لقیط لپاره ورکول سوې هدیه، صدقه وغیره واخلي او قبضه پر وکړي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې اصل د دې مسئلې دا دی چې پر بچيانو درې قسمه تصرفات کيږي:

(۱) تصرف ولايت. (۲) تصرف ضرورت. (۳) تصرف نفع.

(۱) په تصرف ولايت کې فقط هغه کس ته د تصرف کولو اجازت سته کوم چې د بچي ولي يعني د هغه پلار، اکا، نيکه يا قاضي وي، لکه د بچي نکاح کول. او د بچي داسې مال او شی خرڅول کوم چې خالص د هغه لپاره ساتل سوی وي. نه د تجارت لپاره (يعني د بچي ځاني شی)، د دې حق صرف ولي لره سته.

ونوع آخر إلخ: (۲) دويم قسم تصرف ضرورت دی. يعني د بچي لپاره يو ضروري شی رانيول (لکه د خوراک شيان). يا د بچي يو داسې سامان خرڅول چې که خرڅ نه کړل سي نو د خرابېدو امکان يې وي. يا د شيدو ردولو په وخت کې د بچي لپاره شيدې ورکونکې ښځه (مُرضِعه) په اُجرت نيول. چې دا ټول ضروري دي، نو د داسې تصرف اجازت هر هغه کس لره سته کوم چې د بچي پالنه کوي او د هغه نفقه اداء کوي. لکه ورور، اکا، ملتقط (يعني هغه کس چې بچی يې موندلی او راپورته کړی وي). لېکن د دې خلکو په حق کې شرط دا دی چې بچی به د دوی په پالنه او ساتنه کې وي.

له مذکوره مسئلې څخه دا معلومه سوه چې کله دغه خلک د داسې تصرف مالکان دی. نو ولي خو به په درجه اولیٰ د هغه مالک وي، فرق يې صرف دومره دی چې د ولي لپاره دا شرط نه دی چې بچی به د هغه تر پالنې لاندې وي. بلکي که هغه د بل چا په پالنه کې وي، نو بيا هم ولي ته د تصرف کولو اجازت سته.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَنَوْعٌ ثَالِثٌ مَا هُوَ نَفْعٌ مَحْضٌ او درېيم قسم هغه تصرف دی کوم چې [د کوچني لپاره] خالص نفع وي كَقَبُولِ الْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ وَالْقَبْضِ لکه هديه او صدقه قبلول او قبضه پر کول فَهٰذَا يَمْلِكُهُ الْمُلْتَقِطُ وَالْأَخُ وَالْعَمُّ وَالصَّبِيُّ بِنَفْسِهِ إِذَا كَانَ يَعْقِلُ نو د دې تصرف ملکيت لري ملتقط او [د بچي] ورور، اکا او خپله بچی کله چې هغه عاقل وي لِأَنَّ اللَّائِقَ بِالْحِكْمَةِ فَتْحُ بَابِ مِثْلِهِ ځکه د حکمت لائق د دې په مثل سره دروازه خلاصول دي [يعني د حکمت شان دا دی چې د بچي د مصلحت او فايدې په خاطر په داسې صورت کې د بچي وغيره لپاره د تصرف کولو دروازه خلاصه سي] نَظَرًا لِلصَّبِيِّ د بچي د مصلحت [ښېګڼې] په خاطر فَيَمْلِكُ بِالْعَقْلِ وَالْوِلَايَةِ وَالْحِجْرِ نو [د داسې تصرف] ملکيت به لري [بچی] په عقل

سره او [ولي] په ولايت سره او [ملتقط وغيره کوم چي د بچي پالنه کوي] په پالنه سره وَصَارَ بِمَنْزِلَةِ الْإِنْفَاقِ او دا [تصرف] د نفقه کولو په درجه کي سو.

**تشريح**: فرمايي چي د تصرف دريم ③قسم هغه دی چي په هغه کي د بچي خالص نفع وي، لکه هبه قبلول او صدقه قبلول او پر هغوی قبضه کول. د داسي تصرف اجازت خپله بچي لره هم سته کله چي هغه عاقل وي او متلقط او د بچي ورور او اکا لره هم سته؛ ځکه د حکمت تقاضا دا ده چي داسي دروازه خلاصه سي چي هر ډول د بچي فايده پکښې وي، لهذا په عاقل کېدلو او په ولايت او پالنه سره دا تصرّف حاصلیږي. بلکي بغير له ولايت او پالني څخه هم که څوک قبضه وکړي او کوچني ته یې ورکړي، نو صحيح دي؛ ځکه په دې کي خالص نفع ده. او دا داسي ده لکه پر بچي نفقه کول چي د چا څومره خوښه وي، هغومره نفقه دي ورکړي، ځکه په دې کي د بچي خالص نفع ده.

## په لقيط مزدوري کول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَلَايَجُوزُ لِلْمُلْتَقِطِ أَنْ يُؤَاجِرَهُ فرمايي: او ملتقط لره جائز نه دي چي لقيط په اجاره ورکړي [په مزدوري یې لګيا کړي] وَيَجُوزُ لِلْأُمِّ أَنْ تُؤَاجِرَابْنَهَا خو مور لره جائز دي چي خپله لور په اجاره ورکړي إِذَا كَانَ فِي حِجْرِهَا په دې شرط کله چي لور د مور په پالنه کي وي وَلَايَجُوزُ لِلْعَمِّ لېکن اکا لره جائز نه دي لِأَنَّ الْأُمَّ تَمْلِكُ إِتْلَافَ مَنَافِعِهِ بِاسْتِخْدَامِهِ ځکه چي مور د خپل بچي د منافعو د ضايع کولو [استعمالولو] ملکيت لري، له بچي څخه په خدمت اخيستلو سره وَلَا كَذٰلِكَ الْمُلْتَقِطُ وَالْعَمُّ خو ملتقط او اکا داسي نه دي وَلَوْ آجَرَ الصَّبِيُّ نَفْسَهُ او که چيري بچی خپل ځان په اجاره ورکړي لَا يَجُوزُ نو دا جائز نه دي [أی لا يلزم] لِأَنَّهُ مَشُوبٌ بِالضَّرَرِ ځکه دا په ضرر سره مخلوط دي [ضرر په ګډه دی يعني تاوان ور سره ترلی دی] إِلَّا إِذَا فَرَغَ مِنَ الْعَمَلِ مګر دا چي کله بچی له کار څخه فارغه سي لِأَنَّ عِنْدَ ذٰلِكَ تَمَحَّضَ نَفْعًا ځکه چي په دې وخت کي هغه خالص نفع ګرځي فَيَجِبُ الْمُسَمّٰى نو ځکه ټاکل سوی أجرت به واجبيږي وَهُوَ نَظِيرُ الْعَبْدِ الْمَحْجُورِ يُؤَاجِرُ نَفْسَهُ او دا [مسئله] نظير د هغه محجور غلام ده کوم چي خپل ځان په اجاره ورکړي وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ او مونږ د هغه ذکر [مخکي په باب إجارة العبد] کي کړی دی.

**اللغات**: ﴿ملتقِط﴾ د افتعال د باب فاعل دی: د بچي راپورته کونکی (اخیستونکی. یعني هغه کس چي په لاره وغيره کي یو بچی ومونډي او راپورته یې کړي. خپل ځای ته یې یوسي)، ﴿یؤاجر﴾ د افعال د باب مضارع ده: په اجاره ورکول یعني په اُجرت او مزدوري ورکول، مزدوري په کول، ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول. ضایع کول. ختمول. ﴿تمحض﴾ د تفعل د باب مصدر دی: خالص کېدل. محض کېدل.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي ملتقط یا اکا وغیره ته دا حق نسته چي دا بچی په اُجرت ورکړي، یعني د یو چا سره یې مزدور کړي، خو مور ته دا حق حاصل دی چي په خپل بچي مزدوري وکړي او د یو چا سره یې مزدور کړي، لېکن شرط دا دی چي بچی به د مور تر پالني لاندي وي: ځکه مور ته دا حق حاصل دی چي له خپل بچي څخه د خدمت منفعت واخلي او د هغه منافع استعمال او تلف کړي، لېکن ملتقط او اکا وغیره ته دا حق نسته، نو ځکه هغوی ته به دا حق هم نه وي چي په اُجرت یې ورکړي. (یا په بله وینا دا چي مور ته دا اختیار سته چي بلا عوضه د بچي منافع ضایع کړي یعني خدمت ځني واخلي، نو د عوض اخیستلو په صورت کي خو به په درجه اولیٰ ددې اختیار ورته وي، لېکن ملتقط او اکا بلا عوضه د بچي منافع نه سي ضایع کولای، نو ځکه د عوض اخیستلو په صورت کي به هم دوی ته د بچي د منافعو د ضایع کولو اختیار نه وي).

او که خپله بچي ځان په اُجرت ورکړي، نو د هغه دا فعل صحیح نه دي؛ ځکه دا د عقل خلاف دي او د غیرِ عاقل بچي تصرّف معتبر نه دی؛ ځکه عموماً د غیر عاقل بچي تصرّف له ضرر څخه خالي نه وي، لېکن د دې باوجود که یو بچی دا اقدام وکړي او بیا هغه له کار څخه فارغه سي، نو اوس به هغه ته خپل ټاکل سوی اُجرت ورکول کیږي؛ ځکه له کار څخه تر فارغېدلو وروسته د بچي کار د هغه په حق کي خالص نفع سوه، او د بچي لپاره هر ډول نفع رواه ده په دې شرط چي هغه حرامه نه وي.

او دا داسي ده لکه یو محجور غلام چي ځانِ په اُجرت ورکړي، نو که څه هم د هغه دا فعل صحیح نه دی، خو له کار څخه تر فارغېدلو وروسته به هغه ته خپل اُجرت ورکول کیږي؛ ځکه چي اوس دا د هغه په حق کي خالص نفع ده. (احسن الهدایه)

## غلام ته طوق اچول او قیدول

قَالَ: وَيُكْرَهُ أَنْ يَجْعَلَ الرَّجُلُ فِي عُنُقِ عَبْدِهِ الرَّايَةَ فرمايي: او مکروه دي دا چي یو سړی د خپل غلام غاړي ته طوق واچوي وَيُرْوَى الدَّايَةَ او روایت سوی دی دایه [یعني په بله نسخه کي د "رایة" پر ځای د "دایة" لفظ راغلی دی] وَهُوَ طَوْقُ الْحَدِيدِ الَّذِي يَمْنَعُهُ مِنْ أَنْ يُحَرِّكَ رَأْسَهُ او دا هغه د اوسپني طوق دی کوم چي غلام له سر ښورولو څخه منع کوي وَهُوَ مُعْتَادٌ بَيْنَ الظَّلَمَةِ او دا د ظالمانو تر مینځ عادت

سوی [فعل] دی [نو مکروه دی] لِأَنَّهُ عُقُوبَةُ أَهْلِ النَّارِ ځکه چې دا د دوږخیانو سزا ده فَیُکْرَهُ نو ځکه مکروه به وي كَالْإِحْرَاقِ بِالنَّارِ لکه په اُور سره سوځول وَلَا يُكْرَهُ أَنْ يُقَيِّدَهُ او مکروه نه دي دا چې هغه قیدي کړي [پښو ته یې زولنې واچوي] لِأَنَّهُ سُنَّةُ الْمُسْلِمِينَ فِي السُّفَهَاءِ وَأَهْلِ الدَّعَارَةِ ځکه دا د مسلمانانو طریقه ده د ناپوهانو او بدکارانو [فساد ګرو] کسانو په هکله فَلَا يُكْرَهُ فِي الْعَبْدِ تَحَرُّزًا عَنْ إِبَاقِهِ وَصِيَانَةً لِمَالِهِ نو ځکه د غلام تېنتېدلو څخه د بچ کېدو او د مال خوندي کېدو په خاطر به دا [طریقه] د غلام په هکله مکروه نه وي.

**اللغات**: ﴿الراية﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغوی څخه یې یوه معنیٰ ده: علامت، نښه. مراد ځنې هغه د اوسپنې طوق او کړی ده چې د غلام غاړې ته د علامت او نښې په توګه اچول کېدله چې دا تېنتېدونکی (آبق) غلام دی. ﴿الداية﴾ صاحب د حاشیې لیکلي دي چې دا لفظ [دَایه په دال سره] دلته هیڅ معنیٰ نه لري او له کاتب څخه غلطي سوې ده. ﴿معتاد﴾ د افتعال د باب اسمِ مفعول دی: عادت کړی سوی، د عادت مطابق، په عُرف او عادت کې مُروّجه طریقه. ﴿سفهاء﴾ جمع د سَفِیْهٌ ده: بې وقوف ناپوه، د عقل او حکمت خلاف کار کونکی. ﴿اهل الدعارة﴾ بدکاره، مفسدین.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې د غلام غاړې ته د اوسپنې طوق اچول مکروه دي؛ دا د ظالمانو طریقه ده چې هغوی به د خپلو غلامانو غاړې ته د اوسپنې طوقونه اچول چې سر او غاړې ته حرکت ورنه کړي (په در مختار کې لیکل سوي دي چې د دې مقصد به دا وو چې په غاړه کې یې نښان او علامت وي او خلکو ته معلومه سي چې دا تېنتېدونکی غلام دی)، ځکه چې دا د اهل النار (دوږخیانو) عذاب دی، نو د احراق بالنار په څېر مکروه دی.

خو د غلام پښو ته زولنې اچول مکروه نه دي؛ ځکه د مسلـ [illegible] ناپوهانو فتنه ګرو او مُفسدینو د سزا لپاره دا حربه استعمالوي، لهذا په دې غرض چې غلامونه تېنتېږي او مال محفوظ پاته سي د هغه پښو ته زولنې اچول مکروه نه دي.

## د حقنه کولو حکم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِالْحُقْنَةِ يُرِيدُ بِهِ التَّدَاوِيَ فرمایي: او پروا نسته په حقنه کولو چې په هغه سره یې اراده درملنه [علاج] کول وي لِأَنَّ التَّدَاوِيَ مُبَاحٌ بِالْإِجْمَاعِ ځکه درملنه بالاجماع جائز ده وَقَدْ وَرَدَ بِإِبَاحَتِهِ الْحَدِيثُ او د دې د روایښت په هکله حدیث هم وارد سوی دی وَلَا فَرْقَ بَيْنَ الرِّجَالِ

وَالنِّسَاءِ او د خلکو او ښځو تر مینځ هیڅ فرق نسته إِلَّا أَنَّهُ لَا يَنْبَغِي أَنْ يَسْتَعْمِلَ الْمُحَرَّمَ خو پکار نه دي چې [په حقنه کې] حرام شی استعمال کړي كَالْخَمْرِ وَنَحْوِهَا لکه شراب او داسې نور لِأَنَّ الِاسْتِشْفَاءَ بِالْمُحَرَّمِ حَرَامٌ ځکه چې په حرام شي سره شفاء حاصلول حرام دي.

**اللغات**: ﴿حقنة﴾ ①حقنه کول. یعني: د شا د لاري (د مقعدي لخوا) معدې ته دواء رسول. ② د حقنه کولو آله. وتطلق اليوم على إدخال الدواء إلى داخل الجسم بواسطة الضغط سواء كان عن طريق الدبر أم عن طريق الجلد. (معجم لغة الفقهاء)

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د علاج په توګه حقنه کول جائز دي؛ ځکه دا یو ډول علاج دی او ښکاره خبره ده چې علاج او درملنه جائز ده. نبي کریم ﷺ فرمایلي دي: تَدَاوَوْا، وإِنَّ اللهَ جَعَلَ لِكُلِّ دَاءٍ دَوَاءً (تاسي علاج وکړئ!. الله تعالیٰ د هر مرض لپاره دواء پیدا کړې ده). خو که څوک د محض چاغښت لپاره حقنه استعمالوي، نو دا مکروه دي. او په دې باب کې د نر او ښځې دواړو مسائل سره برابر دي.

خو یاد ساتل پکار دي چې د حرام شي حقنه به نه استعمالوي؛ ځکه په حرامو شیانو سره د شفاء طلب او علاج کول حرام او ناروا دي، او په حدیث کې ذکر سوي دي: إِنَّ اللهَ لَمْ يَجْعَلْ شِفَاءَكُمْ فِيمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ.

## د قاضي وغيره لپاره معاش او تنخا مقررول

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِرِزْقِ الْقَاضِي فرمایي: او د قاضي په روزي [معاش او تنخا ورکولو] کې څه حرج نسته لِأَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] بَعَثَ عَتَّابَ بْنَ أَسِيدٍ إِلَى مَكَّةَ وَفَرَضَ لَهُ ځکه نبي کریم ﷺ عتاب بن اسید رضي الله عنه مکې ته واستوی او د هغه لپاره یې نفقه مقرره کړه وَبَعَثَ عَلِيًّا إِلَى الْيَمَنِ وَفَرَضَ لَهُ او حضرت علي رضي الله عنه یې یمن ته واستوی او د هغه لپاره یې [هم] نفقه مقرره کړه وَلِأَنَّهُ مَحْبُوسٌ لِحَقِّ الْمُسْلِمِينَ او ځکه چې قاضي د مسلمانانو د حق [ورکولو] لپاره قيدي وي [يعني د مسلمانانو د فيصلو د حل او قضاوت لپاره یې ځان له هر څه څخه راګرځولی وي] فَتَكُونُ نَفَقَتُهُ فِي مَالِهِمْ نو نفقه به یې هم د همدې مسلمانانو له مال څخه وي وَهُوَ مَالُ بَيْتِ الْمَالِ او هغه د بیت المال مال دی وَهَذَا لِأَنَّ الْحَبْسَ مِنْ أَسْبَابِ النَّفَقَةِ او دا ځکه چې قید کېدل [ځان راګرځول] د نفقې له اسبابو څخه دي كَمَا فِي الْوَصِيِّ لکه څرنګه چې په وصي کې دي وَالْمُضَارِبِ إِذَا سَافَرَ بِمَالِ الْمُضَارَبَةِ او [لکه] په مضارب کې کله چې هغه د مضاربت په مال سره سفر وکړي وَهَذَا فِيمَا يَكُونُ

[1] تخریج: غريب، وری الحاكم فی المستدرک فی کتاب الفضائل، حدیث رقم: ۲۱۲۰، ۲۱۲۲.

كِفَايَةً او دا [قاضي ته د معاش وركول جائز كيږي] په دومره مقدار كي دي كوم چي د كفايت په اندازه وي فَإِنْ كَانَ شَرَطًا ليكن كه [معاش] شرط وي فَهُوَحَرَامٌ نو دا حرام دي لِأَنَّهُ اسْتِئْجَارٌ عَلَى الطَّاعَةِ ځكه چي دا پر طاعت أجرت اخيستل دي إِذِ الْقَضَاءُ طَاعَةٌ ځكه چي قضاء [قضاوت كول] يو طاعت دى بَلْ هُوَ أَفْضَلُهَا بلكي افضل طاعت دى ثُمَّ الْقَاضِي إِذَا كَانَ فَقِيرًا بيا كه چيري قاضي فقير وي فَالْأَفْضَلُ بَلِ الْوَاجِبُ الْأَخْذُ نو [معاش او تنخا] اخيستل افضل بلكي واجب دي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُهُ إِقَامَةُ فَرْضِ الْقَضَاءِ إِلَّا بِهِ ځكه چي د قضاء ذمه واري قائمول [تر سره كول] قاضي لره ممكن نه دي مگر په دې [معاش اخيستلو] سره إِذِ الْاِشْتِغَالُ بِالْكَسْبِ يُقْعِدُهُ عَنْ إِقَامَتِهِ ځكه چي په مال گټلو مشغولېدل هغه د دې فرض [ذمه واري] له قائمولو څخه كښېنوي [عاجزه كوي] وَإِنْ كَانَ غَنِيًّا او كه چيري قاضي مالدار وي فَالْأَفْضَلُ الْاِمْتِنَاعُ نو منع كېدل [نه اخيستل] غوره دي عَلَى مَا قِيلَ لكه څرنگه چي ويل سوي دي رِفْقًا بِبَيْتِ الْمَالِ د بيت المال په رعايت كولو سره وَقِيلَ: الْأَخْذُ او ويل سوي دي چي: اخيستل غوره دي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زيات صحيح قول دى صِيَانَةً لِلْقَضَاءِ عَنِ الْهَوَانِ له سپكتيا [او ذلت] څخه د قضاء بچ كېدلو په خاطر وَنَظَرًا لِمَنْ يُوَلَّى بَعْدَهُ مِنَ الْمُحْتَاجِينَ او پر هغه چا د شفقت كولو په خاطر كوم چي تر هغه [مالدار قاضي] وروسته له محتاجينو څخه قاضي وټاكل سي [يعني پر محتاج او غريب قاضي د شفقت او د هغه د مصلحت او ښېگني په خاطر مالدار قاضي لره خپل معاش او تنخا اخيستل افضل دي] لِأَنَّهُ إِذَا انْقَطَعَ زَمَانًا ځكه روزي [تنخا] چي كله څه زمانه بنده سي يَتَعَذَّرُ إِعَادَتُهُ نو بيا د هغه راگرځول [واپس جاري كول] مشكل وي ثُمَّ تَسْمِيَتُهُ رِزْقًا يَدُلُّ عَلَى أَنَّهُ بِقَدْرِ الْكِفَايَةِ بيا هغه [معاش او تنخا د قاضي] په رزق سره نومول پر دې خبره دلالت كوي چي هغه به د كفايت په اندازه وي.

**اللغات:** ﴿رزق﴾ روزي، معاش، تنخا (تنخوا)، ﴿محبوس﴾ د ضرب د باب مفعول دى: قيدي، بندي، راگرځول سوى (منع كړى سوى)، ﴿نفقة﴾ د خوراك او څښاك خرڅه، د ژوند تېرولو خرڅه. ﴿طاعة﴾ حكم او فرمان منل، عبادت كول، عبادت. ﴿كسب﴾ د ضرب له بابه مصدر او اسم مصدر دى: گټه، مال گټل، د ځان او اهل وعيال لپاره د روزۍ طلب كول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي د مسلمان قاضي لپاره د هغه د ټولنيز ژوند په اندازه تنخا او وظيفه وركول جائز دي؛ ځكه كله چي نبي كريم ﷺ به صحابه يو خوا ته استول، نو د هغوى لپاره به يې وظيفه مقرروله. لكه څرنگه چي د حضرت اسيد رضي الله عنه او حضرت علي رضي الله عنه په هكله نقل سوي دي.

عقلي دليل دا دی چي قاضي د مسلمانانو د مسائلو او فيصلو د حل لپاره ټوله وخت ناست او مصروف وي ګواکي هغه يو ډول د مسلمانانو لپاره اجير او کار کونکی دی. او د اجير اُجرت هم پر مستأجر لازم وي. نو ځکه د قاضي نفقه به هم له بيتُ المال څخه ورکول کيږي کوم چي د مسلمانانو مال دی.

وهذا لأن إلخ: د دې حاصل دا دی چي حبس (ځان راګرځول) د نفقي له اسبابو څخه دي. هغه په دې توګه چي کله قاضي يا وصي وغيره خپل ځان د نورو د کار لپاره راګرځوي. نو آخر د دوی نفقه او خرچه به له کومه راځي. نو څرنګه چي محتاج وصي د خپل ضرورت په اندازه د يتيم له مال څخه نفقه اخيستلای سي، او څرنګه چي مضارب د سفر په حالت کي له مال مضاربت څخه نفقه اخيستلای سي. خاص همداسي قاضي لره هم د خپل قاضي والي په زمانه کي له بيت المال څخه د معاش او نفقي اخيستلو اجازت سته. لېکن شرط دا دی چي هغه معاش او تنخا به د کفايت په اندازه وي (يعني چي څومره د ده ورته ضرورت وي او د ده کافي کيږي). او مشروط به هم نه وي چي که ما ته هره مياشت دومره تنخا نه راکول کيږي نو زه قضاوت نه کوم، کنې حراميږي؛ ځکه چي دا استئجار على الطاعة دی کوم چي باطل دی، او بل دا چي قضاوت خو يو اهم طاعت دی، لهذا پر هغه د مشروط اُجرت اخيستلو بطلان به هم د اعلیٰ درجې وي.

ثم إن إلخ: فرمايي چي که قاضي محتاج او ضرورت مند وي، نو هغه لره معاش او تنخا اخيستل واجب دي؛ ځکه که د ضرورت باوجود قاضي ته معاش نه ورکول سي، نو هغه به په روزي او معاش ګټلو مصروفه وي چي په دې توګه به د قضاوت اُمور ځني پاته وي، لهذا په دې صورت کي لازمه ده چي معاش او تنخا ورکول سي. او که چيري قاضي مالدار وي، نو د يوه قول مطابق د هغه لپاره معاش نه اخيستل غوره دي؛ چي د بيت المال سرمايه هسي مصرف نه سي بلکي په نورو مهمو کارو کي وکارول سي.

خو دويم او صحيح قول دا دی چي په دې صورت کي هم معاش اخيستل غوره دي: چي د معاش نه اخيستلو په وجه د قضاوت په اُمورو کي سستي او لا پروايي واقع نه سي. ځکه که معاش او تنخا مقرره نه کړل سي، نو قاضي به آزاد وي او دغه کارو ته به يې ډېره توجه نه وي. او بل د مالدار قاضي د تنخا په مقررولو کي دا فايده هم سته چي که تر دې وروسته يو ضرورت مند او غريب قاضي وټاکل سي. نو د هغه تنخا به جاري وي او له سره به د تنخا مقررولو په هکله تکليف نه ګالي، ځکه وظيفه او تنخا چي څو وخت بنده سي، نو بيا هغه په تکليف او زحمت سره جاري کيږي.

ثم إلخ: فرمايي د قاضي معاش او تنخا په رزق سره نومول کېدل د همدې خبري علامت او دلالت دی چي دا به د کفايت په اندازه وي.

## قاضي ته به کله تنخا ورکول کيږي؟

وَقَدْ جَرَى الرَّسْمُ بِإِعْطَائِهِ فِي أَوَّلِ السَّنَةِ او [قاضي ته] د کال په شروع کي د روزي [تنخا] ورکولو رواج جاري دی لِأَنَّ الْخَرَاجَ يُؤْخَذُ فِي أَوَّلِ السَّنَةِ ځکه چي خراج د کال په شروع کي اخيستل کيږي وَهُوَ يُعْطِي مِنْهُ او هغه [تنخا] له همدې خراج ځخه ورکول کيږي وَفِي زَمَانِنَا الْخَرَاجُ يُؤْخَذُ فِي آخِرِ السَّنَةِ او زموږ په زمانه کي خراج د کال په آخر کي اخيستل کيږي وَالْمَأْخُوذُ مِنَ الْخَرَاجِ خَرَاجُ السَّنَةِ الْمَاضِيَةِ او کوم خراج چي اخيستل کيږي هغه د تېر سوي کال خراج وي هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده [په بله وينا دا چي: د صحيح قول مطابق له خراج ځخه د تېر کال خراج مراديږي] وَلَوِ اسْتَوْفَى رِزْقَ سَنَةٍ او که قاضي [د کال په اول کي] د يوه کال روزي [تنخا] ترلاسه کړي وَعُزِلَ قَبْلَ اسْتِكْمَالِهَا او بيا د کال تر پوره کېدو مخکي قاضي معزوله کړی سي قِيلَ: هُوَ عَلَى اخْتِلَافٍ مَعْرُوفٍ فِي نَفَقَةِ الْمَرْأَةِ نو ويل سوي دي چي: دا [مسئله] پر هغه اختلاف ده کوم چي د ښځي د نفقې په باره کي پېژندل سوی دی إِذَا مَاتَتْ فِي السَّنَةِ بَعْدَ اسْتِعْجَالِ نَفَقَةِ السَّنَةِ کله چي ښځه د کال په دوران کي مړه سي وروسته تر معجّل [مخکي] اخيستلو د يوه کال د نفقې [يعني کله چي ښځه له خپل خاوند ځخه د پوره يوه کال نفقه مخکي يعني د کال په اول کي واخلي او بيا د کال په مينځ کي مړه سي] وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يَجِبُ الرَّدُّ خو صحيح دا ده چي [دې تنخا وغيره] واپس کول واجب دي.

**اللغات**: ﴿استوفى﴾ د استفعال د باب ماضي ده: ترلاسه کول، پوره اخيستل، ﴿عزل﴾ د ضرب له بابه د ماضي مجهولي صيغه ده: : معزوله کول، له منصبه ليري کول، برطرفه کول، ﴿استعجال﴾ د استفعال د باب مصدر دی: په يو شي کي تلوار کول، مخکي او ژر د يو شي غوښتنه کول.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي په اولني دور کي چي ځرنګه د کال په شروع کي خراج او محصول اخيستل کېدی او له همدې ځخه به د قاضي وغيره معاش او تنخا ورکول کېده، نو ځکه په هغه وخت کي به د کال په شروع کي د ټوله کال معاش او تنخا ورکول کېده، او زموږ په زمانه کي د کال په آخر کي خراج اخيستل کيږي، نو ځکه د قاضي وغيره تنخا به هم د کال په آخر کي ورکول کيږي.

ولو استوفى إلخ: د دې حاصل دا دی که قاضي د کال په شروع کي د ټوله کال تنخا واخلي، بيا د کال تر پوره کېدو مخکي هغه معزوله کړی سي. نو د اصح قول مطابق تر معزولتيا وروسته د پاته مياشتو تنخا به واپس کوي. خو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کي ردّ (واپس کول) ضروري نه دي.

او د دې مثال داسي دی لکه ښځه چي له خپل خاوند ځخه مخکي (پېشګي) د ټوله کال نفقه واخلي. بيا د کال په مينځ کي خاوند مړ سي يا ښځه مړه سي، نو دلته هم د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز ردّ ضروري دی (چي د

پاته وخت نفقه به ښځه واپس کوي یا خاوند به یې واپس ځني اخلي). او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نيز رد ضروري نه دی. لیکن اصح قول دا دی چې رد ضروري دی. لأن الأجرة منافع العمل، ولا عمل بعد العزل. لهذا د صحیح قول مطابق پر قاضي د پاته ورځو تنخواه او نفقه واپس کول ضروري دي.

## بغیر له محرمه د أم ولد او مینځې د سفر کولو حکم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِأَنْ تُسَافِرَ الْأَمَةُ وَأُمُّ الْوَلَدِ بِغَيْرِ مَحْرَمٍ فرمايي: او پروا نسته په دې کې چې مینځه او أم ولد بغير له محرمه سفر وکړي لِأَنَّ الْأَجَانِبَ فِي حَقِّ الْإِمَاءِ فِيمَا يَرْجِعُ إِلَى النَّظَرِ وَالْمَسِّ بِمَنْزِلَةِ الْمَحَارِمِ ځکه پردي خلک د مینځو په حق کې په هغه څه کې کوم چې راجع دي کتلو او مسه کولو ته د محارمو په درجه کې دي [یعني د کتلو او مسه کولو په اړه پردي خلک د مینځو په حق کې د محارمو په درجه کې دي] عَلَى مَا ذَكَرْنَا مِنْ قَبْلُ لکه مخکې چې موږ د دې یادونه وکړه وَأُمُّ الْوَلَدِ أَمَةٌ او أم ولد [هم] مینځه ده لِقِيَامِ الْمِلْكِ فِيهَا ځکه چې په هغې کې [تر اوسه د مالک] ملکیت موجود دی وَإِنِ امْتَنَعَ بَيْعُهَا که څه هم د هغې بیع [خرڅول یې] ممنوع دي.

**اللغات**: ﴿أم ولد﴾ (د بچي مور). هغه مینځې ته وایي چې خپل مالک (مولیٰ) جماع ور سره کړې وي او د جماع په نتیجه کې له هغې څخه بچی پیدا سوی وي، ﴿أَجَانِب﴾ جمع د أَجْنَبِيٌّ ده: پردی. ﴿المسّ﴾ مصدر دی. له سمع او نصر دواړو څخه راځي، مَسَّ يَمَسُّ وَيَمُسُّ مَسًّا وَمَسِيْسًا وَمِسِّيْسَى: مسه کول. لاس ور وړل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې د مینځې او أم ولد لپاره جائز دي چې بغیر له ذی رحم محرم څخه (یوازې) سفر وکړي؛ ځکه مخکې ذکر سوه چې مینځې ته کتل د پردیو خلکو لپاره داسې دي لکه خپل محارمو ته د سړي کتل. یعني سړی چې د خپلو محارمو ښځو کومو اندامونو ته کتلای او مسه کولای یې سي. همداسې پردي خلک هم د مینځو هغه اندامونو ته کتلای او مسه کولای یې سي.

وأم الولد إلخ: فرمايي چې أم ولد هم مینځه ده که څه هم د هغې خرڅول جائز نه دي. ځکه په هغې کې (تر اوسه) د خپل مالک ملکیت پاته دی (ځکه هغه خو د مالک تر مرګ وروسته آزادیږي). لهذا کله چې هغه مینځه ده. نو هغې لره به هم بغیر له محرمه سفر کول او بهر تلل جائز وي.

❀❀❀

# كِتَابُ إِحْيَاءِ الْمَوَاتِ

(دا) کتاب د مړو (شاړو) ځمکو د آبادولو (په بیان کې) دی

**تشریح:** مخکې تر دې صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله کتابُ الکراهیت بیان کړی، اوس تر هغه وروسته کتاب إحیاء الموات بیانوي، د دواړو تر مینځ د مناسبت په هکله صاحب د بنایې رَحِمَهُ الله د اکثره شارحینو دا رایه نقل کړې ده چې څرنګه په کتابُ الکراهیة کې د مکروه او غیر مکروه احکام بیان سوي دي، همداسي په دغه کتاب کې هم ډېر د مکروه او غیر مکروه احکام بیان سوي دي. لېکن وروسته خپله صاحب د بنایې رَحِمَهُ الله د دغه رایې تردید کوي فرمایي "وهٰذا لیس بشيء" چې دا توجیه د پاملرني وړ نه ده؛ ځکه د مکروه او غیر مکروه احکامو بیان تقریباً په هر کتاب کې وي.

له دې څخه غوره توجیه دا ده چې په دغه کتاب کې د مَوَات (شاړو ځمکو) بیان دی او مَوَات ناقابلِ انتفاع دي (یعني د دې قابله نه دي چې نفع ځني واخیستل سي)، او په کتاب الکراهیت کې د سرو زرو، سپینو رو، وربښمو او داسي نورو بیان دی، او ښکاره ده چې دا شیان هم په ځینې صورتونو کې نا قابلِ انتفاع دي، مثلاً د سرو زرو او سپینو زرو په لوښو کې خوراک، چښاک د سړي او ښځې دواړو لپاره حرام دي. همدارنګه وربښم د سړي لپاره ناروا دي. لنډه دا چې د عدمِ انتفاع په هکله د کتاب الکراهیت او إحیا الموات تر مینځ مناسبت سته، نو ځکه یو تر بل وروسته بیان کړی سوی دی. (بنایه ج: ۱۱، ص: ۳۱۴، هکذا فی العنایة)

**د احیاء الموات لغوي او اصطلاحي معنیٰ:** إِحْيَاء د افعال د باب مصدر دی: ژوندي کول، نوی ژوند وربخښل، دلته یې مطلب دا دی چې ځمکه د کښت کرني قابله ګرځول یا وداني پکښې جوړول.

مَوَات (د میم په فتحه سره) د دې لغوي معنیٰ ده: مړ. مَا لَا رُوْحَ فِیْهِ یعني هغه حیوان (ساکښ) چې روح او سا پکښې نه وي (چې مړ ورته وایي)، او اصطلاحي معنیٰ یې ده: د اوبو د کمښت یا ډېرښت په وجه چې کومه ځمکه شنډه سوې وي او د کښت کرني قابله نه وي او نه د هغې څوک مالک وي، داسي ځمکې ته موات ویل کیږي.

إحیاءِ موات په حدیث سره ثابت دی. نبي ﷺ فرمایلي دي: "مَنْ أَحْيٰى أَرْضًا مَيْتَةً فَهِيَ لَهٗ" (څوک چې مړه شاړه ځمکه ژوندۍ کړي [یعني د زارعت قابله او آباده یې کړي]. نو دا ځمکه د هغه ده).

## د ارض موات تعریف

قَالَ: الْمَوَاتُ مَا لَا يُنْتَفَعُ بِهِ مِنَ الْأَرَاضِيْ فرمايي: موات هغه ځمکه ده چي له هغې ځخه نفع نه سي اخيستل کېداى لِانْقِطَاعِ الْمَاءِ عَنْهُ له هغې ځخه داوبو د منقطع کېدلو [بندېدلو] په وجه أَوْ لِغَلَبَةِ الْمَاءِ عَلَيْهِ يا پر هغې د اوبو د غالبېدلو [زياتېدلو] په وجه أَوْ مَا أَشْبَهَ ذٰلِكَ مِمَّا يَمْنَعُ الزِّرَاعَةَ يا دې ته په څېر بل سبب، کوم چي کښتګري منع کړي [يعني چي د هغه په وجه ځمکه د کښت کرني قابله پاته نه سي] سُمِّيَ بِذٰلِكَ لِبُطْلَانِ الْاِنْتِفَاعِ بِهِ او داسي ځمکه په موات [مړې ځمکي] سره ځکه نومول سوې ده چي له هغې ځخه نفع اخيستل باطل [او ناممکن] دي.

**اللغات**: ﴿ينتفع﴾ د افتعال د باب مضارع ده: نفع اخيستل. ﴿أراضي﴾ جمع د أَرْضٌ ده: ځمکي، مځکي. ﴿انقطاع﴾ د انفعال د باب مصدر دی: پرېکېدل او شکېدل، بندېدل.

**تشريح**: په دې عبارت کي د موات تعريف بيان سوی دی، د هغه حاصل دا دی چي له کومي ځمکي ځخه اوبه بندي او منقطع وي او د هغې د اوبه کولو لپاره هيڅ انتظام نه وي سوی، يا په ځمکه کي مثلاً د سېلاب اوبه جمع سوي وي او تر اوبو لاندي وي، يا مثلاً پر ځمکه ريګ راغلی وي او ځمکه يې لاندي کړې وي، يا ځمکه دومره سخته او کلکه سوې وي چي د هغې اړول او هوارول مشکل وي، لنډه دا په هر ډول چي ځمکه د کښت کرني او شنه کېدلو قابله پاته نه سي، نو هغې ته مَوَات ويل کيږي، او موات ځکه ورته وايي چي څرنګه له مړه حيوان ځخه نفع اخيستل ممکن نه دي، همداسي له مړې او شاړي ځمکي ځخه هم نفع اخيستل ممکن نه وي، په دې مناسبت مَوَات ورته وايي.

## د ارض موات مصداق

قَالَ: فَمَا كَانَ مِنْهَا عَادِيًا فرمايي: او کومه ځمکه چي پخوانۍ [شاړه] وي لَا مَالِكَ لَهُ چي هغې لره مالک نه وي أَوْ كَانَ مَمْلُوكًا فِي الْإِسْلَامِ لَا يُعْرَفُ لَهُ مَالِكٌ بِعَيْنِهِ يا دا مَوَات [شاړه ځمکه] په دار الاسلام کي د چا په ملکيت کي وي [خو] هغې لره متعين مالک نه پېژندل کيږي [يعني مالک يې معلوم نه وي] وَهُوَ بَعِيْدٌ مِنَ الْقَرْيَةِ او هغه له کلي [يعني د خلکو له آبادۍ او سيمي] ځخه ليري وي بِحَيْثُ إِذَا وَقَفَ إِنْسَانٌ مِنْ أَقْصَى الْعَامِرِ فَصَاحَ په دې توګه چي که انسان د آبادۍ په آخر کي ودريږي او نعره وکړي لَا يُسْمَعُ الصَّوْتُ فِيْهِ نو په هغه ځمکه کي آواز نه اورېدل کيږي فَهُوَ مَوَاتٌ نو هغه موات [مړه شاړه ځمکه] ده.

**اللغات**: ﴿عادي﴾ مراد ځني هغه ځمکه ده چي له پخوا ځخه شاړه پرته وي، ﴿أقصیٰ﴾ آخري، نهائي، ﴿عامر﴾ آبادي (آباتي)، ودانې، هغه سيمه او علاقه چي خلک پکښي آباد وي، ﴿صاح﴾ د ضرب ماضي ده: چيغه او نعره وهل، نعره کول.

**تشريح**: فرمايي که يوه ځمکه له پخوا ځخه شاړه، ويرانه پرته وي چي د کښت قابله نه وي، او د هغې هيڅ مالک نه معلوميږي، يا په دارُ الاسلام کي خو د هغې مالک وي (يعني مالک اري). لېکن معلوم نه وي او هيڅ درک يې هم نه وي، او دا ځمکه د خلکو له آبادۍ (سيمي او علاقې) ځخه دومره ليرې وي چي که څوک د آبادۍ په آخره حصه کي ودريږي په زوره نعرې کړي، نو دغه ځمکي ته نه را رسيږي، داسي ځمکه موات ده چي د هغې ژوندي کول او آبادول صحيح دي (او همدا آبادونکی کس يې مالک کيږي کله چي يې هغه د امام په اجازت سره آباده کړي).

## د مـوات په تعريف کي د قيوداتو وضاحت

قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: هٰكَذَا ذَكَرَهُ الْقُدُورِيُّ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: همداسي امام قدوري رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي وَمَعْنَى الْعَادِيِّ مَا قَدُمَ خَرَابُهُ او د عادي معنیٰ ده هغه [ځمکه] چي ويرانېدل [شاړېدل] يې پخواني وي [يعني له پخوا ځخه شاړه ويرانه وي] وَالْمَرْوِيُّ عَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ يُشْتَرَطُ أَنْ لَا يَكُونَ مَمْلُوكًا لِمُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ مَعَ انْقِطَاعِ الِارْتِفَاقِ بِهَا ۞ او له امام محمد رَحِمَهُ الله ځخه روايت سوی دی چي دا [هم] شرط دي چي هغه ځمکه به د يو مسلمان يا ذمي په ملکيت کي نه وي سره د منقطع کېدلو د ارتفاق [نفع اخيستلو] په هغې سره [په بله وينا دا چي له امام محمد رَحِمَهُ الله ځخه نقل سوي دي چي دا هم شرط دي چي د ناقابلِ انتفاع کېدو سره، سره به هغه ځمکه د يو مسلمان يا ذمي په ملکيت کي هم نه وي] لِيَكُونَ مَيْتَةً مُطْلَقًا د دې لپاره چي هغه مطلقاً مړه [شاړه] سي فَأَمَّا الَّتِي هِيَ مَمْلُوكَةٌ لِمُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ او پاته سوه هغه ځمکه کوم چي د مسلمان يا ذمي په ملکيت کي وي لَا تَكُونُ مَوَاتًا نو هغه موات [مړه شاړه] ځمکه نه ده وَإِذَا لَمْ يُعْرَفْ مَالِكُهُ او کله چي د هغې مالک پېژندل سوی [معلوم] نه وي تَكُونُ لِجَمَاعَةِ الْمُسْلِمِينَ نو هغه ځمکه د مسلمانانو د جماعت کيږي وَلَوْ ظَهَرَ لَهُ مَالِكٌ او که [وروسته] د هغې مالک ښکاره سي يُرَدُّ عَلَيْهِ نو پر هغه به واپس کول کيږي وَيَضْمَنُ الزَّارِعُ نُقْصَانَهَا او

---

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: واعتبر محمد رَحِمَهُ الله عدم ارتفاق أهل القرية به، وبه قالت الثلاثة، قلتُ وهذا ظاهر الرواية وبه يفتى... (رد المحتار ج:۵، ص:۳۰۷)

کښتګر د هغې د نقصان ضامن کیږي وَالْبُعْدُ عَنِ الْقَرْيَةِ عَلَى مَا قَالَ شَرَطَهُ أَبُوْيُوْسُفَ او له کلي [آبادۍ] څخه لیرې کېدل (لکه څرنګه چې امام قدوري ویلې دي) دا شرط امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله لګولی دی لِأَنَّ الظَّاهِرَ أَنَّ مَا يَكُوْنُ قَرِيْبًا مِنَ الْقَرْيَةِ ځکه ښکاره همدا ده چې کومه ځمکه وکلي [آبادۍ] ته نژدې وي لَا يَنْقَطِعُ ارْتِفَاقُ أَهْلِهَا عَنْهُ نو له هغه ځمکې څخه د هغه کلي والا انتفاع نه منقطع کیږي فَيُدَارُ الْحُكْمُ عَلَيْهِ نو د حکم مدار به پر همدې [قُرب او نژدېکت] وي وَمُحَمَّدٌ اِعْتَبَرَ اِنْقِطَاعَ ارْتِفَاقِ أَهْلِ الْقَرْيَةِ عَنْهَا حَقِيْقَةً او امام محمد رَحِمَهُ الله له ځمکې څخه حقیقتًا د کلي والا د انتفاع منقطع کېدلو اعتبار کړی دی وَإِنْ كَانَ قَرِيْبًا مِنَ الْقَرْيَةِ که څه هم هغه ځمکه وکلي [آبادۍ] ته نژدې وي كَذَا ذَكَرَهُ الْإِمَامُ الْمَعْرُوْفُ بِخُوَاهَرْزَادَهْ همداسې ذکر کړي دي امام کوم چې په خواهر زاده مشهوره دی وَشَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرْخَسِيُّ اِعْتَمَدَ عَلَى مَا اخْتَارَهُ أَبُوْيُوْسُفَ [لېکن] شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله پر هغه قول اعتماد کړی دی کوم چې امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اختیار کړی دی.

**اللغات**: ﴿خراب﴾ د کرُم د باب مصدر دی: ویرانېدل، ویجاړېدل. ﴿قَدُمَ﴾ د کرُم د باب ماضې ده: پخوانی کېدل. ﴿ارتفاق﴾ د افتعال د باب مصدر دی: نفع او فایده اخیستل، نفع ترلاسه کول. ﴿يُدار﴾ د نصر له بابه د مضارع مجهولې صیغه ده: دائر کېدل، مدار کېدل. ﴿قرية﴾ غټ کلی، سیمه او علاقه چې خلک پکښې آباد وي.

**تشريح**: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې د مَوَات کوم تعریف مخکې ذکر سو، امام قدوري رَحِمَهُ الله هم هغسې ذکر کړی دی، لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله دا شرط هم پکښې اضافه کړی دی چې هغه ځمکه به د یو مسلمان یا د یو ذمي په ملکیت کې نه وي او له هغې څخه به نفع نه اخیستل کیږي، کنې هغه موات نه ده، او که د هغه ځمکې هیڅ مالک معلوم نه وي، نو هغه د مسلمانانو د جماعت لپاره ده. صرف یوه کس د هغې نه سي مالک کېدلای.

که څوک په ارضِ موات (شاړه ځمکه) کې کښت کرنه وکړي او تر دې وروسته د هغې مالک ښکاره سي، نو دا ځمکه به خپل مالک ته واپس کول کیږي او کښت کرونکي سړي چې له دغه ځمکې څخه کومه نفع اخیستې وي، د هغه په اندازه به د ځمکې مالک ته تاوان ورکوي، د دې لپاره چې دا ځمکه په کامله توګه خپل مالک ته واپس کړل سي.

**یادونه**: قاعده دا ده چې مطلق د فرد کامل وطرف ته راجع کیږي، نو مطلق موات به هغه ځمکه وي کوم چې د یو مسلمان او ذمي په ملکیت کې نه وي، لهذا که یوه ځمکه د یو مسلمان یا ذمي په ملکیت کې وه او شاړه، ویرانه وه، نو هغه ته موات نه ویل کیږي، ځکه کله چې هغه د یو مسلمان یا ذمي په ملکیت کې ده، نو د شاړېدلو باوجود له هغې څخه د مسلمان یا ذمي ملکیت نه زائلیږي، لهذا په حدیث کې چې کوم لفظ د "میتة" استعمال سوی دی. له هغه څخه کامل میتة مراد دی او د کامل کېدو لپاره دا ضروري ده چې هغه به د هیچا په ملکیت کې نه وي. په همدې وجه امام محمد رَحِمَهُ الله دا شرط لګولی دی کوم چې ذکر سو.

والبعد عن إلخ: فرمایي له آبادۍ څخه د لیرې کېدلو شرط چې په متن کې ذکر سو، هغه د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز دی؛ او له آبادۍ څخه لیرې کېدل ځکه شرط دي چې په همدې سره معلومیږي چې له دغه ځمکې څخه د آبادۍ والا خلګو انتفاع منقطع سوې ده (یعني د دغه سیمې او علاقې خلک نفع نه سي ځنې اخیستلای)، او که ځمکه آبادۍ ته نژدې وي نو بیا له هغې څخه د دوی انتفاع نه منقطع کیږي، لنډه دا چې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز مدار پر قربت او عدمِ قربت دی (چې که شاړه ځمکه د خلګو سیمې او آبادۍ ته نژدې نه وي، هغه موات ده، او که نژدې وي، نو بیا موات نه ده)، او امام محمد رَحِمَهُ الله د حقیقتاً انتفاع منقطع کېدلو اعتبار کړی دی، برابره ده ځمکه لیرې وي او که نژدې وي، لهذا که هغه شاړه ځمکه آبادۍ ته نژدې وي لېکن د آبادۍ والا خلګو هیڅ انتفاع د هغې سره متعلق نه وي. نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هغه هم موات ده. همدا د امام خواهر زاده رَحِمَهُ الله رایه هم ده. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله قول شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله معتمد کڼلی دی او امام طحاوي رَحِمَهُ الله هم ذکر کړی دی.

## د ارضِ موات د مالک جوړېدو لپاره د امام اجازت ضروري دی، که نه؟

ثُمَّ مَنْ أَحْيَاهُ بِإِذْنِ الْإِمَامِ بیا چې څوک دا شاړه ځمکه د امام په اجازت سره آباده کړي مَلَكَهُ نو د هغې مالک کیږي وَإِنْ أَحْيَاهُ بِغَيْرِ إِذْنِهِ او که د امام له اجازت نه بغیر شاړه ځمکه آباده کړي لَمْ يَمْلِكْهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغې نه مالک کیږي وَقَالَا ❀: يَمْلِكُهُ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې مالک کیږي یې لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ❶: «مَنْ أَحْيَى أَرْضًا

---

❀ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتفصيل الكتاب المعروف بالقول الراجح [ج: ۲، ص:۳۰۹]

❶ تخريج: رواه الهيثمي في مجمع الزوائد ج:۴، ص:۱۵۷، والبخاري بمعناه في الحرث والمزارعة، والنسائي في السنن الكبرى، حديث رقم: ۵۷۵۷.

مَيْتَةً فَهِيَ لَهُ» ځکه نبي ﷺ فرمايلي دي: څوک چي مړه ځمکه آباده کړي نو دا د هغه ده وَلِأَنَّهُ مَالٌ مُبَاحٌ سَبَقَتْ يَدُهُ إِلَيْهِ او ځکه چي دا [شاړه ځمکه] يو مباح مال دی چي هغې ته د ده لاس وړانديتوب کړی دی فَيَمْلِكُهُ نو ځکه دئ به يې مالک وي كَمَا فِي الْحَطَبِ وَالصَّيْدِ لکه څرنګه چي په بوټو [لرګيو] او ښکار کي دي وَلِأَبِي حَنِيفَةَ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [2]: «لَيْسَ لِلْمَرْءِ إِلَّا مَا طَابَتْ نَفْسُ إِمَامِهِ بِهِ» او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د نبي کريم ﷺ دا فرمان دی چي: نه دي د سړي لپاره مګر هغه چي په هغه سره د ده د امام نفس [زړه] خوښ وي [يعني د انسان لپاره صرف د هغه څه ملکيت سته چي په هغه د ده امام راضي وي] وَمَا رَوَيَاهُ يَحْتَمِلُ أَنَّهُ إِذْنٌ لِقَوْمٍ لَا نَصْبٌ لِشَرْعٍ او کوم حديث چي صاحبينو رَحِمَهُمَا الله روايت کړی دی دا احتمال لري چي هغه به د يو خاص قوم لپاره اجازت وي، نه د شريعت [قاعده کليه] ټاکل وَلِأَنَّهُ مَغْنُومٌ او ځکه چي دا [ځمکه] مال غنيمت ده [يا په بله وينا دا چي په غنمت کي ترلاسه کړل سوې ده] لِوُصُولِهِ إِلَى يَدِ الْمُسْلِمِينَ بِإِيجَافِ الْخَيْلِ وَالرِّكَابِ ځکه چي دا ځمکه د آسونو او اوښانو په حملې [اوغلبې] سره د مسلمانانو لاس ته رسېدلې ده فَلَيْسَ لِأَحَدٍ أَنْ يَخْتَصَّ بِهِ بِدُونِ إِذْنِ الْإِمَامِ نو چا لره دا حق نسته چي په هغې سره خاص کړی سي، د امام له اجازت نه بغير كَمَا فِي سَائِرِ الْغَنَائِمِ لکه څرنګه چي په ټولو غنيمتونو کي [همدا حکم] دی.

**اللغات**: ﴿أحياء﴾ د افعال د باب ماضي ده: ژوندی کول. مراد: آبادول. د نفع اخيستو قابله ګرځول. ﴿إذن﴾ اجازت، اجازه. ﴿سبقت﴾ د ضرب له بابه د مؤنث غائب ماضي صيغه ده: وړانديتوب کول. مخکي کېدل. ﴿حطب﴾ د سوځولو لرګي، يعني هغه بوټي کوم چي د اُور بلولو لپاره کارول کيږي، ﴿صيد﴾ ښکار. د ښکار حيوان. ﴿طابت﴾ د ضرب د باب ماضي ده: ښه کېدل، خوښېدل. يعني هغه څه کوم چي يې امامُ المسلمين په رضا او خوښي سره ور کړي. ﴿إيجاف﴾ د افعال د باب مصدر دی. د دې باب خپله معنیٰ ده: په جوف (نس) کي په نېز وهل. د شي نس راکښل. مراد: حمله کول. ﴿الرِّكَاب﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه يې يوه معنیٰ ده: د سپرېدلو اوښان. همدارنګه د بار وړلو اوښان. (معجم الوسيط)

[2] تخريج: رواه الطبراني في المعجم الكبير ج: ۴، ص: ۲۰، برقم ۳۵۳۳، وفي الأوسط ج: ۷، ص: ۲۲، برقم ۶۷۳۹ عن معاذ

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز که د ښاړي ځمکي آبادول د امام په اجازت سره وي، نو آبادونکی (احیاء کونکی) د هغې مالک کیږي. کنې نه مالک کیږي. صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي چي په هر صورت کي هغه د دې مالک کیږي (برابره ده د امام په اجازت سره وي. که نه وي). دوی یو حدیث په دلیل کي پېش کړی دی کوم چي مطلق دی چي په هغه کي د امام د اجازت قید نسته.

دویم دلیل یې عقلي دی چي پر مباح (روا) مال چي اول څوک قابض سي. بس هاغه مال د همده کیږي، لکه د ښکار حیوان، د صحرا بوټي. لهذا دلته به هم داسي کیږي.

**یادونه**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول مختار دی. او که چیري آبادونکی کس ذمي وي. نو بالاتفاق د امام اجازت شرط دی. (سکب الأنهر ج: ۲، ص: ۴۹۰)

ولأبي حنيفة إلخ: امام صاحب رَحِمَهُ الله په خپل دلیل کي اولاً یو حدیث پېش کړی دی چي سړي ته هماغه شی حاصلېدای سي، چي په هغه د ده امام راضي وي، نو له دې حدیث څخه د امام د اجازت شرط کېدل فهمول کیږي، دویم دلیل یې دا دی چي دا ځمکه هم ذمال غنیمت ده، او په ﷺ مال غنیمت کي چا ته دا حق نه وي چي خپله هغه واخلي بلکي د امام له طرفه پر تقسیم او اجازت موقوف وي (یعني کله چي یې امام تقسیم کړي او د اخیستلو یې اجازت ورکړي). او دا په دې وجه مال غنیمت ده، چي دغه ځمکي مخکي د مشرکانو په قبضه کي وې، بیا له هغوی څخه د مسلمانانو مخکینیو پلرونو د آسونو په حملو او په غلبه سره حاصله کړې، لهذا دا ځمکه غنیمت سوه.

وما رواه إلخ: او پاته سو هغه حدیث کوم چي صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل په نیولی دی (یعني مَنْ أحيىٰ أرضًا...إلخ)، د هغه جواب دا دی چي په دغه حدیث کي څو احتمالات سته، لهذا د دې قابل نه دی چي دلیل په ونیول سي؛ ځکه څرنګه چي په دې کي دا احتمال سته چي دا به د شریعت له طرفه ټاکل سوې قاعده وي یعني د ټولو لپاره به عام وي لکه په "مَنْ قاء في صلاة أو رعف إلخ" کي چي حکم د ټولو لپاره دی، همداسي دا احتمال هم پکښې سته چي قاعده کلیه او عام نه وي، بلکي د یو مخصوص قوم لپاره ترغیباً دا حکم سوی وي، لکه څرنګه چي په "مَنْ قَتَلَ قَتِيْلًا فَلَهُ سَلَبُهُ" کي چي حکم عام نه دی بلکي د یو مخصوص قوم لپاره دی، خلاصه دا چي د امام صاحب روایت مفسّر دی او د صاحبینو روایت محتمل دی، نو ځکه ترجیح به د امام صاحب روایت لره وي. (احسن. اشرف)

## په آباده کړل سوي شاړه ځمکه کي عشر واجب دی که خراج؟

وَيَجِبُ فِيْهِ الْعُشْرُ او په دې ځمکه کي عشر واجبيږي لِأَنَّ ابْتِدَاءَ تَوْظِيْفِ الْخَرَاجِ عَلَى الْمُسْلِمِ لَا يَجُوْزُ ځکه چي پر مسلمان له شروع څخه د خراج وظيفه مقررول جائز نه دي إِلَّا إِذَا سَقَاهُ بِمَاءِ الْخَرَاجِ مګر دا چي کله هغه دا ځمکه په خراجي اوبو سره اوبه کړې وي لِأَنَّهٗ حِيْنَئِذٍ يَكُوْنُ إِبْقَاءُ الْخَرَاجِ عَلَى اعْتِبَارِ الْمَاءِ ځکه په دې وخت کي به د خراج باقي پرېښوول داوبو په اعتبار سره وي فَلَوْ أَحْيَاهَا ثُمَّ تَرَكَهَا فَزَرَعَهَا غَيْرُهٗ او که هغه آباده کړي بیا يې پرېږدي او بیا بل څوک هغه وکري فَقَدْ قِيْلَ: اَلثَّانِيْ أَحَقُّ بِهَا نو ويل سوي دي: چي [په دې صورت کي] دويم کس د هغې زيات حقدار دی لِأَنَّ الْأَوَّلَ مَلَكَ اِسْتِغْلَالَهَا لَا رَقَبَتَهَا ځکه اول کس د دې ځمکي د حاصلاتو [غلې] مالک دی. نه د هغې د ذات فَإِذَا تَرَكَهَا بيا کله چي هغه دا ځمکه پرېښووله كَانَ الثَّانِيْ أَحَقَّ بِهَا نو دا دويم به د هغې زيات حقدار وي وَالْأَصَحُّ أَنَّ الْأَوَّلَ يَنْزِعُهَا مِنَ الثَّانِيْ خو صحيح دا ده چي اول کس هغه له دويم کس څخه اخيستلای سي لِأَنَّهٗ مَلَكَهَا بِالْإِحْيَاءِ ځکه چي اول کس د آبادولو په وجه د هغې مالک سو عَلَى مَا نَطَقَ بِهِ الْحَدِيْثُ لکه څرنګه چي حديث [هم] د دې وينا کړې ده [چي "من احيٰى... فهي لهٗ" کوم څوک ځمکه آباده کړي. نو دا د هغه ده] إِذِ الْإِضَافَةُ فِيْهِ بِاللَّامِ التَّمْلِيْكِ ځکه په حديث کي اضافت د تمليک په لام [لَهٗ] سره دی وَمِلْكُهٗ لَا يَزُوْلُ بِالتَّرْكِ او په پرېښوولو سره د آبادونکي کس ملکيت نه زائليږي وَمَنْ أَحْيٰى أَرْضًا مَيْتَةً او څوک چي مړه [شاړه] ځمکه آباده کړي ثُمَّ أَحَاطَ الْإِحْيَاءُ بِجَوَانِبِهَا الْأَرْبَعَةِ مِنْ أَرْبَعَةِ نَفَرٍ عَلَى التَّعَاقُبِ بيا احياء [آبادول] د هغه ځمکي پر څلور سره طرفونو احاطه وکړي د څلورو کسانو له طرفه يو تر بل وروسته [يعني بيا څلور کسان يو تر بل وروسته د هغه ځمکي څلور سره طرفونه آباد کړي (چي په دې وجه د هغه ځمکي د مالک [اول کس] لاره بنده سي)] فَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّ طَرِيْقَ الْأَوَّلِ فِي الْأَرْضِ الرَّابِعَةِ نو له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي [په دې صورت کي] د اول کس لاره به د څلورم کس په ځمکه کي وي لِتَعَيُّنِهَا لِتَطَرُّقِهِ ځکه چي همدا [د څلورم کس] ځمکه د هغه [اول کس] د لاري ايستلو لپاره متعينه ده وَقَصَدَ الرَّابِعُ إِبْطَالَ حَقِّهِ او دا

څلورم کس د هغه د حق باطلولو اراده کړې ده.

**اللغات**: ﴿توظيف﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: وظيفه مقررول، محصول ټاکل. ﴿استغلال﴾ د استفعال د باب مصدر دی، د دې باب يوه معنیٰ ده: غله حاصلول. له ځمکې څخه غله او پيداوار اخيستل. ﴿تَطَرُّق﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: لاره لټول، لاره ايستل او جوړول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې کله يو مسلمان مړه شاړه ځمکه (ارض موات) آباده کړي، نو پر هغه په دې ځمکه کې عشر واجبيږي، نه خراج، که څه هم له مخکې څخه په دې ځمکه کې خراج مقرر وي؛ ځکه چې پر مسلمان ابتداً په ځمکه کې خراج مقررول جائز نه دي: نو ځکه په دې کې به عشر واجبيږي، خو که دا ځمکه په خراجي اوبو سره سېراب کړل سوې وي، نو بيا په هغه کې ابتداءً هم خراج واجبيږي؛ ځکه په دې صورت کې خراج مقررول به د اوبو په حساب سره وي. او د ځمکو مؤنت پر اوبو منحصر وي، په همدې وجه فقهاؤ د بارانې اوبو، سمندري او داسې نورو اوبو په اعتبار سره په ځمکو کې جلا، جلا مؤنت قائم کړی دی، نو همدا ډول که ځمکه په خراجي اوبو سره اوبه کړل سوې وي، نو په هغې کې خراج واجبيږي.

**فلو أحياها إلخ**: د دې حاصل دا دی چې که څوک ارض موات (مړه شاړه ځمکه) آباده کړي او بيا يې پرېږدي او په هغې کې هيڅ کښت کرنه وغيره نه وکړي، بيا بل څوک په هغې کې کښت وکړي، نو اوس څوک د هغه ځمکې مستحق کيږي، اول کس که دويم کس؟، صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمايي چې په دې باره کې دوه قولونه دي:

(۱)... اول قول د فقيه ابو القاسم بلخي رَحِمَهُ الله دی، هغه فرمايي چې په دې صورت کې دويم کس د ځمکې زيات حقدار دی، ځکه اول کس فقط د دې ځمکې د حاصلاتو (پيداوار) مالک دی، نه د هغې د عين او ذات. لهذا کله چې هغه ځمکه پرېښووله او په هغه کې يې کښتکري نه وکړه، نو ښکاره ده چې کوم يوه کښتکري پکښې کړې ده، هاغه به يې مالک وي.

(۲)... دويم قول د عامو مشايخو او زياتره فقهاؤ دی، هغه دا چې کوم يوه دا ځمکه آباده کړې وي، هاغه د ځمکې مالک کيږي، او هغه ته دا حق سته چې له دې دويم کس څخه خپل آباده کړل سوې ځمکه واخلي؛ ځکه چې فقط هاغه د ځمکې احياء کړې ده او په حديث "من أحيٰى أرضاً ميتةً فهي له" کې د احياء کونکي طرف ته د لامِ تمليک په ذريعه اضافت سوی دی، نو ځکه صرف هاغه به د دې

مالک وي، او یو وار چې څوک د یو شي مالک جوړ سي، نو په پرېښوولو سره هغه شی د ده له ملکیته نه وځي، نو ځکه د اول کس د پرېښوولو په وجه به هغه دویم کس د دې ځمکي نه مالک کیږي.

ومن أحییٰ إلخ: فرمایي که څوک (مثلاً خالد) مړه شاړه ځمکه آباده کړي او د هغې شا وخوا څلور سره طرفه ځمکي خالي وي، نو ښکاره ده چې د دې کس (خالد) لاره په هر طرف والا ځمکه کي سته. بیا وروسته یو کس راسي او د هغه ځمکي د یوه طرف والا ځمکه آباده کړي، بیا بل کس راسي. تر دې چې څلور کسان پوره سي او د هغه ځمکي (یعني د خالد د ځمکي) شاوخوا څلور سره طرفونو والا ځمکي د څلورو کسانو له طرفه آبادي او مشغوله سي، نو اوس به د اول کس (خالد) لاره د کوم طرف په ځمکه کي ورکول کیږي؟، فرمایي چې په دې هکله د امام محمد رَحِمَهُ الله روایت دا دی چې د اول کس لاره به د څلورم کس په ځمکه کي ورکول کیږي (یعني هغه کس کوم چې په آخر کي راغلی وي او د هغه ځمکي پاته څلورم طرف یې آباد کړی وي)، ځکه د اول دریو کسانو د آبادولو په وخت کي د لاري هیڅ مشکل نه وو ځکه چې څلورم طرف ته ځمکه پاته وه او په هغې کي د اول کس لاره وتلای سوه. بیا چې کله څلورم کس راغلی او د څلورم طرف ځمکه یې آباده او مشغوله کړه، نو اوس د لاري مشکل پیدا سو، لهذا داسي به ګڼل کیږي چې همدې څلورم یو (د اول کس) لاره بنده کړه، نو ځکه د هاغه په ځمکه کي به لاره ایستل کیږي او جوړیږي.

## ذمي هم د ارض موات مالک جوړیږي (د امام اعظم رَحِمَهُ الله اختلاف)

قَالَ: وَيَمْلِكُهُ الذِّمِّيُّ بِالْإِحْيَاءِ فرمایي: او ذمي کس په آبادولو سره د موات [شاړي ځمکي] مالک کیږي كَمَا يَمْلِكُهُ الْمُسْلِمُ لکه څرنګه چې یې مسلمان مالک کیږي لِأَنَّ الْإِحْيَاءَ سَبَبُ الْمِلْكِ ځکه چې آبادول د ملکیت سبب دي إِلَّا أَنَّ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ رَحِمَهُ اللهُ إِذْنُ الْإِمَامِ مِنْ شَرْطِهِ لیکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د امامُ المسلمین اجازت د دې لپاره شرط دی فَيَسْتَوِيَانِ فِيْهِ نو دوی دواړه [مسلمان او ذمي] به په ملکیت [مالک کېدو] کي سره برابر وي كَمَا فِيْ سَائِرِ أَسْبَابِ الْمِلْكِ لکه څرنګه چې د ملکیت په نورو سببونو کي سره برابر دي حَتَّى الْاِسْتِيْلَاءِ عَلٰى أَصْلِنَا تر دې چې په غلبه [قبضه کولو] کي زموږ د اصل مطابق [سره برابر دي. یعني که د مسلمان پر مال د حربي کافر غلبه او قبضه راسي، نو هغه د مسلمان د مال مالک کیږي. لکه څرنګه چې د مسلمان غلبه او قبضه که د کافر پر مال راسي، نو مسلمان یې مالک کیږي].

**اللغات**: ﴿سائر﴾ د دې لفظ دوې معناوي دي: ① ټوله، ② نور (بقیه). ﴿الاستیلاء﴾ د استفعال له بابه اسم مصدر دی: غلبه، قبضه.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې څرنګه مسلمان د شاړې ویرانې ځمکې په آبادولو سره د هغې مالک کیږي، همداسې یې ذمي هم مالک کیږي؛ ځکه احیاء (آبادول) د ملکیت سبب دی. نو څرنګه چې دوی دواړه د ملکیت په نورو اسبابو (بیع، شراء وغیره) کې سره برابر دي، همداسې به دلته هم سره برابر وي. تر دې چې څرنګه موږ د کفارو پر مال د غلبې په وجه د هغه مالکان کیږو. نو کفار به هم د مسلمانانو پر مال د غلبې په وجه د هغه مال مالکان کیږي، چې د دې تفصیل د هدایې په دویم جلد کې تیر سو.

**یادونه**: موږ مخکې د سکب الأنهر (ج: ۲، ص: ۴۹۰) په حواله سره بیان کړه چې د ذمي کېدلو په صورت کې اجازت بالاتفاق شرط دی. نو حاصل دا سو چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله د مسلک مطابق د ذمي او مسلمان تر مینځ هیڅ فرق نسته؛ ځکه په دواړو کې د امام اجازت شرط دی.

## د مالک جوړېدو لپاره صرف تحجیر کافی دی او که آبادول یې هم ضروري دی؟

قَالَ: وَمَنْ حَجَّرَ أَرْضًا فرمایي: او څوک چې ځمکه په ډبرو سره نښاني [علامتي] کړي [یعنې پر ځمکه ډبرې وغیره راوګرځوي] وَلَمْ يَعْمُرْهَا ثَلَاثَ سِنِينَ خو [تر هغه وروسته] تر دریو کالو پورې دا ځمکه آباده نه کړي أَخَذَهَا الْإِمَامُ وَدَفَعَهَا إِلَى غَيْرِهِ نو امام به له هغه کس څخه ځمکه اخلي او بل چا ته به یې ورکوي لِأَنَّ الدَّفْعَ إِلَى الْأَوَّلِ كَانَ لِيَعْمُرَهَا ځکه چې اول کس ته [د ځمکې] ورکول د دې لپاره وه چې هغه دا آباده کړي فَتَحْصُلُ الْمَنْفَعَةُ لِلْمُسْلِمِينَ مِنْ حَيْثُ الْعُشْرِ وَالْخَرَاجِ نو د هغه نفع مسلمانانو ته حاصله سي، د عشر او خراج [ورکولو] په توګه فَإِذَا لَمْ يَحْصُلْ لیکن کله چې دا نفع حاصله نه سوه يُدْفَعُ إِلَى غَيْرِهِ تَحْصِيلًا لِلْمَقْصُودِ نو د مقصود حاصلولو لپاره به یې امام المسلمین بل چا ته ورکوي وَلِأَنَّ التَّحْجِيرَ لَيْسَ بِإِحْيَاءٍ او ځکه چې په ډبرو سره نښاني کول [پر ځمکه ډبرې وغیره راګرځول] آبادول نه دي لِيَمْلِكَهُ بِهِ چې د هغه په وجه دئ د ځمکې مالک سي لِأَنَّ الْإِحْيَاءَ إِنَّمَا هُوَ الْعِمَارَةُ ځکه چې احیاء خو آبادول دي [یعنې احیاء د ځمکې آبادولو ته وایي چې په هغې کې کښت کرنه وسي یا څه پکښې جوړ کړل سي] وَالتَّحْجِيرُ الْإِعْلَامُ او تحجیر علامتي کول [نښاني کول] دي [یعنې تحجیر د علامت او نښاني کولو لپاره وي] سُمِّيَ بِهِ او إعلام [علامتي کول] ځکه په تحجیر سره نومول سوي دي لِأَنَّهُمْ كَانُوا يُعَلِّمُونَهُ بِوَضْعِ الْأَحْجَارِ حَوْلَهُ ځکه چې عربو به شاړه ځمکه علامتي کوله

[معلوموله] د هغې پر شاوخوا د ډېرو په ايښوولو سره أَوْيُغَلِّمُوْنَهُ لِحَجْرِ غَيْرِهِمْ عَنْ إِحْيَائِهِ يا دوى به شاړه ځمکه د دې لپاره علامتي کوله چې له دوی څخه بغير نور خلک د هغې له آبادولو څخه منع سي فَبَقِيَ غَيْرَ مَمْلُوْكٍ كَمَا كَانَ لهذا دا شاړه ځمکه د چا په ملکيت کي پاته نه سوه لکه څرنګه چې مخکي [د چا په ملکيت کي نه] وه هُوَ الصَّحِيحُ همدا صحيح ده وَإِنَّمَا شَرَطَ تَرْكَ ثَلَاثِ سِنِيْنَ لِقَوْلِ عُمَرَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ❶ او امام قدوري رَحِمَهُ الله د دريو کالو پرېښوولو شرط د حضرت عمر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د دغه فرمان په وجه لګولی دی "لَيْسَ لِمُتَحَجِّرٍ بَعْدَ ثَلَاثِ سِنِيْنَ حَقٌّ" چې د ډېرو ايښونکي لپاره تر دريو کالو وروسته هيڅ حق نسته وَلِأَنَّهُ إِذَا أَعْلَمَهُ او ځکه کله چې هغه دا شاړه ځمکه [په ډېرو سره] نښاني کړه لَا بُدَّ مِنْ زَمَانٍ يَرْجِعُ فِيْهِ إِلَى وَطَنِهِ نو دومره وخت [ورکول] ضروري دي چې په هغه کي دئ خپل وطن ته ولاړ سي وَزَمَانٍ يُهَيِّئُ أُمُوْرَهُ فِيْهِ او [بيا] دومره وخت چې په هغه کي [د شاړي ځمکي] د آبادولو د اُمورو تياري وکړي ثُمَّ زَمَانٍ يَرْجِعُ فِيْهِ إِلَى مَا يُحَجِّرُهُ بيا [تر هغه وروسته] دومره وخت چې واپس راسي و هغه ځمکي ته چې په ډېرو سره يې نښاني کړې ده فَقَدَّرْنَاهُ بِثَلَاثِ سِنِيْنَ نو موږ دا زمانه په دريو کالو سره اندازه کړه [يعني د دې تګ راتګ او تيارۍ دوختونو لپاره مو درې کاله وټاکل] لِأَنَّ مَا دُوْنَهَا مِنَ السَّاعَاتِ وَالْأَيَّامِ وَالشُّهُوْرِ لَا يَفِيْ بِذٰلِكَ ځکه چې تر دې کم موده يعني ساعتونه [ګېنټې]، ورځي او مياشتي د دې کارو لپاره کافي نه دي وَإِذَا لَمْ يَحْضُرْ بَعْدَ انْقِضَائِهَا او کله چې هغه [متحجر] د دريو کالو له تېرېدو څخه وروسته هم حاضر نه سي فَالظَّاهِرُ أَنَّهُ تَرَكَهَا نو ښکاره همدا ده چې هغه دا ځمکه پرېښوولې قَالُوْا: هٰذَا كُلُّهُ دِيَانَةً. مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چې دا ټوله ديانتاً دي فَأَمَّا إِذَا أَحْيَاهَا غَيْرُهُ قَبْلَ مُضِيِّ هٰذِهِ الْمُدَّةِ ليکن که د دغه موده [دريو کالو] له تېرېدو څخه مخکي بل څوک دا ځمکه آباده کړي مَلَكَهَا نو هغه يې مالک کيږي لِتَحَقُّقِ الْإِحْيَاءِ مِنْهُ دُوْنَ الْأَوَّلِ ځکه چې احياء [آبادول] د هاغه له طرفه ثابت سوه، نه د اول کس [متحجر] له طرفه وَصَارَ كَالْاِسْتِيَامِ او دا داسي سوه لکه د بل چا پر نرخ باندي نرخ ټاکل [يا په بله وينا: د بل چا پر سودا باندي سودا کول]

فَإِنَّهُ يُكْرَهُ ځکه هغه [هم] مکروه دي وَلَوْفَعَلَ او که دا کار وسي [يعني که څوک استيام وکړي] يَجُوْزُ الْعَقْدُ نو عقد جائز کيږي.

**اللغات**: ﴿حَجَّرَ﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: د ځمکي پر شاوخوا حدودو ډبري ايښوول. ځمکه په ډبرو يا داسي بل شي سره نبناني کول (علامتي کول). پر ځمکه ډبري او داسي نور څه راګرځول. ﴿لم يعمر﴾ د نصر له بابه د جحد صيغه ده: آبادول (اباتول). ﴿إعلام﴾ د افعال د باب مصدر دی. د دې باب يوه معنیٰ ده: علامتي کول (نبنه او علامت پر لګول). نبناني کول. ﴿لا يفي﴾ د ضرب د له بابه د نفي صيغه ده: پوره کېدل. کافي کېدل. ﴿استيام﴾ د استفعال د باب مصدر دی: نرخ او قيمت ټاکل (رېټ لګول). د بيع طلب کول. سودا سره کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک د ارضِ موات (شاړي ځمکي) پر شا وخوا ډبري غيره راوګرځوي او تر درېو کالو پوري په هغه کي کښتګري نه وکړي، نو د درېو کالو له تېرېدو څخه وروسته به امام المسلمين دا ځمکه له هغه سړي څخه اخلي او بل چا ته به يې ورکوي؛ ځکه داسي شاړه ځمکه په همدې وجه چا ته ورکول کيږي چي آباده يې کړي او د هغې له حاصلاتو څخه عشر او خراج اداء کړي چي په دې سره نورو مسلمانانو ته هم فايده حاصله سي، لېکن کله چي هغه صرف ځمکه نبناني او علامتي کړي او بيا ځمکه هسي پرېږدي په هغې کي کښتګري وغيره نه وکړي، نو ښکاره ده چي له دې ځمکي څخه مسلمانانو ته هيڅ نفع او فايده حاصله نه سوه. نو ځکه امامُ المسلمين ته پکار دي چي د مسلمان قوم د منفعت په خاطر له دغه اول کس څخه هغه ځمکه واخلي او بل کاريګر سړي ته يې ورکړي چي هغه په دې کي کښتګري وغيره وکړي چي خپله هم فايده ځني حاصله کړي او مسلمانانو ته هم د عشر وغيره په ورکولو سره فايده ورسوي.

پاته سو اول کس، نو څرنګه چي هغه صرف پر دغه ځمکه ډبري راګرځولي دي. او پر ځمکه ډبري وغيره راګرځول احياء نه ده چي په دې سره ملکيت ثابت سي؛ ځکه احياء خو آبادولو ته وايي. حال دا چي تحجير يو ډول علامت او نبناني کول دي، او خلګو به د همدې لپاره پر شاړو ځمکو ډبري يا داسي نور څه راګرځوله چي بل چا ته معلومه سي چي دغه ځمکي موږ آبادوو، نو بل څوک دي هغوی ته نه ورنژدې کيږي، لهذا په دې تحجير سره که څه هم د اول کس مقصد خو حاصل سو. لېکن د امام المسلمين او مسلمان قوم مقصد حاصل نه سو، نو ځکه هغه ځمکه چي څرنګه له تحجير څخه مخکي غيرِ مملوکه وه (يعني د هيچا ملکيت پکښي نه وو)، همداسي به له تحجير او درېو

کالو څخه وروسته هم غیرِ مملوکه پاتـه سي (ځکه د دريو کالو په تېرېدلو سره ښکاره سوه چي متحجِر دا ځمکه پرېښووله)، نو اوس د بل چا لپاره د هغې آبادول صحيح او جائز وي.

وإنما شرط إلخ: فرمايي امام قدوري رَحِمَهُ الله چي په متن کي کوم د دريو کالو شرط لګولی دی. هغه په اصل کي د حضرت عمر فاروق ﷺ له دې فرمان څخه مأخوذ دی "لَيْسَ لِمُتَحَجِّرٍ بَعْدَ ثَلَاثَ سِنِيْنَ حَقٌّ". يعني تحجير کونکي لره تر دريو کالو وروسته هيڅ حق نسته، نو ځکه له تحجير وروسته تر دريو کالو پوري به امام خو انتظار کوي، که په دريو کالو کي دننه هغه راسي او دا ځمکه آباده کړي. خو سمه ده، کني امامُ المسلمين به دا بل چا ته حواله کوي.

ولأنه إلخ: تر دريو کالو پوري د انتظار کولو عقلي دليل دا دی چي کېدای سي د دارُ الاسلام رقبه او ساحه غټه وي او د آبادونکي کس وطن له دغه شاړي ځمکي څخه ډېر ليري وي، نو ښکاره ده چي له تحجير څخه وروسته هغه تـه دومره وخت او زمانه ورکول پکار دی چي خپل وطـن تـه ولاړ سي واپس راسي او د احياء او آبادولو کار شروع کړي، او ممکنه ده چي خپل وطن ته په رسېدلو کي يو کال ولګيږي (لکه پخوا چي داسي ډېره پېښېدل) او بيا په بيرته راتګ کي يو کال ولګيږي، او يـو کال د احياء او آبادولو د کارونو په انتظام کي ولګيږي، نو ځکه احتياطاً ټوله درې کاله مودت پکار دی او لـه دې څخه کم مودت نا کافي دی، لهذا که په دريو کالو کي دننه هغه راسي، احياء وکړي، نو پـر ځمکـه بـه د هغه حق باقي پرېښوول کيږي، لېکن که تر دريو کالو پوري هيڅ نه وکړي، نو بيا امام المسلمين ته اختيار دی چي بل څوک د هغه ځمکي مالک کړي؛ ځکه چي په دريو کالو کي د هغه نه راتګ او هيڅ نه کول د اعراض او بې رغبتۍ دليل دی چي هغه دا ځمکه پرېښووله.

قالو هذا إلخ: مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي چي تر دريو کالو پوري د متحجِر کس انتظار کول هم د دياناتو له باب څخه دي، کني ظاهري حکم همدا دی چي که د متحجِر کس له تحجير څخه وروسته تر دريو کالو مخکي بل څوک هغه ځمکه آباده کړي او کښتګري پکښې وي، نو هغه يې مالک کيږي؛ ځکه چي د آبادولو کار هاغه وکړی او په حديث "مَن أَحيىٰ أَرضاً ميتةً فهي لهُ" کي احياء کونکی (آبادونکی) د ارضِ موات مالک ګرځول سوی دی، لهذا څوک چي هم د ارض موات احياء وکړي، هاغه يې مالک کيږي، او څرنګه چي په تحجير سره احياء نه ثابتيږي، نو ځکه تحجير به د احياء لپاره مانع هم نه وي. او له تحجير څخه وروسته احياء کول داسي دي لکه يو څوک چي د دوکاندار سره د يو شي په سودا اخته وي او د نرخ په باره کي خبري ور سره کوي، نو په دې دوران کي بل څوک راسي او د دوکاندار سره د هغه شي سودا وکړي، نو دا که څه هم مکروه دي خو بيا هم که څوک داسي

عقد او سودا وکړي، نو عقد جائز او صحيح دی، همدغه ډول په صورت مسئله کي که څه هم د سړي له تحجير څخه وروسته تر دريو کالو مخکي د بل چالپاره هغه شاړه ځمکه آبادول مکروه دي، خو بيا هم که څوک هغه آباده کړي، نو دا جائز دی او آبادونکی کس د هغې مالک کيږي. (احسن الهدايه)

## د تحجير وضاحت او طريقې

ثُمَّ التَّحْجِيرُ قَدْ يَكُونُ بِغَيْرِ الْحَجَرِ بيا تحجير له ډبرو څخه بغير [په بل شي] سره هم کيږي بِأَنْ غَرَزَ حَوْلَهَا أَغْصَانًا يَابِسَةً په دې توګه چي پر ځمکه شاوخوا وچ ښاخونه [لرګي] ودروي أَوْ نَقَّى الْأَرْضَ وَأَحْرَقَ مَا فِيهَا مِنَ الشَّوْكِ يا ځمکه پاکه کړي او په هغې کي موجوده ځوزان وسوځي أَوْ خَضَدَ مَا فِيهَا مِنَ الْحَشِيْشِ أَوِ الشَّوْكِ يا په هغې کي موجوده وچ واښه او ځوزان پرېکړي وَجَعَلَهَا حَوْلَهَا وَجَعَلَ التُّرَابَ عَلَيْهَا او پر ځمکه يې شاوخوا راوګرځوي [د بند په څېر] او پر هغوی د پاسه خواري واچوي مِنْ غَيْرِ أَنْ يُتِمَّ الْمُسَنَّاةَ بغير له دې چي بند پوره جوړ کړي لِيَمْنَعَ النَّاسَ مِنَ الدُّخُولِ د دې لپاره چي خلک [هغې ته] له داخلېدو څخه منع سي أَوْ حَفَرَ مِنْ بِئْرٍ ذِرَاعًا أَوْ ذِرَاعَيْنِ يا [په ځمکه کي] يو ذراع يا دوه ذراعه څاه وکيندي وَفِي الْأَخِيرِ وَرَدَ الْخَبَرُ او د آخري صورت په باره کي حديث وارد سوی دی. [او حديث دا دی: من حفر من بئر مقدار ذراع فهو متحجّر. خو علامه زيلعي رَحِمَهُ الله په نصب الرايه کي د دغه حديث په باره کي وايي: ما رأيته ولا أعرفه ولم أر من ذكره. او همداسي صاحب د اثمار الهدايه ويلي دي]

**اللغات:** ﴿تحجير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی، معنی يې مخکي ذکر سوه. ﴿غرز﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جګول، درول. ﴿حشيش﴾ عموماً وچو واښو ته وايي، ﴿حفر﴾ د ضرب د باب ماضي ده: کيندل، کښل.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي د تحجير عمل صرف د ډبرو سره خاص نه دی يعني د ځمکي د نښاني کولو (علامتي کولو) لپاره صرف ډبري ضروري نه دي، بلکي د تحجير (چي د هغه مقصد نښاني کول دي) لپاره څو طريقې نوري هم سته، مثلاً:

① ... يوه طريقه دا چي د ځمکي پر شاوخوا (څلورو سره طرفونو) لرګي او ښاخلې را وګرځول سي (د ديوال په څېر).

② ... بله طريقه دا چي ځمکه صفا او خالي کړي او په هغې کي ولاړ بوټي او ځوزان وسوځي.

③... او بله طريقه دا چي په ځمکه کي ولاړ بوټي، خاشاک، ځوزان وغيره پرېکړي او د ځمکي پر شاوخوا يې راوګرځوي (دبند په څېر) او د پاسه خاوره پر واچوي. د دې لپاره چي خلګ ځمکي ته را نه سي.

④... او د تحجير بله طريقه دا ده چي په ځمکه کي يو يا دوه لاسه قدر څاه وکاږي.

په دې ټولو طريقو سره تحجير ثابتيږي، نو تر دې وروسته د بل چا لپاره هغه ځمکه آبادول او لاس پکښي وهل صحيح نه دي.

مسئاة: له دې څخه هغه غټ مضبوط بند مراد دی کوم چي د خپلي ځمکي پر شاوخوا جوړ کړل سي د دې لپاره چي د باراني او سيلابي اوبو مخ ونيسي او ځمکه خوندي سي، نو د داسي بند په لګولو سره فقط تحجير نه بلکي احياء هم ثابتيږي يعني په دې سره هغه د ځمکي آبادونکی ګرځي، نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله دا قيد لګولی دی چي "...مِنْ غَيْرِ أَنْ يُتِمَّ الْمُسَنَّاةَ" يعني د ځمکي پر شاوخوا فقط بوټي، خاشاک وغيره راوګرځوي او پر هغوی خاوره واچوي، نه دا چي بند يا دېوال پر جوړ کړي، ځکه په دې سره د تحجير تر څنګ احياء (آبادول) هم ثابتيږي، نو ځکه يې دلته دا قيد لګولی دی.

## د احياء (آبادولو) عمل کله ثابتيږي؟ (په کوم کار کولو سره ځمکه آباده شمېرل کيږي)

وَلَوْ كَرَبَهَا وَسَقَاهَا او که هغه دا شاړه ځمکه سره واړوي او اوبه يې کړي فَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ إِحْيَاءٌ نو له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي دا احياء ده وَلَوْ فَعَلَ أَحَدَهُمَا او که له دې دواړو څخه [صرف] يو کار وکړي [يعني فقط ځمکه سره واړوي يا فقط اوبه ورکړي] يَكُونُ تَحْجِيرًا نو دا تحجير دی [نه احياء] وَلَوْ حَفَرَ أَنْهَارَهَا وَلَمْ يَسْقِهَا او که د ځمکي ويالې [والې] وکيندي خو ځمکه اوبه نه وکړي يَكُونُ تَحْجِيرًا نو دا [هم] تحجير دی وَإِنْ سَقَاهَا مَعَ حَفْرِ الْأَنْهَارِ او که د ويالو د کيندلو سره، سره ځمکه هم اوبه کړي كَانَ إِحْيَاءً نو دا احياء ده لِوُجُودِ الْفِعْلَيْنِ ځکه چي دواړه کارونه موجود سوه وَلَوْ حَوَّطَهَا او که پر ځمکه چاردېوالي راوګرځوي أَوْ سَنَّمَهَا بِحَيْثُ يَعْصِمُ الْمَاءَ يا بند پرې جوړ کړي په دې توګه [يعني داسي بند] چي اوبه وګرځوي يَكُونُ إِحْيَاءً نو دا احياء ده لِأَنَّهُ مِنْ جُمْلَةِ الْبِنَاءِ ځکه چي دا د تعمير [ودانولو] له جملې څخه دي وَكَذَا إِذَا بَذَرَهَا او همدارنګه کله چي هغه دا ځمکه وکري.

**اللغات**: ﴿كَرَبَ﴾ د نصر د باب ماضي ده. كَرَبَ يَكْرُبُ كَرْبًا وَكِرَابًا: ځمکه د کرنې لپاره اړول او سمول چې د کښت کرنې قابله سي. يوې (ييوې) كول. ﴿سقا﴾ د ضرب د باب ماضي ده: اوبول (سېرابول). اوبه وركول. ﴿حوّط﴾ د تفعيل د باب ماضي ده (له حائط څخه ده): شاوخوا دېوال راګرځول. چاردېوالي جوړول. ﴿يعصم﴾ د ضرب د باب مضارع ده. د دې باب څو معناوي دي چې له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: منع كول. راګرځول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې کله سړی شاړه ځمکه (ارض موات) سره واړوي او بيا اوبه ورکړي، نو دا امام محمد رَحِمَهُ الله د روايت مطابق دا احياء (آبادول) دي يعني په دې سره هغه د دې ځمکې آبادونکی سو. لېکن که صرف ځمکه سره واړوي يا صرف اوبه ورکړي. نو دا احياء نه ده. بلکې تحجير دی يعني په دې سره فقط ځمکه نښاني (علامتي) کيږي (چې تر دې وروسته له ده څخه بغير بل څوک لاس نه سي پکښې وهلای). همدارنګه که هغه په دې شاړه ځمکه کي لښتيان او والې (وياله) وکاږي خو ځمکه اوبه نه کړي، نو دا هم تحجير دی، ها! که ځمکه اوبه هم کړي. نو اوس دا احياء ده؛ ځکه چې دوه فعلونه سره جمع سوه (د لښتيانو او والو کښل او ځمکي ته اوبه ورکول).

همدارنګه که پر ځمکه شاوخوا دېوال (چار دېوالي) راوګرځوي يا پر ځمکه داسې مضبوط بند جوړ کړي چې په هغه سره ځمکه د باران وغيره له اوبو څخه خوندي سي، نو دا هم احياء ده؛ ځکه دا د ودانولو (وداني جوړولو) له جملې څخه دي، او په ځمکه کي وداني جوړول احياء ده. او چاردېوالي هم د بند په درجه کي ده چې په هغه سره هم احياء ثابتيږي. همدارنګه په ځمکه کي تخم کرل هم احياء ده چې په دې سره هم تخم کرونکی د ځمکي آبادونکی شمېرل کيږي.

## آبادۍ ته نژدې شاړه ځمکه آبادول

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ إِحْيَاءُ مَا قَرُبَ مِنَ الْعَامِرِ فرمايي: او جائز نه دي آبادول د هغه ځمکي کوم چې آبادۍ ته نژدې وي وَيُتْرَكُ مَرْعًى لِأَهْلِ الْقَرْيَةِ لو هغه به د کلي [علاقې] والا لپاره د چراګاه په توګه پرېښوول کيږي وَمَطْرَحًا لِحَصَائِدِهِمْ او د هغوی د رېبل سوو کښتونو د غورځولو [جمع کولو] د ځای [درمند ځای] په توګه به پرېښوول کيږي لِتَحَقُّقِ حَاجَتِهِمْ إِلَيْهَا حَقِيقَةً أَوْ دَلَالَةً ځکه چې هغه ته د کلي [علاقې] والا حقيقي حاجت يا دليلِ حاجت ثابت دی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چې [مخکي] موږ بيان کړه فَلَا يَكُونُ مَوَاتًا نو دا ځمکه به موات نه وي لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ بِهَا ځکه چې د هغې

سره د دوی حق متعلق دی بِمَنْزِلَةِ الطَّرِيْقِ وَالنَّهْرِ د لارې او ویالې [والې] په شان عَلَىٰ هٰذَا قَالُوْا په همدې وجه مشایخو رحمهم الله فرمایلي دي لَا يَجُوْزُ لِلْإِمَامِ أَنْ يُقْطِعَ الْإِمَامُ مَا لَا غِنَى بِالْمُسْلِمِيْنَ عَنْهُ چې امام لره جائز نه دي چې داسې شی [دیو چا] جاګیر وګرځوي [یعنې یو چا ته یې ورکړي] چې له هغه څخه مسلمانان مستغني نه وي [یعنې ورته محتاج وي] كَالْمِلْحِ لکه مالګه وَالْآبَارِ الَّتِيْ يَسْتَقِي النَّاسُ مِنْهَا او [لکه] هغه څاه ګان چې له هغوی څخه خلک اوبه اخلي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿مرعى﴾ چراګاه، څر ځای. د رمې د څرولو ځای (یعنې هغه میدان او ځمکه چې خلک خپلې رمې د خوراک وغیره لپاره ورته راباسي). ﴿مطرح﴾ د غورځولو ځای (چې یو څه پکښې غورځول کیږي). د اینښوولو او جمع کولو ځای. ﴿حصائد﴾ جمع د حَصِيْدٌ او حَصِيْدَةٌ ده: ریبل سوی کښت، د فصل پرېکړل سوې برخه. کله چې کښت او فصل (مثلاً غنم) وریبل سي، نو بیا د پاکولو او میدولو لپاره هغه په یو ځای کې غورځول کیږي (جمع کول کیږي) چې هغه ته درمند ځای وایې او په عربي کې ورته بَيْدَر او داسې نور وایي، نو فرمایي چې دا ځمکه به د کلي او علاقې والا لپار د چراګاه او درمند ځاې په توګه پرېښوول کیږي، ﴿يُقْطِعُ﴾ د افعال د باب مضارع، أَقْطَعَ يُقْطِعُ إِقْطَاعًا: د دې باب ډیرې معناوې دي چې له هغوی څخه یوه دا ده: ① یو څوک د یو شي مالک کول (په ملکیت کې ورکول، چې د باچا او واکمن له طرفه ورکول سي)، ② او إقطاع په اصل کې دې ته وایي چې د سیمې او علاقې واکمن یو چا ته د ځمکې یوه ټوټه ورکړي چې په پښتو کې هغه ته جاګیر وایي، لنډه دا چې د إقطاع معنیٰ ده: د باچا او واکمن ورکړه. ﴿يستقي﴾ د استفعال د باب مضارع ده. ① له چا څخه د اوبولو طلب کول، ② له څاه، ویلې وغیره څخه اوبه اخیستل، (اوبه راکښل). (معجم الوسيط)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کومه شاړه ویرانه ځمکه سیمې او آبادۍ ته نژدې وي، نو د هغې احیاء (آبادول) جائز نه دي (لکه مخکې چې هم ذکر سوه)، او داسې ځمکه به د مسلمانانو د منفعت او مصلحت (ښېګڼې) په خاطر پرېښوول کیږي چې هغوی دا ځمکه د خپلو پسونو وغیره لپاره چراګاه (څر ځای) وګرځوي یا د خپلو غله جاتو لپاره یې درمند ځای وګرځوي یعنې چې د خپلو کښتونو او فصلونو غنم او نور حاصلات په همدې ځمکه کې جمع کوي او پاکوي، ځکه چې د دې دواړو شیانو (مرعی او مطرح) سره د هغو ضرورت متعلق دی، یا خو یې حقیقتاً ضرورت ور سره متعلق دی لکه

څرنګه چې امام محمد رَحِمَهُ الله د حقيقي ضرورت اعتبار کوي يا يې دلالتاً ضرورت ورسره متعلق دی چې دا ځمکه دوی ته ور نژدې ده لکه څرنګه چې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د نژدېکت اعتبار کوي (چې مخکې په دې هکله بيان وسو او لاندې به يې هم مور وضاحت وکړو). لهذا دا ځمکه مَوَات نه سي کېدلای نو بل چا لره جائز نه دي چې په هغې کې لاس ووهي او آباده يې کړي.

په همدې وجه مشايخو فرمايلي دي چې کوم څه د مسلمانانو د عام ضرورت شی وي، د امام لپاره دا جائز نه دي چې هغه شی د يو سړي په ملکيت او قبضه کې ورکړي، لکه د مالګې کان چې خلک مالګه ځني وړي، او د اوبو څاه چې خلک يې کاروي؛ ځکه د دې شيانو سره د مسلمانانو ضرورت متعلق دی او هر هغه څه چې د مسلمانانو حاجت او ضرورت ورسره متعلق وي، د هغه إحياء او إقطاع جائز نه ده.

<u>حَقِيْقَتِهَا أَوْ دَلِيْلِهَا</u>: دا دواړه له "حَاجَتِهِمْ" څخه د بدل کېدلو په وجه مجرور دي، او په دې سره دامام ابو يوسف او امام محمد رَحِمَهُمَا الله هغه مخکيني اختلاف ته اشاره سوې ده. يعنې امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله آبادۍ ته د نژدېکت اعتبار کړی دی چې د ښاري ځمکې آبادول هغه وخت جائز دي کله چې هغه د خلکو کلي او علاقې (آبادۍ) ته نژدې نه وي بلکې دومره ليرې وي چې ظاهراً له هغې څخه کلي والا نفع نه سي اخيستلای او که ور نژدې وي نو بيا هغه د کلي والا حق ده. او امام محمد رَحِمَهُ الله د حقيقتاً انتفاع منقطع کېدلو اعتبار کړی دی چې له هغه ځمکې څخه کلي والا حقيقتاً نفع نه سي اخيستلای که څه هم هغه آبادۍ ته نژدې وي نو په دې صورت کې د بل چا لپاره د هغې آبادول جائز دي، او که داسې نه وي نو بيا د کلي والا حق ده. لنډه دا چې امام محمد رَحِمَهُ الله د حقيقي حاجت او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دليلِ حاجت اعتبار کړی دی.

**يادونه**: دلته په متن کې د "قُرْبٌ" قيد د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر قول مبني دی. حال دا چې د ظاهر روايت مطابق حقيقي حاجت او حقيقي انتفاع لره اعتبار دي. برابره ده ځمکه نژدې وي. که ليرې وي.

**يادونه**: د پټرولو. کاسلېټو وغيره چيني هم د مالګې د کان په څېر دي. چې د هغوی إقطاع جائز نه ده.

## په شاړه ځمکه کې څاه کنونکی کس د څاه د حريم هم مالک کېږي

قَالَ: <u>وَمَنْ حَفَرَ بِئْرًا فِي بَرِّيَّةٍ</u> فرمايي: او څوک چې په يو دښت کې څاه وکيندي <u>فَلَهُ حَرِيْمُهَا</u> نو د هغه څاه حريم د هغه لپاره دی <u>وَمَعْنَاهُ إِذَا حَفَرَ فِي أَرْضٍ مَوَاتٍ</u> او د دې مطلب دا دی چې کله يې په شاړه ځمکه کې وکيندي <u>بِإِذْنِ الْإِمَامِ عِنْدَهُ</u> (که چيري) د امام المسلمين په اجازت سره (يې) (د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز

أَوْ بِإِذْنِهِ وَبِغَيْرِإِذْنِهِ عِنْدَهُمَا يا [كه] د امام المسلمين په اجازت سره [وي] او [كه] بغير د هغه له اجازت څخه [وي] لِأَنَّ حَفْرَ الْبِئْرِ إِحْيَاءٌ ځکه چي د څاه كيندل آبادول دي [يعني په كيندلو سره هغه ځمكي آبادونكى ګرځي].

**اللغات**: ﴿بِئْر﴾ او بِیْر : داوبو څاه. ﴿حَرِيم﴾ "د څاه حريم". د څاه شاوخوا هغه ځای ته وايي چي د هغه سره د څاه حقوق او منافع متعلق وي. يا په بله وينا دا چي د څاه څلورو سره طرفونو ته چي څومره ځمکه پرېښوول کيږي چي په هغې کي بل څوک څاه وغيره نه وکيندي، هغې ته د څاه حريم وايي. او داسي ځکه کيږي چي که دغه څاه ته نژدې بل څاه وکنبل سي. نو کېدای سي د اول څاه اوبه دغه بل څاه ته راسي او د هغه اوبه وچي سي. يا کېدای سي د دې بل څاه ګندګي اول څاه ته ورسيږي. نو ځکه هغه ته نژدې بغير له اجازته به بل څاه نه کنبل کيږي. او حريم په همدې وجه ورته وايي چي په هغې کي د بل چا لپاره څاه کنبل حرام دي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي که څوک په شاړه ځمکه (ارض موات) کي څاه وکيندي، نو د دې څاه حريم هم د هغه څاه کيندونکي (حافر) لپاره دی چي تر دې وروسته بل چا ته حق نسته چي د هغه په حريم کي خپل څاه وكاږي يا يو بل تصرّف پکښي وکړي. خو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز شرط دا دی چي دغه کيندل (کنبل) به د امام په اجازت سره وي، لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز اجازت او عدم اجازت دواړه سره برابر دي.

او د څاه حريم ځکه د هغه (حافر) لپاره دی چي په څاه کيندلو سره هغه د دې شاړي ځمکي آبادونکی ګرځي، يعني په څاه کيندلو سره هم د ځمکي احياء (آبادول) ثابتيږي، او احياء د ملکيت سبب ده (يعني د شاړي ځمکي په آبادولو سره آبادونکی کس د هغې مالک کيږي)، لهذا څوک چي په شاړه ځمکه کي فقط څاه وکيندي، نو هغه (هم) د دې ځمکي مالک کيږي، او کله چي هغه د ټولي ځمکي مالک دی، نو د حريم به هم مالک وي.

## د څاه د حريم مقدار

قَالَ: فَإِنْ كَانَتْ لِلْعَطَنِ فرمايي: بيا که چيري څاه [څارويو ته] داوبو ورکولو لپاره وي فَحَرِيْمُهَا أَرْبَعُوْنَ ذِرَاعًا نو د هغې حريم څلوښت ګزه دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ ځکه نبي کريم ﷺ فرمايلي دي «مَنْ حَفَرَ [1] بِئْرًا څوک چي څاه وکيندي فَلَهُ مِمَّا حَوْلَهَا أَرْبَعُونَ ذِرَاعًا نو د ده لپاره د هغه څاه شاوخوا څلوښت ذراعه دي عَطَنًا لِمَاشِيَتِهِ» د هغه د څارويو د اوبه کولو [او درولو] لپاره

[1] تخريج: رواه ابن ماجه عن عبد الله بن معقل رضي الله عنه في سننه ج:۲، ص:۸۳۱، حديث رقم:۲۴۸۶.

[يعني چې په دې څلوېښت ګزه حريم کې هغه داوبولو لپاره خپل رمه دروي] ثُمَّ قِيلَ: الْأَرْبَعُونَ مِنْ كُلِّ الْجَوَانِبِ بيا ويل سوي دي: چې له ټولو طرفونو څخه څلوېښت ذراعه دي [يعني مجموعتاً څلوېښت ذراعه دي چې هر طرف ته لس ذراعه راځي] وَالصَّحِيحُ أَنَّهُ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ خو صحيح دا ده چې له هر طرف څخه څلوېښت ذراعه دي لِأَنَّ فِي الْأَرَاضِي رِخْوَةً ځکه په ځمکو کې نرموالي [پستوالي] وي وَيَتَحَوَّلُ الْمَاءُ إِلَى مَا حُفِرَ دُونَهَا او اوبه به واړوي وهغه څاه ته کوم چې تر دې څلوېښتو ذراعو په کم کې وکيندل سي [يعني کله چې ځمکې نرمي دي. نو که له څلوېښتو ذراعو څخه په کمه مسافه کې د دې څاه سره بل څاه وکيندل سي. نو د دې څاه اوبه به هغه بل څا ته ورسي] وَإِنْ كَانَتْ لِلنَّاضِحِ او که څاه د کښت اوبولو [سېرابولو] لپاره وي فَحَرِيمُهَا سِتُّونَ ذِرَاعًا نو د هغې حريم شپېته ذراعه دی وَهٰذَا عِنْدَهُمَا او دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز وَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ[*] أَرْبَعُونَ ذِرَاعًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز څلوېښت ذراعه دی.

**اللغات:** ﴿عطن﴾ په اصل کې د څاه شاوخوا هغه ځای ته وايي چې اوښان پکښې درول کيږي او کښېنول کيږي. او "بير عطن" هغه څاه ته وايي چې د هغه مقصد څارويو ته اوبه ورکول وي. نه کښتونو وغيره ته. او له داسې څاه څخه به عموماً په لاس اوبه راکښل کېدې. ﴿ناضح﴾ په اصل کې هغه اوښ ته وايي چې پر هغه اوبه راوړل کيږي، او "بير ناضح" هغه څاه ته وايي چې د هغه مقصد کښتونو ته اوبه ورکول وي. او له داسې څخه به عموماً د اوښ، غوايي وغيره په ذريعه اوبه راکښل کېدې، ځکه کښت ډېرې اوبه غواړي چې د انسان لپاره د هغه راکښل ستونزمن دي. نو ځکه د څاه سره به يې يو څاروی تړل سوی وو چې هغه به پر څاه شا وخوا ګرځېدی او د اوبو راکښلو آله به يې ګرځوله چې په دې توګه به په پېڅر اوبه راوتلې (او اوس د برق او برېښنا دور دی او د دې ټولو رواج ختم سوی دی چې د هغه پر ځای برمې. باوړي وغيره کارول کيږي)، ﴿ذِراع﴾ شرعي ګز. کوم چې يو لاس کيږي (يعني د ګوتو له سره تر څنګلې پورې) چې د اوسني ګز په حساب سره نيم ګز کيږي او د فټ په حساب سره يو نيم فټ کيږي.

**تشريح:** مخکې ذکر سوه چې د څاه لپاره حريم هم سته. نو اوس سوال پيدا سو چې حريم به څومره وي، نو په دې هکله فرمايي چې که د څاه مقصد فقط څارويو ته اوبه ورکول وي (چې اوبه يې د همدې لپاره راکښل کيږي او هلته ولاړو څارويو ته ورکول کيږي)، نو د داسې څاه حريم څلوېښت ذارعه دی،

[*] القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۱۰]

يعني له هر طرف څخه څلوېښت، څلوېښت ذراعه د صحيح قول مطابق. او که د څاه مقصد کښت او کېتي. ته اوبه ورکول وي (يعني بيرِ ناضح وي)، نو د هغه څاه په حريم کي اختلاف دی. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه حريم هم څلوېښت (۴۰) ذراعه دی، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د هغه حريم شپېته (۶۰) ذراعه دی. د دواړو دلائل به لاندي ذکر سي.

## د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل

لَهُمَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی «حَرِيْمُ الْعَيْنِ خَمْسُ مِائَةِ ذِرَاعٍ چي د چينې حريم پنځه سوه (۵۰۰) ذراعه دی وَحَرِيْمُ بِئْرِ الْعَطَنِ أَرْبَعُوْنَ ذِرَاعًا او د "بيرِ عطن" حريم څلوېښت ذراعه دی وَحَرِيْمُ بِئْرِ النَّاضِحِ سِتُّوْنَ ذِرَاعًا» او د "بيرِ ناضح" حريم شپېته ذراعه دی وَلِأَنَّهُ قَدْ يُحْتَاجُ فِيْهِ إِلَى أَنْ يُسَيِّرَ دَابَّتَهُ لِلِاسْتِقَاءِ او ځکه چي په "بيرِ ناضح" کي دې ته ضرورت پېښېږي چي د اوبو راکښلو لپاره خپل څاروی روان کړي [او پر څاه يې شاوخوا راګرځوي] وَقَدْ يَطُوْلُ الرِّشَاءُ او کله د څاروي رسی اوږده سي وَبِئْرُ الْعَطَنِ لِلِاسْتِقَاءِ مِنْهُ بِيَدِهِ او "بئرِ عطن" په لاس سره د اوبو راکښلو لپاره دی [يعني له هغه څخه په لاسو اوبه راکښل کيږي، نه د څاروي په ذريعه] فَقَلَّتِ الْحَاجَةُ نو ضرورت کم سو فَلَا بُدَّ مِنَ التَّفَاوُتِ نو ځکه [د بير عطن او بير ناضح ترمينځ] توپير ضروري دی.

**اللغات:** ﴿استقاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ① د اوبولو (سَقْي) طلب کول، ② له څاه وغيره څخه اوبه را اخيستل، (اوبه راکښل). ﴿بئر العطن﴾ او بِئْرُ الْعَطَن هم ويل کېدای سي، تعريف يې مخکي تېر سو، ﴿يسيّر﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: راوانول، چلول. ﴿الرشاء﴾ رسی، مزی، پړی.

**تشريح:** مخکي ذکر سوه چي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د بيرِ ناضح حريم شپېته ذراعه دی. دوی پر خپل دليل يو حديث پېش کړی دی کوم چي په عبارت کي ذکر سو.

او عقلي دليل يې دا پېش کړی دی چي کله له دغه څاه څخه د څاروي (اوبن وغيره) په ذريعه اوبه راکښل کيږي نو هغه څاروی د څاه پر شاوخوا راګرځول کيږي (لکه مخکي چي موږ ذکر کړه چي پخوا به د کښت لپاره همدا ډول اوبه راکښل کېدې)، او د تللو او ګرځېدلو په وجه ځيني وخت د څاروي مزی او رسی هم اوږدېږي، او ښکاره ده چي کله حريم شپېته ذراعه وي نو دا مقصد په ښه توګه حاصلېږي. نو ځکه د بيرِ ناضح حريم به شپېته ذراعه وي.

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد في مراسيله. (احسن الهدايه)

د دې په خلاف له بیرِ عطن څخه په لاسو اوبه راکښل کیږي، نه د څاروي په ذریعه، نو د هغه پر شاوخوا د څاروي راګرځولو ته ضرورت نه وي چې په دې وجه په هغه کې د ځای ضرورت کم سو، نو ځکه د هغه حریم به څلوېښت ذراعه وي، د دې لپاره چې د بیرِ عطن او بیرِ ناضح تر مینځ فرق او توپیر ثابت سي.

## د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل

وَلَهُ مَا رَوَيْنَا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل هغه حدیث دی کوم چې موږ روایت کړی مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ [او هغه حدیث] بغیر له څه تفصیله دی [یعني د بیر عطن او ناضح قید پکښې نسته] وَالْعَامُّ الْمُتَّفَقُ عَلَى قَبُولِهِ وَالْعَمَلِ بِهِ او هغه عام چې د هغه پر قبلولو او د هغه پر عمل کولو اتفاق وي أَوْلَى عِنْدَهُ غوره دی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مِنَ الْخَاصِّ الْمُخْتَلَفِ فِي قَبُولِهِ وَالْعَمَلِ بِهِ له هغه خاص څخه چې د هغه په قبلولو او پر هغه په عمل کولو کې اختلاف وي وَلِأَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَى اسْتِحْقَاقَ الْحَرِيمِ او ځکه چې قیاس د حریم د استحقاق انکار کوي [یعني د قیاس تقاضا دا ده چې د څاه کېدونکی کس باید د څاه د حریم مستحق نه سي] لِأَنَّ عَمَلَهُ فِي مَوْضِعِ الْحَفْرِ ځکه چې د څاه کېدونکي کس عمل [صرف] د کیندلو په ځای کې دی وَالِاسْتِحْقَاقُ بِهِ او مستحق کېدل د عمل په وجه وي فَفِيمَا اتَّفَقَ عَلَيْهِ الْحَدِيثَانِ تَرَكْنَاهُ نو په کوم مقدار کې چې دواړه حدیثونه متفق دي [هلته] موږ قیاس پرې ایښی دی وَفِيمَا تَعَارَضَا فِيهِ او په کوم مقدار کې چې دواړه حدیثونه یو د بل سره متعارض دي حَفِظْنَاهُ نو [هلته] موږ قیاس محفوظ ساتلی دی وَلِأَنَّهُ قَدْ يُسْتَقَى مِنَ الْعَطَنِ بِالنَّاضِحِ وَمِنْ بِئْرِ النَّاضِحِ بِالْيَدِ او ځکه چې ځیني وخت له "بیرِ عطن" څخه د اوښ په ذریعه اوبه راکښل کیږي او له "بیرِ ناضح" څخه په لاس اوبه راکښل کیږي فَاسْتَوَتِ الْحَاجَةُ فِيهِمَا نو په دواړو کې ضرورت سره برابر سو وَيُمْكِنُهُ أَنْ يُدِيرَ الْبَعِيرَ حَوْلَ الْبِئْرِ او هغه لره دا ممکن دي چې [په نږدې مسافه کې] اوښ پر څاه راګرځوي فَلَا يَحْتَاجُ إِلَى زِيَادَةِ مَسَافَةٍ نو ځکه زیاتي مسافې ته ضرورت نسته.

**اللغات**: ﴿فصل﴾ د دې لفظ یو معنیٰ ده: تفصیل، ﴿يأبى﴾ د فتح د باب مضارع ده: انکار کول، ﴿يُدِيرُ﴾ د افعال د باب مضارع ده: ګرځول راګرځول، څرخول.

**تشريح**: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل د نبي كريم ﷺ دا فرمان دی "مَنْ حَفَرَ بِئْرًا فَلَهُ مِمَّا حَوْلَهُ أَرْبَعُوْنَ ذِرَاعًا" يعني څوک چي څاه وکيندي، نو د دې څاه شا وخوا څلوېښت ذراعه د هغه دي، په دې حديث سره امام صاحب رَحِمَهُ الله داسي دليل نيسي چي په دې حديث کي د څاه کيندونکي لپاره مطلقاً څلوېښت ذراعه حريم ثابت کړل سوی دي او په دې حديث کي د بيرِ عطن او بيرِ ناضح هيڅ قيد نسته بلکي عام حکم دی او متفق عليه دی (ځکه پر څلوېښتو ذراعو دواړه حديثونه متفق دي) او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله حديث خاص دی او مختلف فيه دی. نو ځکه د هغه په مقابله کي به د امام صاحب رَحِمَهُ الله روايت لره ترجيح وي؛ ځکه چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قاعده دا ده چي هغه عام چي د هغه پر قبوليت او د هغه پر عمل کولو اتفاق وي. هغه له خاص مختلف القبول والعمل څخه اولیٰ او افضل دی.

عقلي دليل يې دا دی چي استحقاق د عمل په اندازه وي، نو ځکه د قياس له رويه څاه کېدونکی کس د حريم نه مستحق کېدل پکار دي؛ ځکه د څاه کيدونکي عمل فقط د کيندلو په ځای (موضع حفر) کي وي. لهذا د هغه استحقاق به صرف پر همدې ځای وي. خو څرنګه چي په حديثونو کي د حريم استحقاق ثابت دی او دا استحقاق د څلوېښتو او شپېتو ذراعو تر مينځ دائر دی. نو ځکه په کوم مقدار کي چي حديثونه متفق دي. په هغه کي خو موږ قياس پرې ايښی دی چي هغه څلوېښت ذراعه دي، او په کوم مقدار کي چي حديثونه مختلف او متعارض دي، په هغه کي موږ پر قياس عمل کوو چي هغه شپېته ذراعه دي. نو ځکه شپېته ذراعه حريم به نه ثابتيږي.

دويم عقلي دليل دا دی چي د حريم د زياتوالي او کموالي دار ومدار د ضرورت پر زياتوالي او کموالي دی، او د بيرِ عطن او بيرِ ناضح ضرورت سره برابر دی؛ ځکه چي ځيني وخت له بيرِ ناضح څخه د لاسو په ذريعه اوبه راکښل کيږي، همدارنګه له بيرِ عطن څخه ځيني وخت د څاروي (اوښ وغيره) په ذريعه اوبه راکښل کيږي، لهذا کله چي د اوبو راکښلو په هکله په دواړو کي مساوات سته، نو د حريم د مقدار په هکله به هم په دواړو کي مساوات وي او د دواړو حريم به څلوېښت ذراعه وي، او بل دا چي په څلوېښت ګزه حريم کي د څاروي ګرځول او اوبه راکښل ممکن هم دي، نو ځکه اضافي ګزونو او اضافي مسافې ته ضرورت نسته.

## د چينې د حريم مقدار

قَالَ: وَإِنْ كَانَتْ عَيْنًا فرمايي: او که چينه وي فَحَرِيْمُهَا خَمْسُ مِائَةِ ذِرَاعٍ نو د هغې حريم پنځه سوه (٥٠٠) ذراعه دي لِمَا رَوَيْنَا د هغه حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّ الْحَاجَةَ فِيْهِ إِلَى زِيَادَةِ مَسَافَةٍ او ځکه چي په دې کي زيات مسافت ته ضرورت سته لِأَنَّ الْعَيْنَ تُسْتَخْرَجُ لِلزِّرَاعَةِ

ځکه چینه د کښتګرۍ کولو لپاره را ایستل کیږي [برابرول کیږي] فَلَا بُدَّ مِنْ مَوْضِعٍ يَجْرِيْ فِيْهِ الْمَاءُ نو ځکه چاره نسته [د چینې لپاره] له داسي ځای څخه چي په هغه کي [د چینې] اوبه بهیږي وَمِنْ حَوْضٍ يَجْتَمِعُ فِيْهِ الْمَاءُ [همدارنګه چاره نسته] له داسي حوض څخه چي په هغه کي [د چینې] اوبه جمع کیږي وَمِنْ مَوْضِعٍ يَجْرِيْ فِيْهِ إِلَى الْمَزْرَعَةِ او له داسي ځای [والې] څخه چي په هغه کي [د چینې اوبه] د کښت وطرف ته وبهیږي فَلِهٰذَا يُقَدَّرُ بِالزِّيَادَةِ نو ځکه هغه په زیات مقدار سره اندازه کړی سوی دی [یعني نو ځکه د چینې لپاره زیات مقدار متعیّن سوی دی] وَالتَّقْدِيْرُ بِخَمْسِ مِائَةٍ بِالتَّوْقِيْفِ او په پنځو سوو (۵۰۰) سره اندازه کول توقیفي دي [یعني پنځه سوه ذراعه چي متعیّن سوي دي هغه هم د حدیث پر بناء دي] وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ خَمْسُ مِائَةِ ذِرَاعٍ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ او صحیح دا ده چي دا له هر طرفه پنځه سوه ذراعه دي كَمَا ذَكَرْنَا فِي الْعَطَنِ لکه د "بیرِ عطن" په هکله چي موږ ذکر کړه وَالذِّرَاعُ هِيَ الْمُكَسَّرَةُ او ذراع هغه کسروي ذراع دی [چي هغه ته ذراع کرباس هم وایي] وَقَدْ بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ او مخکي موږ د دې بیان کړی دی [ځکه مخکي په کتابُ الطهارة کي مصنف رَحِمَهُ الله د ذراع کرباس په هکله بیان کړی دی چي د هغه بل نوم ذراع مکسره دی] وَقِيْلَ: إِنَّ التَّقْدِيْرَ فِي الْعَيْنِ وَالْبِئْرِ بِمَا ذَكَرْنَاهُ فِيْ أَرَاضِيْهِمْ او ویل سوي دي: چي اندازه کول [مقدار متعیّنول] په چینه او څاه کي په هغه مقدار سره کوم چي موږ ذکر کړی هغه د عربو په ځمکه دی [یعني مخکي چي موږ د څاه او چینې د حریم کوم مقدار بیان کړی. دا صرف د عربو ځمکو په هکله دی] لِصَلَابَةٍ بِهَا ځکه چي د هغوی په ځمکو کي سختي وي وَفِيْ أَرَاضِيْنَا رَخَاوَةٌ او زموږ په ځمکو کي نرمي وي فَيُزَادُ نو [زموږ په ځمکو کي] به اندازه زیاتیږي كَيْ لَا يَتَحَوَّلَ الْمَاءُ إِلَى الثَّانِيْ د دې لپاره چي [د اول یوه] اوبه د بل یوه وطرف ته نه واوړي فَيَتَعَطَّلَ الْأَوَّلُ نو اول به معطّل [بېکاره] پاته سي.

**اللغات**: ﴿عین﴾ چینه. ﴿توقیف﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: د یو څه په هکله د شارع صراحت (یعني چي الله تعالیٰ یا رسول الله ﷺ د یو شي په هکله ښرګندونه کړې وي)، د شریعت له طرفه د یو شي ټاکل کېدل. ﴿مکسرة﴾ کسروي ذراع. چي ذراع کرباس هم ورته وایي او دغه ذراع شپږ فوټه کیږي چي نور حساب به یې لاندي ذکر سي، او مکسره ځکه ورته وایي چي دا د کسریٰ له ذراع څخه یو موټ کم

کړل سوی وو، ځکه د کسرئ ذراع اووه موټه کېدی (مع رفع الإبهام فی کل مرة) او دغه ذراعِ مکسره شپږ موټه دی.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي که څوک داوبو چینه وکیندي، نو د هغې حریم پنځه سوه (۵۰۰) ذراعه دی، ځکه په حدیث کي دي: "حَرِيمُ الْعَيْنِ خَمْسُ مِائَةِ ذِرَاعٍ" یعني د چینې حریم پنځه سوه (۵۰۰) ذراعه دی. او په دې هکله عقلي دلیل دا دی چي د چینې مقصد کښت او داسي نورو ته اوبه ورکول دي. لهذا هغې لره د زیات حریم ضرورت سته چي په هغه حریم کې داوبو بهېدلو ځای، جمع کېدلو ځای (حوض) او تر جمع کېدلو وروسته له هغه ځایه بل ځای یعني د کښت وطرف ته د رسولو ځای جوړ کړل سي او دا ټوله کار د چینې په خپل حریم کي تر سره کړل سي، او ښکاره ده چي دا همغه وخت ممکن دي کله چي د چینې حریم زیات وي، نو ځکه موږ د چینې حریم پنځه سوه ذراعه متعیّن کړی دی او دا تعیین هم توقیفي دی یعني د شریعت له طرفه ټاکل سوی چي په حدیث سره ثابت دی، او څرنګه چي د بیرِ عطن حریم هر طرف ته څلوېښت ذراعه دی، همداسي د صحیح قول مطابق د چینې حریم هم هر طرف ته پنځه سوه ذراعه دی.

والذراع هو المکسرة إلخ: فرمایي چي دلته له ذراع څخه "ذراع مکسره" (ذراع کرباس) مراد دی، تفصیل یې دا دی چي په عربو کي دوه قسمه ذراع رواج وو:

①... "ذراعِ کرباس" چي په هغه سره به کپړه او داسي نور څه اندازه کېدل.

②.. "ذراعِ مساحت" چي په هغه سره به ځمکه وغیره اندازه کېدل. د فقهاؤ په کلام چي کله مطلق ذراع ذکر سي، له هغه څخه عموماً ذراعِ کرباسْ مراد وي او هغه ته "مکسره" هم ویل کیږي، دغه ذراع شپږ موټه کیږي او په ګوتو سره څلورویشت (۲۴) ګوتي کیږي، او د نن سبا په حساب سره د هغه مقدار نیم ګز دی یعني اتلس (۱۸) اینچه، او په فُټ سره یو نیم فُټ او د لاس په حساب سره یو لاس کیږي (یعني د ګوتو له سره څخه تر څنګلي پوري). او "ذراعِ مساحت" د نن سبا په حساب سره یو ګز او شپږ اینچه کیږي یعني دو څلوېښت (۴۲) اینچه او د فُټ په حساب سره درې نیم فُټه کیږي.

وقیل إن إلخ: فرمایي د چینې د حریم او د څاه د حریم چي کوم مقدار ذکر سو، هغه د عربو د ځمکو سره متعلق دی، ځکه د هغو ځمکي به سختي وي او د پنځو سوو (۵۰۰) ذراعو په حریم کي به اوبه محفوظه کېدای سوې. د دې په خلاف زموږ د علاقو (یعني د مرغینان وغیر) ځمکي نرمي وي او له یوې ځمکي څخه بلي ځمکي ته داوبو بهېدلو او رسېدلو قوي امکان وي، نو ځکه په نرمه او پسته ځمکه کي به د ضرورت مطابق زیات حریم ورکول کیږي، د دې لپاره چي د یوه څاه یا چیني اوبه د بل کس څاه یا د بل کس کښت وغیره ته ولاړې نه سي او په دې هکله انسان مطمئن سي.

## د يو چا په حريم کې د څاه کنبلو حکم

قَالَ: فَمَنْ أَرَادَ أَنْ يَحْفِرَ فِيْ حَرِيْمِهَا فرمايي: او څوک چې وغواړي د دې څاه په حريم کې څاه وکيندي مُنِعَ مِنْهُ نو هغه به له دې څخه منع کول کيږي كَيْ لَا يُؤَدِّيَ إِلَى تَفْوِيْتِ حَقِّهِ وَالْإِخْلَالِ بِهِ د دې لپاره چې دا سبب جوړ نه سي د هغه [اول څاه والا] د حق د فوتېدلو او هغه ته د خلل [اونقصان] رسولو وَهٰذَا لِأَنَّهُ بِالْحَفْرِ مَلَكَ الْحَرِيْمَ او دا [حکم] ځکه دی چې هغه [اول څاه والا] د څاه کيندلو په وجه د حريم هم مالک سو ضَرُوْرَةَ تَمَكُّنِهِ مِنَ الْإِنْتِفَاعِ بِهِ له دې حريم څخه پر نفع اخيستلو د هغه د قدرت د ضرورت په وجه [بله وينا: ځکه چې له دې حريم څخه پر نفع اخيستلو د هغه قادر کېدل ضروري دي، کنې څاه هغه ته فايده نه کوي، نو ځکه په څاه کيندلو سره د څاه تر څنګ د هغه د حريم هم مالک کيږي] فَلَيْسَ لِغَيْرِهِ أَنْ يَتَصَرَّفَ فِيْ مِلْكِهِ نو ځکه بل چا ته دا اختيار نسته چې د هغه په ملکيت کې تصرّف وکړي.

**اللغات**: ﴿تفويت﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: فوتول، ضايع کول. ﴿إخلال﴾ د افعال د باب مصدر دی: خلل اچول، (نقصان رسول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې کله يو څوک مثلاً زيد په شاړه ځمکه (ارض موات) کې څاه وکيندي، نو ښکاره خبره ده چې زيد د څاه سره د څاه د حريم هم مالک کيږي، ځکه له حريم څخه بغير له څاه څخه نفع اخيستل ناممکن دي، لهذا د حريم مالک کېدل د څاه کيندلو له ضرورت څخه دي (يعني د څاه کنبلو سره دا خبره ضروري ده چې کنبونکی کس د هغه د حريم هم مالک کيږي)، لهذا کله چې زيد د څاه او حريم دواړو مالک دی، نو بيا بل چا ته په هغه حريم کې څاه کيندل جائز نه دي، او که چيري هغه داسي حرکت کوي، نو له دې څخه به منع کول کيږي؛ ځکه په داسي کولو سره د اول حافر يعني د زيد حق فوتيږي او له څاه څخه په استفاده کولو کې هغه ته خلل او تاوان رسيږي، نو ځکه بل څوک به د هغه په ملکيت کې له تصرّف کولو څخه منع کول کيږي، لأن التصرّف في ملك الغير باطل.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

فَإِنِ احْتَفَرَ آخَرُ بِئْرًا فِيْ حَدِّ حَرِيْمِ الْأُوْلٰى بيا که بل څوک [دويم کس] د اول څاه د حريم په حدّ کې څاه وکيندي لِلْأَوَّلِ أَنْ يُصْلِحَهُ وَيَكْبِسَهُ تَبَرُّعًا نو اول کس [يعني د اول څاه مالک] لره دا حق سته چې د احسان په توګه د هغه اصلاح وکړي او پټ يې کړي [يعني د دويم کس سره د احسان کولو په خاطر خپله د هغه څاه بند او پټ کړي] وَلَوْ أَرَادَ أَخْذَ الثَّانِيْ فِيْهِ او که هغه په دې باره کې د دويم کس نيول [مؤاخذه

كول] وغواړي قِيْلَ: لَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ بِكَبْسِهِ نو ويل سوي دي: چي هغه [اول كس] تـه دا اختيـار ستـه چي د دې ځاه په پټولو سره هغه ونيسي [يعني چي ځاه په هغه پټ کړي] لِأَنَّ إِزَالَةَ جِنَايَةِ حَفْرِهِ بِهِ ځکه چي د هغه د ځاه کيندلو د جرم ازاله په همدې سره کيږي كَمَا فِي الْكُنَاسَةِ يُلْقِيْهَا فِيْ دَارِ غَيْرِهِ لکه په هغه کچره [ناپاکي] کي [چي همدا حکم دی] کوم چي يو څوک د بل چا په کور کي وغورځوي فَإِنَّهُ يُؤْخَذُ بِرَفْعِهَا نو هغه [غورځونکی] د هغه په پورته کولو سره نيول کيږي وَقِيْلَ: يُضَمِّنُهُ النُّقْصَانَ ثُمَّ يَكْبِسُهُ بِنَفْسِهِ او ويل سوي دي: چي اول کس دي هغه [دويم کس] د نقصان ضامن وګرځوي [يعني تاوان دي ځني واخلي] بيا دي ځاه خپله پټ کړي كَمَا إِذَا هَدَمَ جِدَارَ غَيْرِهِ لکه څوک چي د بل چا ديوال ونړوي وَهٰذَا هُوَ الصَّحِيْحُ او همدا صحيح دي ذَكَرَهُ فِيْ أَدَبِ الْقَاضِيْ لِلْخَصَّافِ دا امام خصاف رَحِمَهُ الله په ادب القاضي کي ذکر کړي دي وَذَكَرَ طَرِيْقَ مَعْرِفَةِ النُّقْصَانِ او د نقصان پېژندلو [معلومولو] طريقه يې [هم] ذکر کړې ده.

**اللغات**: ﴿يكبسه﴾ د ضرب د باب مضارع ده، د دې باب په صله چي کي ځاه (بِئر) ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: ځاه پټول، له خاورو ډکول. ﴿تبرّعًا﴾ د تفعّل د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه يوه معنیٰ ده: احسان کول، بلا عوضه يو شی ورکول يا بلا عوضه (مفت) يو کار کول. ﴿الكناسة﴾ کچره، هغه ناپاکي او خيرن بې ځايه شيان چي ديو ځای له جارو کولو څخه وروسته په آخر کي جمع سي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که ديو چا (مثلاً د زيد) د ځاه په حريم کي بل څوک خپل ځاه وکاږي، نو اوس هغه اول کس (زيد) لره دا حق هم سته چي د دې بل يوه (ځاه کيندونکي) سره احسان وکړي او هغه د خپل ځاه په پټولو سره مکلف نه کړي بلکي خپله د هغه ځاه پټ او بند کړي.

او که هغه (زيد) احسان او تبرّع نه کوي، بلکي غواړي چي ځاه کيندونکی مؤخذاه او جرمانه کړي، نو په دې صورت کي دوه قولونه دي:

(۱)... اول قول دا دی چي هغه دي په دې سره مکلف کړي چي خپل ځاه په خپله بند کړي او په هاغه خاورو سره يې پټ کړي (کوم چي يې ځني راکښلي دي)؛ ځکه کوم جرم چي يې کړی دی، د هغه د تلافی او تدارک طريقه همدا ده، او د دې مثال داسي دی لکه څوک چي د بل چا په کور کي ناپاکي او کچره وغورځوي، نو دا غورځونکی مکلف کول کيږي چي هغه خپله صفا کړي.

(۲)... دويم قول دا دی چي د اول کس (زيد) څاه ته چي څومره نقصان رسېدلی وي، د هغه ضمان (تاوان) دي له څاه کيندونکي څخه واخلي، بيا دي د هغه څاه خپله پټ کړي، او د نقصان معلومولو طريقه دا ده چي د دې (زيد د) څاه قيمت اول څو دی مثلاً د هغه قيمت مخکي لس زره روپۍ وو، او د بل څاه کيندلو په وجه د هغه قيمت نهه نيم زره روپۍ سو. نو اول کس (زيد) دي له هغه څخه پنځه سوه روپۍ واخلي او څاه دي خپله پټ کړي، او د دې مثال داسي دی لکه څوک چي د بل چا دېوال ونړوي، نو د دېوال مالک ته دا اختيار حاصلېږي چي له هغه نړونکي څخه د دې تاوان واخلي او بيا خپله هغه دېوال جوړ کړي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دې دواړو قولونو کي دا دويم قول صحيح دی او امام خصاف رَحِمَهُ الله دا په خپل کتاب "ادب القاضي" کي بيان کړی دی او په دې کتاب کي هغه د نقصان معلومولو طريقه هم بيان کړې ده کوم چي پورته ذکر سوه.

## په مذکوره دوو څاګانو کي د انسان او حيوان د لوېدلو حکم

وَمَا عَطِبَ فِي الْأُولَى او کوم چي په اول څاه کي هلاک سي فَلَا ضَمَانَ فِيهِ نو په هغه کي ضمان نسته لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ ځکه چي اول کس [د اول څاه مالک] تعدی کونکی نه دی إِنْ كَانَ بِإِذْنِ الْإِمَامِ فَظَاهِرٌ که د امام په اجازت سره [يې څاه کيندلی] وي نو ښکاره ده وَكَذَا إِنْ كَانَ بِغَيْرِ إِذْنِهِ عِنْدَهُمَا او همدارنګه که د هغه له اجازته بغير وي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز وَالْعُذْرُ لِأَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يَجْعَلُ فِي الْحَفْرِ تَحْجِيرًا او د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه عذر [توجيه] دا ده چي هغه حفر تحجير ګرځوي وَهُوَ بِسَبِيلٍ مِنْهُ بِغَيْرِ إِذْنِ الْإِمَامِ او د امام له اجازته بغير هغه [حافر] د تحجير پر حق دی [يعني تحجير د امام له اجازته بغير هم کولای سي] وَإِنْ كَانَ لَا يَمْلِكُهُ بِدُونِهِ که څه هم حافر د امام له اجازته بغير د هغه [څاه وغيره] نه سي مالک کېدلای سي وَمَا عَطِبَ فِي الثَّانِيَةِ او کوم چي په دويم څاه کي هلاک سي فَفِيهِ الضَّمَانُ نو په دې کي ضمان واجب دی لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِيهِ ځکه چي هغه [دويم حافر] په دې هکله تعدی کونکی دی، حَيْثُ حَفَرَ فِي مِلْكِ غَيْرِهِ په دې حيثيت سره چي هغه د بل چا په ملکيت کي څاه کيندلی دی.

**اللغات**: ﴿عَطِبَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: هلاکېدل، مړ کېدل. ﴿تحجير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی. تعريف يې مخکې تېر سو. ﴿متعدّی﴾ د تفعل د باب فاعل دی: تعدی کونکی، تجاوز کونکی، ناحقه تصرف کونکی.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې څرنګه اول کس (زيد) په څاه کيندلو کي حق بجانب دی يعني په څاه کيندلو کي د هغه جرم نسته (ځکه چي هغه دا څاه په شاړه ځمکه کي اول کيندلی دی)، نو ځکه که د هغه په څاه کي څوک ولوېږي، نو پر هغه هيڅ ضمان (تاوان) نسته، ځکه په دې کي د اول حافر (زيد) هيڅ قصور نسته، لکه مالک چي په خپل مملوکه ځمکه کي څاه وکيندي او په هغه کي څوک ولوېږي، نو پر مالک هيڅ ضمان نسته؛ ځکه چي د هغه له طرفه هيڅ تعدی نه ده واقع سوې، برابره ده څاه د امام په اجازت سره وکيندي، يا بغير له اجازته، په اول صورت کي (يعني چي د امام په اجازه سره وي) هيڅ اشکال نسته، ليکن په دويم صورت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله د مذهب مطابق اشکال وارديږي؛ ځکه د هغه په نيز د ارضِ موات د احياء لپاره اجازت شرط دی يعني د شاړي ځمکي د احياء (آبادولو، څاه کيندلو وغيره) لپاره د امام اجازت شرط دی، نو څاه کيدونکی (زيد) د څاه مالک نه سو او دا تعدی سوه، لهذا پر هغه ضمان واجبېدل پکار دي.

نو په دې هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه دا عذر يعني توجيه پېش کړل سوې ده چي امام صاحب رَحِمَهُ الله حفر (يعني د څاه کيندل) احياء نه بلکي تحجير ګرځولی دی، او تحجير د امام له اجازته بغير هم جائز دی، لهذا د دې توجيه پر بناء په څاه کيندلو سره حافر (زيد) تعدی کونکی نه سو او کله چي هغه تعدی کونکی نه دی، نو پر هغه به ضمان هم نه واجبيږي.

**وما عطب في الثانية إلخ**: د دې حاصل دا دی چي کوم څاه د اول کس د څاه په حريم کي چا کيندلی وي (مثلاً خالد کيندلی وي)، که چيري په هغه کي څوک ولوېږي، نو پر هغه څاه کيندونکي (خالد) ضمان لازميږي؛ ځکه چي د هغه تعدی او زياتوب ښکاره دی چي هغه د بل چا په ملکيت کي څاه کيندلی دی.

## د بل څاه په کيندلو سره د اول څاه د اوبو وچېدلو حکم

وَإِنْ حَفَرَ الثَّانِي بِئْرًا وَرَاءَ حَرِيمِ الْأُوْلَى او که دويم کس [دويم حافر] د اولي څاه د حريم تر شا [دباندي] څاه وکيندي فَذَهَبَ مَاءُ الْبِئْرِ الْأُوْلَى بيا د اولي څاه اوبه ختمي سي فَلَا شَيْءَ عَلَيْهِ نو پر دويم کس هيڅ شی نسته لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِي حَفْرِهَا ځکه هغه د دې څاه په کيندلو کي تعدی کونکی نه دی وَلِلثَّانِي الْحَرِيمُ مِنَ الْجَوَانِبِ الثَّلَاثَةِ دُوْنَ الْجَانِبِ الْأَوَّلِ او دويم کس [دويم حافر] لره صرف له دريو

طرفونو څخه حريم ستنه، نه له اول طرف څخه [کوم چې د اولي څاه حريم دی] لِسَبْقِ مِلْكِ الْحَافِرِ الْأَوَّلِ فِيْهِ ځکه په هغه اول طرف کې د اول څاه کيندونکي ملکيت مخکينی دی.

**اللغات**: ﴿وراء﴾ شاته، وروسته، ﴿سَبْق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: مخکې کېدل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که چا (مثلاً زيد) په شاړه ځمکه کې څاه کيندلی وي، بيا بل څوک (مثلاً خالد) راسي د زيد د څاه له حريم څخه بهر (يعني له څلويښتو ذراعو څخه ليري) بل څاه وکاږي، لېکن د دې بل څاه په کيندلو سره د هغه اول څاه (د زيد د څاه) اوبه وچې سي، نو په دې صورت کې پر دويم څاه کيندونکي (خالد) ضمان نه واجبيږي، ځکله کله چې دويم يوه د اول له حريم څخه بهر څاه کيندلی دی، نو هغه هيڅ تعدی کونکی نه دی، او کله چې د هغه له طرفه تعدی نه ده واقع سوې، نو بيا به ضمان ولې پر واجبيږي. او پاته سوه د اوبو وچېدلو مسئله نو هغه خو د ځمکې وغيره سره متعلق جلا خبره ده چې په هغه کې د دويم حافر (خالد) هيڅ دخل نسته.

او کله چې دويم څاه کيندل صحيح سوه، نو آيا د هغه حريم به هم څلورو سره طرفونو ته وي لکه د اول څاه حريم، نو فرمايي چې د دويم څاه حريم صرف دريو طرفونو ته دی، څلورم طرف ته (کوم چې د اول څاه د حريم سره متصل دی، له دې طرف څخه) به حريم نه ورکول کيږي؛ ځکه چې په دې طرف کې د اول حافر (زيد) ملکيت مخکې ثابت سوی دی، لهذا په هغه کې به بل څوک تصرّف نه کوي.

**يادونه**: تر ځمکې لاندې اوبه د هيچا ملکيت نه دي، نو ځکه پر دويم څاه کيندونکي دا جبر نه سي کېدلای چې له دې ځايه خپل څاه ليري کړه کله چې هغه هيڅ تعدی نه وي کړې، او د دې مثال داسې دی لکه څوک چې د کپړو دوکان کوي، بيا بل څوک راسي او د هغه څنګ ته بل د کپړو دوکان خلاص کړي چې په دې سره د اول دکاندار سودا ودريږي، نو پر دې دويم دوکاندار هيڅ ضمان نه واجبيږي (ځکه چې هغه تعدی کونکی نه دی او همدا يې خپل قسمت دی). (مجمع الأنهر ج: ۲، ص: ۵۳۵)

## د کاريز د حريم مقدار

وَالْقَنَاةُ لَهَا حَرِيْمٌ بِقَدْرِ مَا يُصْلِحُهَا او د کاريز لپاره به دومره اندازه حريم وي کوم چې د هغه لپاره مناسب وي [يعني څومره حريم ته چې ضرورت وي] وَعَنْ مُحَمَّدٍ أَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْبِئْرِ فِي اسْتِحْقَاقِ الْحَرِيْمِ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې د حريم په استحقاق کې کاريز د څاه په څېر دی وَقِيْلَ: هُوَ عِنْدَهُمَا ويل سوي دي: چې دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دي وَعِنْدَهُ ✻ لَا حَرِيْمَ لَهَا او د امام

✻ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله،حيث أخر صاحبُ الهداية التعليل لقوله... وهذا أمارة الترجيح، فالترجيح لقول الـراجح عند صاحب الهداية، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۱۱]

صاحب رَحِمَهُ الله په نېز کارېز لره حریم نسته مَالَمْ يَظْهَرِ الْمَاءُ عَلَى الْأَرْضِ تر څو چي اوبه پر ځمکه ښکاره سوي نه وي لِأَنَّهُ نَهْرٌ فِي التَّحْقِيقِ ځکه چي کاریز په حقیقت کي نهر دی فَيُعْتَبَرُ بِالنَّهْرِ الظَّاهِرِ نو هغه به پر ښکاره نهر قیاسولکیږي قَالُوْا: وَعِنْدَ ظُهُوْرِ الْمَاءِ عَلَى الْأَرْضِ هُوَ بِمَنْزِلَةِ عَيْنٍ فَوَّارَةٍ مشایخو فرمایلي دي: چي پر ځمکه د اوبو ښکارېدلو په صورت کي کارېز د خوټکېدونکي چینې په څېر دی فَيُقَدَّرُ حَرِيْمُهُ بِخَمْسِ مِائَةِ ذِرَاعٍ نو ځکه د هغه حریم به په پنځو سوو (۵۰۰) ذراعو سره ټاکل کیږي.

**اللغات**: ﴿القناة﴾ کارېز (تر ځمکي لاندي داوبو بهېدلو لپاره کېندل سوی ځای)، صاحب د اشرف الهدایې وایي چي یو خو دا ښکاره نهر (واله) ده، او بل ځیني وخت نهر داسي وي چي د پاسه پټ کړل سي، نو دې ته قناة وایي چي ځینو علاقو والا په همدې توګه له اوبو څخه کار اخلي. ﴿فوارة﴾ خوټکېدونکی (خوټېدونک) چینه (چي اوبه یې په جوش سره راغورځي او بهیږي)، ﴿يُقَدَّر﴾ د تفعیل د باب مضارع مجهوله ده: اندازه کېدل، متعیّن کېدل، ټاکل کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي د صحیح او معتمد قول مطابق به کارېز ته دومره حریم ورکول کیږي څومره حریم ته چي ضرورت وي، هغه که هر څو ذراعه کیږي، او دا د امام او امیر پر رایه موقوف دي، امام چي هر څو ذراعه مناسب وګڼي، هغه دي د کارېز د حریم لپاره وټاکي. او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه په دې مسئله کي یو روایت دا دی چي د حریم په هکله د کارېز حکم د څاه په څېر دی، لهذا د څاه چي څومره حریم دی، هغه به د کارېز هم وي، او یو قول دا دی چي دا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله قول دی. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دا دی چي تر څو د کارېز اوبه ښکاره نه سي، تر هغه وخته به کارېز ته حریم نه ورکول کیږي؛ ځکه د اوبو د نه ښکاره کېدلو په صورت کي له هغه څخه فایده اخیستل ناممکن دي، او کله چي له کارېز څخه استفاده نه کیږي، نو بیا د هغه لپاره د حریم ضرورت هم نسته، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د ښکاره (لغ) نهر لپاره هم حریم نسته او کارېز هم نهر دی، نو ځکه د هغه لپاره به هم حریم نه وي.

قالوالخ: فرمایي د مشایخو رَحِمَهُمُالله رایه بیا دا ده چي که د کارېز اوبه پر ځمکه ښکاره سي، نو بیا هغه د چینې په حکم دی، او د چینې حریم پنځه سوه (۵۰۰) ذراعه ده، لهذا د هغه حریم به هم پنځه سوه (۵۰۰) ذراعه وي.

## د درختو د حريم مقدار

وَالشَّجَرَةُ تُغْرَسُ فِيْ أَرْضٍ مَوَاتٍ او هغه درخته [ونه] چي په شاړه ځمکه کي شنه کړل سي لَهَا حَرِيْمٌ أَيْضًا هغې لره هم حريم سته حَتّٰى لَمْ يَكُنْ لِغَيْرِهِ أَنْ يَغْرِسَ شَجَرًا فِيْ حَرِيْمِهَا تر دې چي بل چا ته دا حق نسته چي د هغې په حريم کي درخته شنه کړي لِأَنَّهُ يَحْتَاجُ إِلَى حَرِيْمٍ لَهُ يَجِدُ فِيْهِ ثَمَرَهُ وَيَضَعُهُ فِيْهِ ځکه هغه [درخته اينبوونکی] خپل داسي حريم ته محتاج دی چي په هغه کې [د درختي] مېوه شکوي او اړدي وَهُوَ مُقَدَّرٌ بِخَمْسَةِ أَذْرُعٍ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ او دا [د درختي حريم] له هر طرفه په پنځو ذراعو سره متعيّن سوی دی بِهِ وَرَدَ الْحَدِيْثُ په همدې سره حديث وارد سوی دی.

**اللغات**: ﴿تُغرس﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع مجهولي صيغه ده: درخته او بوټی شنه کول (اينبوول)، په ځمکه کي نيالګی اينبوول (نهال لګول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي څرنګه څاه، چينې وغيره لره حريم سته، همداسي که څوک په ارضِ موات (شاړه) ځمکه کي درخته شنه کړي، نو هغې لره هم حريم سته چي د هغه مقدار پنځه ذراعه دی له هر طرف څخه، کوم چي په حديث سره ثابت دی (حديث په حاشيه کي ذکر سو)، لهذا بل چا ته د دغه درختي په حريم کي د نورو درختو د شنه کولو اجازت نسته. او د درختو لپاره د حريم ټاکل کېدو دليل دا دی چي درخته غټېږي او ښاخونه يې شا وخوا غوړېږي او بيا مېوه داره کيږي، لهذا شنه کونکی کس دومره ځای ته ضرورت لري چي په هغه کي ودرېږي او ميوه يې راوشکوي او بيا يې په هغه ځای کې کښېږدي، او ځيني وخت لاندي مېوې وچولو ته هم ضرورت پېښيږي، نو ځکه شريعت د هري درختي لپاره له هر طرف څخه پنځه، پنځه ذراعه حريم ټاکلی دی.

## که درياب، رود خپل ځای پرېږدي نو د هغه څه حکم دی؟

قَالَ: وَمَا تَرَكَ الْفُرَاتُ أَوِ الدِّجْلَةُ او کوم ځای چي د فرات يا دجلې درياب پرې اينبی وي وَعَدَلَ عَنْهُ الْمَاءُ او له هغه څخه اوبه اوښتي وي وَيَجُوْزُ عَوْدُهُ إِلَيْهِ ليکن د هغه وطرف ته [بيرته] د اوبو راګرځېدل ممکن وي لَمْ يَجُزْ إِحْيَاؤُهُ نو د داسي ځای آبادول جائز نه دي لِحَاجَةِ الْعَامَّةِ إِلَى كَوْنِهِ نَهْرًا ځکه عامو خلکو د هغه ځای ونهر کېدلو ته ضرورت دی [او د هغه بيرته نهر کېدل ممکن هم دي] وَإِنْ كَانَ لَا يَجُوْزُ أَنْ يَعُوْدَ إِلَيْهِ او که چيري د هغه ځای وطرف ته د اوبو راګرځېدل ممکن نه وي فَهُوَ كَالْمَوَاتِ

نو هغه د موات [شاري ځمکي] په څېر دي إِذَا لَمْ يَكُنْ حَرِيْمًا لِعَامِرٍ [په دې شرط] کله چي هغه د يوې آبادۍ حريم نه وي لِأَنَّهُ لَيْسَ فِيْ مِلْكِ أَحَدٍ ځکه [په دې صورت کي] هغه د هيچا په ملکيت کي نه دی لِأَنَّ قَهْرَ الْمَاءِ يَدْفَعُ قَهْرَ غَيْرِهِ ځکه د اوبو غلبه د بل چا غلبه ليري کوي وَهُوَ الْيَوْمَ فِيْ يَدِ الْإِمَامِ او هغه [اوس] نن ورځ د امام په قبضه کي دی.

**اللغات:** ﴿عدل﴾ د ضرب د باب ماضي ده: مخ گرځول، اوښتل، ليري کېدل، ﴿عامر﴾ آبادي (آباتي)، ودانی، هغه سيمه او علاقه چي خلک پکښي آباد وي، ﴿قهر﴾ د فتح د باب مصدر دی: غالبېدل، غلبه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي درياب او لويه پراخه واله ځيني وخت خپل يو ځای پرېږدي او بل طرف ته اوبه واوړي، نو که يو درياب لکه دجله، فرات يا بل داسي درياب له يو ځای څخه واوړي او له هغه ځايه اوبه وچي سي، نو آيا هغه ځای مَوات شمېرل کيږي، که نه، او د هغه آبادول جائز دي، که نه؟. په دې سلسله کي تفصيل دا دی چي که هغه ځای ته دوباره د اوبو راګرځېدل ممکن وي چي اوبه به راسي او بيرته به هغه ځای درياب سي، نو په دې صورت کي هغه موات نه دی او د هغه احياء جائز نه ده؛ ځکه کله چي هلته د اوبو راګرځېدلو او درياب کېدلو امکان سته، نو ښکاره ده چي د هغه ځای به هاغه حکم وي کوم چي د درياب حکم دی او په درياب کي د عامو مسلمانانو حق سته، لهذا په هغه کي ځای کي به هم د عامو حق وي، او چا ته به د هغه احياء جائز نه وي.

او که دويم صورت وي يعني هغه ځای ته د اوبو راګرځېدلو امکان نه وي، نو بيا به دې ته کتل کيږي چي هغه ځای د يوې آبادۍ حريم دی، که نه دی؟، که چيري هغه د يوې آبادۍ حريم وي، نو هم د هغه احياء جائز نه ده، لېکن که هغه ځای هسي خالي وي او د آبادۍ حريم نه وي، نو په دې صورت کي د هغه احياء جائز ده؛ ځکه اوس هغه ځای د موات په حکم کي دی او د موات احياء جائز ده، ځکه چي اوس هغه د چا په ملکيت کي نه دی او تر دې مخکي هم هغه د چا په ملکيت کي نه وو؛ ځکه مخکي پر هغه اوبه غالبي وي او د اوبو غلبه هر ډول تسلّط او تصرّف ختموي، نو معلومه سوه چي له پخوا څخه هغه ځای غيرِ مملوک دی او اوس د امامُ المسلمين په قبضه کي دی، نو ځکه د امام په اجازت سره د هغه احياء جائز ده، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د امام اجازت ته هم ضرورت نسته. (احسن الهدايه)

## د نهر (والې) د حريم بيان

قَالَ: وَمَنْ كَانَ لَهُ نَهْرٌ فِي أَرْضِ غَيْرِهِ فرمايي: او د کوم کس نهر [واله] چې د بل چا په ځمکه کې وي فَلَيْسَ لَهُ حَرِيمٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه لره حريم نشته إِلَّا أَنْ يُقِيمَ بَيِّنَةً عَلَى ذٰلِكَ مګر دا چې هغه پر دې بينه [ګواهي] پېش کړي وَقَالَا: لَهُ مُسَنَّاةُ النَّهْرِ يَمْشِي عَلَيْهَا او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د هغه کس لپاره د نهر پوله [غاړه] ده چې پر هغې ځي وَيُلْقِي عَلَيْهَا طِينَهُ او د نهر ختې پر هغې اچوي قِيلَ: هٰذِهِ الْمَسْأَلَةُ بِنَاءٌ عَلَى أَنَّ مَنْ حَفَرَ نَهْرًا فِي أَرْضِ مَوَاتٍ بِإِذْنِ الْإِمَامِ ويل سوي دي: چې دا مسئله پر دې خبره مبني ده چې څوک د امام په اجازت سره په شاړه ځمکه کې نهر وکيندي لَا يَسْتَحِقُّ الْحَرِيمَ عِنْدَهُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه د حريم [د نهر د پولې] نه مستحق کيږي وَعِنْدَهُمَا يَسْتَحِقُّهُ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز د حريم مستحق کيږي لِأَنَّ النَّهْرَ لَا يُنْتَفَعُ بِهِ إِلَّا بِالْحَرِيمِ ځکه چې له نهر څخه نفع نه اخيستل کيږي مګر په حريم سره [يعني له نهر او والې څخه څوک هغه وخت نفع اخيستلای سي کله چې د نهر حريم يعني د نهر پوله او غاړه د هغه وي] لِحَاجَتِهِ إِلَى الْمَشْيِ لِتَسْيِيلِ الْمَاءِ ځکه چې د اوبو بهولو لپاره هغه [د نهر پر غاړه] تللو ته محتاج دی وَلَا يُمْكِنُهُ الْمَشْيُ عَادَةً فِي بَطْنِ النَّهْرِ او عادتاً د نهر [والې] په نس کې تلل ممکن نه دي وَإِلَى إِلْقَاءِ الطِّينِ او [همدارنګه هغه د نهر پر غاړه] د ختو اچولو ته [هم محتاج دی] وَلَا يُمْكِنُهُ النَّقْلُ إِلَى مَكَانٍ بَعِيدٍ إِلَّا بِحَرَجٍ او بل ليرې ځای ته د ختو وړل ممکن نه دي مګر په تکليف سره فَيَكُونُ لَهُ الْحَرِيمُ نو ځکه [د نهر] حريم به د هغه وي اعْتِبَارًا بِالْبِئْرِ پر څاه په قياس کولو سره وَلَهُ: أَنَّ الْقِيَاسَ يَأْبَاهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې قياس د حريم د ثبوت انکار کوي عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ لکه [مخکې] چې موږ ذکر کړه وَفِي الْبِئْرِ عَرَفْنَاهُ بِالْأَثَرِ او په څاه کې د حريم ثبوت موږ په اثر [حديث] سره پېژندلی دی [کوم چې مخکې ذکر سو] وَالْحَاجَةُ إِلَى الْحَرِيمِ فِيهِ فَوْقَهَا إِلَيْهِ فِي النَّهْرِ او په څاه کې د حريم ضرورت په نهر کې د حريم له ضرورت څخه بالا دی لِأَنَّ الِانْتِفَاعَ بِالْمَاءِ فِي النَّهْرِ مُمْكِنٌ بِدُونِ الْحَرِيمِ ځکه چې په نهر [واله] کې له اوبو څخه نفع اخيستل بغير له حريمه هم ممکن

دي وَلَا يُمْكِنُ فِي الْبِئْرِ إِلَّا بِالِاسْتِقَاءِ لېكن په څاه كي له اوبو راكښلو څخه بغير [د هغه له اوبو څخه نفع اخيستل] ممكن نه دي وَلَا اِسْتِقَاءَ إِلَّا بِالْحَرِيْمِ او داوبو راكښل نه كيږي مگر په حريم سره [يعني بغير له حريمه اوبه راكښل ممكن نه دي] فَتَعَذَّرَ الْإِلْحَاقُ نو ځكه [نهر د څاه سره] لاحقول مشكل سوه وَوَجْهُ الْبِنَاءِ أَنَّ بِاسْتِحْقَاقِ الْحَرِيْمِ تَثْبُتُ الْيَدُ عَلَيْهِ او د بناء [مبني كېدلو] وجه دا ده چي د حريم په مستحق كېدلو سره پر حريم قبضه ثابتيږي اِعْتِبَارًا اتِّبَاعًا لِلنَّهْرِ د نهر د تبعيت په اعتبار كولو سره وَالْقَوْلُ لِصَاحِبِ الْيَدِ او قول د قبضې والا معتبر وي وَبِعَدَمِ اسْتِحْقَاقِهِ تَنْعَدِمُ الْيَدُ او د حريم د نه مستحق كېدلو په وجه قبضه نه موجوديږي وَالظَّاهِرُ يَشْهَدُ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ او ظاهر حال د ځمكي والا [مالک الأرض] په حق كي گواهي وركوي [نه د نهر والا په حق كي] عَلَىٰ مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَىٰ د هغه تفصيل مطابق چي موږ به يې انشاء الله تعالیٰ ذكر كړو [په را روان عبارت كي].

**اللغات**: ﴿مُسنّاة﴾ د دې لفظ خپله معنیٰ خو مخكي ذكر سوه چي "داوبو بند" ته وايي. يعني هغه پوله چي د اوبو راگرځولو او بندولو لپاره جوړه سوې وي، خو دلته ځني مراد د نهر د څنګ پوله ده چي په بله وينا هغه ته د نهر (والې) غاړه وايي. كوم چي د نهر دواړو طرفونو ته د بند په شكل ځغېدلې پرته ده. ځكه د همدې دواړو پولو او غاړو په وجه نهر جوړ دی او اوبه پكښې رواني دي. كه دا ليري سي نو بيا به هغه نهر پاته نه سي بلكي اوبه به د شا و خوا پر ځمكي خپرې سي. ﴿تسييل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: بهول، بيول. ﴿يأباه﴾ په اصل كي يَأْبَىٰ ده. په آخر كي يې هاء ضمير د غائب دی: انكار كول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی كه د بل چا په ځمكه كي د يو چا نهر (والې) تېره سوې وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز تر څو چي د نهر مالک د خپل ملكيت بيّنه پېش نه كړي يعني چي دا نهر زما دی او پوله (غاړه) يې زما ملكيت دی، تر هغه وخته به ده ته حريم نه وركول كيږي. حال دا چي صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي چي د نهر (والې) پوله يعني غاړه ضرور د ده كيږي. د دې لپاره چي دئ پر هغه ځي راځي او د نهر سمولو او صفا كولو په وخت كي ختي پر هغه اچوي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا مسئله په اصل كي پر يوې بلې مسئلې مبني ده چي د هغې حاصل دا دی كه څوک په ارضِ موات كي نهر وكاږي، نو دا امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه ته حريم نه حاصليږي. كه څه

هم هغه د امام په اجازت سره نهر جوړ کړی وي، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په هر صورت کې هغه ته حريم حاصليږي، برابره ده هغه د امام په اجازت سره دا کار کړی وي، که نه، لهذا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز چې څرنګه په دې مسئله کې هغه ته حريم نه حاصليږي، همداسې په صورت مسئله کې به هم هغه ته حريم نه ورکول کيږي، او د صاحبينو په نيز چې څرنګه د نهر حافر ته حريم حاصليږي، نو همداسې به په صورت مسئله کې هم حريم ورته حاصليږي.

د صاحبينو دليل: دا دی چې له حريم څخه بغير له نهر (والې) څخه فايده اخيستل ممکن نه دي؛ ځکه چې د اوبو تېرولو او بهولو لپاره د نهر خاوند ته د تللو ضرورت پېښيږي او په نهر کې د ننه تلل مشکل دي او بل دا چې کله د نهر صفا کولو، ختمو غورځولو او داسې نورو ضرورت پېښيږي، او ښکاره ده چې ليرې ځای د ختمو په وړلو کې حرج او تکليف دی، لهذا څرنګه چې د څاه لپاره د ضرورت په خاطر حريم ثابت سوی دی، نو همداسې به د نهر لپاره هم د ضرورت په خاطر حريم ثابتول کيږي چې له حريم څخه بغير له هغه څخه نفع اخيستل ممکن نه دي.

د امام صاحب دليل: دا دی چې قياس د حريم ثابتېدلو انکار کوي (يعني د قياس تقاضا دا ده چې حافر [کيندونکی] د حريم مستحق نه سي، لکه مخکې چې هم ذکر سوه)، ځکه په نهر کې له حريم څخه بغير هم له اوبو څخه نفع اخيستل او نهر کارول ممکن دي، او په څاه کې د اوبو له راکښلو څخه بغير له هغه څخه نفع اخيستل ممکن نه دي، ځکه له څاه څخه د اوبو راکښلو لپاره څه ځای ضروري دی، برابره ده انسان اوبه راکاږي يا د څاروي (اوښ وغيره) په ذريعه اوبه راکښل کيږي، نو په دې حواله سره په نهر او څاه کې فرق دی، لهذا يو به د بل سره نه لاحقول کيږي.

وو<u>جه البناء إلخ</u>: يعني دا مسئله چې پر کومې مسئلې مبني ده، په هغه مسئله کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې کله په ارضِ موات کې د امام په اجازه په نهر کيندولو سره حريم ثابتيږي، نو څرنګه چې د نهر والا (صاحبُ النهر) قبضه پر نهر راځي، همداسې د نهر په واسطه سره د هغه تر څنګ پر حريم هم د هغه قبضه راځي، او قاعده دا ده چې قبضه د کوم چا وي، قول هم د هغه معتبر وي، نو ځکه د نهر د خاوند قول به معتبر وي او هغه ته به د نهر پوله (غاړه) حاصليږي.

<u>وبعدم استحقاقه إلخ</u>: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دی، حاصل يې دا دی چې کله نهر والا (صاحب النهر) د حريم مستحق کيږي، نه ... د هغه قبضه هم نه راځي، او کله چې پر حريم د هغه قبضه نسته، نو پر هغه به د ځمکې والا (صاحبُ الأرض) قبضه وي، او ظاهرِ حال د هغه په حق کې ګواهي ورکوي چې دا ځمکه د صاحبُ الأرض ده، نه د صاحبُ النهر، او قاعده دا ده چې "مَن ساعدهُ الظاهر

فالقول قوله" ، یعني ظاهر حال چې د چا لپاره شاهد او معاون وي، قول د هغه معتبر وي. او په مذکوره صورت کې ظاهر حال د صاحب الأرض په حق کې شاهد دی، نو ځکه قول به صرف د هغه معتبر وي. (احسن الهدایه)

## د پورتنی مسئلې بله تخريج او وضاحت

وَإِنْ كَانَتْ مَسْأَلَةً مُبْتَدَأَةً او که چیرې هغه ابتدائي [جلا] مسئله وي فَلَهُمَا أَنَّ الْحَرِيمَ فِي يَدِ صَاحِبِ النَّهْرِ نو بیا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې حریم [د نهر پوله] د نهر والا په قبضه کې ده بِاسْتِمْسَاكِهِ الْمَاءَ بِهِ ځکه چې هغه د حریم په ذریعه [د خپل نهر] اوبه راګرځولې [نیولې] دي وَلِهَذَا لَا يَمْلِكُ صَاحِبُ الْأَرْضِ نَقْضَهُ په همدې وجه ځمکې والا د هغه د ماتولو ملکیت [اختیار] نه لري وَلَهُ: أَنَّهُ أَشْبَهُ بِالْأَرْضِ صُورَةً وَمَعْنًى او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې دا حریم [د نهر پوله] د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار د ځمکې سره مشابه ده أَمَّا صُورَةً فَلِاسْتِوَائِهِمَا هر چې د صورت په اعتبار سره نو د دوی دواړو د برابر والي په وجه [يعني ځکه چې ځمکه او حريم دواړه برابر او هوار دي] وَمَعْنًى مِنْ حَيْثُ صَلَاحِيَّتِهِ لِلْغَرْسِ وَالزِّرَاعَةِ او د معنیٰ په اعتبار سره په دې توګه چې حریم [هم] د شنه کولو او کښت کرنې صلاحیت [وړتیا] لري وَالظَّاهِرُ شَاهِدٌ لِمَنْ فِي يَدِهِ مَا هُوَ أَشْبَهُ بِهِ او ظاهر حال د هغه کس په حق کې ګواه دی چې د هغه په قبضه کې هغه څه وي کوم چې د حریم سره مشابه وي [چې هغه څه ځمکه ده او هغه شوک د ځمکې مالک (صاحب الأرض) دی] كَاثْنَيْنِ تَنَازَعَا فِي مِصْرَاعِ بَابٍ لَيْسَ فِي يَدِهِمَا لکه دوه کسان چې د دروازې د داسې پلې په باره کې اختلاف وکړي چې هغه د دوی په قبضه کې نه وي وَالْمِصْرَاعُ الْآخَرُ مُعَلَّقٌ عَلَى بَابِ أَحَدِهِمَا او بله پله له دوی څخه د یوه په دروازه کې لګېدلې وي يُقْضَى لِلَّذِي فِي يَدِهِ مَا هُوَ أَشْبَهُ بِالْمُتَنَازَعِ فِيهِ نو [د دې متنازع فيه پلې] فیصله د هغه کس لپاره کیږي چې د هغه په قبضه کې هغه څه [پله] وي کوم چې د متنازع فيه پلې سره زیات مشابه وي [يعني چې د هغه پلې سره مشابه وي چې دوی اختلاف پکښې کړی دی] وَالْقَضَاءُ فِي مَوْضِعِ الْخِلَافِ قَضَاءُ تَرْكٍ او د اختلاف په ځای کې چې [دلته] کومه قضاء ده. هغه قضاء ترک ده (په بله وینا دا چې په [مذکوره] اختلافي مسئله کې کومه فیصله سوې ده. هغه د ترک [پرېښودلو] فیصله ده).

**اللغات**: ﴿استمساك﴾ د استفعال د باب مصدر دی: راګرځول، ټینګول. ﴿الغرس﴾ د ضرب د باب مصدر دی: درخته او بوټی شنه کول (ابنوول)، همدارنګه شنه کول سوي درخته او نهال. ﴿زراعة﴾ کښت کرنه (کښتګري)، کرهنه. ﴿مِصْراع﴾ د دروازې يوه پله (په دروازه کې دوې پلې وي چې يوه راسته طرف ته او بله چپه طرف ته وي. چې د هغوی په ذريعه دروازه بنديږي. دواړو ته مِصْرَاعَا الْبَاب وايي).

**تشريح**: فرمايي په مخکنی مسئله کې د امام صاحب او صاحبينو اختلاف که پر هيڅ مسئله مبني نه ومنل سي بلکې هغه ابتدائيه او نوې جلا مسئله وګڼل سي، نو په دې ضورت کې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې صاحبُ النهر د نهر د حريم (پولي) په ذريعه د نهر اوبه راګرځولي دي (ځکه که د نهر [والې] پوله او غاړه نه وي بلکې هوار ميدان سي نو اوبه به شاوخوا وبهيږي، لهذا د همدې حريم يعني د نهر د پورتنی غاړې په ذريعه اوبه راګرځېدلي دي او په همدې توګه په نهر کې اوبه بهيږي او خپل ځای ته رسيږي)، او د حريم په ذريعه اوبه راګرځول پر هغه د قابض کېدلو دليل دی (يعني د دې دليل دی چې د نهر [والې] پر پوله او غاړه د هغه قبضه ده). په همدې وجه خو صاحبُ الأرض دا حريم (د نهر پوله) نه سي ماتولای، او دا يقيناً د قبضې دليل دی او قبضه د ملکيت دليل ده، نو ځکه صاحب النهر به د نهر د پولي (غاړې) مالک وي.

وله إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې مذکوره حريم (د نهر پوله) د صورت او معنیٰ دواړو په اعتبار د ځمکې سره زيات مشابه ده، د صورت په اعتبار سره خو ځکه چې څرنګه ځمکه هواره وي او په هغې کې پورته والی کښته والی نه وي، همداسې حريم (د نهر پوله او غاړه) هم هواره او برابره وي، او د معنیٰ په اعتبار سره مشابهت په دی توګه دی چې څرنګه په ځمکه کې نهالان او بوټي شنه کول کيږي، همدارنګه په دغه حريم کې هم د دې شيانو د شنه کولو صلاحيت سته، لهذا په دې حواله سره حريم د ځمکې مشابه دی او پر ځمکې د صاحبُ الارض قبضه ده، لهذا پر حريم به هم د هغه قبضه وي، او بل دا چې ظاهرِ حال د صاحب الأرض په حق کې شاهد دی، نو ځکه د حريم فيصله به هم د هغه په حق کې کيږي، نه د صاحب النهر په حق کې؛ ځکه چې نهر په هيڅ توګه د حريم مشابه نه دی.

د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل مثال دا دی چې د دروازې خو دوې پلې وي (چې يوه راسته طرف ته او بله چپه طرف ته وي)، اوس که مثلاً د زيد په دروزاه کې يوه پله لګېدلې وي، او داغه لګېدلي پلې ته مشابه بل ځای يوه بله پله پرته وي چې پر هغې د زيد او خالد تر مينځ دعوه راسي، نو دا پله به زيد ته ورکول کيږي، ځکه همدې متنازع فيه پلې ته ورته د زيد سره پله موجوده ده (کوم چې د زيد په دروازه

کي لګېدلې ده)، نو له دې څخه معلومېږي چي دا متنازع فيه پله هم د زيد ده، يعني ظاهرِ حال د هغه په حق کي ګواه دی، لهذا پله به زيد ته ورکول کيږي، نو همداسي د نهر چي کوم حريم (پوله) ده، هغه هم د صاحبُ الأرض د ځمکي مشابه ده او ظاهرِ حال د هغه په حق کي ګواه دی، نو ځکه د نهر حريم به هم د هغه وي، نه د صاحب النهر.

والقضاء إلخ: فرمايي دلته چي د دې مختلف فيه مسئلې په هکله کومه فيصله سوې ده، هغه قضاء ترک (د پرېښولو والا فيصله) ده، تفصيل يې دا دی چي قضاء يعني فيصله پر دوه قسمه ده: ① قضاء ترک، ② قضاء ملک واستحقاق (چي د هغه ټل نوم إلزام هم دی).

قضاء ترک هغه فيصلې ته وايي چي په هغې کي د يو شي د پرېښوولو حکم کيږي، او قضاء ملک و استحقاق هغه فيصلې ته وايي چي په هغې کي چا ته خپل حق ورکول کيږي، او دلته چي د حريم په هکله کوم اختلاف روان دی، په هغه کي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز صاحبُ الارض ته دا حکم کيږي چي د نهر حريم پرېږده! (د صاحب النهر لپاره)، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بيا صاحبُ النهر ته دا حکم کيږي چي د حريم ملکيت پرېږده (د صاحبُ الأرض لپاره)، نو په دواړو صورتونو کي دا قضاء ترک ده، او د قضاء ترک او قضاء ملک تر مينځ فرق دا دی چي د قضاء ترک په فيصله کي رد وبدل کېدلای سي او د بل يوه بيّنه پکښي قبلول کېدای سي، لېکن په قضاء ملک واستحقاق کي نه ردوبدل کېدلای سي او نه په هغه کي د بل يوه بيّنه قبلول کېدای سي، او په صورت مسئله کي چي کله دا فيصله قضاء ترک ده، نو که چيري صاحبُ النهر پر دې بيّنه پېش کړي چي دا حريم (پوله) زما ملکيت ده، نو د هغه بيّنه به قبلول کيږي، او که هغه بيّنه پېش نه کړي سي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به د صاحبُ الارض لپاره فيصله کيږي (يعني حريم به د ځمکي خاوند ته ورکول کيږي)، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز به د صاحبُ النهر په حق کي فيصله کيږي.

## د صاحبينو د دليل جواب

وَلَا نِزَاعَ فِيْمَا بِهِ اِسْتِمْسَاكُ الْمَاءِ او په هغه حصه [حريم] کي هيڅ نزاع نسته چي د هغه په وجه اوبه راګرځول سوي [نيول سوي] دي إِنَّمَا النِّزَاعُ فِيْمَا وَرَاءَهُ مِمَّا يَصْلُحُ لِلْغَرْسِ نزاع خو له هغه څخه په وروسته والا [شاتنی] حصه کي دی [يعني] هغه حصه کوم چي د شنه کولو صلاحيت لري عَلٰى أَنَّهُ إِنْ كَانَ مُسْتَمْسِكًا بِهِ مَاءَ نَهْرِهِ سره د دې که نهر والا [صاحبُ النهر] د دې حريم په ذريعه د خپل نهر د اوبو راګرځونکی دی فَالْآخَرُ دَافِعٌ بِهِ الْمَاءَ عَنْ أَرْضِهِ نو دا بل يو [يعني صاحبُ الأرض] بيا د دې حريم

په ذريعه له خپلي ځمکي څخه داوبو دفع کونکی دی وَالْمَانِعُ مِنْ نَقْضِهِ تَعَلُّقُ حَقِّ صَاحِبِ النَّهْرِ او د دې حريم له ماتولو څخه چي کوم شی مانع دی هغه د نهر والا د حق متعلق کېدل دي [يعني د حريم سره د صاحبُ النهر حق متعلق دی] لَا مِلْكُهُ نه د هغه ملکيت كَالْحَائِطِ لِرَجُلٍ وَلِآخَرَ عَلَيْهِ جُذُوْعٌ لکه دېوال چي ديوه سړي وي او د بل چا تيران پر هغه پراته وي لَايَتَمَكَّنُ مِنْ نَقْضِهِ نو هغهٔ سړی [صاحب الجدار] د دېوال د ماتولو قدرت [اختيار] نه لري وَإِنْ كَانَ مِلْكُهُ که څه هم هغه د ده ملکيت دی.

**اللغات**: ﴿نزاع﴾ جنګ او دعوه، اختلاف، ﴿جذوع﴾ جمع د جِذْعٌ ده: تير، شاتير (کوم چي پر بام ايښوول کيږي، چي پخوا به هغه عموماً د خُرما له تنې څخه وه).

**تشريح**: دا په حقيقت کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله له طرفه د صاحبينو د دليل جواب دی چي دوی فرمايلي وه چي صاحبُ النهر په حريم (يعني د نهر په پوله) سره اوبه راګرځولي دي، نو په دې حواله سره پر حريم د صاحبُ النهر قبضه ده او قبضه چي د کوم چا وي، ملکيت هم د هغه وي (لهذا حريم به د صاحبُ النهر وي)، نو فرمايي چي دا موږ ته تسليم نه دي، ځکه چي زموږ او د صاحبينو اختلاف د پُولي (غاړي) په هغه حصه کي نسته کومي چي اوبه راګرځولي او نيولي دي، بلکي دا اختلاف له هغه څخه په وروستنۍ حصه کي دی کومه چي د شنه کولو صلاحيت لري، او پر هغه حصې د صاحبُ النهر قبضه نسته، نو ځکه هغه حصه به د ده په ملکيت کي داخله نه وي، او که بيا هم موږ دا تسليم کړو چي په ټوله حريم او ټوله پوله (غاړه) کي اختلاف دی، نو بيا جواب دا دی چي که يو طرف ته صاحب النهر په دې حريم سره د خپل نهر اوبه راګرځولي دي، نو بل طرف ته خو صاحبُ الأرض (د ځمکي مالک) د دې نهر په حريم سره له خپلي ځمکي او کښت څخه اوبه دفع کړي دي (چي زما کښت وغيره د اوبو راتللو په وجه ضايع نه شي)، لهذا په دې سره د صاحبُ النهر استحقاق نه سي ثابتېدلای.

او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله چي دا خبره کړې وه چي په همدې وجه صاحبُ الارض دغه حريم (د نهر پوله) نه سي ماتولای چي هغه د صاحب النهر ملکيت ده، نو فرمايي د دې دا مطلب نه چي هغه د صاحب النهر ملکيت ده او هغه يې مالک دی، بلکي د نه ماتولو وجه دا ده چي د دغه حريم سره د صاحبُ النهر حق متعلق دی او د کوم شي سره چي د بل چا حق متعلق وي، نو د هغه ماتول او خرابول صحيح نه دي، د دې مثال داسي دی لکه ذ زيد پر دېوال چي د عُمر د خوني تيران پراته وي، نو که څه هم دېوال د زيد ملکيت دی. خو د عُمر د حق په وجه زيد ته دا اختيار نسته چي هغه مات کړي، نو همداسي په دې مسئله کي که څه هم صاحبُ الأرض د حريم مالک دی، خو د صاحبُ النهر د حق په

وجه هغه ته دا اختیار نسته چې دا حریم مات او لیرې کړي، خلاصه دا چې دلته پر حریم د صاحبُ النهر ملکیت نه ثابتیږي، لهذا د حریم مالک به صاحبُ الارض وي، نه صاحبُ النهر، نو د هغه په حق کې به د حریم فیصله نه کیږي.

## د پورتني موضع اختلاف (اختلافي مسئلې) وضاحت

وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ نَهْرٌ لِرَجُلٍ إِلَى جَنْبِهِ مُسَنَّاةٌ او په جامع صغیر کې دي چې د یو سړي نهر [واله] ده چې د هغه څنګ ته پوله [د نهر غاړه] ده وَلِآخَرَ خَلْفَ الْمُسَنَّاةِ أَرْضٌ تَلْزَقُهَا او د پولې شاته د بل چا ځمکه ده کوم چې د دې پولې سره متصله ده وَلَيْسَتِ الْمُسَنَّاةُ فِي يَدِ أَحَدِهِمَا او پوله د دوی یوه په قبضه کې نه ده فَهِيَ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز هغه پوله د ځمکې والا ده وَقَالَا ۞ : هِيَ لِصَاحِبِ النَّهْرِ او صاحبین رَحِمَهُمَا الله فرمایي: چې هغه د نهر والا ده حَرِيمًا لِمُلْقَى طِينِهِ وَغَيْرِ ذٰلِكَ د هغه د ختو اچولو او د نورو کارو [مثلاً د تللو وغیره] لپاره د حریم په توګه وَقَوْلُهُ "وَلَيْسَتِ الْمُسَنَّاةُ فِي يَدِ أَحَدِهِمَا" مَعْنَاهُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله د دې قول "چې پوله به د دوی یوه په قبضه کې نه وي" معنیٰ دا ده لَيْسَ لِأَحَدِهِمَا عَلَيْهِ غَرْسٌ وَلَا طِينٌ مُلْقًى چې پر پوله به د یوه درخته او اچول سوي خټې نه وي فَيَنْكَشِفُ بِهٰذَا اللَّفْظِ مَوْضِعُ الْخِلَافِ نو په همدې لفظ سره د اختلاف ځای څرګندیږي.

**اللغات:** ﴿مسناة﴾ بند، پوله (د نهر [والې] تر څنګ د نهر غاړه)، ﴿تلزق﴾ د سمع د باب مضارع ده: مښلېدل، متصل کېدل. ﴿ملقى﴾ د اسمِ ظرف صیغه ده: (د یو شي) د غورځولو ځای، د اچولو ځای. ﴿غرس﴾ د ضرب د باب اسمِ مصدر دی: غَرَسَ يَغْرِسُ غَرْسًا: درخته او بوټی شنه کول، په ځمکه کې نیالګی ایښول (نهال لګول)، الغِرْس او غَرْس: شنه کړل سوي درخته او بوټی.

**تشریح:** د جامع صغیر د روایت په بیانولو سره د مصنف رَحِمَهُ الله مقصد فقط موضع اختلاف څرګندول دي یعني دا اختلاف په هغه صورت کې دی کله چې حریم (پوله) د چا په قبضه کې نه وي، نور په دې کې هاغه خبرې دي کوم چې مخکې ذکر سوې چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د حریم مالک صاحبُ الأرض دی او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نیز صاحبُ النهر دی.

---

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، لأن قوله أرفق بالناس، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۱۲]

وقوله وليست إلخ: يعني د جامع صغير په عبارت کي چي دا قيد دی "وَلَيْسَتِ الْمُسَنَّاةُ" د دې مطلب دا دی چي د صاحبُ النهر يا صاحبُ الأرض ديوه به هم پر هغه پولي قبضه نه وي، يعني نه به پر هغه د چا درختي وي او نه ختي، نو له دې څخه معلومه سوه چي اختلاف په هغه صورت کي دی کله چي له دوی څخه ديوه د قبضې علامات ښکاره نه وي، کنې د چا د قبضې علامات چي ښکاره وي، نو بيا د پولي مالک هغه دی.

## د پورتنی مسئلې سره متعلق د اوو (۷) نورو صورتونو وضاحت (د فقهاؤ قولونه)

أَمَّا إِذَا كَانَ لِأَحَدِهِمَا عَلَيْهِ ذٰلِكَ لېکن که پر دې حريم [پوله] د دوی يوه لپاره هغه [يعني درخته يا ختې] وي [يعني ديوه په درختو يا ختو سره د حريم ځمکه مشغوله وي] فَصَاحِبُ الشُّغْلِ أَوْلٰى نو مشغوليت والا اولیٰ دی [يعني هغه د دې حريم زيات حقدار دی] لِأَنَّهُ صَاحِبُ يَدٍ ځکه هغه قبضې والا دی وَلَوْكَانَ عَلَيْهِ غَرْسٌ لَايُدْرٰى مَنْ غَرَسَهُ او که پر حريم نهال [درخته] وي خو دا معلومه نه وي چي هغه کوم يوه شنه کړې ده فَهُوَمِنْ مَوَاضِعِ الْخِلَافِ أَيْضًا نو دا هم د اختلاف له ځايو څخه دی [يعني په دې کي هم د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دی] وَثَمَرَةُ الِاخْتِلَافِ أَنَّ وِلَايَةَ الْغَرْسِ لِصَاحِبِ الْأَرْضِ عِنْدَهُ او د اختلاف ثمره دا ده چي د درختي [نهال] شنه کولو ولايت د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز ځمکي والا لره دی وَعِنْدَهُمَا لِصَاحِبِ النَّهْرِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نهر والا لره دی وَأَمَّا إِلْقَاءُ الطِّيْنِ او پاته سو ختې اچول [چي نهر والا ته د هغه حق سته، که نه؟] فَقَدْقِيْلَ: إِنَّهُ عَلَى الْخِلَافِ نو ويل سوي دي: چي دا هم پر اختلاف دي وَقِيْلَ: إِنَّ لِصَاحِبِ النَّهْرِ ذٰلِكَ مَالَمْ يَفْحُشْ او ويل سوي دي: چي نهر والا ته د هغه حق سته تر څو چي ختې ډېر زياتې نه وي وَأَمَّا الْمُرُوْرُ او پاته سو تېرېدل فَقَدْ قِيْلَ: يُمْنَعُ صَاحِبُ النَّهْرِعِنْدَهُ نو ويل سوي دي: چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز به نهر والا منع کول کيږي وَقِيْلَ: لَايُمْنَعُ او ويل سوي دي [يعني دويم قول دا دی]: چي نه به منع کول کيږي لِلضَّرُوْرَةِ د ضرورت په وجه [يعني پر حريم تېرېدلو ته يې ضرورت دی] قَالَ الْفَقِيْهُ أَبُوْجَعْفَرٍ: آخُذُ بِقَوْلِهٖ فِي الْغَرْسِ وَبِقَوْلِهِمَا فِيْ إِلْقَاءِ الطِّيْنِ فقيه ابو جعفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي زه د درختي شنه کولو په هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول اخلم او د ختو اچولو په هکله د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول ثُمَّ

عَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ حَرِيمَهُ مِقْدَارُ نِصْفِ بَطْنِ النَّهْرِ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ بيا له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي د نهر حريم به د نهر د نس په نصف مقدار سره وي له هر طرف څخه [مثلاً که د نهر نس پنځه لته وو، نو د هغه حريم به دوه نيم لته وي] وَعَنْ مُحَمَّدٍ مِقْدَارُ بَطْنِ النَّهْرِ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي د نهر د نس په مقدار سره به وي له هر طرف څخه وَهٰذَا أَرْفَقُ بِالنَّاسِ او دا د خلکو لپاره د آساني باعث دی [يعني د امام محمد رَحِمَهُ الله په قول کي د نهر والا وو لپاره زياته آساني ده].

**اللغات:** ﴿صاحب الشغل﴾ مشغوليت (مشغولتيا) والا، يعني د چا په حق سره چي دا د حريم ځمکه مشغوله وي، ﴿غرسه﴾ د ضرب د باب ماضي ده: درخته او بوټي شنه کول، نهال اينبوول. الغَرْس او غَرْس: شنه کړل سوي درخته او بوټي.

**تشريح:** په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله اووه (۷) مسئلې ذکر کړي دي:

(۱)... که د نهر پر حريم (پوله) باندي ديوه يعني د صاحبُ النهر يا صاحبُ الأرض ختې پرتې وي يا پر هغه ديوه درختي ولاړې وي، نو دا چي د کوم يوه وي، هاغه د حريم مالک دی؛ ځکه چي قبضې والا په استحقاق کي اولیٰ وي او دلته قبضې والا دا صاحبُ الشغل دی.

(۲)... د نهر پر حريم درختي ولاړي دي، خو ـ هغه شنه کونکی (لګونکی) معلوم نه دی، نو دا صورت هم اختلافي دی، د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز د حريم مالک صاحبُ الأرض دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز صاحبُ النهر دی.

(۳)... د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله د اختلاف ثمر دا ده چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز پر حريم د درختو شنه کولو حق صاحب الأرض لره دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز صاحبُ النهر لره دی.

(۴)... او پاته سوه دا مسئله چي آيا صاحب النهر ته دا حق سته چي د نهر پر پوله (غاړه) باندي د نهر ختې واچوي، که نه؟، نو په دې باره کي دوه قوله دي: ① اول قول دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز هغه ته د دې حق نسته، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز سته، ② دويم قول دا دی چي بالاتفاق هغه ته د دې حق سته چي پر دغه حريم ختې واچوي، په دې شرط چي ختې به دومره زياتې نه وي چي صاحبُ الأرض له هغه څخه نفع نه سي اخيستلای. علامه زيلعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي د حريم مالک برابره ده هر څوک وي، خو بل يو به له دومره انتفاع څخه نه منع کوي چي په هغه سره د مالک

حق نه باطلیږي، لهذا د درختو شنه کولو حق خو صرف مالک لره دی، او بل يوه ته د ختمو د اچولو حق ستته.

(۵)... او پاتته سوه د نهر پر پولي د تېرېدلو مسئله. نو په دې کې هم دوه قوله دي: ① اول قول دا دی چې د مخکنۍ مسئلې په څېر په دې کې هم اختلاف دی. ② دويم قول دا دی چې بالاتفاق به له تېرېدلو څخه نه منع کول کيږي؛ ځکه چې دې ته ضرورت ستته.

(۶)... فقيه ابو جعفر رَحِمَهُ الله فرمايي چې زه پر دواړو قولونو عمل کوم په دې توګه چې د درختو شنه کولو په هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله اختياروم او د ختمو اچولو په هکله د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول اختياروم، يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په قول د درختو شنه کولو حق فقط صاحبُ الأرض لره دی او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په قول صاحبُ النهر ته پر هغه د ختمو اچولو حق ستته.

(۷)... د نهر د حريم مقدار څو دی؟ (يا په بله وينا دا چې د والې [وِيالې] غاړه او پوله به څومره ورکول کيږي)، نو فرمايي چې په دې باره کې د امام ابو يوسف او امام محمد رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د دې حريم مقدار به د نهر د نس (يعني د نهر د پراخول) نصف اندازه وي له هر طرف څخه، يعني که د نهر (والې) نس پنځه فُټه وي، نو د حريم مقدار به دوه نيم فُټه وي (لهذا د نهر د هر طرف پولي [غاړي] ته به دوه نيم فټه ځمکه د حريم شمېرل کيږي). او د امام محمد رَحِمَهُ الله قول دا دی چې د نهر د حريم مقدار به د نهر د نس (پراخول) په اندازه وي له هر طرف څخه، صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په قول کې د نهر لرونکو خلکو آساني ده (خو فتویٰ د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله پر قول ده).

**يادونه**: زموږ په زمانه کې د غټو نهرونو او لويو والو مالک حکومت او سرکار وي او د هغوی چې کوم حريم (پوله) وي د هغه مالک هم حکومت وي، او دا غټ نهر چې د کومو خلکو د ځمکو سره تېر سوی وي، د هغو د نهر پر پوله (غاړه) هيڅ ملکيت نه وي، فقط پر هغه د تېرېدلو حق ورته وي، نه د درختو د شنه کولو، او له دې نهر څخه چې کوم لښتيان ايستل سوي وي، د هغه مالک صاحبُ الأرض دی (يعني د چا په ځمکه کې چې لښتی تېر سوی وي، هغه يې مالک دی)، خو څرنګه چې د هغه سره د بل چا (يعني د لښتي والا) حق متعلق دی، نو ځکه صاحبُ الأرض ته دا حق نسته چې هغه مات او خراب کړي، او کله چې لښتي والا خپل حقِ شرب پرېږدي، نو بيا هغه د لښتي ځای د صاحبُ الأرض په تصرّف کې راځي.

❀❀❀

# فُصُولٌ فِيْ مَسَائِلِ الشِّرْبِ

## دا څو فصلونه د شِرب (د اوبو د حصې ..) په بيان کې دي

**تشريح**: له دې ځايه مصنف رَحِمَهُ الله د اوبو په هکله او د اوبو د نوبت او حصې سره اړوند ډېر مسائل بيان کړي دي. کوم چې پر دريو (۳) فصلونو مشتمل دي.

**د شِـرْب لغوي او اصطلاحي معنیٰ**: شِرْب (بکسر الشين) د دې لغوي معنیٰ ده: النَّصِيْبُ مِنَ الْمَاءِ "د اوبو حصه" (يا په بله وينا په اوبو کې د چا حصه"). او اصطلاحي معنیٰ يې ده: نَوْبَةُ الْاِنْتِفَاعِ بِالْمَاءِ سَقْيًا لِلْمَزَارِعِ وَالدَّوَابِ. يعني د شريعت په اصطلاح کې شِرْب د اوبو څخه د نفع اخيستلو واري او نوبت ته ويل کيږي چې په هغه کې انسان خپل کښت يا څاروي ته اوبه ورکوي (يا په بله بله د کښت وغيره د اوبولو لپاره د اوبو واری).

له باب احياء الموت څخه وروسته د مسائل الشِرْب د بيانولو وجه دا ده چې په احياء الموات (يعني د شاړې ځمکې په آبادولو) کې شِرب ته ضرورت پېښيږي، لکه څرنګه چې دا ښکاره خبره ده.

صاحب د بنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چې دا فصلونه په بداية المبتدي کې مذکور نه دي، ځکه چې دا نه په جامع صغير کې ذکر سوي دي او نه په مختصر القدوري، بلکي دا فصلونه شيخ الاسلام خواهر زاده رَحِمَهُ الله په خپل شرح "کتابُ الشِرْب" کې بيا کړي دي.

### ﴿په لنډه توګه د اُوبو قسمونه﴾

د اُوبو شپږ قسمونه دي:

①... په لوښو کې ذخيره کړل سوي اوبه: دا اوبه له نورو څخه منع کولای سي.

②... د څاه اوبه: انسانان او څاروي د هغه له چيښلو څخه نه سي منع کولای، خو کښت ته د اوبه ورکولو په صورت کې منع کولای سي.

③... د لښتي اوبه: انسانان او څاروي د هغه له چيښلو څخه نه سي منع کولای، خو د کښت اوبولو په صورت کې منع کولای سي؛ ځکه چې دا اُوبه د لښتي د مالک لپاره مخصوص او محفوظ دي.

④... دلوی نهر (لويې والې) اوبه: د کښت اوبولو څخه يې نه سي منع کولای، يعني دلوی نهر اوبه چي دچا د ځمکي او کښت سره تيريږي. هغه ځمکي والا خپل کښت په اوبولای سي، دا اوبه د نهر د مالک لپاره مخصوص او محفوظ نه دي، خو له هغه څخه بل نهر يا لښتی ايستل بغير له اجازته جائز نه دي.

⑤... د فرات او داسي بل درياب (لوی رُود) اوبه: له دې اوبو څخه نهر (واله) هم ايستلای سي او تر هر ځايه پوري يې بېولای سي، د درياب او رُود اوبه د هيچا لپاره مخصوص نه دي، د هر چا حق پکښې سته.

⑥... د سمندر اوبه: دا اوبه هم د هيچا لپاره خاص نه دي، له دې څخه لوی نهر او لښتی ايستلای سي او تر هر ځايه يې بېولای سي.

**يادونه**: دا شپږ قسمه اوبه دي او شپږ قسمه احکام يې دي، تقريباً په ټوله مسائلُ الشرب کي د همدې بيان سوی دی، خو مصنف رَحِمَهُ الله په تفصيل سره خبره کړې ده.

# فَصۡلٌ فِی الۡمِیَاهِ

(دا) فصل په (بيان د) اوبو کي دی

**تشريح**: د اُوبو فصل يې ځکه تر نورو فصلونو مخکي بيان کړی دی، چي د دې ټولو فصلونو مقصد اوبه دي او همدا اُوبه اصل دي.

## د اوبو منع کولو حکم

| |
|---|
| وَإِذَا كَانَ لِرَجُلٍ نَهْرٌ أَوْ بِئْرٌ أَوْ قَنَاةٌ او کله چي يو سړي لره نهر [واله] يا څاه يا کاريز وي فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَمْنَعَ شَيْئًا مِنَ الشَّفَةِ نو هغه ته دا حق نسته چي د خولې له چيښلو څخه يو شی منع کړي [يعني دا اختيار ورته نسته چي کوم څه چيښل کوي، هغه له چيښلو څخه منع کړي چي هغه انسانان او څاروبان دي] وَالشَّفَةُ الشُّرْبُ لِبَنِي آدَمَ وَالْبَهَائِمِ او شَفَة چيښل دي د انسان يا څاروبانو [يعني شفه د انسان يا څاروي لوبه چيښلو ته وايي]. |

**اللغات**: ﴿شفة﴾ په اصل کي شَفَهَةٌ وو، تخفيفاً هاء حذف سوې ده. د دې لفظ معنیٰ ده: شونډه (مجازاً خوله)، ليکن له دې څخه مراد د څارويو او انسانانو اوبه چيښل دي، يا په بله وينا دا چي "شَفَة" چيښلو ته وايي، ځکه چي اوبه د شونډانو او د خولې د لاري چيښل کيږي. ﴿بهائم﴾ جمع د بَهِيمَةٌ

ده: چارپایان، څارویان، صاحب د معجم الوسیط یې داسې تعریف کړی دی: " كُلُّ ذَاتِ أَرْبَعِ قَوَائِم من دَوَابِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ مَا عَدا السِّبَاع".

**تشریح : صورت د مسئلې:** دا دی که دیو چا په ملکیت کې نهر یا څاه، یا کاریز وي، چې خلک او څارویان د هغه اوبو ته مجبوره وي، نو مالک ته پکار دي چې هغه نه له انسانانو څخه منع کړي او نه له څارویانو څخه، ځکه د چینبلو په اعتبار سره په دې کې د ټولو اشتراک ستته. او له چینبلو څخه منع کول ډېر ناوړه عمل دی او د انسان غټ بخل او لويه بد اخلاقي ده (اللهم احفظنا منهٔ).

## د اوبو اقسام (اول قسم)

اعْلَمْ أَنَّ الْمِيَاهَ أَنْوَاعٌ پوه سه! چې اوبه څو قسمه دي مِنْهَا مَاءُ الْبِحَارِ له هغوی څخه [يو قسم] د سمندر اوبه ده وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنَ النَّاسِ فِيهَا حَقُّ الشَّفَةِ وَسَقْيِ الْأَرَاضِيْ او په دې اوبو کې د خلکو هر کس ته د چینبلو او د ځمکو اوبولو حق ستته حَتَّىٰ إِنَّ مَنْ أَرَادَ أَنْ يَكْرِيَ نَهْرًا مِنْهَا إِلَىٰ أَرْضِهِ تر دې که څوک وغواړي چې له هغوی څخه تر خپلې ځمکې پورې نهر وکيندي لَمْ يُمْنَعْ مِنْ ذٰلِكَ نو هغه به له دې څخه نه منع کول کیږي وَالِانْتِفَاعُ بِمَاءِ الْبَحْرِ كَالِانْتِفَاعِ بِالشَّمْسِ وَالْقَمَرِ وَالْهَوَاءِ او د سمندر د اوبو څخه نفع اخيستل داسې دي لکه د لمر، سپوږمۍ او هوا څخه نفع اخيستل فَلَا يُمْنَعُ مِنَ الِانْتِفَاعِ بِهِ نو ځکه هغه به د دې له نفع اخيستو څخه نه منع کول کیږي عَلَىٰ أَيِّ وَجْهٍ شَاءَ په کومه توګه چې د هغه خوښه وي [يعني په هر ډول چې نفع ځني اخلي، نه به منع کول کیږي].

**اللغات:** ﴿مياه﴾ جمع د مَاءٌ ده: مختلفه اوبه. ﴿يكرى﴾ د ضرب د باب مضارع ده: کيندل، کښل (کارېل).

**تشریح : صورت د مسئلې:** دا دی چې له سمندري اوبو څخه هر چا ته هر ډول نفع اخيستل جائز دي، برابره د چښاک نفع ځني اخلي، یا د کښت او باغ اوبولو کار ځني اخلي، یا خپل کښت او باغ ته مستقل نهر (واله) ځني باسي، لندا دا چې په هيڅ صورت کې به هيڅ څوک هم له دې څخه نه منع کول کیږي چې د سمندر له اوبو څخه نفع واخلي، بلکې هغه چې څرنګه وغواړي استفاده ځني کولای سي؛ ځکه د سمندر اوبه د خدای تعالیٰ په نعمتِ عامه کې داخل دي، او څرنګه چې لمر، سپوږمۍ او هوا د الله تعالیٰ عام نعمتونه دي او د هغوی فيض هر ساکښ لره عالم دی، برابره ده انسان وي، که حيوان، همداسې سمندري اوبه د ټولو لپاره عام دي چې د هغه په اخيستلو او کارولو باندې به هيڅ بنديز نه کیږي.

## د اوبو دویم قسم

وَالثَّانِيْ مَاءُ الْأَوْدِيَةِ الْعِظَامِ او دویم قسم د لويو رُودونو اوبه دي كَجَيْحُونَ وَسَيْحُونَ وَدِجْلَةَ وَالْفُرَاتِ لكه د جيحون، سيحون، دجله او فرات اوبه لِلنَّاسِ فِيْهِ حَقُّ الشَّفَةِ عَلَى الْإِطْلَاقِ د خلكو په هغوى كي د مطلق څيښلو حق سته وَحَقُّ سَقْيِ الْأَرَاضِيْ بِأَنْ أَحْيٰى وَاحِدٌ أَرْضًا مَيْتَةً او د ځمكو د اوبولو حق په دې توګه دی چي كه څوک شاړه ځمكه آباده کړي وَكَرٰى مِنْهُ نَهْرًا لِيَسْقِيَهَا او له هغوى څخه يو نهر وكيندي چي دا ځمكه اوبه کړي إِنْ كَانَ لَا يَضُرُّ بِالْعَامَّةِ وَلَا يَكُوْنُ النَّهْرُ فِيْ مِلْكِ أَحَدٍ نو كه د هغه دا فعل عامو خلكو ته ضرر [تاوان] نه رسوي او نهر د چا په ملكيت كي كي نه وي لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې [نهر كيندلو] حق سته لِأَنَّهَا مُبَاحَةٌ فِي الْأَصْلِ ځكه چي دا [رُرودونه] په اصل كي مباح [روا] دي إِذْ قَهْرُ الْمَاءِ يَدْفَعُ قَهْرَ غَيْرِهِ ځكه د اوبو غلبه د بل چا غلبه ختموي وَإِنْ كَانَ يَضُرُّ بِالْعَامَّةِ او كه د هغه كس دا فعل عامو خلكو ته ضرر رسوي فَلَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې حق نسته لِأَنَّ دَفْعَ الضَّرَرِ عَنْهُمْ وَاجِبٌ ځكه چي له عوامو څه ضرر دفع كول واجب دي وَذٰلِكَ فِيْ أَنْ يَمِيْلَ الْمَاءُ إِلٰى هٰذَا الْجَانِبِ إِذَا انْكَسَرَتْ ضِفَّتُهُ او ضرر په هغه صورت كي دی چي اوبه و دې طرف ته ميلان وکړي [وبهيږي] كله چي د رُود څنډه [غاړه] ماته سي [يعني ضرر هلته پېښيږي كله چي د دې كيندل سوي نهر وطرف ته د رُود څنډه او ژۍ ماته سي او پر هغه طرف د رُود اوبه ووځي] فَيُغْرِقَ الْقُرٰى وَالْأَرَاضِيَ نو كلي [علاقې] او ځمكې غرقي کړي وَعَلٰى هٰذَا نَصْبُ الرَّحٰى عَلَيْهِ او پر همدې حكم دي پر نهر د اوبو ژرنده درول لِأَنَّ شَقَّ النَّهْرِ لِلرَّحٰى كَشَقِّهِ لِلسَّقْيِ بِهِ ځكه د ژرندي لپاره نهر څیرل داسي دي لكه [د كښت وغيره] د اُوبولو لپاره هغه څيرل.

**اللغات**: ﴿أودية﴾ جمع د وَادِيٌ ده: شله (شېله)، رُود، مراد: لوی رُود، الـوَادِي: كُل منفرج بَين الجِبَال والتلال والآكام يجري فيه السَّيل، ﴿ضفة﴾ د نهر او داسي نورو غاړه، څنډه، ژۍ، كناره، ﴿قرى﴾ جمع د قَرْيَةٌ ده: لوی كلی، سيمه او علاقه، ﴿الرحٰى﴾ ژرنده، ﴿شق﴾ د نصر د باب مصدر دی: څیرل.

**تشریح : صورت د مسئلې**: دا دی چې د اوبو دوېیم قسم د لويو رُودونو او دریابونو اوبه دي لکه دریاب دجله وغیره (علامه عینې رَحِمَهُ الله په دې کې څه خبر کړې ده، خو خیر) د داسي اوبو په هکله د خلکو د حقوقو تفصیل دا دی چې له داسې رُود او دریاب څخه هر چا ته د څښلو حق ستته، او پاته سو په هغه سره د کښت اوبولو او له هغه څخه د نهر او لښتي ایستلو مسئله، نو د هغه حکم دا دی چې که له داسي رُود او دریاب څخه اوبه رایستل او نهر کیندل د عوامُ الناس لپاره مُضِر وي (یعني په دې سره خلکو ته څه ضرر او تاوان رسیږي)، یا نهر د یو چا په ځمکه کې کیندل کیږي، نو په دې صورت کې ذ دغه رُود په اوبو سره نه ځمکه اوبول جائز دي، او نه نهر کیندل؛ ځکه کیدای سي چې په نهر کیندلو سره د رُود غاړه (څنډه) ماته سي او اوبه یې د شاوخوا علاقو ته تاوان ورسوي، نو ځکه دا جائز نه دي. او که چیري دا فعل د خلکو لپاره مُضر نه وي او نهر د بل چا په ځمکه کې نه کیندل کیږي، نو په داسي صورت کې په هغه سره د کښت اوبول او نهر څخني ایستل جائز دي.

وعلى هذا إلخ: فرمایي که څوک د داسي رُود او دریاب پر غاړه د اوبو ژرنده لګول غواړي، نو په دې کې هم پورتني تفصیل دی، یعني که مُضر نه وي جائز دي، او که مُضر وي، نو جائز نه دي او له دې څخه به منع کول کیږي.

### د اوبو درېیم قسم

| |
|---|
| وَالثَّالِثُ إِذَا دَخَلَ الْمَاءُ فِي الْمَقَاسِمِ او درېیم قسم دا دی چې کله اوبه په تقسیمونو [او نوبت] کې داخلې سي [واری پکښې وتاکل سي] فَحَقُّ الشَّفَةِ ثَابِتٌ نو د څښلو حق ثابت دی وَالْأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] «النَّاسُ شُرَكَاءُ فِي ثَلَاثٍ: الْمَاءِ وَالْكَلَإِ وَالنَّارِ» او اصل په دې باره کې د نبي ﷺ دا فرمان دی: چې خلک په دريو شیانو کې شریکان دي: اُوبه، واښه او اُور وَأَنَّهُ يَنْتَظِمُ الشِّرْبَ وَالشُّرْبَ او دا حدیث شِرب [د کښت وغیره اوبولو] او شُرب [د څښلو اوبو] دواړو لره شامل دی خُصَّ مِنْهُ الْأَوَّلُ لیکن له دې څخه اول [یعني شِرب] خاص کړی سوی دی وَبَقِيَ الثَّانِي. او دوېیم [شُرب] پاته دی وَهُوَ الشَّفَةُ او هغه [دخولها] څښل دي وَلِأَنَّ الْبِئْرَ وَنَحْوَهَا مَا وُضِعَ لِلْإِحْرَازِ او ځکه چې څاه او داسي نور د احراز کولو [خوندي کولو] لپاره نه دي وضع سوي وَلَا يُمْلَكُ الْمُبَاحُ بِدُونِهِ او له احراز |

[1] تخريج: رواه ابو داؤد، باب في منع الماء، ص:۵۰۲، حديث رقم:۳۴۷۷، وابن ماجة، باب المسلمون شركاء في الثلاث، ص:۳۵۴، حديث رقم:۲۴۷۲.

[خوندي کولو] څخه بغير مباح شی په ملکيت نه داخليږي كَالْقَبْي إِذَا تَكَنَّسَ فِي أَرْضِهِ لکه هوسۍ چې ديو حا په ځمکه کي ځای جوړ کړي وَلِأَنَّ فِي إِبْقَاءِ الشَّفَةِ ضَرُورَةً او ځکه چې د چيښلو په [جائز] پاته کولو کي ضرورت دی لِأَنَّ الْإِنْسَانَ لَا يُمْكِنُهُ اسْتِصْحَابُ الْمَاءِ إِلَى كُلِّ مَكَانٍ ځکه انسان لره هر ځای د ځان سره اوبه ساتل ممکن نه دي وَهُوَ مُحْتَاجٌ إِلَيْهِ لِنَفْسِهِ وَظَهْرِهِ حال دا چې هغه د خپل ځان او خپل سپارلي لپاره اُوبو ته مجبوره دی فَلَوْ مُنِعَ عَنْهُ نو که هغه له اوبو څخه منع کړی سي أَفْضَى إِلَى حَرَجٍ عَظِيمٍ نو دا به د غټ تکليف سبب وګرځي وَإِنْ أَرَادَ رَجُلٌ أَنْ يَسْقِيَ بِذَلِكَ أَرْضًا أَحْيَاهَا او که يو سړی وغواړي چې په دې اُوبو سره هغه ځمکه اوبه کړي کوم چې يې آباده کړې ده كَانَ لِأَهْلِ النَّهْرِ أَنْ يَمْنَعُوهُ عَنْهُ نو نهر والا وو ته دا حق سته چې هغه له دې څخه منع کړي أَضَرَّ بِهِمْ أَوْ لَمْ يَضُرَّ برابره ده دا [يعني د هغه سړي دا فعل] هغو ته ضرر رسوي او که يې نه رسوي [په دواړو صورتونو کي دوی ته جائز دي چې هغه منع کړي] لِأَنَّهُ حَقٌّ خَاصٌّ لَهُمْ ځکه چې دا [نهر] د دوی لپاره مخصوص حق دی وَلَا ضَرُورَةَ او [د مباح کولو] ضرورت هم نسته وَلِأَنَّا لَوْ أَبَحْنَا ذَلِكَ او ځکه چې که موږ دا مباح وګرځوو لَانْقَطَعَتْ مَنْفَعَةُ الشُّرْبِ نو د چيښلو منفعت به ختم سي.

**اللغات:** ﴿كلأ﴾ وابنه (د څارويو د خوړلو وابنه)، ﴿إحراز﴾ د افعال د مصدر دی: حفاظت کول، خوندي کول، ذخيره کول. ﴿شُرْب﴾ د سمع د باب مصدر دی: چيښل، مراد: د چيښلو اوبه. ﴿شِرْب﴾ د اوبو واری او نوبت، د ابو حصه، مراد ځني د کښت وغيره اوبول (سيراوبول)، او د کښت وغيره د اوبه کولو اوبه دي. ﴿تكنس﴾ د تفعّل ماضي ده: ځای جوړول، پناه ګاه جوړول (د هوسۍ لپاره استعماليږي)، هوسۍ په خپل ځای کي داخليدل. ﴿أبحنا﴾ د افعال له بابه د جمع متکلم ماضي صيغه ده: مباح کول، روا کول (روا ګرځول).

**تشريح:** په دې عبارت کي د اوبو دريم قسم بيان سوی دی. حاصل يې دا دی چې که د څاه، نهر، حوض وغيره اوبه تقسيم کړل سي او د اوبو لپاره نوبت وټاکل سي (چې مثلاً سهار به يې زيد استعمالوي او مابنام به يې خالد استعمالوي)، نو هر يو به په خپل نوبت او حصه کي څوک له چيښلو څخه نه منع کوي، خو د ځمکي له اُوبولو څخه به يې منع کوي؛ ځکه په حديث کي ذکر سوي دي چې "خلګ په دريو شيانو کي سره شريکان دي: ① اُوبه، ② اُور، ③ وابنه.

وأنه ينتظم إلخ: يعني دا حديث (چي لفظ د اُوبو پکښي راغلی دی) شِرب او شُرب دواړو لره عام دی (چي د دواړو معنیٰ مو په لغاتو کي ذکر کړه)، يعني د حديث تقاضا خو دا وه چي د شُرب (چيښلو) په څېر به په شِرب (يعني د ځمکي او کښت په اوبولو) کي هم شرکت وي، خو شِرب بالاجماع له دې څخه خاص او جلا کړی سو (چي په هغه کي ضرر دی)، نو فقط شُرب باقي پاته سو.

ولأن البئر إلخ: په دې هکله عقلي دليل دا دی چي په څاه، حوض وغيره کي چي کومي اوبه دي هغه د إحراز لپاره نه دي، بلکي مباح الأصل دي، او د مباح الأصل حکم دا دی چي هر چا ته د هغه استعمالول جائز دي او پر چا هيڅ پابندي نسته، لهذا په صورت مسئله کي به هم د څاه وغيره اوبه چيښل د هر چا لپاره جائز وي. د دې مثال داسي دی لکه هوسی چي ديو چا په ځمکه کي خپل ځای جوړ کړي، نو تر څو چي د ځمکي مالک هغه هوسی نه ونيسي او خوندي يې نه کړي، تر هغه وخته هوسی مباح الأصل ده چي هر څوک يې نيولای سي، ها! کله چي يې ونيسي، نو د احراز موجودېدلو په وجه هغه د دې مالک کيږي، همداسي د څاه اوبه چي تر څو په څاه کي وي، مباح او روا دي او د څاه والا په ملکيت کي نه دي، نو ځکه دا حق ورته نسته چي له چيښلو يې څخه منع کړي.

ولأن إلخ: درېيم دليل دا دی چي اوبو ته د هر چا ضرورت سته او له اوبو څخه بغير انساني ژوند نا شونی دی، او څرنګه چي انسان هر وخت د ځان سره اوبه نه سي ګرځولی، نو که هغه له اوبو څخه منع کړل سي، نو حرج عظيم به لازم سي، والحرج مدفوع في شريعتنا.

فإن أراد إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله په اوبو کي واری او نوبت وتاکل سي، تر دې وروسته که يو بل سړی په دې اُوبو سره د خپل هغه ځمکي اوبول غواړي کوم چي يې آباده کړې وي، نو د نهر خلګو ته (يعني د کومي والې د لاري چي هغه سړی د ځمکي اوبول غواړي، د هغه والې خلګو ته) دا حق سته چي هغه منع کړي، برابر ده هغو ته د سړي دا فعل تاوان کوي، که يې نه کوي؛ ځکه چي دا د هغو خپل مخصوص حق دی او څه داسيٰ ضرورت هم نسته چي د هغه په وجه د اوبو مباح کول ضروري سي لکه د چيښلو ضرورت. همدارنګه که د دې اجازت ورکول سي، نو د شُرب (چيښلو) منفعت به فوت سي.

## د اوبو څلورم قسم

وَالرَّابِعُ الْمَاءُ الْمُحْرَزُ فِي الْأَوَانِيْ او څلورم قسم هغه اوبه دي چي په لوښو کي خوندي کړل سوي وي وَأَنَّهُ صَارَ مَمْلُوْكًا لَهُ بِالْإِحْرَازِ او هغوی د خوندي کولو [ذخیره کولو] په وجه د خوندي کونکي مملوک ګرځېدلي دي وَانْقَطَعَ حَقُّ غَيْرِهِ عَنْهُ او له هغوی څخه د بل چا حق ختم سوی دی كَمَا فِي الصَّيْدِ الْمَأْخُوْذِ لکه په نیول سوي ښکار کي إِلَّا أَنَّهُ بَقِيَتْ فِيْهِ شُبْهَةُ الشِّرْكَةِ خو په هغوی کي د شرکت [اشتراک] شبهه پاته ده نَظَرًا إِلَى الدَّلِيْلِ د دلیل وطرف ته په کتلو سره وَهُوَ مَا رَوَيْنَا او دلیل هغه حدیث دی کوم چي موږ روایت کړی حَتّٰى لَوْ سَرَقَهُ إِنْسَانٌ فِيْ مَوْضِعٍ يَعِزُّ وُجُوْدُهُ همدا وجه ده که دغه اوبه انسان په داسي ځای کي غلا کړي چي هلته د اوبو پیدا کېدل مشکل وي وَهُوَ يُسَاوِيْ نِصَابًا او هغه غلا کړل سوي اوبه [د سرقې] د نصاب برابري وي لَمْ تُقْطَعْ يَدُهُ نو [هم] به د هغه لاس نه پرېکول کیږي.

**اللغات**: ﴿مُحرَز﴾ د افعال د باب مفعول دی: خوندي کړل سوي، ذخیره کړل سوي. ﴿یعز﴾ د ضرب د باب مضارع ده. د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه دوې دا دي: ① سختېدل، مشکل کېدل. ② د یو شي کمېدل چي پیدا کېدل یې مشکل وي، کمیابه کېدل، یا په بله وینا کختېدل.

**تشریح**: فرمایي د اوبو څلورم قسم "ماء محرز" (خوندي کړل سوي اوبه) دي. یعني هغه اوبه چي په لوښو کي ساتل سوي او ذخیره سوي وي، د داسي اوبو حکم دا دی چي دا د هغه چا په ملکیت کي دي. چا چي خوندي کړي وي او د نورو خلکو حق پکښي نسته، یعني د هغو لپاره نه د دې چینبل جائز دي او نه یې بل ځای کارول جائز دي. لکه د ښکار جیوان چي تر څو د چا په قبضه کي نه وي. تر هغه وخته پوري څو مباح الأصل وي، لېکن کله چي څوک هغه ونیسي، نو بیا د نورو حق له هغه څخه منقطع کیږي.

خو مخکینی حدیث "النَّاسُ شُرَكَاءُ فِيْ ثَلَاثٍ إلخ" ته په کتلو سره چي څرنګه په داسي اوبو کي هم د بل چا د حق او ملکیت شبهه سته. نو ځکه که بل څوک په یو داسي ځای کي هم "ماء محرز" غلا کړي چي هلته اوبه ډېر په مشکله پیدا کیږي، نو هم به د هغه لاس نه پرېکول کیږي، که څه هم دا اوبه د "نصاب سرقه" په اندازه وي یعني د لسو درهمو وي؛ ځکه د مخکیني حدیث په وجه په

هغوی کې د شرکت او استحقاق شبهه موجوده ده، او د شبهې په وجه حدّ ساقطیږي. لکه څرنګه چې دا د فقهي مشهوره قاعده ده چې "الحُدود تندرئ بالشُبهات".

## د مملوکه ځمکې د څاه، نهر وغیره د اوبو استعمالولو حق

وَلَوْكَانَ الْبِئْرُ أَوِ الْعَيْنُ أَوِ الْحَوْضُ أَوِ النَّهْرُ فِيْ مِلْكِ رَجُلٍ او که د یو سړي په ملکیت کې څاه یا چینه یا حوض یا نهر [واله] وي لَهُ أَنْ يَمْنَعَ مَنْ يُرِيْدُ الشَّفَةَ مِنَ الدُّخُولِ فِيْ مِلْكِهِ نو ده ته دا حق سته چې کوم څوک د اوبو چیښلو اراده لري هغه خپل ملکیت ته له داخلیدلو څخه منع کړي إِذَا كَانَ يَجِدُ مَاءً آخَرَ يَقْرُبُ مِنْ هٰذَا الْمَاءِ فِيْ غَيْرِ مِلْكِ أَحَدٍ په دې شرط کله چې هغه [داوبو طلب کونکی] دغه اوبو ته نژدې نورې داسې اوبه موندلای سي کوم چې د هیچا په ملکیت کې نه وي وَإِنْ كَانَ لَا يَجِدُ او که هغه نورې اوبه نه سي پیدا کولای يُقَالُ لِصَاحِبِ النَّهْرِ: إِمَّا أَنْ تُعْطِيَهُ الشَّفَةَ نو د نهر والا [د نهر، څاه وغیره مالک] ته به ویل کیږي چې: یا ته هغه ته د چیښلو اوبه ورکړه! أَوْ تَتْرُكَهُ يَأْخُذُ بِنَفْسِهِ بِشَرْطِ أَنْ لَا يَكْسِرَ ضِفَّتَهُ یا هغه پرېږده! چې خپله اوبه واخلي په دې شرط چې د نهر غاړه [څنډه] به نه ماتوي وَهٰذَا مَرْوِيٌّ عَنِ الطَّحَاوِيِّ او دا له امام طحاوي رَحِمَهُ الله څخه روایت سوی دی وَقِيْلَ: مَا قَالَهُ صَحِيْحٌ فِيْمَا إِذَا احْتَفَرَ فِيْ أَرْضٍ مَمْلُوْكَةٍ لَهُ او ویل سوي دي: چې کوم څه امام طحاوي رَحِمَهُ الله ویلي دي دا په هغه صورت کې صحیح دي کله چې ده په خپل مملوکه ځمکه کې نهر [وغیره] کیندلی وي أَمَّا إِذَا احْتَفَرَهَا فِيْ أَرْضٍ مَوَاتٍ خو که په شاړه غیر مملوکه ځمکه یې کې هغه کیندلی وي فَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَمْنَعَهُ نو بیا ده ته حق نسته چې هغه منع کړي لِأَنَّ الْمَوَاتَ كَانَ مُشْتَرَكًا ځکه چې شاړه ځمکه مشترکه وي وَالْحَفْرُ لِإِحْيَاءِ حَقٍّ مُشْتَرَكٍ او [په شاړه ځمکه کې] کیندل [ګواکې] د مشترک حق د ژوندي کولو لپاره دي فَلَا يَقْطَعُ الشِّرْكَةَ فِي الشَّفَةِ نو ځکه دا کیندل د چیښلو شرکت نه ختموي [یا په بله وینا دا: نو ځکه دلته د څاه کیندلو په وجه د اوبو چیښلو شرکت نه ختمیږي].

**اللغات:** ﴿ضفة﴾ د نهر (والې) غاړه، څنډه، ړی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که د یو چا په ملکیت کې نهر، یا څاه، یا حوض، یا د اوبو چینه وي، او ده په خپل ملکیت کې هغه کیندلي وي، نو ده ته دا حق سته چې نور خلک خپل مملوکه

ځمکي ته له راتګ او د دې نهر، څاه وغيره داوبو له چينبلو څخه يې منع کړي، په دې شرط چې هغه ته نژدې په غير مملوکه ځمکه او نهر کي اوبه ترلاسه کېدلای سي، لېکن که د هغه نهر وغيره سره شا وخوا داوبو چينبلو بله هيڅ ذريعه نه وي او يو کس چينبلو ته مجبوره وي، نو د نهر مالک ته به ويل کيږي چې يا ته خپله دغه تږي کس ته اوبه راوړه يا و هغه ته اجازت ورکړه چې داوبو چينبلو لپاره ستا ملکيت او ځمکي ته داخل سي او دا شرط پر ولګوه چې ستا هيڅ شي ته به هغه تاوان نه رسوي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې دا د امام طحاوي رَحِمَهُ الله بيانْ کرده قول دی او په هغه صورت کي صحيح دی کله چې نهر، څاه، چينه وغيره يو چا په خپل ملکيت کي کيندلی وي. لکه په شروع کي چې مونږ وويل، لېکن که هغه په ارض موات کي نهر وغيره کيندلي وي. نو په دې صورت کي هغه ته دا حق نسته چې اوبو ته مجبوره کس منع کړي، ځکه موات مُشترک حق ده او په هغې کي په څاه کيندلو سره د مشترک حق احياء سوې ده. لهذا په دې احياء سره د نورو خلکو داوبو چينبلو استحقاق نه ختميږي، بلکي هر چا ته به په دې ځمکه کي دداخلېدلو او اوبو چينبلو اجازه وي. (احسن الهدايه)

## تږي او مجبوره کس ته په زوره داوبو اخيستلو حکم

وَلَوْ مَنَعَهُ عَنْ ذٰلِكَ او که نهر والا هغه [د اوبو طلب کونکی] له دې څخه منع کړي وَهُوَ يَخَافُ عَلٰى نَفْسِهٖ أَوْ ظَهْرِهِ الْعَطَشَ په داسي حال کي چې هغه پر خپل ځان يا پر خپل سپارلي [ څاروي] له تندي څخه بيريږي لَهُ أَنْ يُقَاتِلَهُ بِالسِّلَاحِ نو هغه ته دا اختيار سته چې د نهر والا سره په وسله وجنګيږي لِأَنَّهُ قَصَدَ إِتْلَافَهُ بِمَنْعِ حَقِّهِ ځکه چې نهر والا د هغه د هلاکولو اراده کړې ده د هغه د حق په منع کولو سره وَهُوَ الشَّفَةُ او د هغه حق چينبل دي وَالْمَاءُ فِي الْبِئْرِ مُبَاحٌ غَيْرُ مَمْلُوكٍ او اوبه په څاه کي مباح [روا] دي او د چا په ملکيت کي داخله نه دي بِخِلَافِ الْمَاءِ الْمُحْرَزِ فِي الْإِنَاءِ په خلاف د هغه اُوبو چې په لوښي کي خوندي کړل سوي وي حَيْثُ يُقَاتِلُهُ بِغَيْرِ السِّلَاحِ چې د هغه سره به بغير له وسلې جنګيږي لِأَنَّهُ قَدْ مَلَكَهُ ځکه چې هغه د دې اوبو مالک سوی دی وَكَذَا الطَّعَامُ عِنْدَ إِصَابَةِ الْمَخْمَصَةِ او همدارنګه د مخمصې [سختي لوږې] په حالت کي د خوراک هم دغه حکم دی وَقِيلَ: فِي الْبِئْرِ وَنَحْوِهَا الْأَوْلٰى أَنْ يُقَاتِلَهُ بِغَيْرِ السِّلَاحِ بِعَصًا او ويل سوي دي: چې په څاه او داسي نورو [نهر وغيره] کي غوره دا ده چې بغير له وسلې په لکړه [دانګ او لرګي] ور سره وجنګيږي لِأَنَّهُ اِرْتَكَبَ

مَعْصِيَةً ځکه چي هغه ديو معصيت ارتکاب کړی دی فَقَامَ ذٰلِكَ مَقَامَ التَّعْزِيْرِ لَهُ نو دا به د هغه لپاره د تعزير قائم مقام سي.

**اللغات**: ﴿ظهر﴾ مراد ځني سپارلی (د سپرېدلو څاروی) دی. ﴿عطش﴾ تنده، تږي والی. ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی. د دې باب يوه معنیٰ ده: هلاکول. ﴿مخمصة﴾ سخته لوږه. صاحب د معجم الوسيط يې داسي تعريف کړی دی: "المَخْمَصَةُ: اِسْمٌ بِمَعْنَى المَجَاعَةِ...إلخ" (المعجم الوسيط: ۲۵۶).
﴿ارتکب﴾ يو جرم او ګناه کول. ﴿معصية﴾ نافرماني، ګناه. ﴿تعزير﴾ د دې لفظ اصل معنیٰ ده: منع کول، ملامتول. په اصطلاح کي هغه سزا ته وايي کوم چي له حدّ څخه کمه وي، او دې ته تعزير ځکه وايي چي مجرم له دوباره جرم کولو څخه منع کوي

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د اوبو مالک له اوبو ورکولو څخه منع وکړي، او هغه (د اوبو طلبګار) ته دا خطره وي چي زه يا زما سپارلی به له تندي هلاک سي، او د اوبو مالک نه اوبه ورکوي او نه يې خپل څاه وغيره ته پرېږدي، او نه نژدې بل ځای اوبه وي. نو ده ته دا حق سته چي د اوبو د مالک سره په وسله وجنګيږي او ښه لاندي باندي يې وخړپوي چي د مور رودلي په قی کړي، ځکه په داسي خطرناک حالت کي د ده د حق په منع کولو سره هغه ګواکي د ده د هلاکولو اراده کړې ده. نو ځکه د هغه سره به د هلاکولو په څېر معامله کيږي، او د ده حق اوبه چيښل دي، ځکه اوبه چي تر څو په څاه وغيره کي وي، هغه يې مالک نه دی.

او که داغه پورتنی صورت وي خو اوبه په لوښو کي خوندي کړل سوي وي، نو د اوبو والا د انکار کولو په صورت کي ده ته حق سته چي د هغه سره وجنګيږي، خو بغير له وسلې، ځکه دلته د اوبو والا د احراز (خوندي کولو) په وجه يقيناً د اوبو مالک سوی دی، لهذا د هغه جرم د څاه وغيره والا څخه کم دی، نو له سُوک، چپلاخي او لغتي څخه به کار اخيستل کيږي. او په اولني صورت کي په وسله سره د جنګېدلو په هکله د حضرت عمر رضي الله عنه اثر موجود دی.

وكذا الطعام إلخ: فرمايي کوم حکم چي د اوبو دی، هاغه د خوراک هم دی چي که څوک ډېر سخت وږی وي او د خوراک نه خوړلو په صورت کي يې د هلاکېدلو خطره وي، او د چا سره چي خوراک موجود وي، هغه يې ورکولو ته تيار نه وي، نو هغه به هم ډبوي او په زوره جبراً به خوراک ځني اخيستل کيږي.

وقيل إلخ: د دې حاصل دا دی چي په اولني صورت کي د اوبو د مالک د انکار کولو په صورت کي چي د هغه سره د قتال بالسلاح حکم سوی دی، د هغه په باره کي بل قول دا د... چي په دې صورت کي

غوره دا ده چي د وسلې پر ځای له ډانګ اولرګي څخه کار واخیستل سي او وسله استعمال نه سي؛ ځکه چي د اوبو منع کونکی دیوې ګناه ارتکاب کوی، او د ګناه مرتکب د تعزیر مستحق دی یعني د زجر و توبیخ لپاره به هغه ته سزا ورکول کیږي، نو په ډانګ او لرګي سره جنګ کول به د هغه په حق کي د تعزیر قائم مقام سي، او په ډانګ د هغه خړپول د تعزیر لپاره کافي او وافي دي.

## د اوبو ختمېدلو د اندېښنې په صورت کي د اوبو منع کولو حکم

وَالشَّفَةُ إِذَا كَانَ يَأْتِي عَلَى الْمَاءِ كُلِّهِ او اوبه چیښل چي کله ټوله اوبه ختموي بِأَنْ كَانَ جَدْوَلًا صَغِيرًا په دې توګه چي یو کوچنی لښتی وي وَفِيمَا يَرِدُ مِنَ الْإِبِلِ وَالْمَوَاشِي كَثْرَةٌ يَنْقَطِعُ الْمَاءُ بِشُرْبِهَا او په اوښانو او څارویانو کي دومره ډېرښت وي چي د هغوی په چیښلو سره اوبه ختمیږي قِيلَ: لَا يَمْنَعُ مِنْهُ نو ویل سوي دي: چي هغه [د اوبو مالک] به له دې څخه منع نه کوي لِأَنَّ الْإِبِلَ لَا تَرِدُهُ فِي كُلِّ وَقْتٍ ځکه چي اوښان هر وخت نه ورته راځي وَصَارَ كَالْمُيَاوَمَةِ نو دا د ورځني نوبت ټاکلو په څېر سو [چي یوه ورځ به اوبه زما وي او بله ورځ به د څارویانو غیره وي] وَهُوَ سَبِيلٌ فِي قِسْمَةِ الشِّرْبِ او دا د شرب د تقسیم یو طریقه ده وَقِيلَ: لَهُ أَنْ يَمْنَعَ او ویل سوي دي: چي هغه ته دا اختیار سته چي منع وکړي اِعْتِبَارًا بِسَقْيِ الْمَزَارِعِ وَالْمَشَاجِرِ په قیاس کولو سره د کښتونو او درختو پر اوبه کولو وَالْجَامِعُ تَفْوِيتُ حَقِّهِ او [د قیاس] علت جامعه د هغه د حق فوتول دي

وَلَهُمْ أَنْ يَأْخُذُوا الْمَاءَ مِنْهُ لِلْوُضُوءِ وَغَسْلِ الثِّيَابِ او خلکو ته دا حق سته چي له دې لښتي څخه د اوداسه او د کپړو پرېولو لپاره اوبه واخلي فِي الصَّحِيحِ د صحیح قول مطابق لِأَنَّ الْأَمْرَ بِالْوُضُوءِ وَالْغَسْلِ فِيهِ كَمَا قِيلَ يُؤَدِّي إِلَى الْحَرَجِ ځکه چي په لښتي کي د اودس کولو او د کپړو پرېولو حکم کول لکه څرنګه چي ویل سوي دي د حرج سبب ګرځي وَهُوَ مَدْفُوعٌ او حرج [په شریعت کي] لیري کړی سوی دی.

**اللغات**: ﴿جدول﴾ لښتی، کوچنی واله ﴿میاومة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: روازنه یو معامله کول، ورځنی نوبت ټاکل.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که څوک لوی نهر، ځاه وغیره نه لري بلکي يو کوچنی لښتی لري او هغه ته دا خطره وي چي که څارويان يې وڅښي، اوبه به يې ختمي سي، نو داسي کس ته د منع کولو حق سته، که نه؟، په دې باره کي دوه قوله دي:

(۱)... يو قول دا دی چي نه به يې منع کوي؛ ځکه څارويان خو هر وخت د اوبو لپاره نه راځي، بلکي په ورځ، دوو کي يو وار راځي، نو په ورځ، دوو کي يو وار په چيښلو سره اوبه نه ختميږي، او څرنګه چي د ورځني واري په ټاکلو سره اوبه ورکول صحيح او جائز دي (چي يوه ورځ به ديوه وي او يوه ورځ به د ده وي)، او په دې واري کي چا ته د منع حق حاصل نه دی، نو همداسي به په صورت مسئله کي هم د اوبو مالک ته د منع حق حاصل نه وي.

(۲)... دويم قول دا دی چي څرنګه هغه له دې څخه منع کولای سي چي بل څوک په دې لښتي سره خپل کښت او ځمکه اوبه کړي، نو همداسي هغه څارويان هم له اوبو چيښلو څخه منع کولای سي، ځکه څرنګه چي د کښت او ځمکي په اوبولو سره د هغه حق يعني اوبه ختميږي، همداسي د څارويانو په چيښلو سره هم د هغه حق ختميږي، نو ځکه څارويان به له اوبو چيښلو څخه منع کول کيږي، خو عوامُ الناس به نه له اوبو چيښلو څخه منع کول کيږي او نه به د اوداسه او د کپړو مينځلو لپاره له اوبو اخيستلو څخه منع کول کيږي؛ ځکه څرنګه چي چيښلو ته ضرورت متحقق دی، همداسي اودس کولو او د کپړو مينځلو ته هم ضرورت متحقق دی، لهذا د اوبو په اخيستلو، اودس کولو او د کپړو په مينځلو کي هيڅ حرج نسته، خو په لښتي کي دننه له اودس کولو او کپړو مينځلو څخه يې منع کولای سي؛ ځکه چي په دې سره نورو ته تکليف رسيږي چي له داسي اوبو څخه يې کرکه او نفرت کيږي، حال دا چي په شريعت کي له تکليف او حرج څخه منع سوې ده، نو ځکه په لښتي کي دننه به د دې اجازت نه وي.

## د يو چا له اوبو څخه منګيان وغيره ډکول او درختي او داسي نور په اوبول

وَإِنْ أَرَادَ أَنْ يَسْقِيَ شَجَرًا أَوْ خَضِرًا فِي دَارِهِ حَمْلًا بِجِرَارِهِ او که څوک وغواړي چي د خپل کور درختي يا کښتي اوبه کړي د خپلو منګيانو په [ډکولو او] وړلو سره لَهُ ذٰلِكَ فِي الْأَصَحِّ نو د صحيح قول مطابق هغه ته د دې حق سته لِأَنَّ النَّاسَ يَتَوَسَّعُونَ فِيهِ ځکه خلک په دې هکله پراخي [او آساني] کوي وَيَعُدُّونَ الْمَنْعَ مِنَ الدَّنَاءَةِ او [په دې هکله] منع کول رذالت ګڼي وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَسْقِيَ أَرْضَهُ وَنَخْلَهُ وَشَجَرَهُ مِنْ نَهْرِ هٰذَا الرَّجُلِ وَبِئْرِهِ وَقَنَاتِهِ إِلَّا بِإِذْنِهِ نَصًّا او هغه ته دا حق نسته چي د دې سړي په نهر،

ځاه او كاريز سره خپله ځمکه او درختي اوبه کړي مګر د هغه په صريح اجازت سره وَلَهُ أَنْ يَمْنَعَهُ مِنْ ذٰلِكَ او ده ته [يعني د نهر وغيره مالک] ته دا حق سته چي هغه له دې شخه منع کړي لِأَنَّ الْمَاءَ مَتٰى دَخَلَ فِي الْمَقَاسِمِ ځکه کله چي اوبه په تقسيمو [نوبتونو] کي داخله سوې اِنْقَطَعَتْ شِرْكَةُ الشِّرْبِ بِوَاحِدَةٍ نو د شِرب شرکت بالکل ختم سو لِأَنَّ فِي إِبْقَائِهِ قَطْعَ شِرْبِ صَاحِبِهِ ځکه چي [اوس] د شرکت په باقي پرېښوولو کي د صاحبُ الشِرب د شِرب ختمول سته وَلِأَنَّ الْمَسِيْلَ حَقُّ صَاحِبِ النَّهْرِ او ځکه چي مسيل [د اوبو بهېدلو ځای (يعني لښتی)] د نهر والا حق دی وَالضِّفَّةِ تَعَلَّقَ بِهَا حَقُّهُ او د نهر د څنډي [غاړي] سره د نهر والا حق متعلق دی فَلَا يُمْكِنُهُ التَّسْيِيْلُ فِيْهِ وَلَا شَقُّ الضِّفَّةِ نو ځکه هغه لره په دې کي نه اوبه بيول ممکن دي او نه څنډه څيرل [ماتول] فَإِنْ أَذِنَ لَهُ صَاحِبُهُ فِي ذٰلِكَ أَوْ أَعَارَهُ ليکن که نهر والا هغه ته په دې هکله اجازت ورکړي او خپل نهر هغه ته په عاريت ورکړي فَلَا بَأْسَ بِهِ نو بيا په دې کي څه حرج نسته لِأَنَّهُ حَقُّهُ ځکه چي نهر د هغه خپل حق دی فَتَجْرِيْ فِيْهِ الْإِبَاحَةُ نو ځکه په دې کي به مباح کول [بل چا ته ورکول] جائز کيږي كَالْمَاءِ الْمُحْرَزِ فِي إِنَائِهِ لکه هغه اوبه کوم چي په لوښي کي خوندي کړل سوي وي.

**اللغات:** ﴿خَضِر﴾ (د ضاد په کسر سره): کښت او کېتی، سبزيجات. ﴿حمل﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پورته کول، وړل. ﴿جِرار﴾ جمع د جَرَّةٌ ده: د خاورو لوښی چي په هغه ... ﴿دناءة﴾ رذالت (ټيټوب)، سپکتوب. ﴿قناة﴾ کاریز. ﴿أعارة﴾ د افعال د باب ماضي ده: په عاريت ورکول. عاريتاً ورکول. (إعارة: "تمليكُ المنافع بلا عوض على أن ترد العين" ته وايي، يعني چي يو سړی خپل شی يو چا ته مفت (بېله عوضه) ورکړي او ورته ووايي چي ته خپل نفع تري واخله! او بيا يې بيرته ما ته واپس کړه!).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د يو چا د لښتي څخه بل څوک خپل منګيان يا ډبې وغيره ډکوي او د خپل کور درختي يا د خپل کور کېتی او سبزيجات په اوبه کوي، نو د صحيح قول مطابق هغه ته د دې حق سته؛ ځکه د اوبو په هکله په داسي کارو کي خلګ آساني او پراخ نيتي کوي او د داسي کارو لپاره ابه منع کول رزالت او بخل ګڼي، نو ګواکي عرفاً او دلالتاً د دې اجازت دی. او قاعده دا

ده چې "الثابت بالعرف كالثابت بالنص" يعني كوم شی چې عرفاً ثابت وي، هغه د نصاً او صراحتاً ثابت سوي شي په څېر دی، او د صراحتاً ثابتېدلو په صورت کې د اوبو مالک ته د منع حق نه حاصلیږي، لهذا د عرفاً ثابتېدلو په صورت کې به هم هغه ته د منع کولو حق نه وي.

وليس له إلخ: د نهر، لښتې وغيره څخه منګيان او لوښي ډکول خو جائز دي، لېکن له هغه څخه د خپل کښت يا د باغ د اوبولو لپاره د مالک صراحتاً اجازت پکار دی، او مالک ته د دې بشپړ اختيار سته چې هغه له دې څخه منع کړي؛ ځکه کله چې اوبه د خلګو تر مينځ تقسيم سوي وي (چې د هر يوه لپاره جلا نوبت تاکل سوی وي) او د يو سړي په نوبت او حصه کې اوبه راسي، نو اوس په دې تقسيم او نوبت سره په شِرْب (يعني د کښت وغيره په اوبولو) کې د بل چا شرکت ختم سو او فقط په شُرب (څيښلو) کې پاته سو، او دلته هغه د شِرْب لپاره اوبه اخلي، نه د شُرْب لپاره، نو ځکه د غه سړي ته (کوم چې د نهر مالک او صاحبُ الشِّرْب دی، ده ته) د هغه د منع کولو حق سته؛ ځکه که د شِرْب شرکت باقي پرېښوول سي، نو په دې سره به د ده (صاحبُ الشِّرْب) حق ختم او ضايع سي کوم چې صحيح نه دي.

ولأن المسيل إلخ: د مخکني خبري (يعني چې د نهر مالک ته د هغه کس د منع کولو حق سته چې د ده په اوبو سره کښت وغيره اوبوي، د دې خبري) دويم دليل دا دی چې د اوبو تېرېدلو او بهېدلو ځای (مسيل يعني لښتی) د نهر د مالک حق دی او د کښت اوبولو لپاره چې د نهر کوم طرف او څنډه ماتول کېږي، د هغه سره هم د ده حق متعلق دی، په لنډه وينا دا چې نهر هم د ده حق دی او څنډه (غاړه) يې هم د ده حق دی، نو ځکه بل چا ته اختيار نسته چې د هغه په حق کې لاس ووهي او په دې مسيل کې خپلې اوبه وبيوي يا د نهر څنډه ماته کړي او خپل کښت اوبه کړي. ها! که د نهر مالک د دې اجازت ورکړي، نو بيا په دې کې څه حرج نسته داسې کول جائز دي، ځکه دا د هغه خپل حق دی چې په دې کې اباحت جاري کېږي يعني د بل چا لپاره يې مباح کولای سي، لکه يو څوک چې په لوښي وغيره کې اوبه خوندي او ذخيره کړي، نو هغه اوبه د مُحْرِز (خوندي کونکي) حق وګرځي، خو هغه چې يې د هر چا لپاره وغواړي، دا اُوبه مباح کولای سي، نو همداسې په صورتِ مسئله کې هم د نهر وغيره مالک ته دا حق سته چې د هر چا لپاره وغواړي، د خپل نهر وغيره اوبه هغه ته مباح کړي. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم

❁❁❁

# فَصْلٌ فِيْ كَرْيِ الْأَنْهَارِ

## دا فصل په (بيان د) نهرونو د كيندلو كي دى

**تشريح**: "كَرْى" د ضرب دباب مصدر دى، كَرٰى يَكْرِيْ كَرْيًا، كله چې د دې باب په صله كې "نهر" راسي، نو معنىٰ يې ده: په واله كې نوې كنده كښل (كيندل) او واله صفا كول. واله غوچول(ژورول). (معجم الوسيط، معجم لغة الفقهاء)

له مسائلُ الشِّرب څخه وروسته د كَرْىِ الأنهار د فصل بيانولو وجه دا ده چې په شِرْب كې ځيني وخت د نهر كيندلو (نهرغوچولو) ضرورت پېښيږي، او په دې هكله د نهر كيندلو وغيره په مصرف كې خبره راځي چې دا به پر كوم يوه وي، نو ځكه په دې فصل كې د نهر سره اړوند مسائل او احكام بيانوي.

### د نهر قسمونه

| |
|---|
| قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: اَلْأَنْهَارُ ثَلَاثَةٌ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: چې نهرونه درې قسمه دي نَهْرٌ غَيْرُ مَمْلُوْكٍ لِأَحَدٍ يو هغه نهر دى چې د هيڅ يوه مملوك نه وي [يعني د هيچا په ملكيت كې داخل نه وي] وَلَمْ يَدْخُلْ مَاؤُهُ فِي الْمَقَاسِمِ بَعْدُ [همدارنګه] د هغه اوبه تر اوسه په تقسيمو [نوبتونو] كې داخله سوي نه وي كَالْفُرَاتِ وَنَحْوِهِ لكه فرات او داسي نور وَنَهْرٌ مَمْلُوْكٌ دَخَلَ مَاؤُهُ فِي الْقِسْمَةِ إِلَّا أَنَّهُ عَامٌّ او بل هغه نهر دى چې مملوک وي [او] د هغه اوبه په تقسيم كې داخله سوي وي خو هغه عام وي [د عامو خلكو لپاره وي] وَنَهْرٌ مَمْلُوْكٌ دَخَلَ مَاؤُهُ فِي الْقِسْمَةِ وَهُوَ خَاصٌّ او بل قسم هغه نهر دى چې مملوک وي [او] د هغه اوبه هم په تقسيم كې داخله سوي وي او هغه خاص وي وَالْفَاصِلُ بَيْنَهُمَا اِسْتِحْقَاقُ الشُّفْعَةِ بِهِ وَعَدَمُهُ او د دې دواړو تر مينځ فاصل د هغه په ذريعه د شفعې مستحق كېدل يا نه مستحق كېدل دي. [يعني د عام نهر او خاص نهر تر مينځ فصل او فرق دى چې كه د نهر والا د خپل نهر په ذريعه د شفعې مستحق كيږي نو هغه خاص دى، او كه د نهر په ذريعه د شفعې نه مستحق كيږي، نو هغه عام دى]. |

**اللغات**: ﴿مقاسم﴾ جمع د مَقْسَم ده: تقسيمونه، ﴿فاصل﴾ د ضرب د باب فاعل دى: جلا كونكى، فرق كونكى، وجه د فرق.

**تشریح**: په دې عبارت کې صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د نهر (لویې والې) درې قسمونه بیان کړي دي:

①... اول قسم هغه نهر دی چې هیڅ مالک یې نه وي او د هغه اوبه د خلکو په تقسیم او حصو کې داخله سوې نه وي (بلکې لوی نهر وي چې د لښتې او د والې له رایستلو څخه بغیر خودي په هغه سره ځمکه نه ابول کیږي). لکه دجله، فرات او داسي نور.

②... دویم قسم هغه نهر دی چې مملوک وي او د هغه اوبه د خلکو تر مینځ تقسیم وي (چې په واري او نوبت سره کار ځني اخلي). خو د یو خاص قوم او جماعت لپاره مخصوص نه وي، بلکې عام خلک یې استعمالوي.

③... دریم قسم هغه نهر دی کوم چې مملوک وي او اوبه یې هم تقسیم شده وي او د یو خاص قوم لپاره مخصوص وي چې هر چا ته په هغه کې د لاس وهلو اجازت نه وي، لنډه دا چې مخکینی قسم نهر عام دی او دا خاص دی، نور فرق پکښې نسته.

**والفاصل إلخ**: فرمایي چې د عام مملوک نهر او خاص مملوک نهر تر مینځ حدّ فاصل دا دی چې که د دې نهر په ذریعه د نهر والا لپاره د شفعي استحقاق ثابتیږي، نو خاص دی، کنې عام دی.

## د اول قسم نهر بیان

فَالْأَوَّلُ كَرْيُهُ عَلَى السُّلْطَانِ مِنْ بَيْتِ مَالِ الْمُسْلِمِينَ نو د اول قسم نهر کیندل د باچا پر ذمه دي د مسلمانانو له بیتُ المال څخه لِأَنَّ مَنْفَعَةَ الْكَرْيِ لَهُمْ ځکه چې د نهر کیندلو منفعت د مسلمانانو لپاره دی فَتَكُونُ مُؤْنَتُهُ عَلَيْهِمْ نو د هغه خرچ [مصرف] به هم پر دوی لازم وي وَيُصْرَفُ إِلَيْهِ مِنْ مُؤْنَةِ الْخَرَاجِ وَالْجِزْيَةِ دُونَ الْعُشُورِ وَالصَّدَقَاتِ او په دې کیندلو کې به د خراج او جزیې مال صرفول کیږي، نه د عشرونو او صدقو مال لِأَنَّ الثَّانِيَ لِلْفُقَرَاءِ وَالْأَوَّلَ لِلنَّوَائِبِ ځکه چې دویم [عشر او صدقات] د فقیرانو لپاره دي او اول [خراج او جزیه] د حوادثو [او ضروریاتو] لپاره دي فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِي بَيْتِ الْمَالِ شَيْءٌ او که په بیتُ المال کې هیڅ نه وي فَالْإِمَامُ يُجْبِرُ النَّاسَ عَلَى كَرْيِهِ نو امام به خلک د هغه پر کیندلو مجبوره کوي إِحْيَاءً لِمَصْلَحَةِ الْعَامَّةِ د عام مصلحت [ښېګڼې] د ژوندي کولو لپاره إِذْ هُمْ لَا يُقِيمُونَهَا بِأَنْفُسِهِمْ ځکه چې دوی دا کار خپله نه ترسره کوي وَفِي مِثْلِهِ قَالَ عُمَرُ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ ❶ او د همداسې امر په هکله حضرت عمر رضي الله عنه فرمایلي دي لَوْ تُرِكْتُمْ لَبِعْتُمْ أَوْلَادَكُمْ چې که

تاسي هسي پرېښوول سی نو تاسي به خپل اولاد خرڅ کړئ! ﴿إِلَّا أَنَّهُ يُخْرِجُ لَهُ مَنْ كَانَ يُطِيقُهُ﴾ خو امام به د دې کیندلو لپاره هغه خلک راباسي کوم چي د دې طاقت لري ﴿وَيَجْعَلُ مُؤْنَتَهُ عَلَى الْمَيَاسِيرِ الَّذِينَ لَا يُطِيقُونَهُ بِأَنْفُسِهِمْ﴾ او د هغو [نهر کیندونکو] خرڅ به پر مالدارانو مقرروي کوم چي په خپله د دې کار طاقت نه لري.

**اللغات**: ﴿كَرْيه﴾ د ضرب مصدر دی، کله چي د دې باب په صِله کي "نهر" راسي، نو معنیٰ يې ده: په واله کي نوې کنده کښل (کیندل)، واله غوول او صفا کول. ﴿مؤنة﴾ خرڅ (خرچه)، لګښت، بار او مشقت. ﴿نوائب﴾ جمع د نَائِبَةٌ ده: پېښه، ناڅاپه (نابېره) واقع کېدونکي څه. ﴿مياسير﴾ جمع د مُوْسِر ده: د پراخۍ خاوند، مالدار (ذُو اليَسار والغِنى).

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي د اول قسم نهر کیندل (صفا کول او غوچول) د امامُ المسلمين او باچا ذمه واري ده چي دا کار دي د بيت المال په هغه مال سره وکړي کوم چي د خراج او جزيې وي؛ ځکه هغه د همدې قسم کارو لپاره وي، او د عشر او صدقاتو چي کوم مال په بيتُ المال کي جمع وي، هغه به په دې کار کي نه صرفوي، ځکه چي هغه د فقراؤ حق دی.

فإن لم يكن إلخ: فرمايي که چيري په بيتُ المال کي مال نه وي، نو د خلکو د عام مصلحت او ښېګڼي لپاره دي امامُ المسلمين خلک د نهر پر کیندلو مجبوره کړي؛ ځکه چي خلک داسي غټ کار خپله نه ترسره کوي، نو ځکه امام دي هغوی مجبوره کړي، او کوم خلک چي د نهر کیندلو کار ته آماده وي، هغوی دي پر دغه کار وټاکي، او کوم چي آساني خوښونکي او مالداران وي چي د نهر کیندلو کار ته آماده نه وي، د هغو پر ذمه دي د نهر کیندونکو نفقه او خرچه وټاکي.

او د حضرت عمر رضي الله عنه د فرمان "لَوْ تُرِكْتُمْ لَبِعْتُمْ أَوْلَادَكُمْ" وضاحت دا دی چي که تاسي اې خلکو! پر خپل حال پرېښوول سی او د مصلحتِ عامه په خاطر تاسي پر يو کار مجبوره نه کړل سي، نو بيا به يو وخت تاسي دې نتيجې ته ورسيږئ چي د خپل اولاد په بقاء کي به هم تاسي څه فايده نه وينی او تاسي به د هغه خرڅول شروع کړئ. مطلب دا چي له باچا او امامُ المسلمين څخه بغير خلک خپله د عامي فايدې کار نه ترسره کوي. (کما هو الظاهر، لکه څرنګه چي اوس د کرونا مصيبت روان دی، نو که د يو حکومت له طرفه د قرنطين کېدلو فرمان جاري نه سي، نو ټوله خلک به له کورو څخه عام وتل شروع کړي چي په دې توګه به دا مصيبت نور عام سي).

## د دویم قسم نهر بیان

وَأَمَّا الثَّانِيْ فَكَرْيُهُ عَلَى أَهْلِهِ لَا عَلَى بَيْتِ الْمَالِ او کوم چې دویم قسم نهر دی نو د هغه کیندل د هغه پر خپلو خلکو دي [کوم چې پکښې شریکان وي]. نه پر بیت المال لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ ځکه چې دا حق د همدوی دی وَالْمَنْفَعَةَ تَعُودُ إِلَيْهِمْ عَلَى الْخُصُوْصِ وَالْخُلُوْصِ او منفعت د همدوی وطرف ته ګرځي په خاصه او خالصه توګه وَمَنْ أَبَى مِنْهُمْ او له دوی څخه چې کوم یو انکار وکړي [چې زه یې نه کیندم] يُجْبَرُ عَلَى كَرْيِهِ نو هغه به د نهر پر کیندلو مجبورول کیږي دَفْعًا لِلضَّرَرِ الْعَامِّ د عام ضرر دفع کولو لپاره وَهُوَ ضَرَرُ بَقِيَّةِ الشُّرَكَاءِ او هغه د پاتې شریکانو ضرر دی وَضَرَرُ الْآبِيْ خَاصٌّ او د انکار کونکي ضرر خاص دی وَيُقَابِلُهُ عِوَضٌ او د هغه په مقابله کي عوض هم شته فَلَا يُعَارَضُ بِهِ نو ضرر خاص به د ضرر عام معارض [مقابل] نه وي وَلَوْ أَرَادُوْا أَنْ يُحَصِّنُوْهُ خِيفَةَ الْاِنْبِثَاقِ او که دوی [نهر] والا نهر مضبوطه کړي د هغه [د څنډو] د ماتېدلو له بیري وَفِيْهِ ضَرَرٌ عَامٌّ او په دې کي ضرر عام وي [یعني که د نهر څنډې مضبوطه نه کړل سي، نو د نهر اوبه بهیږي او عامو ته نقصان رسیږي] كَغَرَقِ الْأَرَاضِيْ وَفَسَادِ الطُّرُقِ لکه [د عامو خلکو] ځمکي غرقېدل او لاري خرابېدل يُجْبَرُ الْآبِيْ نو انکار کونکی به مجبورول کیږي وَإِلَّا فَلَا کنې [یعني که عام نقصان نه وي، نو] نه به مجبورول کیږي لِأَنَّهُ مَوْهُوْمٌ ځکه چې دا یو موهوم امر دی [یعني دلته صرف د نقصان وهم سته، کوم چې نا معلومه او نا معتبره دی] بِخِلَافِ الْكَرْيِ په خلاف د نهر کیندلو لِأَنَّهُ مَعْلُوْمٌ ځکه چې هغه معلوم امر دی [یعني په هغه کي خو نقصان معلوم او عام دی].

**اللغات**: ﴿يحصّنوه﴾ د تفعیل له بابه د جمع مذکر غائب مضارع صیغه ده، د دې باب یوه معنیٰ ده: مضبوطول، محفوظ ګرځول. ﴿خيفة﴾ د فتح د باب مصدر دی: بېره، ډار او اندېښنه. ﴿انبثق﴾ (په ثاء سره)، د انفعال د باب ماضي ده: سوزی کېدل، چاودېدل (ماتېدل).

**تشریح**: فرمايي چې د نهر دویم قسم (کوم چې د خلکو تر ملکیت لاندې وي، خو عام وي، داسي نهر) به هغه خلک کیندي کوم چې حق او شرکت پکښې لري او نفع ځني اخلي، او د دې نهر کیندل د باچا ذمه واري نه ده؛ ځکه دا د همدې خلکو مخصوص او خالص حق دی، لهذا که له دوی څخه یو د نهر له کیندلو څخه انکار وکړي، نو هغه به مجبورول کیږي چې عام ضرر لیري سي، یعني د پاته خلکو (شریکانو) ضرر او نقصان لیري سي.

دلته يو اشكال كيږي چي دا خو هم ضرر او نقصان دی چي په دې كار كي به خواري كاږي او خپل مال به صرفوي، نو فرمايي چي دا ضررِ خاص دی او د دې منفعت هغه ته زيات حاصليږي چي خپل كښت به په اوبوي، لهذا د ضررِ عام ليري كولو لپاره به ضررِ خاص زغمل كيږي، په همدې تړاو مصنف رَحِمَهُ الله فرمايلي دي "فلا يُعارض به" يعني په دې دواړو كي څه تعارض نسته، بلكي ضررِ عام غالب وي، لهذا د ضررِ عام ليري كول به لازم وي.

وإن أراد إلخ: د دې حاصل دا دی چي كه دا خطره وي چي د نهر څنډه (غاړه) به ماته سي او غټ نقصان به پېښ سي، نو د نهر خلک دا مشوره او اراده وكړي چي د نهر څنډې به ښه مضبوطه او پخې جوړې كړو، اوس كه په دې صورت كي له دوی څخه يو كس انكار وكړي، نو هغه به هم مجبورول كيږي، خو كه دا پوره تنی خطره نه وي، نو بيا به نه مجبورول كيږي صرف د يو موهوم امر په وجه.

او كه سوال وسي چي كله د موهوم امر په وجه څوک نه مجبورول كيږي، نو بيا د نهر كيندلو په هكله به ولي خلک مجبورول كيږي؟، نو جواب دا دی چي د هغه منفعت او ضرورت موهوم نه دی، بلكي معلوم دی.

### د درېيم قسم نهر بيان

وَأَمَّا الثَّالِثُ وَهُوَ الْخَاصُّ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ او كوم چي درېيم قسم نهر دی او هغه په هره توګه خاص دی فَكَرْيُهُ عَلٰى أَهْلِهِ نو د هغه كيندل [هم] د هغه پر خپلو خلكو دی [كوم چي پكښي شريكان وي] لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړی ثُمَّ قِيْلَ: يُجْبَرُ الْآبِيْ كَمَا فِي الثَّانِيْ بيا ويل سوي دي چي انكار كوونكی كس به مجبورول كيږي لكه په دويم قسم نهر كي وَقِيْلَ: لَا يُجْبَرُ او ويل سوي دي: چي نه به مجبورول كيږي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنَ الضَّرَرَيْنِ خَاصٌّ ځكه چي له دواړو ضررونو څخه هر يو خاص دي [يعني دواړه ضررونه خاص دي، ځكه د دې نهر كيندلو چي كوم د اوبو منفعت او فايده ده هغه د مخصوصه خلكو لپاره ده او د انكار كوونكي ضرر هم خاص دی (چي هغه تنها دی)، نو يوه ته ترجيح نه سي وركول كېدای، نو ځكه به نه مجبورول كيږي] وَيُمْكِنُ دَفْعُهُ عَنْهُمْ بِالرُّجُوعِ عَلَى الْآبِيْ بِمَا أَنْفَقُوْا فِيْهِ او له دوی څخه د ضرر دفع كول ممكن دي پر دې انكار كوونكي كس په رجوع كولو سره د هغه مال په هكله كوم چي دوی په كيندلو كي خرځ كړی دی [يعني د ضرر دفع كول ممكن هم دي په دې توګه چي له دوی څخه څومره مال خرڅ سوی وي، د هغه يوه حصه له انكار كوونكي څخه واخلي] إِذَا كَانَ بِأَمْرِ الْقَاضِيْ [په دې شرط كله چي دا [خرڅ كول] د قاضي په حكم سره وي فَاسْتَوَتِ الْجَنْبَتَانِ نو دواړه طرفونه سره برابر

سول، بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کوم چې مخکې تېر سو.

**اللغات:** ﴿جنبتان﴾ دواړه جانبه، دواړه طرفونه.

**تشریح:** درېيم قسم نهر به هم هاغه خلک کينډي کوم چې نفع ځني اخلي، د هاغه دليل پر بناء کوم چې د دوېم قسم نهر په بيان کي تېر سو، بيا که له دوی څخه يو انکار وکړي، نو هغه به پر دې کار (نهر کيندلو) مجبورول کيږي، که نه؟، نو فرمايي چې په دې باره کي دوه قوله دي: ① مجبورول کيږي به، لکه په دوېم قسم کي چې جبر کېدی، ② نه به مجبورول کيږي: ځکه دواړه ضررونه خاص دي، لهذا مخکينی دليل دلته نه جاري کيږي. همدارنګه ضرر دفع کېدلای سي په دې توګه چې پاته خلک نهر وکيندي او د هغه (انکار کونکي) په حصه کي چې څومره خرچ راځي، هغه دي له ده څخه واخلي، لېکن دا اخيستل هغه وخت صحيح کيږي، کله چې دې خلکو د نهر په کيندلو کي کوم خرچ او مصرف کړی وي، هغه يې د قاضي په حکم سره کړی وي، نو دواړه طرفونه دلته برابري دي. په ضررِ خاص کېدلو کي هم او له خرچ اخيستلو څخه وروسته دواړه په يوه درجه کي د کېدلو په اعتبار سره هم (يعني کله چې انکار کونکی کس هغه خرچ او مصرف اداء کړي، نو دئ د نهر کيندونکو په درجه کي هم ګرځي)، د دې په خلاف د دوېم قسم نهر مسئله، نو هلته د ضررِ خاص په مقابله کي ضررِ عام وو، نو ځکه هلته جبر کېدی.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلَا يُجْبَرُ لِحَقِّ الشَّفَةِ او د چيښلو د حق لپاره به نه مجبورول کيږي كَمَا إِذَا امْتَنَعُوا جَمِيعًا لکه [په هغه صورت کي] کله چې ټول منع سي.

**اللغات:** ﴿شفة﴾ مراد: د اوبو چيښل،

**تشریح:** د مذکوره عبارت يو مطلب خو دا دی چې که خلک د اوبو چيښلو لپاره نهر کيندي، نه د کښتونو د اوبولو لپاره (يعني داسې نهر کيندي او صفا کوي کوم چې د هغه خلکو او څارويو د اوبو چيښلو لپاره وي، نه د کښتونو د اوبولو لپاره)، نو په دې صورت کي که د دوی يو کس له دې څخه انکار وکړي (چې زه يې نه کيندم)، نو هغه به نه مجبورول کيږي؛ او د دې دليل دا بيانوي چې کله ټول خلک (شريکان) له نهر کيندلو څخه منع سي او انکار وکړي، نو هغوی نه مجبورول کيږي، نو پر همدې په قياس کولو سره که يو سړی منع سي، نو هغه به هم نه مجبورول کيږي.

او بل مطلب يې دا دی چې کله د نهر ټول شريکان د هغه له کيندلو څخه منع سي او انکار وکړي، نو د چيښونکو د حق په وجه به دوی نه مجبورول کيږي (يعني کوم خلک چې د دې نهر اوبه چيښي، د هغوی

حق په وجه به دوی نه مجبورول کيږي)، مطلب دا چې دلته که څه هم د خاصو خلکو (يعني د شريکانو) د ضرر په مقابله کې د عامو خلکو (چيښونکو) ضرر دی يا په بله وينا دا چې دلته که څه هم د ضرر خاص په مقابله کې ضرر عام دی چې د هغه پرېناء بايد دوی مجبوره کړل سي، خو د چيښونکو خلکو د حق په وجه به دوی نه مجبورول کيږي.

**يادونه**: د مذکوره عبارت اوله تشريح او مطلب موږ له اثمار الهدايه څخه نقل کړی دی (د څه اضافې سره)، او دويم مطلب يې موږ له اشرف الهدايه او احسن الهدايه څخه نقل کړی دی. (والله أعلم)

## د مشترک نهر کيندلو په صورت کې د خرچ (لګښت) بيان

وَمُؤْنَةُ كَرْيِ النَّهْرِ الْمُشْتَرَكِ عَلَيْهِمْ مِنْ أَعْلَاهُ او د مشترک نهر کېندلو خرڅ پر دوی [شريکانو] دی د لوړ طرف څخه فَإِذَا جَاوَزَ أَرْضَ رَجُلٍ بيا چې کله کيندل د يوه سړي [شريک] له ځمکې څخه تېر سي رُفِعَ عَنْهُ نو له هغه څخه خرچ پورته کيږي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دي وَقَالَا* : هِيَ عَلَيْهِمْ جَمِيعًا مِنْ أَوَّلِهِ إِلَى آخِرِهِ بِحِصَصِ الشِّرْبِ وَالْأَرْضِيْنَ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د نهر له اول څخه تر آخره دا خرڅ پر دوی ټولو دی د شِرْب [ځمکو اوبولو] او ځمکو د حصو په حساب سره [يعني هر يو چې په دې نهر سره څومره ځمکه اوبوي او څومره ځمکه لري، د هغه په حساب سره پر هر يوه خرچ لازم دی، د لوړ طرف او لاندې طرف فرق نسته] لِأَنَّ لِصَاحِبِ الْأَعْلَى حَقًّا فِي الْأَسْفَلِ ځکه چې [د نهر] د لوړ طرف والا [خلکو] په لاندې طرف کې [هم] حق سته لِاحْتِيَاجِهِ إِلَى تَسْيِيْلِ مَا فَضَلَ مِنَ الْمَاءِ فِيْهِ ځکه هغه په لاندې طرف کې د اضافه سوو اوبو بيولو ته محتاج دي وَلَهُ: أَنَّ الْمَقْصِدَ مِنَ الْكَرْيِ الِانْتِفَاعُ بِالسَّقْيِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د نهر کيندلو مقصد [د کېنت او ځمکې] د اوبولو نفع حاصلول دي وَقَدْ حَصَلَ لِصَاحِبِ الْأَعْلَى او دا نفع لوړ طرف ته والا ته حاصله سوې ده فَلَا يَلْزَمُهُ إِنْفَاعُ غَيْرِهِ نو پر هغه به بل چا ته نفع رسول لازم نه وي وَلَيْسَ عَلَى صَاحِبِ الْمَسِيْلِ عِمَارَتُهُ او پر مسيل والا [يعني پر لوړ طرف والا] د مسيل جوړول لازم نه دي كَمَا إِذَا كَانَ لَهُ مَسِيْلٌ عَلَى سَطْحِ غَيْرِهِ لکه کله چې د بل چا پر بام د ده مسيل وي [نو پر ده د هغه بام

---

* القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، قال العلامه جلال الدين الخوارمي:... وبقول أبي حنيفة أخذوا في الفتوى، كذا في فتاوىٰ قاضيخان (الكفاية ج۹، ص:۱۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۱۴]

سمول لازم نه دي] كَيْفَ وَأَنَّـهُ يُمْكِنُهُ دَفْعَ الْمَاءِ عَنْ أَرْضِهِ بِسَدِّهِ مِنْ أَعْلَاهُ څنګه کېدای سي ايا څنګه به پر لازم وي] حال دا چي هغه ته له خپل ځمکي څخه اوبه دفع کول ممکن دي د لوړ طرف څخه د نهر په بندولو سره. [يعني دا ممکنه ده چي د لوړ طرف څخه اوبه بندي کړي او خپلي ځمکي ته يې نه راپرېږدي].

**اللغات**: ﴿مؤنـة﴾ خرچ (خرچه) لګښت. ﴿فضل﴾ د کرم د باب ماضي ده: اضافه کېدل. زائد پاتېدل. ﴿سقی﴾ د ضرب د باب مصدر دی: اوبه کول (اوبول). سېرابول. ﴿سطح﴾ بام. چت. ﴿سدّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: بندول.

**تشريح**: په دې عبارت کي دا راښيي چي د مشترکه نهر د کيندلو خرچ به څنګه اداء کول کيږي؟. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز طريقه دا ده چي د نهر کيندل به د لوړ طرف (لوړي خوا) راشروع کيږي او لوړ طرف ته چي د کومو خلکو د ځمکو سره نهر را کيندل کيږي، د هغه خرچ او مصرف به له هغو څخه اخيستل کيږي. او کله چي د نهر کيندل لوړ طرف ته پوره سي او لاندي طرف ته شروع سي، نو اوس چي لاندي د کومو خلکو ځمکي وي. له هغو څخه به د دې خرچ اخيستل کيږي. او د لوړ طرف والا خلک به اوس پر ېښوول کيږي. همدغه راز دا لاندي طرف چي پوره سي او تر هغه لاندي طرف ته کيندل شروع سي، نو بيا به له هغو څخه خرچ اخيستل کيږي إلى آخره. (دامام صاحب رَحِمَهُ الله د قول "عَلَيْهِمْ مِنْ أَعْلَاهُ" دغه پورتنی مطلب صاحب داثمار الهدايې رَحِمَهُ الله ليکلی دی. او بل مطلب يې دا کېدلای سي کوم چي صاحب داشرف الهدايې ليکلی دی چي د نهر د لوړ طرف والا پر خلکو چي څومره خرچ راسي. هغه به پر ټولو شريکانو تقسيمول کيږي. او بيا له هغه څخه د لاندي طرف والا پر خلکو چي کوم خرچ راسي، دا به له هغه څخه پر پاته شريکانو تقسيمول کيږي إلى آخره. مثلاً که په نهر کي ټوله لس خلک شريکان وي، نو کله چي لوړ طرف ته د نهر کيندل شروع سي او هغه طرف ته چي د کوم يوه ځمکه وي پر هغه چي څومره خرچ راسي، هغه به لس (۱۰) حصې کړل سي او پر هر شريک به يوه حصه واچول سي. او کله چي کيندل لاندي راسي، نو خرچ به پر نهو (۹) حصو تقسيم کړل سي. او په همدې حساب سره به د نهر تر آخره خرچ اداء کول کيږي)

وقالا إلخ: او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز طريقه دا ده چي د نهر کيندلو چي هر څومره خرچ راسي، هغه پر ټولو شريکانو په مشترکه توګه لازم دی او د ځمکو او شرب په حساب سره به ځني اخيستل کيږي يعني هر يو چي په دې نهر سره خپل څومره ځمکه اوبوي، د هغه مطابق به له هغه څخه خرچ

اخيستل کيږي او د لوړ طرف او لاندي طرف به هيڅ فرق نه کيږي. (يعني که د چا ځمکه ډېره وي چي زياتي اوبه غواړي. نو له هغه شخه به دغه د کيندلو خرچ هم زيات اخيستل کيږي، د کمي ځمکي او کم شِرْب والا په نسبت).

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د اسفل (لاندي) طرف حقدار چي څرنګه اسفل والا دي، همداسي اعلیٰ طرف والا هم په هغه کي حق لري، ځکه چي اعلیٰ طرف والا د خپلي ځمکي له اوبولو څخه وروسته د نهر اضافه اوبه بيا لاندي طرف ته ايله کوي (ځکه که داسي نه وکړي نو ټوله اوبه به د اعلیٰ طرف والا پر کښت او ځمکه ورسي او هغه به خراب کړي، لنده چي اعلیٰ طرف والا چي کله خپل ځمکه اوبه کړي. نو دې ته محتاج او مجبوره دي چي بند به خلاصوي او اوبه به اسفل [لاندي] طرف ته بهوي). نو بيا اسفل طرف والا هغه استعمالوي، لهذا معلومه سوه چي هر يو له اول څخه تر آخره له ټوله نهر څخه نفع اخلي. لهذا څرنګه چي ټوله په نفع اخيستلو کي سره برابر دي او څرنګه چي د اعلیٰ طرف والا حق په اعلیٰ او اسفل دواړو طرفونو کي دی، نو همداسي د نهر کيندلو چي کوم خرچ راځي، هغه به هم پر ټولو په مشترکه توګه د خپلو ځمکو او شِرْب په حساب سره لازم وي، لِإِنَّ الْغُنْمَ بِالْغُرْمِ.

<u>وله أن المقصد إلخ</u>: دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دی چي کله لوړ طرف ته د نهر کيندل پوره سي، نو د نهر کيندلو چي کوم مقصد دی هغه د لوړ طرف والا په حق کي پوره سو. لهذا نورو (پاتې شريکانو) ته نفع رسول د ده پر ذمه واجب نه دي.

او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله چي کوم دليل بيان کړی دی چي اعلیٰ يعني لوړ طرف والا دې ته محتاج دی چي اوبه به اسفل يعني لاندي طرف ته (په مسيل کي) بهوي، نو د هغه جواب دا دی چي د لوړ طرف والا لپاره لاندي طرف ته اوبه بهول خو څه ضروري نه دي، بلکي د لوړ طرف څخه چي د ده ځمکي ته د نهر له کوم ځای څخه اوبه راځي، هغه ځای دي بند کړي او له خپلي ځمکي څخه دي اوبه ليري کړي او د اوبو بهولو لپاره دي د لاندي طرف والا ځمکه (مسيل) نه استعمالوي، همدا وجه ده (يعني کله چي لاندي طرف د لوړ طرف والا لپاره مسيل کېدل ضرور نه دي. په همدې وجه) دا ضروري نه ده چي لوړ طرف والا د لاندي طرف مسيل جوړ کړي يعني هغه پوخ او مضبوطه کړي، لکه د يو همسايه پر بام چي د بل چا مسيل وي (يعني د يو چا د بام اوبه د همسايه پر بام تيرېږي او بيا يو وخت د همسايه د بام سمولو

او ګلولو ته ضرورت پېښ سي). نو د همسایه د باب جوړښت او سمول پر هغه لازم نه دي. بلکي همسایه به خپله دا کار کوي. نو پر همدې به پورتنی صورت هم قیاسول کیږي.

## سړی به تر کومه ځایه د کیندلو خرچ ورکوي

| |
|---|
| ثُمَّ مَا يُرْفَعُ عَنْهُ بیا له ده څخه هغه وخت خرچ پورته کیږي إِذَا جَاوَزَ أَرْضَهُ کله چي کیندل د ده له ځمکي څخه تېر سي كَمَا ذَكَرْنَاهُ لکه څرنګه چي موږ ذکر کړه وَقِيْلَ: إِذَا جَاوَزَ فُوْهَةَ نَهْرِهِ او ویل سوي دي: چي کله د ده د نهر له خولې څخه تېر سي وَهُوَ مَرْوِيٌّ عَنْ مُحَمَّدٍ او همدا له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ [لیکن] اول قول زیات صحیح دی لِأَنَّ لَهُ رَأْيًا فِي اتِّخَاذِ الْفُوْهَةِ مِنْ أَعْلَاهُ وَأَسْفَلِهِ ځکه چي ده لره حق دی د خولې د جوړولو [خلاصولو] د نهر په لوړ او لاندي دواړو طرفونو کي. |

**اللغات**: ﴿يرفع﴾ د فتح د باب مضارع مجهوله ده: پورته کېدل. لیري کېدل. ﴿جاوز﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: تېرېدل. ﴿فُوْهَة﴾ د شي خوله. د شي اوله حصه. قال صاحبُ المعجم الوسيط: الْفُوْهَةَ من كلّ شيء فمه وأوله.

**تشریح**: امام صاحب رَحِمَهُ الله چي له حصه دار (شریک) څخه د خرچ پورته کېدلو قائل دی. د اصح قول مطابق د هغه حدّ دا دی چي کله کیندل د هغه له ځمکي څخه تېر سي، نو بیا خرچ ځني پورته کیږي، او تر څو چي د هغه د ځمکي په احاطه کي کیندل جاري وي. تر هغه وخته د نهر کیندلو خرچ پر لازم دی. په دې هکله له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه یو روایت دا دی چي کله د یو شریک د نهر له خولې څخه کیندل تېر سي (یعني د نهر له کومه ځایه چي هغه خپلي ځمکي ته اوبه او لښتی راکش کړي دي. تر هغه ځای چي کیندل تېر سي)، نو له هغه څخه خرچ پورته کیږي. لیکن دا روایت مرجوح دی او اول قول اصح او معتمد دی. ځکه چي شریک ته د خپلي حصې په نهر کي لاندي او لوړ هر طرف ته (د لښتي) د خولې خلاصولو حق سته. لهذا که هغه د نهر سره د خپلي ځمکي بالکل په لوړ طرف کي خوله جوړه کړي. نو بیا خو د امام محمد رَحِمَهُ الله د روایت مطابق د هغه خرچ سمدستي هلته ختمیږي. حالانکي دا صحیح نه دي. لهذا اول قول اصح دی.

**د نهر کیندل (غوچول) چې کله د یوه له ځمکې څخه تېر سي، نو د اوبو را ایله کولو حکم**

فَإِذَا جَاوَزَ الْكَرْيُ أَرْضَهُ بیا چې کله کیندل د ده تر ځمکې تېر سي حَتَّى سَقَطَتْ عَنْهُ مُؤْنَتُهُ تر دې چې له ده څخه خرچ ساقط سي قِيلَ: لَهُ أَنْ يَفْتَحَ الْمَاءَ لِيَسْقِيَ أَرْضَهُ نو ویل سوي دي: چې ده ته حق سته چې اوبه را خلاصې کړي چې خپله ځمکه په اوبه کړي لِانْتِهَاءِ الْكَرْيِ فِي حَقِّهِ ځکه چې د ده په حق کې کیندل ختم سوي دي وَقِيلَ: لَيْسَ لَهُ ذَلِكَ مَا لَمْ يَفْرُغْ شُرَكَاؤُهُ او ویل سوي دي: چې ده ته دا حق نسته تر څو چې د ده شریکان فارغ سوي نه وي نَفْيًا لِاخْتِصَاصِهِ د ده د اختصاص د نفې کېدلو په وجه وَلَيْسَ عَلَى أَهْلِ الشَّفَةِ مِنَ الْكَرْيِ شَيْءٌ او پر اوبو چیښونکو خلګو له کیندلو څخه هیڅ لازم نه دي لِأَنَّهُمْ لَا يُحْصَوْنَ ځکه چې هغوی بې شمېره دي وَلِأَنَّهُمْ أَتْبَاعٌ او ځکه چې هغوی تابع دي [نه متبوع].

**اللغات**: ﴿كَرْي﴾ د ضرب د باب مصدر دی: کله چې د دې باب په صله کې "نهر" راسي. نو معنی یې ده: په واله کې نوې کنده کښل (کیندل). واله غوچول او صفا کول.

**تشریح**: فرمایي کیندل چې کله د یوه شریک له ځمکې څخه تېر سي. نو آیا هغه ته دا حق سته چې اوس اوبه را خلاصې کړي او خپل کښت اوبه کړي. نو په دې باره کې دوه قولونه دي: ① یو قول دا دی چې هو! داسې کولای سي: ځکه کیندل د هغه په حق کې ختم سوه. ② دویم قول دا دی چې نه یې سي کولای، یعنې تر څو چې ټوله شریکان له کیندلو څخه فارغ نه سي، تر هغه وخته ده ته د خپلې ځمکې د اوبولو حق نسته، ځکه که د شریکانو تر فراغت څخه مخکې ده ته دا حق ورکول سي، نو په انتفاع بالماء سره به د ده مختص کېدل لازم سي، کوم چې صحیح نه دي. نو ځکه د شریکانو تر فارغه کېدو مخکې هغه ته د اوبو راخلاصولو حق نسته.

ولیس علی إلخ: د دې حاصل دی چې کوم خلک د نهر د اوبو په حصه (نوبت) کې شریکان نه وي بلکې فقط د دې نهر اوبه چیښي. پر هغو کیندل لازم نه دي، ځکه چې هغوی بې شمېره او مجهوله وي (ځکه د نهر شاوخوا ټوله خلک د هغه اوبه چیښي). او بل دا چې هغوی تابع دي. حال دا چې حکم پر متبوع لګیږي، نو ځکه دلته به د کیندلو او د خرچې کار فقط پر متعینو کسانو (شریکانو) وي کوم چې متبوع دي. نه پر مجهولو کسانو کوم چې تابع دي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

# فَصْلٌ فِي الدَّعْوٰى وَالْاِخْتِلَافِ وَالتَّصَرُّفِ فِيْهِ

دا فصل (د شِرْب) د دعوې او په هغه کي د اختلاف او تصرف کولو په بيان کې دی

**تشريح**: دا د "مسائلُ الشِّرْب" دريم فصل دی، ځکه دا ښکاره خبره ده چي څرنګه د شِرْب ثبوت يقيني دی، همداسي په هغه کي د دعوې او اختلاف پېښېدل هم يقيني دي، نو ځکه په دې آخري فصل کي د هغه احکام بيانوي.

**يادونه**: د "شِرْب" تعريف مخکي تېر سو چي د اوبو واري او نوبت ته وايي چي مثلاً په نهر او واله کي نيمه ورځ د يوه واری وي او نيمه ورځ د بل واری وي او داسي نور.

## د ځمکي له دعوې څخه بغير فقط د اوبو د واري (شِرْب) دعوىٰ کول

قَالَ: وَيَصِحُّ دَعْوَى الشِّرْبِ بِغَيْرِ أَرْضٍ اِسْتِحْسَانًا فرمايي: او له ځمکي څخه بغير [يوازي] د شِرْب دعوىٰ کول استحساناً صحيح دي لِأَنَّهُ قَدْ يُمْلَكُ بِدُوْنِ الْأَرْضِ إِرْثًا ځکه چي شِرْب کله د ميراث په توګه بغير له ځمکي [هم] په ملکيت کي داخليږي وَقَدْ يَبِيْعُ الْأَرْضَ وَيَبْقَى الشِّرْبُ لَهُ او کله انسان ځمکه خرڅوي او شِرْب د هغه لپاره پاتيږي [يعني يوازي ځمکه خرڅه کړي او شِرب (د اوبو واری) د ځان لپاره پرېږدي] وَهُوَ مَرْغُوْبٌ فِيْهِ او شِرْب داسي شَے دي چي رغبت پکښي کيږي [يعني د اوبو واري ته د هر چا رغبت کيږي چي زما کښت او ځمکه به په اوبه کيږي] فَيَصِحُّ فِيْهِ الدَّعْوٰى نو ځکه د هغه په باره کي دعوىٰ کول به صحيح وي.

**اللغات**: ﴿إِرث﴾ ميراث.

**تشريح**: بغير له ځمکي که څوک يوازي د شِرْب دعوىٰ وکړي (چي مثلاً په دې نهر او واله کي زه د اوبو واری لرم)، نو د قياس تقاضا دا ده چي هغه دعوىٰ به نه اورېدل کيږي، ځکه چي شِرْب بغير له ځمکي په ملکيت کي نه داخليږي، لهذا د هغه دعوىٰ کول به هم صحيح نه وي، خو دلته په استحسان باندي عمل سوی دی چي ځيني وخت بغير له ځمکي هم شِرْب چا ته په ميراث او داسي نورو کي

حاصلېدلای سي. او دا هم کېدلای سي چي سړی پوازي ځمکه خرڅه کړي او شِرْب را وګرځوي، نو ځکه د هغه دعوی به اورېدل کېږي.

## په خپله ځمکه کي د بل چا نهر نه پرېښوول

وَإِذَا كَانَ نَهْرٌ لِرَجُلٍ يَجْرِيْ فِيْ أَرْضِ غَيْرِهِ او کله چي د يو سړي نهر د بل چا په ځمکه کي بهيږي فَأَرَادَ صَاحِبُ الْأَرْضِ أَنْ لَا يَجْرِيَ النَّهْرُ فِيْ أَرْضِهِ بيا د ځمکي والا وغواړي چي دا نهر به زما په ځمکه کي نه بهيږي تُرِكَ عَلٰى حَالِهِ نو نهر به پر خپل حال پرېښوول کيږي لِأَنَّهُ مُسْتَعْمِلٌ لَهُ بِإِجْرَاءِ مَائِهِ ځکه چي نهر والا د نهر د اوبو په جاري کولو سره د هغه استعمالونکی دی فَعِنْدَ الْإِخْتِلَافِ يَكُوْنُ الْقَوْلُ قَوْلَهُ نو د اختلاف په وخت کي به قول د هغه معتبر وي فَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيْ يَدِهِ وَلَمْ يَكُنْ جَارِيًا لېکن که نهر د هغه په قبضه کي نه وي او جاري نه وي فَعَلَيْهِ الْبَيِّنَةُ أَنَّ هٰذَا النَّهْرَ لَهُ نو پر هغه بيّنه پېشول لازم دي پر دې خبره چي دغه نهر د ده دی أَوْ أَنَّهُ قَدْ كَانَ مَجْرَاهُ لَهُ فِيْ هٰذَا النَّهْرِ يَسُوْقُهُ إِلٰى أَرْضِهِ لِيَسْقِيَهَا يا [پر دې خبره] چي ده ته په دې نهر کي د اوبو جاري کولو حق وو چي د خپلي ځمکي د اوبولو لپاره اوبه پکښي بيايي فَيُقْضٰى لَهُ نو بيا به د هغه لپاره د دې نهر فيصله کول کيږي لِإِثْبَاتِهِ بِالْحُجَّةِ مِلْكًا لَهُ أَوْ حَقًّا مُسْتَحَقًّا فِيْهِ ځکه چي هغه په دليل [بيّنه] سره په دې نهر کي خپل ملکيت يا خپل مستحق [لازم شده] حق ثابت کړی دی وَعَلٰى هٰذَا الْمَصَبُّ فِيْ نَهْرٍ أَوْ عَلٰى سَطْحٍ أَوِ الْمِيْزَابُ او پر همدغه حکم دي په يو نهر کي يا پر يو بام يا په ناوه کي د اوبو بهولو [بيولو] حق أَوِ الْمَمْشٰى فِيْ دَارِ غَيْرِهِ يا د بل چا په کور کي د تېرېدلو حق فَحُكْمُ الْإِخْتِلَافِ فِيْهَا نَظِيْرُهُ فِي الشِّرْبِ نو په دې شيانو کي د اختلاف حکم په شرب کي د اختلاف نظير دی.

**اللغات**: ﴿يجري﴾ د ضرب د باب مضارع ده: جاري کېدل، تلل. ﴿يسوقه﴾ د نصر د باب مضارع ده: بيول (چلول). ﴿مصبّ﴾ د نصر له بابه د اسم ظرف صيغه ده: د اوبو بهولو (بيولو) ځای. ﴿سطح﴾ بام، چت. ﴿ميزاب﴾ ناوه. ﴿ممشیٰ﴾ د ضرب له بابه د اسم ظرف صيغه ده: د تللو ځای (د تګ راتګ ځای).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که د يو چا نهر (واله) د بل چا په ځمکه کي بهيږي، او ځمکي والا وغواړي چي دا نهر دي بند سي، نو که چيري نهر د صاحب النهر (نهر والا) په قبضه کي وي يا هغه نهر

جاري وي. نو بغير له بينې پېشولو به هغه پر خپل حال پرېښوول کيږي يعني د صاحب النهر په حق کي به فيصله کيږي. او که هيڅ د قبضې صورت ښکاره نه وي (يعني پر دغه نهر د نهر والا د قبضې کېدلو هيڅ علامت نه وي) او نه نهر جاري وي. نو بيا به مدعي (نهر والا) په بينه سره دا ثابتوي چي دا زما نهر دی يا ما ته دلته داوبو بهولو حق سته چي زه د همدې لاري خپلي ځمکي ته اوبه بوځم او اوبه يې کړم (که پر دې خبره بينه پېش کړي) نو د هغه لپاره به فيصله کيږي. يعني په بينه سره که خپل ملکيت ثابت کړي. نو د ملکيت فيصله به کيږي (چي د دې نهر مالک هغه دی). او که د اوبو بېولو حق په ثابت کړي. نو د هغه فيصله به کيږي.

وعلى هٰذا إلخ: فرمايي چي پر همدغه حکم دا لاندېني صورتونه هم دي:

① که يو سړی دعوىٰ وکړي چي د فلانکي په نهر کي ما ته داوبو بهولو (تېرولو) حق سته. ② يا د فلانکي پر بام ما ته د خپل بام داوبو تېرولو حق سته. ③ يا د فلانکي له ناوې څخه ما ته د خپل بام د اوبو بهولو حق سته. ④ يا د فلانکي په ځمکه کي زما د لاري حق سته چي پکښي ځم راځم.

نو په دې ټولو صورتونو کي د اختلاف هاغه حکم دی کوم چي د شِرب په هکله ذکر سو. يعني که دا ټوله شيان بالفعل موجوده وي (يا په بله وينا پر دې شيانو د مدعي ظاهري قبضه موجوده وي). نو د هغه قول معتبر دی او د هغه په حق کي به فيصله کيږي، کنې دا به په بينه سره ثابتوي چي دا زما حق دی. نو بيا به د هغه په حق کي فيصله کيږي.

## په مشترکه نهر کي د حق شرب بيان

> وَإِذَا كَانَ نَهْرٌ بَيْنَ قَوْمٍ وَاخْتَصَمُوْا فِي الشِّرْبِ او کله چي نهر د يو قوم په مينځ کي [مشترک] وي او دوی د شرب په هکله دعوىٰ کړي كَانَ الشِّرْبُ بَيْنَهُمْ عَلىٰ قَدْرِ أَرَاضِيْهِمْ نو شرب به د دوی تر مينځ د دوی د ځمکو په قدر وي لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ الِانْتِفَاعُ بِسَقْيِهَا ځکه چي [د شرب] مقصد د ځمکي د اوبولو نفع اخيستل دي فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِهِ نو ځکه شرب به د انتفاع په قدر ټاکل کيږي بِخِلَافِ الطَّرِيْقِ په خلاف د لاري لِأَنَّ الْمَقْصُوْدَ التَّطَرُّقُ ځکه [هلته] مقصود لاره ايستل دي وَهُوَ فِي الدَّارِ الْوَاسِعَةِ وَالضَّيِّقَةِ عَلىٰ نَمَطٍ وَاحِدٍ او لاره ايستل [الاره جوړول] په پراخ کور او تنګ کور [دواړو] کي پر يوه طرز وي فَإِنْ كَانَ الْأَعْلىٰ مِنْهُمْ لَا يَشْرَبُ حَتّٰى يَسْكُرَ النَّهْرَ بيا که له دوی څخه لوړ طرف والا شريک خپله ځمکه اوبه نه کړی تر دې چي نهر بند کړي ايعني د خپلي ځمکي د اوبولو لپاره په نهر کي بند

ولکوي] لَمْ يَكُنْ لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې حق نسته لِمَا فِيهِ مِنْ إِبْطَالِ حَقِّ الْبَاقِيْنَ ځکه په دې کې د پاته خلکو [شريکانو] د حق باطلول سته وَلٰكِنَّهُ يَشْرَبُ بِحِصَّتِهِ لېکن هغه به د خپلې حصې په اندازه ځمکه اوبوي فَإِنْ تَرَاضَوْا عَلٰى أَنْ يَسْكُرَ الْأَعْلٰى النَّهْرَ حَتّٰى يَشْرَبَ بِحِصَّتِهِ بيا که دوی ټول په دې راضي سي چې لوړ طرف والا شريک دې نهر بند کړي تر دې چې هغه د خپلې حصې په اندازه ځمکه اوبه کړي أَوْ اِصْطَلَحُوا عَلٰى أَنْ يَسْكُرَ كُلُّ رَجُلٍ مِنْهُمْ فِيْ نَوْبَتِهِ يا ټول پر دې اتفاق وکړي چې په خپل واري کې دې هر يو نهر بندوي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمْ ځکه چې حق د همدوی دی إِلَّا أَنَّهُ إِذَا تَمَكَّنَ مِنْ ذٰلِكَ بِلَوْحٍ لېکن کله چې هغه په تخته سره د نهر پر بندولو قادر نه وي لَا يَسْكُرُ بِمَا يَنْكَبِسُ بِهِ النَّهْرُ مِنْ غَيْرِ تَرَاضٍ نو هغه دې په داسې شي سره نهر نه بندوي چې په هغه سره نهر ډکيږي بغير د دوی له رضاء څخه لِكَوْنِهِ إِضْرَارًا بِهِمْ ځکه چې په دې سره دوی ته ضرر رسيږي.

**اللغات:** ﴿اختصموا﴾ د افتعال له بابه د جمع مذکر غائب ماضي معلومي صيغه ده: جنګ او دعوی کول. ﴿اصطلحوا﴾ مخکنۍ صيغه ده: پر يو څه د خلکو اتفاق کول (اتفاق راتلل)، ﴿انتفاع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: نفع او فايده اخيستل. ﴿نمط﴾ طرز، طريقه. ﴿يسکر﴾ د نصر د باب مضارع ده د "يَسُدُّ" په معنیٰ سره ده: نهر (واله) بندول، بند پر لګول (بند وراچول). ﴿لوح﴾ تخته. ﴿ينکبس﴾ د انفعال د باب مضارع ده: په خاوره وغيره سره ډکېدل. پټېدل. بندېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو نهر (واله) د څو خلکو تر مينځ مشترکه وي. بيا شريکان د اوبو د واري (نوبت) په هکله دعوی او اختلاف وکړي چې زما شرب دومره دی او زما د دومره دی (مثلاً يو ووايي چې زما د اوبو واري درې ساعته [ګينټې] دی چې زه به درې ساعته اوبه لګوم او بل ووايي چې زما د څلور ساعته دی او يو د بل خبره نه مني). نو په دې صورت کې به شرب (د اوبو واری) د دوی په مينځ کې د دوی د ځمکو په حساب سره ټاکل کيږي: ځکه د شرب مقصد ځمکه اوبول دي. لهذا د چا چې څومره ځمکه وي. د هغه مطابق به د هغه په حق کې د شرب فيصله کيږي.

د دې په خلاف که چیري د مشترکي لاري (کوم چي د کورو مخ ته تېرېږي) د مقدار په هکله جنګ او جنجال واقع سي، نو هلته به دا طریقه نه اختیارول کېږي؛ ځکه د چا کور که پراخ وي او که تنګ وي، د تېرېدلو لار خو ضرور غواړي. او لار (کوم چي د کورو مخ ته تېرېږي) د ټولو لپاره په یوه اندازه وي.

فإن الأعلى إلخ: د دې حاصل دا دی چي د نهر په شریکانو کي د کوم یوه ځمکه لوړه وي، که هغه وغواړي چي په نهر کي بند ولګوي او خپله ځمکه اوبه کړي، نو فرمایي چي هغه ته د دې حق او اختیار نسته؛ ځکه په داسي کولو سره د نورو شریکانو حق باطلیږي او په دې کي د دوی نقصان دی. نو هغه ته پکار دي چي بغیر له بند لګولو خپله حصه اوبه کړي.

فإن تراضوا إلخ: ها! که ټوله شریکان په دې راضي وي او اجازت ورکړي، نو بیا هغه ته د دې اختیار سته؛ ځکه چي دا د همدوی حق دی، لیکن د بند لپاره به داسي شی استعمالوي چي د هغه په وجه د نهر د کېدلو او بند پاتېدلو خطره نه وي، مثلاً په ایله خارو وغیره سره به یې نه بندوي. د دې لپاره چي نور شریکانو ته د خاورو وغیره په راکښلو سره تکلیف نه ورسیږي، بلکي په تخته او داسي نورو شیانو سره دي بند لګوي، ها! که شریکان د خارو وغیره په بند راضي وي، نو بیا جائز دي، څه حرج پکښي نسته.

## له خاص نهر څخه د بل نهر کیندلو حکم

وَلَيْسَ لِأَحَدِهِمْ أَنْ يَكْرِيَ مِنْهُ نَهْرًا أَوْ يَنْصِبَ عَلَيْهِ رَحَى مَاءٍ إِلَّا بِرِضَا أَصْحَابِهِ او په دوی کي یوه ته دا حق سته چي له دې نهر څخه نهر وکیندي یا پر دې نهر د اوبو ژرنده ولګوي مګر د خپلو ملګرو په رضاء سره لِأَنَّ فِيهِ كَسْرَ ضِفَّةِ النَّهْرِ ځکه په دې کي د نهر د څنډې [غاړې] ماتول سته وَشَغْلَ مَوْضِعٍ مُشْتَرَكٍ بِالْبِنَاءِ او بناء سره د مشترک ځای مشغولول [پکښي] سته إِلَّا أَنْ يَكُونَ رَحًى لَا يَضُرُّ بِالنَّهْرِ وَلَا بِالْمَاءِ مګر دا چي د اوبو ژرنده نهر او اوبو ته نقصان نه رسوي وَيَكُونُ مَوْضِعُهَا فِي أَرْضِ صَاحِبِهَا او د هغې ځای د هغې د خپل مالک په ځمکه کي وي لِأَنَّهُ تَصَرُّفٌ فِي مِلْكِ نَفْسِهِ ځکه چي دا په خپل ملکیت کي تصرّف کول دي وَلَا ضَرَرَ فِي حَقِّ غَيْرِهِ او د بل چا په حق کي څه ضرر نسته وَمَعْنَى الضَّرَرِ بِالنَّهْرِ مَا بَيَّنَّاهُ مِنْ كَسْرِ ضِفَّتِهِ او د نهر د نقصان مطلب هاغه دی کوم چي موږ بیان کړی یعني د نهر څنډه ماتول وَبِالْمَاءِ أَنْ يَتَغَيَّرَ عَنْ سُنَنِهِ الَّذِي كَانَ يَجْرِي عَلَيْهِ او د اوبو د نقصان مطلب دا دی چي اوبه له خپل هغه طریقې څخه متغیري سي چي [مخکي] پر هغه جاري وي [یعني د مخکي په څېر نه

بهيږي] وَالدَّالِيَةُ وَالسَّانِيَةُ نَظِيرُ الرَّحٰى او ارهټ او سانيه د اوبو د ژرندي په شان دي.

**اللغات**: ﴿الرحى﴾ د اوبو ژرنده، يعني په اوبو سره چلېدونکې ژرنده چي پخوا به د نهر او لويي والې پر غاړه درول کېدل او هلته به جال يا داسي بل شی ورته نصب چي اوبه په زور پر ولګيږي او د اوبو په زور او فشار سره ژرنده وچليږي، اوس خو ژرندي په بجل او انجن سره چلول کيږي او هغه مخکينی رواج ختم سوچ، ﴿سنن﴾ جمع د سُنَّة ده: طريقه، لاره، ﴿الدالية﴾ له "دَلْوٌ" څخه دی، هغه آلې ته کوم چي د څاه يا نهر (والې) پر غاړه نصب سوې وي او په هغه کي څو سولاغې يا ډبې وغيره ثبت کړل سوي وي چي بيا هغه د حيوان يا اوبو په ذريعه ګرځول کيږي او اوبه په را ايستل کيږي چي کښتونه او ځمکي اوبه کړي، او هغه ته غالباً ارهټ (ارهټ) وايي. ﴿السانية﴾ دا هغه اوښ وغيره ته وايي چي د څاه يا نهر سره د هغه په غاړه يا شا کي رسی تړل سوې وي چي پر هغه يوه لويه سولاغه يا بل شی غوټه وي چي بيا د اوښ په ذريعه اوبه په رايستل کيږي.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که له مخصوص مشترک نهر څخه (يعني کوم نهر چي د متعينو خلګو [شريکانو] تر مينځ مشترک وي. که له هغه څخه) يو شريک نهر کيندل وغواړي، نو هغه د خپلو ملګرو له رضاء څخه بغير دا کار نه سي کولای، همدارنګه که يو شريک د مخصوص مشترک نهر پر غاړه د اُوبو ژرنده نصب کول غواړي، نو هم د خپلو ملګرو له رضاء او اجازت څخه بغير يې نه سي کولای؛ ځکه د نهر په کيندلو کي د دې مشترک نهر څنډه (غاړه) ماتيږي، او ژرنده د دې مشترک نهر مشترکه غاړه نيسي او دا دواړه ممنوع دي، خو که ژرنده داسي وي چي په هغه سره نهر او د هغه اوبو ته هيڅ نقصان نه رسيږي او په خپله ځمکه کي ژرنده نصب کوي (يعني د نهر هغه غاړه دده خپله ځمکه وي)، نو بيا جائز دي؛ ځکه چي دا په خپل ملکيت کي تصرف کول دی چي په دغه کي د هيچا نقصان هم نسته.

ومعنى الضرر الخ: مخکي وويل سوه چي که په دې سره نهر او اوبو ته نقصان نه رسيږي نو جائز دي، فرمايي د نهر د نقصان مطلب دا دی چي د نهر غاړه (څنډه) ماته کړل سي، او د اوبو د نقصان مطلب دا دی چي د ژرندي تر نصب کولو وروسته د نهر اوبه پر مخکنۍ طريقه نه بهيږي.

والدالية الخ: فرمايي د اوبو د ژرندي چي کوم حکم دی، هاغه حکم د ارهټ وغيره هم دی، چي که په دوی سره اوبو ته نقصان رسيږي نو جائز نه دي مګر د نورو شريکانو په اجازت سره، او که نقصان نه کوي نو جائز دي.

## پر خاص نهر د پُل جوړولو حکم

وَلَا يَتَّخِذُ عَلَيْهِ جِسْرًا وَلَا قَنْطَرَةً او يو شريک دې پر دې نهر پُل نه جوړوي بِمَنْزِلَةِ طَرِيقٍ خَاصٍ بَيْنَ قَوْمٍ لکه د يو قوم تر مينځ مشترک خاصه لاره بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ لِوَاحِدٍ نَهْرٌ خَاصٌ په خلاف د هغه صورت کله چې د يو سړي لپاره خاص نهر وي يَأْخُذُ مِنْ نَهْرٍ خَاصٍ بَيْنَ قَوْمٍ چې هغه يې له يو خاص نهر څخه اخيستی وي [يعني کوم چې مشترک وي] د يو قوم تر مينځ فَأَرَادَ أَنْ يُقَنْطِرَ عَلَيْهِ وَيَسْتَوْثِقَ مِنْهُ بيا وغواړي چې پر هغه پُل جوړ کړي او هغه مضبوطه کړي لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې حق سته أَوْ كَانَ مُقَنْطِرًا مُسْتَوْثِقًا يا [پر نهر باندې له مخکې څخه] مضبوطه پُل وي فَأَرَادَ أَنْ يَنْقُضَ ذٰلِكَ بيا هغه وغواړي چې دا پُل مات کړي وَلَا يَزِيدُ ذٰلِكَ فِي أَخْذِ الْمَاءِ او دا [پُل ماتول] د اوبو په اخيستلو کې اضافه نه راولي حَيْثُ يَكُونُ لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې حق هم سته لِأَنَّهُ يَتَصَرَّفُ فِي خَالِصِ مِلْكِهِ وَضْعًا وَرَفْعًا ځکه چې هغه په خپل خالص ملکيت کې تصرف کوي په اعتبار [د پُل] اېښوولو او پورته کولو [جوړولو او ماتولو] سره وَلَا ضَرَرَ بِالشُّرَكَاءِ بِأَخْذِ زِيَادَةِ الْمَاءِ او د شرکاؤ هيڅ ضرر نسته د زياتو اوبو په اخيستلو سره [يعني دا کس زياتې اوبه هم نه کشوي چې شريکانو ته نقصان ورسيږي].

**اللغات:** ﴿جِسْر﴾ او جِسْر: هر ډول پُل ته وايي (يعني هغه لاره کوم چې پر واله يا سيند د پاسه د تېرېدلو لپاره جوړه سوې وي). ﴿قنطرة﴾ هغه پُل ته کوم چې د قوس په شکل (کوږ) جوړ سوی وي لکه ځيني پلونه. ﴿يستوثق﴾ د استفعال د باب مضارع ده: پخول. مضبوطول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې يوه شريک ته هم دا حق نسته چې پر مخصوص مشترک نهر يو پُل جوړ کړي. لکه په مشترکه لاره کې (کوم چې د څو کورو والا تر مينځ مشترکه وي) چا ته دا حق نسته چې څه تصرف پکښې وکړي. همداسې دلته هم دا حکم دی. خو که د نورو شريکانو له طرفه اجازت وي. نو جائز دي.

**بخلاف إلخ:** د دې په خلاف که يو چا مثلاً زيد له دغه مشترک خاص نهر څخه د هغو په اجازت نهر کيندلی وي. اوس که هغه پر دې نهر پُل جوړول غواړي. نو ځرنګه چې په دې کې د چا څه نقصان نسته. نو ځکه جائز دي. يا مثلاً مخکې پر دې نهر يو پُل وو. اوس د هغه ليرې کول وغواړي. نو هم جائز دي: ځکه په دې کې هم د چا نقصان نسته چې هغه په خپل ملکيت کې تصرف کوي. او په

داسي كولو سره د اوبو په راتګ کي اضافه هم نه راځي چي د پُل جوړونكي كس وطرف ته نو زياتي اوبه راسي. نو ځكه د پُل جوړولو او ماتولو په تصرف کي هغه ته بشپړ اختيار سته.

## د نهر د خولې د پرخوالو يا د هغې د شاته كولو وغيره حكم

وَيُمْنَعُ مِنْ أَنْ يُوَسِّعَ فَمَ النَّهْرِ او هغه به له دې څخه منع كول كيږي چي د نهر خوله پراخه كړي لِأَنَّهُ يَكْسِرُ ضِفَّةَ النَّهْرِ ځكه چي دا د نهر څنډه ماتوي وَيَزِيدُ عَلَى مِقْدَارِ حَقِّهِ فِي أَخْذِ الْمَاءِ او د اوبو په اخيستلو کي د هغه د حق [حصې] پر مقدار اضافه كوي وَكَذَا إِذَا كَانَتِ الْقِسْمَةُ بِالْكُوَى او همدارنګه كله چي تقسيم د لښتيانو د سوريو [نهري دروازو] په ذريعه وي وَكَذَا إِذَا أَرَادَ أَنْ يُؤَخِّرَ فَاعَنْ فَمِ النَّهْرِ فَيَجْعَلَهَا فِي أَرْبَعَةِ أَذْرُعٍ مِنْهُ او همدارنګه كله چي هغه دا سوري [دروازه] د نهر له خولې څخه شاته كړي او د نهر له خولې څخه يې د څلورو ذراعو په اندازه کي [شاته] جوړ كړي [نو هم به منع كول كيږي] لِاحْتِبَاسِ الْمَاءِ فِيهِ فَيَزْدَادُ دُخُولُ الْمَاءِ ځكه چي په دې کي اوبه راګرځي نو [په دې سره] د اوبو راتلل زياتيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا أَرَادَ أَنْ يُسَفِّلَ كُوَاهُ أَوْ يَرْفَعَهَا په خلاف د هغه صورت كله چي سړی خپل د لښتي سوري [دروازه] لاندي كړي يا پورته كړي حَيْثُ يَكُونُ لَهُ ذٰلِكَ فِي الصَّحِيحِ نو د صحيح قول مطابق هغه ته د دې حق سته لِأَنَّ قِسْمَةَ الْمَاءِ فِي الْأَصْلِ بِاعْتِبَارِ سَعَةِ الْكُوَّةِ وَضِيقِهَا ځكه چي اصلاً د ابو تقسيم د سوري د پراخوالي او تنګوالي په اعتبار سره وي مِنْ غَيْرِ اعْتِبَارِ التَّسَفُّلِ وَالتَّرَفُّعِ بغير له اعتبار كولو څخه د لاندي والي او پورته والي وَهُوَ الْعَادَةُ همدا عادت [او رواج] دی فَلَمْ يَكُنْ فِيهِ تَغْيِيرُ مَوْضِعِ الْقِسْمَةِ نو په دې کي د تقسيم د ځای بدلول نسته.

**اللغات:** ﴿فم﴾ خوله. ﴿ضِفة﴾ څنډه. كناره. غاړه. ﴿الكُوىٰ﴾ جمع د كُوّة ده: په اصل کي هغه سوري ته وايي كوم چي د رڼا راتللو لپاره په دېوال کي جوړ سوی وي يعني كوچنۍ كړكۍ (دريڅه). دلته ځني مراد د اوبو را ايله كولو (خلاصولو) هغه دروازه او سوري دی كوم چي د لښتي په خوله کي جوړ سوی دی. موره. په بله وينا دا چي د نهر او لښتي دروازه (جوړه سوې خوله). قال في الحاشية: ...ويستعار الكوى لمفاتيح الماء والجداول، فيقال كوى النهر، كذا في المغرب.

**تشريح:** دلته په نهر کي د لاس وهلو څو نوري مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چې كه يو شريک وغواړي چي د خپل نهر (والې) خوله پراخه كړي. نو له دې كار څخه به په ټينګه منع كول كيږي: ځكه په داسي كولو کي دوه نقصانه دي: ① يو دا چي د نهر

ځنډه به ماته سي، ② او بل دا چي د دې شريک وطرف ته به د اوبو مقدار زيات سي. او په مشترک شي کي د يوه نقصان اجازه هم نسته.

(۲)... دويمه مسئله دا ده که د شريکانو تر مينځ د سوريانو او دروازو په ذريعه نهر تقسيم سوی وي کوم چي يې د لبنتيانو په اول کي جوړ کړي وي، نو په دې صورت کي يوه شريک ته د خپل لبنتي د سوري او دروازې د پرخوالو حق نسته؛ ځکه په دې سره هم نورو شريکانو ته ضرر رسيږي.

وكذا إذا أراد إلخ: (۳)... دريمه مسئله دا ده که يو شريک خپل د لبنتي سوری يعني دروازه (جوړه خوله) شاته کول وغواړي مثلاً ځلور ذراعه يې شاته جوړول وغواړي، نو هغه ته د دې حق او اختيار نسته؛ ځکه په دې توګه د ده پر طرف اوبه زور کوي او زياتي اوبه ورځي، او ښکاره ده چي په دې کي هم د نورو شريکانو نقصان دی.

د دې په خلاف که يو شريک د خپل لبنتي سوری (دروازه) پورته کول يا لاندي کول وغواړي، نو هغه ته د دې اختيار سته، ځکه چي د اوبو تقسيم په حقيقت کي د دې سوري د تنګوالي او پراخوالي په اعتبار سره کيږي، او په لاندي کولو يا پورته کولو سره په اوبو کي اضافه نه راځي، لهذا په دې سره نه د تقسيم په ځای کي څه بدلون راځي او نه د يوه شريک نقصان پکښي سته، نو ځکه دا جائز دي. (احسن الهدايه)

## د نهر د تقسيم بدلولو يو صورت

| وَلَوْ كَانَتِ الْقِسْمَةُ وَقَعَتْ بِالْكُوَى او که تقسيم د لبنتيانو د سوړيو [نهري دروازو] په ذريعه واقع سوی وي فَأَرَادَ أَحَدُهُمْ أَنْ يُقَسِّمَ بِالْأَيَّامِ بيا له شريکانو څخه يو وغواړي چي د ورځو په ذريعه تقسيم وکړي لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې حق نسته لِأَنَّ الْقَدِيْمَ يُتْرَكُ عَلٰى قِدَمِهِ ځکه چي پخواني څه پر خپل پخوا والي پرېښوول کيږي لِظُهُوْرِ الْحَقِّ فِيْهِ په هغه کي د حق ښکاره کېدلو په وجه. |
|---|

**اللغات:** ﴿کُوىٰ﴾ جمع د کُوَّةُ ده؛ تعريف يې د مخکيني عبارت په لغاتو کي ذکر سو.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که مخکي د شريکانو تر مينځ د نهر د اوبو تقسيم د سوړيو په ذريعه سوی وي يعني چي د هر يوه لبنتي ته دروازه او جوړه خوله ور کول سوې وي چي د هغه د لاري د هر يوه ځمکي ته اوبه ځي. لېکن اوس په دوی کي يو شريک وغواړي چي د دې پر ځای په ورځو سره وېش او تقسيم وسي چي مثلاً يوه ورځ يو شريک ټوله نهر اخلي او کاروي او بله ورځ يې دا بل شريک اخلي...، نو د داسي کولو اختيار ورته نسته؛ ځکه د تقسيم کولو په وخت کي چي کوم أصول تاکل سوي دي، هغه به نه ماتول کيږي، خو که ټوله شريکان په دې خوښ او راضي وي، نو بيا جائز دي.

## په نهر کې د خپل لښتي د سوري او دروازې د بدلولو حکم

وَلَوْ كَانَ لِكُلٍّ مِنْهُمْ كُوًى مُسَمَّاةٌ فِيْ نَهْرٍ خَاصٍّ او که په خاص نهر کې د دوی ټولو لپاره متعین سوري [دروازې] وي لَيْسَ لِوَاحِدٍ أَنْ يَزِيْدَ كُوَّةً نو يوه ته دا اختيار نسته چې په سوريو کې زياتوب [اضافه] وکړي وَإِنْ كَانَ لَا يَضُرُّ بِأَهْلِهِ که څه هم هغه د نهر خلکو ته ضرر نه رسوي لِأَنَّ الشَّرِكَةَ خَاصَّةٌ ځکه چې شرکت خاص دی بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الْكُوَى فِي النَّهْرِ الْأَعْظَمِ په خلاف د هغه صورت کله چې سوري په يو ستر نهر کې وي لِأَنَّ لِكُلٍّ مِنْهُمْ أَنْ يَشُقَّ نَهْرًا مِنْهُ ابْتِدَاءً ځکه چې هر شريک ته ابتداءً [له شروع څخه] دا حق سته چې له ستر نهر څخه نهر [واله] راوباسي فَكَانَ لَهُ أَنْ يَزِيْدَ فِي الْكُوَى بِالطَّرِيْقِ الْأَوْلَى نو په سوريو کې د زياتوب کولو حق به هغه ته په درجه اولیٰ وي.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که نهر د څو متعينو خلکو تر مينځ مشترک وي (کوم ته چې نهر خاص وايي) او په هغه نهر کې د هر شريک پر لښتي دروازه يعني جوړه خوله (کُوّة) وي چې د هغه د لارې يې ځمکې ته اوبه ځي، اوس که له دوی څخه يو وغواړي چې د خپل لښتي دا دروازه او سوری زيات کړي يعني يوه بله دروازه هم جوړه کړي يا د اولې دروازې پر ځای بله پراخه دروازه جوړه کړي، نو دا جائز نه دي، برابره ده شريکانو ته نقصان رسيږي، که نه، ځکه چې دا شرکت خاصه دی چې په هغه کې د شريکانو له اجازت څخه بغير تصرّف کول جائز نه دي.

**بخلاف إلخ**: خو په ډېر غټ نهر کې داسې کول جائز دي؛ ځکه له غټ نهر څخه هر چا ته د لښتي را ايستلو حق سته (لکه مخکې چې ذکر سوه)، نو د سُوري او دروازې د زياتولو او پراخولو حق خو به په درجه اولیٰ وي.

## د مشترک نهر د اوبو په وارې (شِرْب) سره خپله بله ځمکه اوبول (حکم او تفصيل)

وَلَيْسَ لِأَحَدِ الشُّرَكَاءِ فِي النَّهْرِ أَنْ يَسُوْقَ شِرْبَهُ إِلَى أَرْضٍ لَهُ أُخْرَى لَيْسَ لَهَا فِيْ ذٰلِكَ شِرْبٌ او د نهر له شريکانو څخه يوه ته دا حق نسته چې خپل شِرْب و خپل بلې ځمکې ته بوځي چې په دې نهر کې د هغې لپاره شِرْب نه وي لِأَنَّهُ إِذَا تَقَادَمَ الْعَهْدُ ځکه کله چې زمانه پخوانۍ سي [يعني يو څو وخت تېر سي. مطلب دا چې که د پورتني کار اجازت ورکول سي او بيا څه زمانه تېره سي] يُسْتَدَلُّ بِهِ عَلَى أَنَّهُ حَقُّهُ نو دا شريک به په هغه سره دليل نيسي پر دې خبره چې هغه د ده خپل حق دی وَكَذَا إِذَا أَرَادَ أَنْ يَسُوْقَ

شِرْبَهٗ فِيْ أَرْضِهِ الْأُولٰى حَتّٰى يَنْتَهِيَ إِلٰى هٰذِهِ الْأَرْضِ الْأُخْرٰى او همدارنګه کله چي هغه وغواړي چي خپل شرب و خپل اولي ځمکي ته بوځي تر دې چي هغه ورسيږي و دې بلي ځمکي ته لِأَنَّهٗ يَسْتَوْفِيْ زِيَادَةً عَلٰى حَقِّهٖ ځکه چي [په دې صورت کي] هغه تر خپل حق زياتي اوبه اخلي إِذِ الْأَرْضُ الْأُولٰى تَنْشِفُ بَعْضَ الْمَاءِ قَبْلَ أَنْ يَسْقِيَ الْأُخْرٰى ځکه اوله ځمکه څه اوبه جذب کوي مخکي تر دې چي هغه بله اوبه کړي [په آسانه وينا دا چي بلي ځمکي ته له اولي ځمکي څخه هغه وخت اوبه ځي کله چي اوله ځمکه څه اوبه جذب کړي. نو په دې توګه زياتي اوبه کارول کيږي. نو ځکه جائز نه دي] وَهُوَ نَظِيْرُ طَرِيْقٍ مُشْتَرَكٍ او دا مثال د مشترکي لاري دی [يعني دا مسئله د مشترکي لاري د مسئلې په څېر ده چي په هغې کي څو کورونو والا شريکان وي] إِذَا أَرَادَ أَحَدُهُمْ أَنْ يَفْتَحَ فِيْهِ بَابًا إِلٰى دَارٍ أُخْرٰى سَاكِنُهَا غَيْرُ سَاكِنِ هٰذِهِ الدَّارِ الَّتِيْ مَفْتَحُهَا فِيْ هٰذَا الطَّرِيْقِ کله چي له دوی څخه يو شريک وغواړي چي په هغه کي دروازه خلاصه کړي بل داسي کور ته چي د هغه اوسېدونکي د هغه کور له اوسېدونکي څخه بغير وي چي د هغه دروازه په دغه لاره کي وي.

**اللغات:** ﴿يسوق﴾ د نصر د باب مضارع ده: بېول، چلول. ﴿تقادم﴾ د تفاعل د باب ماضي ده: پخوانی کېدل، مخکي کېدل. ﴿يستوفي﴾ د استفعال د باب مضارع ده: ترلاسه کول، اخيستل. ﴿تَنْشِفُ﴾ د سمع له بابه د واحد مؤنث غائب مضارع معلومي صيغه ده: جذبول (چيښل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که له شريکانو څخه يو شريک د مشترک نهر اوبه و بلي داسي ځمکي ته بيايي چي په دې نهر کي د هغې لپاره د اوبو واری (شِرْب) نه وي ټاکل سوی، نو د هغه لپاره دا جائز نه دي. کنې څه زمانه وروسته به هغه وايي چي دا خو زما حق دی او د دې ځمکي لپاره مي هم شِرْب ټاکل سوی دی. نو ځکه هغه به له دې څخه منع کول کيږي.

**يادونه:** لېکن که ټول شريکان په دې راضي وي او اجازت ورکړي، نو جائز دي.

وکذا إلخ: فرمايي که د چا دوې ځمکي وي چي د يوې شِرْب په دې نهر کي سته او د بلي لپاره نسته. نو دا بلي ته اوبه بېول جائز نه دي. همدارنګه که يوې ځمکي ته دومره اوبه بوځي چي په هغې سره دا بله هم اوبه سي، نو دا هم جائز نه دي؛ ځکه هغه ته د يوې ځمکي د اوبولو حق سته او دلته هغه دوې ځمکي اوبه کړې دي او زياتي اوبه يې اخيستي دي؛ ځکه اوله ځمکه چي کله څه اوبه جذب کړي نو بيا له هغې څخه دا بلي ځمکي ته اوبه بيايي نو په دې توګه به د هغه اوبه د نورو شريکانو له اوبو څخه

زياتي سي. او ښکاره خبره ده چي له خپل حق څخه زياتي اوبه اخيستل په دې کي د نورو نقصان دی. حال دا چي يوه شريک ته هم نقصان رسول صحيح نه دي. نو ځکه دا صورتونه ناجائز دي.

**يادونه:** او که هغه خپل يوه ځمکه اوبه کړي او د لښتي خوله بنده کړي. بيا د دغه ځمکي په اوبو سره بله ځمکه اوبه کړي. نو جائز دي: ځکه اوس هغه له خپل حق څخه زيات نه دي اخيستي. او که خوله يې بنده نه کړي. نو جائز نه دي. (شامي ج: ۵ ص: ۲۸۶)

وهونظير إلخ: فرمايي دا پورتني مسئله د طريق مشترک د مسئلې په څېر ده. حاصل يې دا دی چي په يوه لاره کي څو خلک شريکان دي او ديوه شريک مثلاً د زيد دوه کورونه دي چي فقط ديوه کور دروازه يې همدې لاري ته راخلاصيږي او هغه بل کور يې نورو خلکو ته ورکړی دی چي د هغه دروازه بل طرف ته ده. اوس زيد غواړي چي د دې بل کور دروازه هم دغه لاري ته راخلاصه سي. نو زيد ته دا حق نسته: ځکه په دې سره په مشترکه لاره کي د تېرېدونکو کسانو شمېر زياتيږي کوم چي د ستونزي سبب ګرځي (لکه څرنګه چي يو متل دی چي: ډېری سي مرداری سي). خو که چيري په دې بل کور کي نور خلک نه اوسيږي. نو زيد ته د دروازې راخلاصولو حق سته: ځکه اوس په دې سره د تېرېدونکو په شمېر کي هيڅ اضافه نه راځي.

همدغسي په پورتني مسئله کي چي کله په نهر کي د هغه بلي ځمکي لپاره شرب نسته. نو زيد ته دا حق نسته چي هغې ته هم اوبه بوځي. د دې لپاره چي ځمکه اضافه نه سي يعني داسي ځمکه په دې نهر کي داخله نه سي چي د هغې حق پکښي نسته.

## د بل شريک د اوبو د لاري بندولو حکم

وَلَوْ أَرَادَ الْأَعْلَى مِنَ الشَّرِيكَيْنِ فِي النَّهْرِ الْخَاصِّ او که د نهرِ خاص له دوو شريکانو څخه لوړ طرف والا شريک اراده وکړي وَفِيهِ كُوَى بَيْنَهُمَا او په دې نهر کي د دوی دواړو تر مينځ سوريان (نهري دروازې) مشترکه وي أَنْ يَسُدَّ بَعْضَهَا [دا اراده وکړي] چي له هغوی څخه بعضي سوري بند کړي [په آسانه وينا د پوره جملې معنیٰ داسي ده چي که د نهرِ خاص له دوو شريکانو څخه لوړ طرف والا شريک دا وغواړي چي د دوی تر مينځ له مشترکو سوريو څخه بعضي سوري بند کړي] دَفْعًا لِفَيْضِ الْمَاءِ عَنْ أَرْضِهِ له خپلي ځمکي څخه د اوبو بهېدلو د دفع کولو لپاره [يعني چي ځمکي ته يې ډېري اوبه ونه بهيږي] كَيْ لَا تَنِزَّ د دې لپاره چي ځمکه يې نمجنه [اوبلنه] نه سي لَيْسَ لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې حق نسته لِمَا فِيهِ مِنَ الضَّرَرِ بِالْآخَرِ

ځکه چې په دې کې د هغه بل شریک ضرر ستهٔ وَكَذَا إِذَا أَرَادَ أَنْ يُقَسِّمَ الشِّرْبَ مُنَاصَفَةً بَيْنَهُمَا او همدارنګه کله چې یو شریک دا وغواړي چې شرب [داوبو واری] نیم په نیمه تقسیم کړي [نو هغه ته د دې حق نسته] لِأَنَّ الْقِسْمَةَ بِالْكُوى تَقَدَّمَتْ ځکه د سوریو په ذریعه تقسیم مخکې سوی دی [یعني مخکې د سوریو په ذریعه تقسیم سوی دی بغیر له شرب نیمایي کولو څخه] إِلَّا أَنْ يَتَرَاضَيَا مګر دا چې کله هغوی دواړه راضي سي لِأَنَّ الْحَقَّ لَهُمَا ځکه چې حق د همدوی دواړو دی وَبَعْدَ التَّرَاضِيْ لِصَاحِبِ الْأَسْفَلِ أَنْ يَنْقُضَ ذٰلِكَ او د دواړو له رضاء څخه وروسته لاندې طرف والا ته حق سته چې دا [یعني تقسیم بالمناصفه] مات کړي وَكَذَا لِوَرَثَتِهِ مِنْ بَعْدِهِ او همدارنګه د هغه وارثانو ته د دې حق سته تر هغه وروسته لِأَنَّهُ إِعَارَةُ الشِّرْبِ ځکه چې دا [تقسیم بالمناصفه ګواکې] شرب په اعاره ورکول دي فَإِنَّ مُبَادَلَةَ الشِّرْبِ بِالشِّرْبِ بَاطِلَةٌ ځکه چې شرب په شرب سره بدلول باطل دي.

**اللغات:** ﴿فیض﴾ د ضرب د باب مصدر دی: اوبه ډېرېدل او بهېدل (چې اوبه زیاتې سي او وبهیږي). ﴿لَا تَنِزُّ﴾ د ضرب له بابه د نفي صیغه ده: نمجنه کېدل، ځمکه اوبلنه کېدل چې د ډېرو اوبو په وجه شنه ورسته سي (داوبو په څېر شینوالی پیدا کړي)، چې دا په ځمکه کې یو نقصان دی. ﴿مناصفة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: یو د بل سره نیمایي کول، نیمه په نیمه کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که په خاص نهر کې مثلاً دوه خلګ شریکان وي چې په هغه کې څو سُوري وي یعني د لښتیانو پر خوله جوړې سوي دروازې وي کوم چې د دوی تر مینځ مشترکې وي، او د یوه ځمکه لوړه او د بل یوه دلاندې وي، اوس که لوړې ځمکې والا وغواړي چې له دې دروازو او سُوریو څخه یو، دوه بند کړي چې ځمکه یې له ډېرو اوبو څخه محفوظه سي ځکه د اوبو په ډېرښت سره ځمکه نمجنه کیږي، نو هغه ته د دې حق نسته؛ ځکه چې دا په مشترک مکان کې د خپل ملګري له رضاء څخه بغیر تصرّف کول دي. نو دا داسې جائز نه دي لکه د نهر د خولې او دروازې پراخول او غټول چې جائز نه دي.

وكذا إذا إلخ: حاصل يې دا دى چي مثلاً دا دوه شريکان چي د هغو تر مينځ تقسيم بالكوى سوى دى، كه له دوى څخه يو شريک وغواړي چي تقسيم بالمناصفه وکړي يعني داسي واری (نوبت) وټاكي چي پنځه ورځي به يو شريک ټوله نهر اخلي او کاروي، او پنځه ورځي به يې بل شريک اخلي، نو دلوړ طرف والا شريک ته د داسي تقسيم كولو حق نسته؛ ځکه تر دې مخکي تقسيم د سوريو په ذريعه سوی دی، خو كه دا بل شريک هم په دې راضي وي، نو جائز دي.

خو څرنګه چي تقسيم بالمناصفه په حقيقت كي د شِرب په عوض كي د شِرب تبادله ده (يعني دا شِرب په شِرب سره بدلول دي). او د شِرب تبادله باطله ده. نو ځكه داسي تقسيم د شِرب اعاره ګرځول سوې ده. او په اعاره كي مالک (مُعير) ته هر وخت د رجوع كولو حق سته چي خپل شی واپس واخلي، نو ځكه لاندي طرف والا شريک ته دا حق سته چي هر وخت وغواړي دا تړون (تقسيم بالمناصفه) مات كړي. او تر مرګ وروسته يې وارثانو (ميراث خورو) ته هم دا حق سته چي دا تړون مات كړي او د مخكي په څېر تقسيم (تقسيم بالكوى) جاري كړي.

## د اوبو په واري (شِرب) كي د وراثت، بيع، هبې او د وصيت حكم

وَالشِّرْبُ مِمَّا يُوْرَثُ او شرب له هغه شيانو څخه دی كوم چي ميراث كېدلای سي [يعني ميراث پكښي جاري كېدلای سي] وَيُوصٰى بِالِانْتِفَاعِ بِعَيْنِهِ او د هغه له عَين څخه د نفع اخيستلو وصيت كېدلای سي بِخِلَافِ الْبَيْعِ وَالْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ په خلاف د خرڅولو، هبه كولو او صدقه كولو وَالْوَصِيَّةِ بِذٰلِكَ او په خلاف د دې [بيع وغيره] د وصيت كولو حَيْثُ لَا تَجُوْزُ الْعُقُوْدُ چي دا عقدونه جائز نه دي إِمَّا لِلْجَهَالَةِ أَوْ لِلْغَرَرِ يا د مجهول والي په وجه يا د دوكې (فريب) په وجه أَوْ لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمَالٍ مُتَقَوِّمٍ يا په دې وجه چي شرب متقوّم [قيمتداره] مال نه دی حَتّٰى لَا يَضْمَنَ إِذَا سَقٰى مِنْ شِرْبِ غَيْرِهٖ همدا وجه ده څوک نه ضامن كيږي كله چي د بل چا په شرب سره [خپله ځمكه] اوبه كړي وَإِذَا بَطَلَتِ الْعُقُوْدُ او كله چي دا عقدونه باطل سوه فَالْوَصِيَّةُ بِالْبَاطِلِ بَاطِلَةٌ نو د باطل شي وصيت كول هم باطل دي

وَكَذَا لَا يَصْلُحُ مُسَمًّى فِي النِّكَاحِ او همدارنګه شرب په نکاح کي د مهر تاکلو صلاحيت نه لري حَتّٰى يَجِبَ مَهْرُ الْمِثْلِ تر دې چي [د هغه پر ځای] مهر مثل واجبيږي وَلَا فِي الْخُلْعِ او نه په خلع کي [د بدلِ خلع د ټاکلو صلاحيت لري] حَتّٰى يَجِبَ رَدُّ مَا قَبَضَتْ مِنَ الصَّدَاقِ تر دې چي د هغه مهر واپس کول واجبيږي کوم چي ده قبضه کړی وي لِتَفَاحُشِ الْجَهَالَةِ د جهالت د زياتېدلو په وجه وَلَا يَصْلُحُ بَدَلُ الصُّلْحِ عَنِ الدَّعْوٰى [همدارنګه] شرب له دعوې څخه د بدل صلح جوړېدلو صلاحيت [هم] نه لري لِأَنَّهُ لَا يُمْلَكُ بِشَيْءٍ مِنَ الْعُقُوْدِ ځکه چي شرب په هيڅ عقد سره په ملکيت کي نه داخليږي [يعني په هيڅ معامله سره هم څوک د شرب نه سي مالک کېدلای].

**اللغات**: ﴿يورث﴾ د سمع له بابه د نفي مجهول صيغه ده، د مجهول والي په صورت کي يې معنیٰ ده: ميراث کېدل (يو شئ ميراث پاتېدل، ميراث پکښي جاري کېدل)، ﴿مال﴾ هر هغه څه ته وايي کوم چي د انسان په ملکيت کي داخل وي (المال اسم لجميع ما يملکه الانسان)، او مال په اصل کي هغه شي ته وايي کوم ته چي طبيعت ميلان او رغبت کوي، او هر هغه شی کوم چي په پيسو رانيول سوی وي، ﴿متقوم﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: قيمتداره، قيمت لرونکی، ﴿تفاحش﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: فاحش کېدل، ډېر زياتېدل.

**يادونه**: د دې عبارت مسئله ابتدائي هم کېدلای سي يعني نوې جلا مسئله، او د مخکنی مسئلې دليل هم کېدلای سي، ﴿غرر﴾ دوکه، فرېب.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي په شرب کي وراثت هم جاري کيږي او له عين شرب څخه د نفع اخيستلو وصيت هم کول جائز دي چي دا شرب مثلاً دوې ورځي د فلانکي دی او نوري ورځي زما د وارثانو دی.

خو د شرب د بيع (خرڅولو) وصيت کول باطل دي؛ ځکه کله چي د شرب بيع، هبه او صدقه کول هيڅ هم جائز نه دي بلکي ټوله باطل دي، نو د باطل وصيت هم باطل دی؛ او د شرب د بيع د نه جائز کېدلو وجه يا خو جهالت دی يا دوکه ده چي معلونه ده په دې شرب کي به څومره اوبه راځي، يا دا چي

شِرْب مال متقوّم نه دی، او د مال متقوّم نه کېدلو دليل دا دی، چي که يو څوک د بل چا په شِرْب سره خپل کښت او ځمکه اوبه کړي، نو پر هغه ضمان (تاوان) نه لازميږي، نو په دې حوالو سره د شِرْب بيع باطله ده او کله چي بيع يې باطله ده، نو وصيت به يې څنګه جائز وي؟ ښکاره ده چي هغه هم باطل دی.

**يادونه**: که څوک د بل چا شِرْب يعني د بل چا داوبو په واري سره خپله ځمکه اوبه کړي، نو فتوىٰ خو داغه ده چي ضمان پر لازم نه دی، لېکن دا بل څوک دي قاضي او حاکم ته دا قضيه پېش کړي چي هغه تنبيه ورکړي او غندنه يې وسي او که هغه څو واره داسي وکړي، نو حاکم به سزا ورکوي، او که په بندي کولو کي يې مصلحت ويني، نو بنديخانې ته به يې اچوي. (مجمع الأنهر ج: ۲، ص: ۵۴۳)

وكذا لا يصلح إلخ: فرمايي که څوک شِرْب د مهر په توګه وټاکي، نو دا تسميه (ټاکل) صحيح نه سوه او مهر مثل واجبيږي، همدارنګه که په خلع کي شِرْب د بدل خلع په توګه وټاکي، نو دا تسميه هم صحيح نه سوه او د اخيستل سوي (مقبوضه) مهر واپس کول لازميږي؛ ځکه په شِرْب کي زيات جهالت دی؛ يعني د اوبو راتلونکی مقدار ډېر مجهول دی چي څومره اوبه به راځي.

همدارنګه که (له قصاص څخه بغير) يو څوک پر بل چا مثلاً پر زيد يوه دعوىٰ وکړي او زيد پر شِرْب صلح ورسره وکړي، نو دا صلح صحيح نه سوه؛ ځکه په شِرْب کي د بدل جوړېدلو صلاحيت نسته او نه په شِرْب کي دا صلاحيت سته چي د يو عقد په وجه د بل چا په ملکيت کي داخل سي، نو ځکه هغه په مهر وغيره کي ټاکل او د هغه بيع وغيره جائز نه دي.

**يادونه**: که د قصاص په دعوىٰ کي پر شِرْب صلح وسي، نو قصاص خو ساقطيږي؛ ځکه د قصاص ساقطېدلو لپاره قبول پکار دی، نه مقبول شی، او قبول موجود سو.

## د قرض لپاره د شِرْب خرڅولو حکم

وَلَا يُبَاعُ الشِّرْبُ فِي دَيْنِ صَاحِبِهِ بَعْدَ مَوْتِهِ بِدُونِ أَرْضٍ او شِرب به نه خرڅول کيږي د هغه د مالک په قرض کي د هغه تر مرګ وروسته بغير له ځمکي څخه كَمَا فِي حَالِ حَيَاتِهِ لکه څرنګه چي د هغه د ژوند په حالت کي [داسي نه کيږي] وَكَيْفَ يَصْنَعُ الْإِمَامُ؟ او امام به [په قرض] څه کوي؟ الْأَصَحُّ أَنْ يَضُمَّهُ إِلَى أَرْضٍ لَا شِرْبَ لَهَا نو زياته صحيح دا ده چي شِرب دي د داسي ځمکي سره يوځای کړي

چي هغې لره شرب نه وي فَيَبِيْعُهُمَا بِإِذْنِ صَاحِبِهَا بيا دي هغه دواړه د ځمكي د مالک په اجازت سره خرڅ كړي ثُمَّ يَنْظُرُ إِلَى قِيمَةِ الْأَرْضِ مَعَ الشِّرْبِ وَبِدُوْنِهِ بيا دي د ځمكي قيمت ته وګوري د شرب سره او بغير له شربه [يعني د ارض مع الشرب او ارض بدون الشرب قيمت دي سره اندازه كړي چې څومره فرق پكښي راځي] فَيَصْرِفُ التَّفَاوُتَ إِلَى قَضَاءِ الدَّيْنِ او كوم فرق چي راسي هغه دي د قرض په اداء كولو كي صرف كړي وَإِنْ لَمْ يَجِدْ ذٰلِكَ او كه امام داسي ځمكه نه ومونديٖ اِشْتَرَى عَلَى تَرِكَةِ الْمَيِّتِ أَرْضًا بِغَيْرِ شِرْبٍ نو د مړي په تركه باندې دي داسي ځمكه رانيسي كوم چي بغير له شربه وي [يعني چي شرب نه لري] ثُمَّ ضَمَّ الشِّرْبَ إِلَيْهَا وَبَاعَهُمَا بيا دي دا شرب د هغې سره يوځای كړي او دواړه دي خرڅ كړي فَيَصْرِفُ مِنَ الثَّمَنِ إِلَى ثَمَنِ الْأَرْضِ نو د ثمن يوه حصه دي د ځمكي په ثمن كي صرف كړي وَالْفَاضِلَ إِلَى قَضَاءِ الدَّيْنِ او پاته سوې حصه دي د قرض په اداء كولو كي صرف كړي وَإِذَا سَقَى الرَّجُلُ أَرْضَهُ او كله چي يو سړی خپله ځمكه اوبه كړي أَوْ مَخَرَهَا مَاءً يا ځمكه له اوبو څخه ډكه كړي أَيْ مَلَأَهَا يعني [د مخرها معنیٰ ده چي] ډكه يې كړي فَسَالَ مِنْ مَائِهَا فِي أَرْضِ رَجُلٍ بيا د هغه د ځمكي اوبه د بل سړي ځمكي ته وبهيږي فَغَرَّقَهَا نو هغه غرقه كړي أَوْ نَزَّتْ أَرْضُ جَارِهِ مِنْ هٰذَا الْمَاءِ يا له دې اوبو څخه د ده د همسايه ځمكه نمجنه سي لَمْ يَكُنْ عَلَيْهِ ضَمَانُهَا نو پر ده د هغې ضمان نسته لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِيهِ ځكه چي دئ په دې كي تعدّي كونكی نه دی.

**اللغات**: ﴿يضمّ﴾ د ضر د باب مضارع ده: يو څه د بل څه سره يوځای كول (ملاوول). ﴿نزّت﴾ د ضرب له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي معلوم صيغه ده: نمجنه كېدل، اوبلنه كېدل چي ځمكه دومر لنده خيشته سني چي (د اوبو په څېر) شينوالی پيدا كړي.

**تشريح**: مخكي دا خبره ذكر سوه چي له ځمكي څخه بغير يوازي شِرب خرڅول جائز دي، او نه يې هبه كول او صدقه كول جائز دي، پر همدې دلته دا مسئله متفرع كوي فرمايي كه پر يو سړي (مثلاً پر

زید) قرض باندي وي او هغه په همدې حالت کي مړ سي او د هغه له شِرْب څخه بغیر د قرض اداء کولو بله ذریعه نه وي، نو قرض به یې څنګه اداء کول کیږي؟، فرمایي د هغه شِرْب خو نه سي خرڅول کېدای، خو امام به د قرض اداء کولو لپاره له دې دوو صورتونو څخه یو صورت اختیاروي:

(۱)... یو صورت دا دی چي د دغه سړي (زید) د شِرْب سره چي کومه ځمکه نژدې وي، امام دي د هغې ځمکي د مالک په اجازت د هغې سره د ده شِرْب یوځای خرڅ کړی، بیا دي حساب ورته وکړي چي بغیر له شِرْب څخه د ځمکي قیمت څو وو، او د شِرْب سره یې اوس قیمت څو دی، مثلاً مخکي یې قیمت درې لکه وو، اوس د شرب سره یې قیمت څلور لکه دی، نو درې لکه دي ځمکي والا ته ورکړي او پاته لک روپۍ دي په قرض اداء کولو کي صرف کړي.

(۲)... دویم صورت دا دی چي امام دي د میت په میراث سره داسي ځمکه رانیسي چي د هغې لپاره شِرْب نه وي، او دا شِرْب دي د هغې سره یوځای خرڅ کړي، نو د شِرْب چي څومره قیمت جوړیږي په هغه دي قرض اداء کړي، او د ځمکي ثمن دي په میراث کي واپس کړي چي له هغه څخه یې د ځمکي رانیولو لپاره پیسې را اخیستي وي. نو دغه دواړه صورتونه اختیارولای سي.

**واذا سقی الخ**: د دې حاصل دا دی چي کله یو څوک مثلاً حامد په خپل واري (شِرْب) کي خپله ځمکه اوبه کړي خو د هغه له ځمکي څخه اوبه سرایت وکړي د بل چا ځمکي ته ولاړي سي او هغې ته نقصان ورسوي، نو پر دغه اوبونکي کس (حامد) هیڅ ضمان او تاوان نسته؛ ځکه چي د ده له طرفه تعدّی نه ده صادر سوې؛ ځکه د ده مقصد خو د خپلي ځمکي اوبول دي، نه د بل چا ځمکه غرقول.

**یادونه**: ځکه د دغه کس (حامد) فعل سبب دی او پر سبب د ضمان واجبېدلو لپاره تعدّی شرط ده، او دلته تعدّی نسته، نو ځکه ضمان نه واجبیږي. لېکن دا حکم هلته دی کله چي هغه په خپل واري کي ځمکه اوبه کړې وي او د خپل حق په اندازه اوبه یې لګولي وي، خو که داسي نه وي یا په بله وینا په غیرِ معتاد طریقه سره یې ځمکه اوبه کړې وي، نو دا تعدّی ده، لهذا اوس پر هغه ضمان واجبیږي، پر همدې فتوىٰ ده. (مجمع الانهر ج: ۲، ص: ۵۲۳، سکب الانهر ج: ۲، ص: ۴۹۷)

# كِتَابُ الأَشْرِبَةِ

## دا کتاب د چیښل کېدونکو شیانو (په بیان کې) دی

**تشریح**: له "مَسائل الشِّرْب" ځخه وروسته د "کِتابُ الأَشْرِبَه" د بیانولو وجه دا ده چې په دواړو کې د اشتقاق په حواله سره مناسبت دی یعني دواړه په لفظ او حروف اصلي (شرب) کې سره مشترک دي، خو څرنګه چې په شِرْب کې صرف د حلال بیان دی، او په أشربة کې د شرابو بیان هم سوی دی کوم چې حرام دي، نو ځکه اول یې شِرْب بیان کړې، اوس أشربة بیانوي.

### د شراب لغوي او اصطلاحي معنیٰ

| سُمِّيَ بِهَا وَهِيَ جَمْعُ شَرَابٍ دا کتاب په اشربه سره [ځکه] ونومول سو کوم چې جمع د شرابٌ ده لِمَا فِيْهِ مِنْ بَيَانِ حُكْمِهَا ځکه په دې کتاب کې دأشربه وو [دانواعو] د حکم بیان دی. |
|---|

**اللغات**: ﴿سُمِّيَ﴾ د تفعیل له بابه د واحد مذکر ماضي مجهولي صیغه ده: مسمی کېدل، نومول کېدل.

**تشریح**: شراب په لغت کې چیښل کېدونکي شي ته وایي لکه اوبه، شربت او داسې نور، او د شریعت په اصطلاح کې شراب هغه څه ته وایي کوم چې په انسان کې نشه پیدا کړي او سُستِ او بې هوښه یې کړي.

او د مصنف رَحِمَهُ الله د مذکوره عبارت اصل مطلب دا دی چې دلته دا یو سوال پیدا کېدلای سي چې په دې ځای کې یې ولې د "باب" پر ځای د "کتاب" عنوان ورکړی دی، ځکه "کتاب" هغه ته وایي چې مختلفُ الانواع احکام او مسائل پکښې بیان سوی وي او أشربه خو جمع د شرابٌ ده چې په هغه کې دغه اړخ نه محسوسیږي. نو په جواب کې فرمایي چې د أشربه وو انواع ډېر دي او دلته د هغوی ټولو انواعو د احکامو بیان دی. نو ځکه د "کتاب" د عنوان وَرکولو ګنجایش سته.

## د حرامو شرابونو بیان

قَالَ: الْأَشْرِبَةُ الْمُحَرَّمَةُ أَرْبَعَةٌ فرمايي: حرام کړل سوي شرابونه څلور دي الْخَمْرُ ① خمر (انګوري شراب) وَهِيَ عَصِيْرُ الْعِنَبِ إِذَا غَلَى وَاشْتَدَّ وَقَذَفَ بِالزَّبَدِ او دا [هغه] د انګورو نچوړل سوي اوبه [رَس] دي کله چي هغوی جوش وخوري [وخوټکیږي] او ځګ را وغورځوي وَالْعَصِيْرُ إِذَا طُبِخَ حَتَّى يَذْهَبَ أَقَلُّ مِنْ ثُلُثَيْهِ ② او د انګورو اوبه چي کله هغوی پخې کړل سي تر دې چي له دوو حصو څخه يې کمه حصه ختم سي وَهُوَ الطِّلَاءُ الْمَذْكُوْرُ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ او دا هاغه طلاء ده کوم چي په جامع صغير کي ذکر سوې ده وَنَقِيْعُ التَّمْرِ وَهُوَ السَّكَرُ ③ او د خرما نقيع او هغه سکر دي [د سکر معنیٰ ده: نشه راوستونکي] وَنَقِيْعُ الزَّبِيْبِ إِذَا اشْتَدَّ وَغَلَى ④ او د کشمشو نقيع کله چي هغه سخت [تېز] سي او جوش وخوري.

**اللغات:** ﴿خمر﴾ انګوري شراب. ﴿عصير﴾ له انګورو څخه را نچوړل سوي اوبه. د انګورو رَس. ﴿غلی﴾ د ماضي صيغه: جوشېدل، جوش خوړل، ځوټکېدل. ﴿اشتدّ﴾ د افتعال د باب ماضي ده: سختېدل. مراد: نشه پکښي پيدا کېدل. ﴿قذف﴾ د ضرب د باب ماضي ده. د دې باب يوه معنیٰ ده: غورځول. (را پورته کول). ﴿الزبد﴾ ځګ، زګ. ﴿ثلثيه﴾ تثنيه د ثُلُثٌ او ثُلْثٌ ده: دوې درېيمي حصې. يو شی چي درې حصې کړل سي، نو د هغه يوې حصې ته ثُلث او دوو حصو ته يې ثُلثان وايي.

**تشريح:** په دې عبارت کي مصنف رَحِمَهُ الله د شرابو څلور قسمونه ذکر کړي دي، او دا څلور سره چيښل کېدونکي شيان حرام دي: ① لول قسم د انګور اوبه (رَس) چي کله جوش وخوري (يا په بله وينا وخوټکيږي)، ځګان را پورته کړي او نشه پکښي پيدا سي، نو دا خمر (شراب) ګرځي. د "اشتداد" مطلب دا دی چي مُسکر (نشه کونکي) وګرځي. ② دويم قسم طلاء ده، يعني د انګورو اوبه چي کله دومره پخې کړل سي چي د هغه له دوو ثلثو څخه کمه حصه ختمه سي (وسوځي) يا په بله وينا دا چي له درېو حصو څخه يې څه د پاسه يوه حصه پاته سي او جوش وخوري او نشه پکښي پيدا سي، لېکن په محيط کي ذکر سوي دي چي طلاء دې ته وايي چي پوره دوې حصې (دوه ثلثه) يې ختم سي او که کم تر د دوو حصو يې ختم سي، نو هغه ته بَاذِق وايي. ③ درېيم قسم نقيعِ تمر دی چي هغه ته سکر وايي، يعني خرماوي چي کله په اوبو کي واچول سي او څو ورځي پرېښول سي چي د هغه په وجه اوبه ګاته سي او جوش وخوري او ځګ را پورته کړي (يعني بغير له پخولو داسي

وکړي)، نو دې ته نقیع تمر وایي. ④ څلورم قسیم نقیع زبیب دی، یعني کشمش چي کله په اوبو کي واچول سي او څو ورځي پرېښوول سي چي د هغه په وجه جوش او اشتداد پکښي پیدا سي.

## د خمر په هکله څو بحثونه، اول بحث (د خمر مصداق)

أَمَّا الْخَمْرُ فَالْكَلَامُ فِيهَا فِي عَشَرَةِ مَوَاضِعَ کوم چي خمر [شراب] دي نو د هغوی په هکله لس ځایه خبره سته أَحَدُهَا فِي بَيَانِ مَائِيَّتِهَا یو له هغه [ځایو] څخه د خمرو د مائیت په بیان کي خبره ده وَهِيَ النِّيءُ مِنْ مَاءِ الْعِنَبِ إِذَا صَارَ مُسْكِرًا او دا [خمر] دانګور هغه اومې اوبه دي کله چي نشه کونکي [نشه راوستونکي] وګرځي وَهٰذَا عِنْدَنَا او دا زموږ په نېز دي وَهُوَ الْمَعْرُوفُ عِنْدَ أَهْلِ اللُّغَةِ وَأَهْلِ الْعِلْمِ او همدا د لغتپوهانو او علماؤ په نېز پېژندل سوې ده وَقَالَ بَعْضُ النَّاسِ: هُوَ اِسْمٌ لِكُلِّ مُسْكِرٍ او ځیني خلګ وایي: چي خمر د هر نشه کونکي [نشه راوستونکي] شي نوم دی لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1] : «كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ» د نبي کریم ﷺ د دې فرمان په وجه: هر نشه کونکي څه خمر دي وَقَوْلُهُ عَلَيْهِ السلام [2] : «الْخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ» او د نبي کریم ﷺ [بل] فرمان دی چي: خمر له دغه دوو درختو څخه دی وَأَشَارَ إِلَى الْكَرْمَةِ وَالنَّخْلَةِ او نبي ﷺ دانګورو تاک او د خرما درختي ته اشاره وکړه وَلِأَنَّهُ مُشْتَقٌّ مِنْ مُخَامَرَةِ الْعَقْلِ او ځکه چي خمر له مخامرة العقل څخه مشتق دی [چي د هغه معنیٰ ده: د عقل پټېدل او مغلوب کېدل] وَهُوَ مَوْجُودٌ فِي كُلِّ مُسْكِرٍ او دا [معنی] په هر نشه راوستونکي شي کي موجوده ده.

**اللغات:** ﴿النيء﴾ کچه، اُوم، ناپوخ، ﴿الكرمة﴾ دانګورو تاک، ﴿مخامرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی، د دې باب یوه معنیٰ ده: پټېدل، پټول (ځکه چي شراب د انسان پر عقل پرده اچوي).

**تشریح:** اولاً مصنف رَحِمَهُ الله د خمر په باره کي خبره کوي، فرمایي د خمر په هکله لس (۱۰) بحثونه دي، اول بحث د خمرو د مائیت (اوبه والي) سره متعلق دی، حاصل یې دا دی چي دانګورو اومې اُوبه چي کله نشه داره وګرځي، نو بیا پر هغه د خمر اطلاق کیږي، او له دې څخه بغیر چي د نورو شیانو له اوبو څخه شراب جوړ کړل سي، هغه ته خمر نه ویل کیږي، د خمر د مائیت دغه تعریف او بیان زموږ په نېز دی، او همدا د لغتپوهانو او علماؤ په مینځ کي مشهوره ده چي خمر صرف همدې ته وایي.

---

[1] تخريج: اخرجه مسلم في كتاب الأشربة، باب بيان أن كل مسكر خمر، حديث رقم:۷۳.

[2] تخريج: اخرجه مسلم في كتاب الأشربة، باب بيان أن جميع ما ينبذ، حديث رقم:۱۵.

وقال بعض الناس إلخ: فرمايي دائمه ثلاثه وو او اصحاب ظواهرو وينا دا ده چې هر مُسكر (نشه راوستونكى شى) خمر دى، برابره ده له انګورو څخه جوړ وي يا له يو بل شي څخه، دوى پر خپل دعوىٰ درې دليلونه پېش كړي دي:

①... يو دا حديث "كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ". ②... دويم دا حديث: "الخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ"، خمر له دغه دوو درختو (يعني له انګورو او خرماوو) څخه جوړېږي، له دې څخه هم معلومه سوه چې د خمر اطلاق له انګوري شرابو څخه بغير پر نورو هم كيږي. ③... درېيم دليل دا دى چې خمر له مخامرة العقل څخه مشتق دى يعني عقل مستور او مغلوبه كېدل (انسان نشه كېدل او بې هوښه كېدل)، او دا كفيت په هر نشه كونكي شراب سره پيدا كيږي، نو معلومه سوه چې هر مُسكِر خمر دي.

## زموږ دلائل او د فريقِ مخالف جوابونه

وَلَنَا أَنَّهُ اسْمٌ خَاصٌّ بِإِطْبَاقِ أَهْلِ اللُّغَةِ فِيمَا ذَكَرْنَاهُ او زموږ دليل دا دى چې د لغتپوهانو په نېز خمر د هغه شي په هكله خاص نوم دى كوم چې موږ ذكر كړى [يعني دا خاص د انګوري شرابو نوم دى] وَلِهَذَا اُشْتُهِرَ اِسْتِعْمَالُهُ فِيهِ او په همدې وجه په هغه شي [انګوري شرابو] كي د خمر استعمال مشهوره دى وَفِي غَيْرِهِ غَيْرُهُ او له هغه [انګوري شرابو] څخه بغير [يعني د نورو شرابونو] په باره كي د خمر غير [نور نومان] مشهوره دي [لكه نبيذ، نقيع، سكر] وَلِأَنَّ حُرْمَةَ الْخَمْرِ قَطْعِيَّةٌ او ځكه چې د خمر حرمت [حرام كېدل] قطعي دي وَهِيَ فِي غَيْرِهَا ظَنِّيَّةٌ او په غير خمر كي حرمت ظني دى وَإِنَّمَا سُمِّيَ خَمْرًا لِتَخَمُّرِهِ او خمر د هغوى د تخمّر [توت] په وجه خمر نومول سوي دي لَا لِمُخَامَرَتِهِ الْعَقْلَ نه په دې وجه چې هغوى عقل پټوي عَلَى أَنَّ مَا ذَكَرْتُمْ لَا يُنَافِي كَوْنَ الِاسْمِ خَاصًّا فِيهِ سره د دې چې كوم څه تاسي ذكر كړه هغه په خمر كي د نوم مخصوص كېدلو منافي نه دي فَإِنَّ النَّجْمَ مُشْتَقٌّ مِنَ النُّجُومِ لكه څرنګه چې نجم له نجوم څخه دى وَهُوَ الظُّهُورُ او هغه ښكاره كېدل دي [يعني د نجوم معنىٰ ده: ښكارېدل] ثُمَّ هُوَ اسْمٌ خَاصٌّ لِلنَّجْمِ الْمَعْرُوفِ بيا هغه د معلومو [ښكارېدونكو] ستورو لپاره خاص نوم دى [المراد أنه اسم خاص للظاهر المخصوص، وهو جنس الكواكب، لا أنه عَلَمٌ خاص لشخص معين من أفراد جنس الكواكب، هو الثرياء...(حاشيه)] لَا لِكُلِّ مَا ظَهَرَ نه د هر ښكاره كېدونكي شي [يعني هر ښكارېدونكي شي ته نجم نه وايي] وَهَذَا كَثِيرُ النَّظِيرِ او د دې مثالونه ډېر دي وَالْحَدِيثُ الْأَوَّلُ طَعَنَ فِيهِ يَحْيَى بْنُ مَعِينٍ او د اول حديث په

هکله يحيىٰ بن معين رَحِمَهُ الله طعن کړی دی وَالثَّانِيْ أُرِيْدَ بِهِ بَيَانُ الْحُكْمِ او په دويم حديث سره د حکم بيانولو اراده سوې ده [يعني په هغه سره مقصود شرعي حکم بيانول دی، نه دوضع او لغت بيان] إِذْ هُوَ اللَّائِقُ بِمَنْصِبِ الرِّسَالَةِ ځکه چې همدا د پيغمبرۍ د منصب لائق دي.

**اللغات**: ﴿إطباق﴾ د افعال د باب مصدر دی، مراد: اتفاق. ﴿تخمّر﴾ د تفعّل د باب مصدر دی. شارحينو د دې لفظ معنیٰ "قوت" ليکلې ده، والله اعلم. ﴿نُجُوْم﴾ دا لفظ دوه ډوله مستعمل دی: ① يو خو جمع د نَجْمٌ ده چې د هغه معنیٰ ده: ستوري، ② او بل مصدر دی د نصر له باب څخه، نَجَمَ يَنْجُمُ نُجُوْمًا: ښکاره کېدل، څرګندېدل. دلته په هغدې معنیٰ سره دی، کما قال المصنف رَحِمَهُ الله. ﴿طعن﴾ د ماضي صيغه ده، له نصر او فتح دواړو څخه راځي: عيب لګول، اعتراض کول. (معجم وسيط)

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دلته زموږ دليلونه او زموږ له طرفه د فريقِ مخالف جوابونه بيان کړي دي:

① ... زموږ اول دليل دا دی چې لغتپوهان (اهل لغت) پر دې خبره متفق دي چې خمر صرف انګوري شراب دي؛ او دليل يې دا دی چې د خمر استعمال فقط په همدې انګوري شرابو کې معروف او مشهور دی او له دې څخه بغير د نورو شرابونو لپاره نور نومان استعمالېږي لکه نقيع، سکر او داسې دنور.

② ... دويم دليل دا دی چې د خمرو حرمت قطعي دی او له خمرو څخه بغير د نورو حرمت ظني دی، نو که له انګوري شرابو څخه بغير نورو شرابونو ته هم خمر وويل سي، نو بيا به د هغوی حرمت هم قطعي منل کيږي، حال دا چې دا بې دليله خبره ده.

وإنما سمي إلخ: له دې ځايه د فريقِ مخالف (يعني د ائمه ثلاثه او اصحاب ظواهرو) د دلائلو جواب ورکوي، او دا د هغو د درېيم دليل جواب دی چې ستاسي دا وينا چې خمر له مخامرة العقل څخه مشتق دی، داسې نه ده، بلکې د خمر لفظ له تخمّر څخه را اخيستل سوی دی چې د هغه معنیٰ ده شدت و قوت (سختي او طاقت)، او د شدت وقوت معنیٰ په کامله توګه صرف په انګوري شرابو کې سته؛ ځکه دوی له ټولو څخه قوي او مقوّي دي، لهذا ستاسي استدلال باطل دی، خير! که موږ دا تسليم هم کړو چې خمر له مخامرة العقل څخه مشتق دی، نو بيا هم ستاسي استدلال بشپړ نه دی، لکه نَجْمٌ چې له نُجُوْمٌ څخه مشتق دی چې د هغه معنیٰ ده ظهور (ښکاره کېدل، څرګندېدل)، خو د دې باوجود نجم فقط د

معلومو ستورو لپاره خاص دی او هر ښکاره شي ته نه ویل کیږي. نو همدغسي خمر که څه هم له مخامرة العقل څخه مشتق دی، خو هغه فقط دانګوري شرابو لپاره خاص دی.

والحدیث إلخ: په دې سره د فریق مخالف د اول او دویم دلیل جواب ورکوي کوم چي دوه حدیثونه دي، نو فرمایي چي په اول حدیث "کُلُّ مُسْکِرٍ خَمْرٌ" سره دلیل نیول صحیح نه دي؛ ځکه یحییٰ بن معین رَحِمَهُ الله په دې حدیث کي داسي طعن کړی دی: "لم أجده فی شيء من کتب الحدیث.. همدارنګه: وهٰذا لیس بثابت من النبی ﷺ".

او پاته سو دویم حدیث نو په هغه سره مقصود د خمر لغت او د خمر وضع بیانول نه دي، بلکي په هغه سره د خمر حکم بیانول مقصود دي، ځکه دا شیان خلګو ته خپله هم معلوم دي، او د نبي کریم ﷺ وینا د حکم بیانولو لپاره وي، نه د لغت بیانولو لپاره، نو د مذکوره حدیث مطلب دا نه دی چي خمر هغه دي کوم چي له دې دوو شیانو څخه جوړ سي، بلکي مطلب یې شرعي حکم بیانول دي چي دا دواړه حرام دي، او د دغه خبري خو موږ هم قائل یو.

## دویم بحث (انګوري اوبه کله خمر ګرځي؟)

وَالثَّانِيْ فِيْ حَدِّ ثُبُوْتِ هٰذَا الِاسْمِ او دویمه خبره د دغه نوم [خمر] د ثابتېدلو د حدّ په بیان کي ده وَهٰذَا الَّذِیْ ذَکَرَهُ فِي الْکِتَابِ قَوْلُ أَبِيْ حَنِیْفَةَ او دا کوم څه چي یې په قدوري [متن] کي ذکر کړي دي دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی وَعِنْدَهُمَا ✿ إِذَا اشْتَدَّ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز چي کله [د انګورو رَس] سخت سي صَارَ خَمْرًا نو هغه خمر ګرځي وَلَا یُشْتَرَطُ الْقَذْفُ بِالزَّبَدِ او د ځګ راغورځول شرط نه دي لِأَنَّ الِاسْمَ یَثْبُتُ بِهِ ځکه چي اسم [خمر] په همدې اشتداد سره ثابتیږي وَکَذَا الْمَعْنَی الْمُحَرِّمُ بِالِاشْتِدَادِ او همدارنګه حرامونکې معنیٰ په همدې اشتداد سره ثابتیږي وَهُوَ الْمُؤَثِّرُ فِي الْفَسَادِ او هغه [حرامونکې معنیٰ] په فساد کي مؤثره ده وَلِأَبِيْ حَنِیْفَةَ: أَنَّ الْغَلَیَانَ بِدَایَةُ الشِّدَّةِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی: چي جوش خوړل [خوټېدل] د شدت [اشتداد] ابتداء ده وَکَمَالُهَا بِقَذْفِ الزَّبَدِ وَسُکُوْنِهِ او د شدت بشپړتیا په ځګ راغورځولو او د جوش په ختمېدلو سره

---

✿ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، وبه قالت الثلاثة، وبه أخذ أبو حفص الكبير وهو الأظهر. [القول الراجح ج:۲، ص:۳۱۵]

ده إِذْ بِهِ يَتَمَيَّزُ الصَّافِيْ مِنَ الْكَدِرِ ځکه چې په همدې [ځک راغورځولو] سره سوچه خمر له خراب خمرو څخه جلا کيږي وَأَحْكَامُ الشَّرْعِ قَطْعِيَّةٌ او د شريعت احکام قطعي دي فَتُنَاطُ بِالنِّهَايَةِ نو هغوی مدار به پر انتهاء وي كَالْحَدِّ وَإِكْفَارِ الْمُسْتَحِلِّ وَحُرْمَةِ الْبَيْعِ لکه حدّ لګول او [د خمرو] حلا ګڼونکی کافر ګرځول او د بيع حرامېدل وَقِيْلَ يُؤْخَذُ فِيْ حُرْمَةِ الشُّرْبِ بِمُجَرَّدِ الاشْتِدَادِ احْتِيَاطًا او ويـ سوي دي: چې [د خمرو] د څيښلو د حرمت په هکله به محض په اشتداد سره عمل کيږي [يعني چ په خمر کي محض اشتداد (سختي او نشه) پيدا سي نو د هغوی څيښل حراميږي].

**اللغات**: ﴿المؤثر﴾ د تفعيل د باب فاعل دی: اثر کونکی، اغېزمن. ﴿الكدر﴾ خړ او خراب. خيـ او خړوالی. ﴿تُنَاط﴾ د فتح له بابه د مضارع مجهولي صيغه ده: متعلق کېدل. مدار جوړېد ﴿إكفار﴾ د افعال د باب مصدر دی: کافر کول. کافر ګرځول.

**تشريح**: دا له هغه لسو ځايو څخه دويم ځای يا په بله وينا دويم بحث دی کوم چې د خمر سـ متعلق دي. حاصل يې دا دی چې انګوري شرابو ته کله خمر ويل کيږي؟. امام صاحب رَحِمَهُ فرمايي چې کله د انګورو په اوبو کي جوش او اشتداد پيدا سي او ځک راپورته کړي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز له ځک راپورته کولو څخه مخکي فقط په اشتداد سره هم هغ ته خمر ويل کيږي؛ دوی فرمايي چې په اشتداد سره په هغه کي نشه پيدا کيږي او همدا نشه وجه حرمت ده. ځکه چې همدا نشه په فساد کي مؤثره ده (يعني له ذکر الله وغيره څخه منع کوي). لهذا اشتداد وروسته به سمدستي هغوی ته د خمر نوم ورکول کيږي.

ولأبي حنيفة إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چې د شدت او نشې ابتداء خو صرف په جوش خوړلو سره کيږي (يعني کله چې د انګورو اوبه وخوټېږي. سره راپورته سي). لېکن د هغه کمال بشپړتيا په ځک راپورته کېدلو او د جوش په ختمېدلو سره کيږي؛ ځکه د ځک په راپورته کېدلو سره لاندينی حصه راپورته سي او پورتنی حصه لاندې سي چې په دې وجه هغه خمر کوم چې صف سوچه وي را جلا سي. او کوم چې خړ نا سوچه وي هغه لاندې کښېني.

خلاصه دا چې مدار پر جوش خوړلو (خوټېدلو) دی او د هغه ابتداء فقط غليان ده. او د غليـ انتهاء (آخر) ځک راپورته کېدل دي. نو د احکامو مدار پر انتهاء ايښوول کيږي. لهذا خمر ته همغه وخت خمر ويل کيږي کله چې انتهائي درجې ته ورسيږي (يعني ځک هم راوغورځوي همدارنګه احکام شرعيه قطعي وي. نو د هغوی مدار هر ځای پر انتهاء او کمال ايښوول کيږي.

څرنګه چي په سرقه او زنا کي دي، نو همداسي په خمر کي به هم د حدّ وجوب او د هغوی استعمالونکي ته کافر ويل او د هغوی د بيع حرام کېدل د دې ټولو مدار به پر کمال او انتهاء ايښوول کيږي.

ځينې مشايخو ويلي دي چي د احتياط تقاضا په شرابو کي دا ده چي محض د اشتداد په وجه هغوی ته حرام وويل سي.

**تنبيه:** ابو حفص رَحِمَهُ الله د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول اختيار کړی دی، او مختاره خبره دا ده چي دغه اختلاف فقط د حدّ په واجبېدلو کي دی، پاته سو چيښل يې بالاتفاق حرام دي. (سکب الانهر ج:۲، ص:۴۹۹)

## درېيم بحث (خمر بعينه حرام دي)

وَالثَّالِثُ أَنَّ عَيْنَهَا حَرَامٌ او درېيمه خبره دا ده چي دخمرو عين [ذات] حرم دی [يعني انګوري شراب ذاتاً حرام دي] غَيْرُ مَعْلُوْلٍ بِالسُّكْرِ او په نشې [نشه کولو] سره معلول نه دي وَلَا مَوْقُوْفٍ عَلَيْهِ او نه پر نشې موقوف دي وَمِنَ النَّاسِ مَنْ أَنْكَرَ حُرْمَةَ عَيْنِهَا او ځيني خلکو د خمرو د عين [ذات] د حرمت انکار کړی دی وَقَالَ: إِنَّ السُّكْرَ مِنْهَا حَرَامٌ او ويلي يې دي: چي له هغوی څخه نشې والا حرام دي لِأَنَّ بِهِ يَحْصُلُ الْفَسَادُ ځکه چي په همدې نشې سره فساد راځي وَهُوَ الصَّدُّ عَنْ ذِكْرِ اللهِ او هغه [فساد] د الله تعالیٰ له ذکر څخه منع کول دي وَهٰذَا كُفْرٌ او دا کفر دي لِأَنَّهُ جُحُوْدُ الْكِتَابِ ځکه چي دا د کتابُ الله انکار دی فَإِنَّهُ سَمَّاهُ رِجْسًا ځکه الله تعالیٰ خمرو ته د رجس نوم ورکړی دی وَالرِّجْسُ مَا هُوَ مُحَرَّمُ الْعَيْنِ او رجس هغه څه دي چي عين يې حرام وي وَقَدْ جَاءَتِ السُّنَّةُ مُتَوَاتِرَةً[1] أَنَّ النَّبِيَّ ﷺ حَرَّمَ الْخَمْرَ او په تواتر سره حديث راغلی دی چي نبي کريم ﷺ خمر حرام ګرځولي دي وَعَلَيْهِ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ او پر همدې اجماع منعقد سوې ده وَلِأَنَّ قَلِيْلَهُ يَدْعُوْ إِلَى كَثِيْرِهِ او ځکه د خمرو قليل د هغوی د کثير وطرف ته داعي [بلونکي] دي وَهٰذَا مِنْ خَوَاصِّ الْخَمْرِ او دا د خمرو له خواصو څخه دي وَلِهٰذَا تَزْدَادُ لِشَارِبِهِ اللَّذَّةُ بِالْاِسْتِكْثَارِ مِنْهُ په همدې وجه د خمرو

---

[1] تخريج: عن أنس بن مالک... فجائهم آت، فقال: إنّ الخمر قد حرّمت (بخاري شريف، باب نزل تحريم الخمر ص:۹۹۱، حديث رقم:۵۵۸۲، مسلم شريف، باب تحريم الخمر، ص:۸۸۵، حديث رقم:۱۹۸۰/ ۵۱۳۱).

چيښونکي لره د هغوی په زياتو چيښلو سره لذت زياتيږي [يعني په همدې وجه د زياتو شرابو په څښاک سره د شرابي، په لذت کي اضافه راځي] بِخِلَافِ سَائِرِ الْمَطْعُوْمَاتِ په خلاف د نورو خوړل کيدونکو شيانو.

**اللغات**: ﴿عين﴾ د شي خپل ذات، خودي شی، ﴿معلول﴾ دا صيغه خلافُ القياس د تفعيل له بابه استعماليږي: علت بيان کړی سوی، هغه شی چي وجه او علت يې بيان کړی سي، پر علت مبني، د علت خاوند. ﴿رجس﴾ ناپاک او گنده، مرداري. ﴿تزداد﴾ دافتعال د باب مضارع ده: زياتېدل، اضافه کېدل، ﴿استکثار﴾ داستفعال د باب مصدر دی: د زياتوب طلب کول، مقدار زياتول.

**تشريح**: دا له "مواضع عشره" څخه دريم ځای دی، حاصل يې دا دی چي خمر بعينهٖ حرام دي يعني عين (ذات) يې حرام دی، نه د نشې په وجه، لهذا هغه لږ خمر کوم چي نشه نه راولي، هغه هم قطعي حرام دي.

د دې په خلاف له بعضِ اهلِ شام او قدامه بن مطعون څخه نقل سوي دي چي عينِ خمر حرام نه دي بلکي د هغوی نشه حرامه ده؛ ځکه چي فساد فقط په نشه سره راځي (له فساد څخه مراد د الله ﷻ له ذکر وغيره څخه منع کېدل دي).

لېکن د دوی دا قول کفر دی؛ ځکه په کتابُ الله کي د دې انکار سوی دی، ځکه په قرآن مجيد کي خمر الله تعالیٰ "رجس" گرځولي دي، او رجس دې ته وايي چي د هغه حرمت عيني وي يعني چي عين يې حرام وي، لکه څرنگه چي په يو بل آيت ﴿أَوْ لَحْمَ خِنْزِيرٍ فَإِنَّهُ رِجْسٌ﴾ کي د خنزير غوښې رجس گرځول سوي دي او د خنزير عين حرام دی، لهذا کله چي عينِ رجس حرام دی، نو عينِ خمر به هم حرام وي او د هغه له حرمت څخه انکار کول به د کتابُ الله انکار لره مستلزم وي، او د کتابُ الله انکار کول کفر دي، نو ځکه د عينِ خمر د حرمت انکار کول به هم کفر وي.

وقد جاءت السنة إلخ: فرمايي بيا د تواتر په توگه حديث نقل سوی دی چي نبي کريم ﷺ خمر حرام گرځولي دي او پر همدې د اُمت اجماع منعقد سوې ده.

او بل دا چي د شرابو له خواصو څخه دا دي چي د هغوی قليل د کثير وطرف ته داعي دي يعني چي لږ انسان وچيښي نو د زياتو چيښلو ته يې کشوي، همدا وجه ده شرابي کس چي هر څومره زيات شراب چيښي، نو پر هغه غميږي نه بلکي لا نور خوند احسانوي او په لذت کي يې اضافه راځي، نو له شروع څخه د قليل پر داعي د کثير حکم جاري کړل سو او هغه حرام وگرځول سو، او له شرابو څخه بغير په نورو مُسکراتو (نشه کونکو شيانو) کي دا خبره نسته چي قليل يې د کثير وطرف ته داعي وي.

دلته د مصنف رَحِمَهُ الله پر "مطعومات" ويلو علماؤ اعتراض کړی دی چې دلته "سائر المسكرات" ويل پکار دي.

## د خمر لږ مقدار هم حرام دی

ثُمَّ هُوَغَيْرُمَعْلُوْلٍ عِنْدَنَا بیا د خمرو حرمت [يعني هغه نص کوم چې د خمرو د حرمت په هکله وارد دی] زموږ په نيز پر علت مبني نه دی [يا په بله وينا دا چې په خمرو کې د نشې علت کېدل زموږ په نيز ضروري نه دي] حَتّٰی لَايَتَعَدّٰی حُكْمُهُ إِلٰى سَائِرِ الْمُسْكِرَاتِ همدا وجه ده چې د هغوی حکم د نورو مُکسراتو وطرف ته متعدي نه دی وَالشَّافِعِيُّ يُعَدِّيْهِ إِلَيْهَا او امام شافعي رَحِمَهُ الله هغه د نورو مسکراتو وطرف ته هم متعدي کوي وَهٰذَا بَعِيْدٌ خو دا لیري قیاس دی لِأَنَّهُ خِلَافُ السُّنَّةِ الْمَشْهُوْرَةِ ځکه چې دا د سنت مشهوره خلاف دي وَتَعْلِيْلٌ لِتَعْدِيَةِ الْاِسْمِ او [د امام شافعي] تعليل د نوم د متعدي کولو لپاره دی [يعني د خمرو د نوم متعدي کولو لپاره يې دا علت ګرځولی دی] وَالتَّعْلِيْلُ فِي الْأَحْكَامِ لَا فِي الْأَسْمَاءِ حال دا چې تعليل په احکامو کې [معتبر] دي، نه په نومونو کې.

**اللغات**: ﴿معلول﴾ د تېر عبارت په لغاتو کې د دې معنیٰ ذکر سوه. ﴿مسكرات﴾ نشه کونکي (نشه راوستونکي) شرابونه، نشه يې توکي، ﴿تعليل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: علت بيانول علت ټاکل، علت والا ګرځول.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې د خمر قليل (لږ مقدار) هم حرام دي چې د هغه حرمت په قطعي نص سره ثابت دي، او دا حرمت معلول نه دی چې که انسان نشه کوي نو حرام دي، کنې حرام نه دي (داسي نه ده)، لهذا کله چې دا حرمت له سره معلول نه دی، نو پر هغه نور مُسکِرات نه سي قیاسول کېدای چې د هغوی قلیل دي هم د خمر په څېر حرام وي.

خو امام شافعي رَحِمَهُ الله د خمر حرمت معلول مني او بيا دا د حرمت حکم د ټولو مسکراتو طرف ته متعدي کوي فرمايي چې د هغوی هم قليل او کثير سره برابر دي. لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله دا تعليل صحيح نه دی؛ ځکه يو خو د هغه دغه تعليل د سنت مشهوره خلاف دي چې خمر حرام لعينه دي او د نورو شرابونو نشه (سکر) حرام ده. او بل دا چې تعليل په احکامو کې کېږي، نه په نومونو کې، او دلته امام شافعي رَحِمَهُ الله په دغه تعليل سره ګواکې غير خمر ته د خمرو نوم ور کونکی دی او

بیا پر ټولو مسکراتو د خمر حکم جاري کونکی دی، لـهٰذا چې تعلیـل پـه احکـامو کـي معتبر وي، نه په لغاتو او اسماؤ کي؛ ځکه هيڅ تعلق د قياس سره نسته.

## څلورم بحث (خمر نجاست غليظه دي)

وَالرَّابِعُ أَنَّهَا نَجِسَةٌ نَجَاسَةً غَلِيظَةً او څلورمه خبره دا ده چې خمر په نجاست غليظه سره نجس دي كَالْبَوْلِ لکه متیازي لِثُبُوتِهَا بِالدَّلَائِلِ الْقَطْعِيَةِ ځکه چې د خمرو نجاست په قطعي دلائلو سره ثابت دی عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چې دا مورږ بيان کړه.

**تشريح**: د خمرو په هکله دا څلورم بحث دی چې خمر د متيازو په څېر نجاست غليطه دي؛ ځکه د خمرو نجاست په قطعي دلائلو سره ثابت دی. او په قطعي دلائلو سره ثابت سوی نجاست غليظه وي، نو ځکه د خمرو نجاست به هم نجاست غليظه وي.

## پنځم بحث (څوک چې خمر حلال ګڼي هغه کافر دی)

وَالْخَامِسُ أَنَّهُ يَكْفُرُ مُسْتَحِلُّهَا او پنځمه خبره دا ده چې د خمرو حلال ګڼونکی کافر کيږي لِإِنْكَارِهِ الدَّلِيلَ الْقَطْعِيَّ ځکه چې هغه د قطعي دليل انکار کوي

**اللغات**: ﴿مستحل﴾ د استفعال د باب فاعل دی: حلال ګڼونکی، روا بلونکی.

**تشريح**: دا پنځم بحث دی چې څوک خمر حلال ګڼي، هغه کافر دی، ځکه د خمرو حرمت قطعي دی او د قرآن په آيت سره ثابت دي کوم چې قطعي دليل دی، نو د خمرو حلال ګڼونکی ګواکي د کتابُ الله انکار کوي، او د کتابُ الله منکر کافر دی، كذا هٰذا.

## شپږم بحث (خمر د مسلمان په حق کي متقوّم مال نه دی)

وَالسَّادِسُ سُقُوطُ تَقَوُّمِهَا فِيْ حَقِّ الْمُسْلِمِ او شپږمه خبره د مسلمان په حق کي د خمرو د تقوّم ساقطېدل دي حَتّٰى لَا يَضْمَنَ مُتْلِفُهَا وَغَاصِبُهَا تر دې چې د خمرو پر تلفونکي او غاصبونکي کس ضمان نه لازميږي وَلَا يَجُوزُ بَيْعُهَا او د خمرو بيع هم جائز نه ده لِأَنَّ اللهَ تَعَالٰى لَمَّا نَجَّسَهَا فَقَدْ أَهَانَهَا ځکه کله چې الله تعالیٰ خمر نجس [ناپاک] ګرځولي دي نو دا يې هغوی سپک [او بې ارزښته] ګرځولي دي وَالتَّقَوُّمُ يُشْعِرُ بِعِزَّتِهَا حال دا چې تقوّم [قيمتداره کېدل] د هغوی د عزت خبر ورکوي

وَقَالَ الطَّيِّلا [1] : «إِنَّ الَّذِي حَرَّمَ شُرْبَهَ نبي ﷺ فرمايلي دي: او کوم ذات چي د خمرو چيښل حرام کړي دي حَرَّمَ بَيْعَهَا وَأَكْلَ ثَمَنِهَا» هغه ذات د هغوي خرڅول او د هغوی ثمن خوړل هم حرام کړي دي وَاخْتَلَفُوا فِي سُقُوطِ مَالِيَّتِهَا مشايخو رَحِمَهُمُ الله د خمرو د مال والي په هکله اختلاف کړی دی وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ مَالٌ خو صحيح دا ده چي هغوی مال دی لِأَنَّ الطِّبَاعَ تَمِيلُ إِلَيْهَا ځکه طبیعتونه د خمرو وطرف ته ميلان کوي وَتَضِنُّ بِهَا او د هغوی په هکله بخل کوي.

**اللغات**: ﴿تقوّم﴾ د تفعّل مصدر دی: متقوّم کېدل، قيمتداره کېدل. ﴿مال﴾ هر هغه څه ته وايي کوم چي د انسان په ملکيت کي داخل وي (المال اسم لجميع ما يملكه الانسان). او مال په اصل کي هغه شي ته وايي چي د طبیعت ميلان او رغبت ورته کيږي. ﴿إعزاز﴾ د افعال د باب مصدر دی: عزت ورکول، احترام کول. ﴿تَضِنُّ﴾ د ضرب له بابه د مضارع صيغه ده، د سمع له بابه هم ويل کېدای سي يعني "تَضَنُّ": بخل كول.

**تشريح**: دا شپږم بحث دی چي د مسلمان په حق کي خمر نا قيمتداره مال دی، لهذا که څوک د يو مسلمان کس شراب چپه کړي، يا يې غصب کړي، نو د عدمِ تقوّم په وجه ضمان (تاوان) نه پر واجبيږي. همدارنګه د عدمِ تقوّم (نامتقوّم والي) په وجه د مسلمان لپاره د خمر بيع حرام ده؛ او د عدمِ تقوّم دليل دا دی چي الله تعالیٰ هغوی ناپاک او قابلِ اهانت ګرځولي دي، او د هغوی تقوّم (متقوّم کېدل) د هغوی عزت ثابتوي، نو ځکه يې بيع جائز نه ده.

په حديث کي ذکر سوي دي چي کوم ذات شراب حرام کړي دي، هاغه ذات د خمرو بيع او د هغوی ثمن خوړل هم حرام کړي دي، له دې څخه هم معلومه سوه چي خمر غيرِ متقوّم دي.

پاته سوه دا خبره چي خمر مال دي، که نه؟، په دې کي د فقهاؤ اختلاف دی، مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي اصح دا ده چي مال خو دی، لېکن غيرِ متقوّم مال دی؛ ځکه چي پر خمرو د مال تعريف صادقيږي، ځکه مال هغه څه ته وايي چي د طبيعت ميلان او رغبت ورته کيږي او چي د هغه په باره کي طبيعت بخل کوي.

**يادونه**: د خمر په عدمِ تقوّم سره دا نه ثابتيږي چي د هغوی تلفول او ضايع کول دي روا وي، خو که څوک هغوی تلف کړي يا يې غصب کړي، نو ضمان نه پر واجبيږي. (شامي ج: ۵، ص: ۲۸۹)

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد بمعناه، باب في ثمن الخمر والميتة، ص: ۵۰۴، حديث رقم: ۳۴۸۸.

## د شرابو د ثمن حکم او تفصيل

وَمَنْ كَانَ لَهُ عَلَى مُسْلِمٍ دَيْنٌ او د کوم مسلمان چې پر بل مسلمان قرض باندې وي فَأَوْفَاهُ ثَمَنَ خَمْرٍ بيا هغه [مقروض مسلمان] د خمرو په ثمن سره قرض اداء کړي لَا يَحِلُّ لَهُ أَنْ يَأْخُذَهُ وَلَا لِلْمَدْيُونِ أَنْ يُؤَدِّيَهُ نو مسلمان ته د هغه اخيستل حلال نه دي او نه د مقروض لپاره د هغه ورکول حلال دي لِأَنَّهُ ثَمَنُ بَيْعٍ بَاطِلٍ ځکه چې دا د بيع باطل ثمن دي وَهُوَ غَصْبٌ فِي يَدِهِ أَوْ أَمَانَةٌ او دا د هغه په قبضه کې يا غصب دی يا امانت دی عَلَى حَسَبِ مَا اخْتَلَفُوا فِيهِ د هغه تفصيل مطابق کوم چې فقهاؤ په دې کې اختلاف کړی دی كَمَا فِي بَيْعِ الْمَيْتَةِ لکه د مردار په بيع کې وَلَوْ كَانَ الدَّيْنُ عَلَى ذِمِّيٍّ او که قرض پر ذمي باندې وي فَإِنَّهُ يُؤَدِّيهِ مِنْ ثَمَنِ الْخَمْرِ نو هغه يې د خمرو په ثمن سره اداء کولای سي وَالْمُسْلِمُ الطَّالِبُ يَسْتَوْفِيهِ او مسلمان قرضخواه هغه اخيستلای سي لِأَنَّ بَيْعَهَا فِيمَا بَيْنَهُمْ جَائِزٌ ځکه د خمرو بيع د ذميانو تر مينځ جائز ده.

**اللغات**: ﴿أَوْفَى﴾ د افعال د باب ماضي ده: پوره اداء کول. ﴿اسْتِيفَاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: پوره اخيستل. ترلاسه کول.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې د مردار (مردار سوي حيوان) او د خمرو بيع باطله ده. او په باطلو بيعو او معاملاتو کې چې د بائع لاس ته کوم ثمن راغلی وي. نو هغه ثمن د بعضي فقهاؤ په نېز غصب دی او د بعضو په نېز امانت دی. او په دې دواړو سره خپل قرض اداء کول جائز نه دي. لهذا که يو مسلمان پر بل مسلمان (مثلاً پر زيد) قرض باندې وي. او مقروض (زيد) د خمرو په ثمن سره دا قرض اداء کړي. نو نه يې اخيستل جائز دي او نه په قرض کې ورکول؛ ځکه دا خو يا غصب دی يا امانت دی.

خو د ذميانو په خپل مينځ کې د خمرو معامله جائز ده. لهذا که پر يو ذمي کس د مسلمان قرض باندې وي او ذمي د خمرو په ثمن سره قرض اداء کړي. نو د مسلمان لپاره د هغه اخيستل جائز دي: ځکه چې دا د بيع باطل ثمن نه دي.

## اووم بحث (له خمر څخه نفع اخيستل حرام دي)

وَالسَّابِعُ حُرْمَةُ الْإِنْتِفَاعِ بِهَا او اوومه خبره په شرابو سره د نفع اخيستلو حرامېدل دي لِأَنَّ الْإِنْتِفَاعَ بِالنَّجِسِ حَرَامٌ ځکه په شرابو سره نفع اخيستل حرام دي وَلِأَنَّهُ وَاجِبُ الْإِجْتِنَابِ او ځکه چې له خمرو څخه ځان ساتل واجب دي وَفِي الْإِنْتِفَاعِ بِهِ إِقْتِرَابٌ او له خمرو څخه په نفع اخيستلو کې هغوی ته نژدې کېدل سته.

**اللغات**: ﴿انتفاع﴾ دافتعال د باب مصدر دی: نفع اخیستل. فایده حاصلول. ﴿اجتناب﴾ دافتعال د باب مصدر دی: بچ کېدل. ځان ساتل (ځان ګوښته کول). پرېز کول. ﴿اقتراب﴾ مخکښی صیغه ده: نژدې کېدل. نژدېکت.

**تشریح**: د خمرو په هکله دا اُووم بحث دی چې له خمرو څخه نفع اخیستل حرام دي. مثلاً څارویو ته ورکول. په دارو درمل کې کارول. یا په مقعده یا د ذکر په سوري کې اچول دا ټوله حرام دي؛ ځکه چې خمر نجس دي او له نجس شي څخه نفع اخیستل حرام دي. او بل دا چې د دې آیت ﴿فَاجْتَنِبُوا الرِّجْسَ مِنَ الْأَوْثَانِ﴾ پر بناء له خمرو څخه اجتناب کول او لیري کېدل واجب دي. او دا ښکاره خبره ده چې له هغوی څخه په نفع اخیستلو کې هغوی ته نژدېکت لازمیږي. نو په دې حواله سره هم له خمرو څخه نفع اخیستل حرام دي.

## اتم بحث (د خمرو د حد بیان)

وَالثَّامِنُ أَنْ يُحَدَّ شَارِبُهَا او اتمه خبره دا ده چې پر شرابي به حد جاري کول کیږي وَإِنْ لَمْ يَسْكَرْ مِنْهَا که څه هم هغه په شرابو سره نشه نه سي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: «مَنْ شَرِبَ الْخَمْرَ ځکه نبي ﷺ فرمایلي دي: څوک چې خمر وچیښي فَاجْلِدُوهُ نو هغه په دُرو سره ووهئ! فَإِنْ عَادَ او که بیا یې وچیښي فَاجْلِدُوهُ نو بیا یې په دُرو ووهئ! فَإِنْ عَادَ او که بیا یې وچیښي فَاجْلِدُوهُ نو بیا یې په دُرو ووهئ! فَإِنْ عَادَ او که بیا یې [دریم ځل] وچیښي فَاقْتُلُوهُ» نو قتل یې کړئ! إِلَّا أَنَّ حُكْمَ الْقَتْلِ قَدِ انْتَسَخَ لیکن د قتل حکم منسوخ سوی دی فَبَقِيَ الْجَلْدُ مَشْرُوعًا نو په دُرو وهل مشروع پاته سوه وَعَلَيْهِ انْعَقَدَ إِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ او پر همدې د صحابه وو اجماع منعقد سوې ده وَتَقْدِيرُهُ ذَكَرْنَاهُ فِي الْحُدُودِ او د دې [حد] مقدار هغه دی کوم چې موږ په کتابُ الحدود کې بیان کړی دی.

**اللغات**: ﴿يحدّ﴾ د نصر له بابه د واحد مذکر غائب مضارع مجهولي صیغه ده: حد جاري کول. د حدّ سزا ورکول. ﴿فاجلدوه﴾ د ضرب له بابه د جمع مذکر امر حاضر صیغه ده: په دُرو وهل. د دُرې وهل. ﴿تقدیر﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: اندازه کول. مقدار ټاکل.

[1] تخریج: أخرجه ابو داؤد، باب إذا تتابع في شرب الخمر ص: ۶۳۲، حدیث رقم: ۴۴۸۲.

**تشریح**: د خمرو په هکله دا اتم بحث دی چي د خمرو پر چيښونكي به حدّ جاري كيږي. لكه په هغه حديث كي چي راغلي دي كوم چي په عبارت كي ذكر سو.

لېكن قتل خو بالاجماع منسوخ دی. نو فقط په دُرو سره وهل مشروع پاته سوه. پر همدې د صحابه وو رَحِمَهُمُ الله اجماع ده، چي د هغه مقدار د آزاد كس لپاره اتيا (۸۰) دُرې دي او د غلام لپاره څلوېښت (۴۰) دُرې دي. د هدايه جلد ثاني په كتابُ الحدود كي په تفصيل سره د دې بيان سوی دی.

## نهم بحث (د پخو شرابو حکم)

وَالتَّاسِعُ أَنَّ الطَّبْخَ لَا يُؤَثِّرُ فِيْهَا او نهمه خبره دا ده چي پخول په خمرو كي هيڅ اثر نه كوي [يعني په پخولو سره حلال نه ګرځي] لِأَنَّهُ لِلْمَنْعِ مِنْ ثُبُوتِ الْحُرْمَةِ ځکه پخول د حرمت ثابتېدو د منع كولو لپاره دي لَا لِرَفْعِهَا بَعْدَ ثُبُوْتِهَا نه تر ثابتېدو وروسته د هغه دليري كولو لپاره إِلَّا أَنَّهُ لَا يُحَدُّ فِيْهِ مَا لَمْ يَسْكَرْ مِنْهُ خو د پخو شرابو په چيښلو كي به تر هغه وخت حدّ نه جاري كول كيږي تر څو چيښونكی په هغوی سره نشه نه سي عَلٰى مَا قَالُوْا لكه څرنګه چي مشايخو فرمايلي دي لِأَنَّ الْحَدَّ بِالْقَلِيْلِ فِي النِّيْءِ خَاصَّةً ځکه د لږو شرابو په وجه حدّ جاري كېدل خاص په اُومو شرابو كي دي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ ذكر كړی وَهٰذَا قَدْ طُبِخَ او دا شراب خو پاخه كړل سوي دي.

**اللغات**: ﴿طبخ﴾ د فتح د باب مصدر دی: پخول.

**تشریح**: د خمرو په هکله دا نهم بحث دی چي كه خمر پاخه كړل سوي وي، نو هم د هغوی حرمت باقي پاتېږي او په طبخ (پخولو) سره د هغوی په حكم كي هيڅ بدلون نه راځي. يعني څرنګه چي تر پخولو مخكي حرام دي، همداسي تر پخولو وروسته هم حرام دي، ځکه پخول د د نا ثابت سوي حرمت له ثابتېدو څخه مانع خو دي، لېكن د ثابت سوي حرمت لپاره رافع او ختمونكي نه دي. يعني په كوم شي كي چي يو وار حرمت ثابت سي، نو بيا په پخولو سره دا حرمت نه ختمېږي. او د خمرو حرمت همداسي دی چي له مخكي څخه (يعني تر پخولو مخكي) پكښي ثابت شده دی. نو ځکه په پخولو سره به دا حرمت نه ختمېږي. بلكي باقي به پاتېږي.

خو د پخولو فايده دا ده چي كه څوک پاخه كړل سوي شراب وچيښي. نو تر څو چي په دې سره نشه نه سي، تر هغه وخته به حدّ نه پرې جاري كيږي؛ ځکه د خمرو تلـا ـ كثـر وطرف ته داعی

کېدل او قليل د حدّ موجب کېدل دا د انګورو د هغه اوبو سره خاص دي کوم چې پخې کړل سوي نه وي بلکې د اُوموالي په حالت کې جوش او اشتداد پکښې راغلی وي، او دلته خمر پاخه کړل سوي دي، نو ځکه د هغوی حکم به د خالص شرابو له حکم څخه جلا وي او د هغوی په څېښلو سره به هغه وخت حدّ جاري کېږي، کله چې څېښونکی مست او نشه کړي.

## لسم بحث (د خمرو سرکه جوړول حرام دي)

| |
|---|
| وَالْعَاشِرُ جَوَازُ تَخْلِيْلِهَا او لسمه خبره د خمرو د سرکې جوړولو جائز کېدل دي [چې هغوی سرکه کړل سي] وَفِيْهِ خِلَافُ الشَّافِعِيِّ او په دې کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی وَسَنَذْكُرُهُ مِنْ بَعْدُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالٰى او هغه به موږ ان شاء الله تعالىٰ نژدې [څه وروسته] ذکر کړو هٰذَا هُوَ الْكَلَامُ فِي الْخَمْرِ همدا وه د خمرو په هکله خبره. |

**اللغات:** ﴿تخليل﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: خَلَّلَ يُخَلِّلُ تَخْلِيْلًا: سرکه جوړول، سرکه ګرځول.

**تشريح:** د خمرو د لسو بحثونو څخه دا لسم او آخري بحث دی، حاصل يې دا دی چې زموږ په نېز له خمرو څخه سرکه جوړول جائز دي، لېکن په دې هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف دی، چې د هغه وضاحت د دې باب په آخر کې بيان سوی دی، لهذا تاسي څه صبر وکړئ!، ان شاء الله څو صفحې وروسته به هغه ستاسي مخ ته راسي.

دا سوه د خمرو په هکله لس بحثونه کوم چې پر دې ځای ختم سول.

## د باذق او منصف شرابو بيان

| |
|---|
| وَأَمَّا الْعَصِيْرُ إِذَا طُبِخَ حَتّٰى يَذْهَبَ أَقَلُّ مِنْ ثُلُثَيْهِ وَهُوَ الْمَطْبُوْخُ أَدْنٰى طَبْخَةٍ هر چې د انګورو رَس [نچوړل سوي اوبه] چې کله پخې کړل سي تر دې چې د هغوی دوه ثلثه ختم سي او دا هغه دي کوم چې معمولي پخول کېږي وَيُسَمّٰى الْبَاذَقَ او په باذق سره نومول کېږي وَالْمُنَصَّفُ وَهُوَ مَا ذَهَبَ نِصْفُهُ بِالطَّبْخِ او [بل] منصف شراب او دا هغه دي چې د پخولو په وجه يې نيمه حصه ختمه سوې وي فَكُلُّ ذٰلِكَ حَرَامٌ عِنْدَنَا نو دا ټوله [يعني باذق او منصف دواړه] زموږ په نېز حرام دي إِذَا غَلٰى وَاشْتَدَّ وَقَذَفَ بِالزَّبَدِ کله چې جوش وخوري او سخت سي او ځګ راوغورځوي أَوْ إِذَا اشْتَدَّ عَلَى الْاِخْتِلَافِ يا کله چې محض سخت سي د [مخکني] اختلاف مطابق وَقَالَ الْأَوْزَاعِيُّ: إِنَّهُ مُبَاحٌ او |

امام اوزاعي رَحِمَهُ الله ويلي دي: چي دا مباح دي وَهُوَقَوْلُ بَعْضِ الْمُعْتَزِلَةِ او همدا د بعضي معتزله وو قول دی لِأَنَّهُ مَشْرُوبٌ طَيِّبٌ ځکه دا يو پاک شراب [شربت] دي وَلَيْسَ بِخَمْرٍ او خمر نه دي وَلَنَا: أَنَّهُ رَقِيقٌ مُلِذٌّ مُطْرِبٌ زموږ دليل دا دی: چي دا نرم، لذت داره او خمار داره [يا مستونکي] دي وَلِهٰذَا يَجْتَمِعُ عَلَيْهِ الْفُسَّاقُ او په همدې وجه پر هغه فاسقان جمع کيږي فَيَحْرُمُ شُرْبُهُ نو ځکه د هغه چيښل به حرام وي دَفْعًا لِلْفَسَادِ الْمُتَعَلِّقِ بِهِ د هغه سره د متعلق فساد ليري کولو په وجه.

**اللغات**: ﴿العصير﴾ د انګورو نڅوړل سوي اوبه (رَس). ﴿غلی﴾ او غَلَا: جوش خوړل. جوشېدل (خوټکېدل). ﴿اشتد﴾ د افتعال د باب ماضي ده: سختېدل. ګاټه کېدل. ﴿مباح﴾ د افعال د باب مفعول دی: روا. جائز. عديم الحرج. ﴿رقيق﴾ د دې لفظ يوه معنیٰ ده: نرم. باريک. ﴿مُلِذ﴾ د افعال د باب فاعل دی: لـذت بخښـونکی، خونـد ورکـونکی. ﴿مطـرب﴾ مخکنـي صيغه ده: خمـار او خوشـالي را وستونکی شی، چُستونکي او مستونکي، د طَرَب معنیٰ صاحب د معجم داسي کړې ده: نَشْوَةٌ تُصَاحِبُهَا خِفَّةٌ لِشِدَّةِ السُّرُورِ (يعني هغه معمولي غوندي نشه يا چُستي چي د بدن سپکتيا هم ور سره وي کوم چي د سخت سرور او خوشحالۍ په نتيجه کي ځرګند سي). ﴿فساق﴾ جمع د فَاسِقٌ ده: بدکار (بد عمله). ګنهګار.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي حرام شرابونه څلور قسمه دي چي له هغوی دويم قسم طلاء ده کوم ته چي باذق هم وايي، اوس له دې ځايه د هغه تعريف او حکم بيانوي، حاصل يې دا دی که د انګورو اوبه دومره مقدار پخې کړل سي چي د هغوی له دوو ثلثو څخه کمه حصه ختمه سي يا په بله وينا دا چي له دريو حصو څخه يې څه د پاسه يوه حصه پاته سي، نو په عربي کي هغه ته باذق او په فارسي کي باده ورته وايي. او که د انګورو اوبه دومره پخې کړل سي چي نيم مقدار يې ختم سي. نو هغه ته مُنَصَّف وايي، د دواړو حکم زموږ په نېز دا دی چي چيښل يې حرام دي. لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز چي کله په دوی کي جوش. اشتداد (نشه) او ځګ پيدا سي، نو بيا حرمت ور سره متعلق کيږي. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز محض په اشتداد سره حرمت ورسره متعلق کيږي او ثابتيږي.

وقال الأوزاعي إلخ: د دې حاصل دا دی چي زموږ په نېز باذق او منصف دواړه حرام ګرځول سوي دي، لېکن امام اوزاعي رَحِمَهُ الله هغوی مباح ګرځولي دي او د بعضي معتزله وو هم دغه قول دی: د دوی دليل دا دی چي دا خو پاک شربت دی، خمر نه دي: خو زموږ دليل دا دی چي په هغوی کي د شرابو په

ټېر نرمي او لذت سته او هغسې سرور او مستي پکښې سته، همدا وجه ده چې فساق يې لېواله دي چې په ډېر شوق سره پر دې راجمع وي او په ډېر شوق سره يې چېښي. لهذا د هغوی سره هم فساد متعلق دی (وهو الصدّ عن ذكر الله...)، او د فساد ازاله همغه وخت کیږي کله چې هغوی حرام وګرځول سي، لهذا د فساد دفع کولو په خاطر به هغوی دواړه حرام وي.

**يادونه**: که چیري دوه ثلثه يې ختم سي او فقط يو ثلث پاته سي، نو که صرف خوږ والی لري، بیا د هغه چیښل حلال دي بالاتفاق، او کله چې جوش او اشتداد پکښې پیدا سي، نو د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز حلال دی او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز حلال نه دی. (شامي ج: ۵، ص: ۲۹۰)

## د نقيع تمر بيان

وَأَمَّا نَقِيعُ التَّمْرِ وَهُوَ السَّكَرُ او پاته سو نقيع تمر او هغه سکر دي [يعني د هغه بل نوم سکر دی] وَهُوَ النِّيءُ مِنْ مَاءِ التَّمْرِ أَيِ الرُّطَبِ کوم چې د پخې خرما اُومې اوبه دي فَهُوَ حَرَامٌ مَكْرُوهٌ نو دا حرام مکروه دي وَقَالَ شَرِيكُ بْنُ عَبْدِ اللهِ: إِنَّهُ مُبَاحٌ او شريک بن عبد الله رَحِمَهُ الله وايي: چې دا مباح [روا] دي لِقَوْلِهِ تَعَالَىٰ: ﴿تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا﴾ [النحل: ۶۷] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: [او ستا سي لپاره وعظ او عبرت دی په مشروباتو کي د خرماوو او انګورو] چې تاسي له هغه څخه سکر او ښه رزق جوړوئ اِمْتَنَّ عَلَيْنَا بِهِ الله تعالیٰ د دې په ذريعه پر موږ د احسان يادونه کړې ده وَهُوَ بِالْمُحَرَّمِ لَا يَتَحَقَّقُ او احسان يادونه په حرام شي سره نه متحقق کيږي وَلَنَا إِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ او زموږ دليل د صحابه وو رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ اجماع ده وَيَدُلُّ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا مِنْ قَبْلُ او پر دې هغه حديث هم دلالت کوي کوم چې موږ مخکي روايت کړی وَالْآيَةُ مَحْمُولَةٌ عَلَى الِابْتِدَاءِ وَكَانَتِ الْأَشْرِبَةُ مُبَاحَةً كُلُّهَا او آيت د اسلام پر ابتداء محمول دی چې په هغه وخت کي ټوله شرابونه مبـ وه ... التَّوْبِيخَ او وريل سوي دي: چې له دې څخه توبيخ مراد دی مَعْنَاهُ وَاللهُ أَعْلَمُ تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَتَدَعُونَ رِزْقًا حَسَنًا چې د هغه مطلب (والله أعلم) دا دی چې تاسي له هغه څخه سکر جوړوی او ښه رزق [يې] پرېږدی.

**اللغات**: ﴿نقيع التمر﴾ پخه (يانيم پخته) خرما چې په اوبو کي واچول سي او څو ورځي پرېښوول سي نو له هغه څخه چې کوم رَسْ او جوس جوړ سي، هغه ته نقيع تمر وايي. ﴿التمر﴾ کجوره، وچه

خرما، چواره. ﴿الرطب﴾ پخه خرما، تازه لنده خرما، خیشته خرما. ﴿امتن﴾ د افتعال د باب ماضي ده: احسان اچول، احسان وریادول، منت باري. ﴿التوبیخ﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: رټنه او غندنه.

**تشریح**: په دې عبارت کي د حرامو شرابو درېیم قسم بیان سوی دی. حاصل یې دا دی چي د پخې (یانیم پخته) خرما په رَسْ او اوبو کي چي کله جوش او نشه راسي او ځګ راپورته کړي، نو دا هم حرام او مکروه دي.

**یادونه**: د پخې لندې خرما شرط یې ځکه لګولی دی چي که وچه خرما په اوبو کي واچول سي او له هغه څخه رَسْ او جوس جوړ کړل سي چي نبیذ التمر ورته وایي، هغه د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز حلال دی.

وقال شریك إلخ: شریک بن عبد الله النخعي د امام صاحب رَحِمَهُ الله له شاګردانو څخه دی. هغه نقیع التمر (سکر) مباح ګرځولی دی، او په هغه آیت سره یې دلیل نیولی دی کوم چي په عبارت کي ذکر سو: ﴿وَمِنْ ثَمَرَاتِ النَّخِيلِ وَالْأَعْنَابِ تَتَّخِذُونَ مِنْهُ سَكَرًا وَرِزْقًا حَسَنًا﴾. [النحل: ۶۷]

خو زموږ دلیل د هغه په خلاف د صحابه وو اجماع ده. او بل دلیل دا دی چي مخکي کوم حدیث ذکر سو یعني "الخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ". په هغه سره هم د نقیع تمر حرمت ثابت دی.

او پاته سو مذکوره آیت نو هغه د اسلام پر ابتدائي زمانې محمول دی چي په هغه وخت کي ټول شرابونه مباح وه. او ځیني حضراتو ویلي دي چي له دغه آیت څخه مراد توبیخ دی چي الله ﷻ تاسي د خرماؤ وغیره په نعمتو سره نازولي یاست او تاسي پر ځای د دې چي د الله نعمتونه په سمه طریقه استعمال کړی، له هغه څخه سکر جوړوی او د هغه ښه خوړنه پرېږدی او د نقیع په توګه یې چیښئ.

## د نقیع الزبیب بیان، او د أشربه اربعه وو په حرمت کي د فرق وجه

وَأَمَّا نَقِيعُ الزَّبِيبِ وَهُوَ النِّيءُ مِنْ مَاءِ الزَّبِيبِ او کوم چي نقیع زبیب دي او هغه د کشمشو اومې اوبه دي فَهُوَ حَرَامٌ إِذَا اشْتَدَّ وَغَلَى نو هغه حرامي دي کله چي سختي سي او جوش وخوري وَيَتَأَتَّى فِيهِ خِلَافُ الْأَوْزَاعِيِّ او په دې کي [هم] د امام اوزاعي رَحِمَهُ الله اختلاف پیدا کیږي وَقَدْ بَيَّنَّا الْمَعْنَى مِنْ قَبْلُ او وجه [دلیل] تر دې مخکي موږ بیان کړی دی إِلَّا أَنَّ حُرْمَةَ هَذِهِ الْأَشْرِبَةِ دُونَ حُرْمَةِ الْخَمْرِ خو د دغه شرابونو حرمت د خمرو له حرمت څخه کم دی حَتَّى لَا يَكْفُرَ مُسْتَحِلُّهَا تر دې چي د هغوی

حلال ګڼونکی نه کافر کیږي وَيَكْفُرُ مُسْتَحِلُّ الْخَمْرِ او د خمرو حلال ګڼونکی کافر کیږي لِأَنَّ حُرْمَتَهَا اِجْتِهَادِيَّةٌ ځکه چي د هغوی [نورو شرابو] حرمت اجتهادي [مختلف فيه] دی وَحُرْمَةُ الْخَمْرِ قَطْعِيَّةٌ او د خمرو حرمت قطعي دی وَلَا يَجِبُ الْحَدُّ بِشُرْبِهَا حَتَّى يَسْكَرَ او د هغوی په چیښلو سره حدّ نه واجبیږي تر دې چي چیښونکی نشه سي وَيَجِبُ بِشُرْبِ قَطْرَةٍ مِنَ الْخَمْرِ خو د خمرو په یوه څاڅکي سره هم حدّ واجبیږي وَنَجَاسَتُهَا خَفِيفَةٌ فِي رِوَايَةٍ او د هغوی [نورو شرابو] نجاست د یوه روایت مطابق نجاستِ خفیفه دی وَغَلِيظَةٌ فِي أُخْرَى او د بل روایت مطابق نجاستِ غلیظه دی وَنَجَاسَةُ الْخَمْرِ غَلِيظَةٌ رِوَايَةً وَاحِدَةً خو د خمرو نجاست په یوه روایت سره [په اتفاق] نجاستِ غلیظه دی.

**اللغات**: ﴿نقيع الزبيب﴾ کشمش او وڅکي چي په اوبو کي واچول سي او څو ورځي پرېښوول سي نو له هغه څخه چي کوم رَسْ جوړ سي، هغه ته نقيع زبيب وايي ﴿زبيب﴾ کشمش (وچ کړل سوي انګور، وڅکي)، ﴿النيء﴾ کچه، اُوم، ناپوخ، ﴿خفيفة﴾ سپک، د کمي درجې، ﴿غليظة﴾ سخت، درونډ.

**تشريح**: د حرامو شرابو له څلورو اقسامو څخه دا څلورم قسم دی، حاصل يې دا دی چي د کشمشو اُوم (نا پوخ کړل سوی) رَسْ چي کله جوش او اشتداد (سختي او نشه) پکښي پيدا سي، نو زموږ په نيز هغه حرام او ناجائز دي، لېکن امام اوزاعي رَحِمَهُ الله د نقيع تمر په څېر هغه هم مباح ګرځوي، او کوم جواب چي موږ په نقيع تمر کي ورکړی دی، هاغه جواب يې دلته هم دی. خلاصه د خبري دا چي د شرابو دغه څلور قسمونه ټوله حرام دي.

إلا أن حرمة إلخ: د دې حاصل دا دی چي د شرابو څلورو سره مذکوره قسمونه خو حرام دي، لېکن په خمرو او نورو شرابونو کي توپير سته يعني د انګوري شرابو او نورو شرابو تر مينځ څو فرقونه دي کوم چي په لاندي ډول دي:

①... د خمرو حرمت سخت دی او د نورو شرابو حرمت سپک دی.

②... د خمرو حلال ګڼونکی کافر کيږي، او د نورو شرابو حلال ګڼونکی به کافر نه شمېرل کيږي.

③... د خمرو حرمت قطعي دی چي په کتابُ الله سره ثابت دی، او د نورو شرابو حرمت ظني دی.

④... د خمرو د يوه څاڅکي په چيښلو سره حدّ واجبيږي، او په نورو شرابو کي هله حدّ واجبيږي کله چي چيښونکی نشه کړي.

⑤ ... د خمرو په هکله فقط د نجاست غليظه روايت نقل سوی دی چي خمر نجاست غليظه دي، او د نورو شرابو په هکله دوه روايتونه دي: (۱) يو د نجاست غليظه. (۲) او بل د نجاست خفيفه چي د هغوی نجاست سپک دی.

ـا سوه د انګوري شرابو او نورو شرابو تر مينځ پنځه فرقه چي ټوله مو په ترتيب سره جلا جلا ذکر کړل.

**له خمر څخه بغير د نورو دريو شرابو بيع او د هغوی د اتلاف حکم (د فقهاؤ قولونه)**

وَيَجُوْزُ بَيْعُهَا او د دې نورو شرابو [غير خمر] بيع جائز ده وَيَضْمَنُ مُتْلِفُهَا او د هغوی تلفونکی ضامن کيږي عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ [دا] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز خِلَافًا لَهُمَا فِيْهِمَا په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په بيع او ضمان دواړو کي لِأَنَّهُ مَالٌ مُتَقَوَّمٌ ځکه دا [غير خمر] متقوّم مال دی وَمَا شَهِدَتْ دَلَالَةٌ قَطْعِيَّةٌ بِسُقُوْطِ تَقَوُّمِهَا او د هغوی پر متقوّم والي هيڅ قطعي دليل ګواه نه دی بِخِلَافِ الْخَمْرِ په خلاف د خمرو غَيْرَ أَنَّ عِنْدَهُ يَجِبُ قِيْمَتُهَا لَا مِثْلُهَا خو د مام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز [پر تلفونکي] د هغوی قيمت واجبيږي، نه د هغوی مثل عَلٰى مَا عُرِفَ لکه څرنګه چي دا [مخکي] پېژندل سوې ده وَلَا يُنْتَفَعُ بِهَا بِوَجْهٍ مِنَ الْوُجُوْهِ او له دې نورو شرابونو څخه به په هيڅ توګه هم څه نفع نه اخيستل کيږي لِأَنَّهَا مُحَرَّمَةٌ ځکه چي دا حرام دي وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ يَجُوْزُ بَيْعُهَا إِذَا كَانَ الذَّاهِبُ بِالطَّبْخِ أَكْثَرَ مِنَ النِّصْفِ دُوْنَ الثُّلُثَيْنِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي د دوی بيع جائز ده کله چي په پخولو سره ختمېدونکی مقدار تر نصف زيات وي او تر دوو ثلثو کم وي.

**اللغات**: ﴿مُتلِف﴾ د افعال د باب فاعل دی: تلفونکی، ضايع کونکی. ﴿تقوّم﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: متقوّم والی. قيمتداره کېدل.

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي د خمرو او نورو شرابو تر مينځ دوه نور فرقونه بيان کړي دي. پنځه فرقه مخکي بيان سوه.

⑥ ... شپږم فرق دا دی چي د خمرو بيع باطله ده او د نورو شرابو بيع جائز ده.

⑦ ... د خمرو پر مُتلف (تلفونکي) ضمان نسته. او د نورو پر مُتلف ضمان سته. خو دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دي. لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز نه د نورو شرابونو بيع جائز ده. او نه د

هغوى پر تلفونكي ضمان واجبيږي. لېكن امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايي چي نور شرابونه مال متقوم دي او په هيڅ دليل قطعي سره دا نه سي ثابتېدلاى چي هغه مال متقوم نه دي. په خلاف د خمرو چي د هغوى تقوم ساقط دى. په همدې وجه د خمرو بيع باطله ده او څوک چي هغه تلف كړي. پر هغه ضمان نسته. لېكن مسلمان په حرام كي تصرف نه سي كولاى. نو ځكه كله چي ضمان واجبيږي. نو د مثل ضمان يې نه واجبيږي. بلكي د شرابونو د قيمت ضمان واجبيږي.

خو په دې حكم كي د دواړو اشترک سته لكه څرنګه چي له خمرو څخه نفع اخيستل جائز نه دي. همدارنګه له نورو شرابونو څخه هم هر ډول نفع اخيستل حرام دي؛ ځكه چي دا ټوله هم حرام دي.

له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چي له خمرو څخه بغير د نورو شرابونو بيع همغه وخت جائز كيږي. كله چي هغوى پاخه كړل سوي وي او په پخولو سره د هغوى نيمه حصه ختمه سوې (سوځلې) وي. نه دوه ثلثه. لېكن امام كرخي رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا روايت له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه مشهوره نه دى. مشهور همغه روايت دى كوم چي مخكي ذكر سو يعني بيع يې نه جائز كيږي. (بنايه ج: ۱۱. ص: ۲۶)

**يادونه:** صاحب د نتائج الأفكار دلته دا اعتراض كړى دى چي كله دا ټوله حرام دي او له دوى څخه هيڅ نفع اخيستل جائز نه دي. نو بيا دا څنګه متقوم (قيمتداره) كېدلاى سي. حال دا چي علماؤ تصريح كړې ده چي د مال د متقوم كېدلو همدغه معنىٰ ده چي له هغه نفع اخيستل شرعاً مباح وي. نو كله چي دلته انتفاع مباح نه ده. نو تقوم به هم نه لري. سره د دې چي قطعي دليل د اعتقاد په ذريعه لازميږي او په عملياتو كي غالب ګومان كافي دى. نو د عمل په حق كي د دې شرابونو تقوم (قيمتداره كېدل) ساقط دي.

## له مذكوره شرابو څخه بغير د نورو شرابو حكم

وَقَالَ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ او په جامع صغير كي [امام محمد رَحِمَهُ الله] فرمايلي دي وَمَا سِوٰى ذٰلِكَ مِنَ الْأَشْرِبَةِ فَلَا بَأْسَ بِهِ او كوم چي له دې [ځلورو شرابونو] څخه بغير نور شراب دي په هغه كي څه حرج نسته [چيښل يې روا دي] قَالُوْا: هٰذَا الْجَوَابُ عَلٰى هٰذَا الْعُمُوْمِ وَالْبَيَانِ لَايُوْجَدُ فِي غَيْرِهِ مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي چي: دا حكم د دغه عموم او بيان مطابق له جامع صغير څخه بغير بل كتاب كي نسته وَهُوَ نَصٌّ عَلٰى أَنَّ مَا يُتَّخَذُ مِنَ الْحِنْطَةِ وَالشَّعِيْرِ وَالْعَسَلِ وَالذُّرَةِ حَلَالٌ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ او دا حكم نص دى

پر دې خبره چي كوم شراب چي جوړول كيږي له غنمو، اوربشو، شاتو او جوارو څخه هغه حلال دي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَلَا يُحَدُّ شَارِبُهُ عِنْدَهُ او د هغوى پر چيښونكي به حد نه جاري كول كيږي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز وَإِنْ سَكِرَ مِنْهُ كه څه هم په هغوى سره نشه سي وَلَا يَقَعُ طَلَاقُ السَّكْرَانِ مِنْهُ او په هغوى سره د نشه كس طلاق نه واقع كيږي بِمَنْزِلَةِ النَّائِمِ وَمَنْ ذَهَبَ عَقْلُهُ بِالْبَنْجِ وَلَبَنِ الرِّمَاكِ لكه بيده كس او [لكه] هغه كس چي د هغه عقل د بنگو يا د آسي [اسپي] په شيدو سره زائل سوى وي وَعَنْ مُحَمَّدٍ ۞ أَنَّهُ حَرَامٌ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دى چي هغوى حرام دي وَيُحَدُّ شَارِبُهُ وَيَقَعُ طَلَاقُهُ او د هغوى پر چيښونكي به حدّ جاري كول كيږي او د هغه طلاق [هم] واقع كيږي إِذَا سَكِرَ مِنْهُ كله چي په هغوى سره نشه سي كَمَا فِي سَائِرِ الْأَشْرِبَةِ الْمُحَرَّمَةِ لكه په نورو حرامو شرابونو كي [چي همدا حكم دى].

**اللغات**: ﴿نصّ﴾ د نصر د باب ماضي ده: صراحت كول، په صراحت سره بيانول، په ښكاره الفاظو بيانول. ﴿الذرة﴾ جوار، جواري، ﴿الرماك﴾ اسپه، ماده آس، ﴿البنج﴾ بنگي (د چرسو بوټى). ﴿سائر﴾ د دې لفظ دوې معناوي دي: ① ټول، تمام، ② نور، بقيه.

**تشريح**: امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير كي دامذكوره عبارت بيان كړى دى چي د هغه مطلب دا دى چي له مذكوره څلورو قسمونو څخه بغير نور چي كوم شراب دي لكه له غنمو يا اوربشو څخه جوړ كړل سوي شراب، نو د هغوى چيښل حلال دي، هيڅ حرج پكښي نسته. په دې هكله فخر الاسلام او داسي نورو د جامع صغير په شروحو كي فرمايلي دي چي امام محمد رَحِمَهُ الله دلته عمومي انداز اختيار كړى دى، او په خپل نورو كتابو كي يې دا عموم نه دى بيان كړى. بيا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز له مذكوره څلورو قسمونو څخه بغير نور چي كوم شرابونه دي، هغوى حلال دي او د هغوى پر چيښونكي حدّ نه جاري كيږي كه څه هم نشه سي، او د هغوى د چيښلو په وجه كه هغه مست نشه سي او طلاق ور كړي، نو طلاق يې هم نه واقع كيږي، لكه بيده كس چي طلاق ور كړي. ـ لكه چي هغه كس طلاق ور كړي چي د بنگو يا د آسي د شيدو په وجه يې عقل زائل سوى وي.

---

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله، قال صاحب الكفاية رَحِمَهُ الله:...وعن محمد أنه حرام أى ما سوا ذلك من الأشربة ...
قال: والشيخ الخسراوني ذكر في الفتاوى أن الفتوى على قول محمد، كذا ذكره الإمام المحبوبي (الكفاية ج:۹، ص:۳۲). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۱۷]

وعن محمد إلخ: فرمايي کوم چي اوس ذکر سوه بدا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول وو. لېکن امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا هم حرام دي او څوک چي هغوی وچيښي. نو پر هغه به حدّ جاري کيږي په دې شرط چي د هغوی په وجه نشه سوی وي. او همدارنګه کله چي د هغوی په چيښلو سره نشه سي او طلاق ورکړي، نو طلاق يې هم واقع کيږي. او د ټولو حرامو شرابونو همدغه حکم دی.

## د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله يو قول او له هغه څخه رجوع

وَقَالَ فِيْهِ أَيْضًا او امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي دا هم فرمايلي دي وَكَانَ أَبُوْيُوْسُفَ يَقُوْلُ چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله به فرمايل مَا كَانَ مِنَ الْأَشْرِبَةِ يَبْقٰى بَعْدَ مَا يَبْلُغُ عَشَرَةَ أَيَّامٍ وَلَا يَفْسُدُ چي له دې شرابونو څخه کوم شراب له رسېدلو [جوش خوړلو] څخه وروسته تر لسو ورځو پوري پاته سي او خراب نه سي فَإِنِّي أَكْرَهُهُ نو زه هغه مکروه ګڼم ثُمَّ رَجَعَ إِلٰى قَوْلِ أَبِي حَنِيْفَةَ بيا هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول وطرف ته رجوع وکړه وَقَوْلُهُ الْأَوَّلُ مِثْلُ قَوْلِ مُحَمَّدٍ إِنَّ كُلَّ مُسْكِرٍ حَرَامٌ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اول قول د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول په څېر دی چي هر نشه کونکی [نشه راوستونکی] شی حرام دی إِلَّا أَنَّهُ تَفَرَّدَ بِهٰذَا الشَّرْطِ خو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په دغه شرط کي منفرد [يوازينی] دی [يعني دا تر لسو ورځو پوري د نه خرابېدلو شرط يوازي له امام ابو يوسف څخه منقول دی.] وَمَعْنٰى قَوْلِهِ "يَبْلُغُ": يَغْلِيْ وَيَشْتَدُّ او [په متن کي] د امام محمد رَحِمَهُ الله د دې قول "يَبْلُغُ" معنیٰ ده: يَغْلِيْ وَيَشْتَدُّ [يعني چي جوش وخوري او سخت سي] وَمَعْنٰى قَوْلِهِ "وَلَا يَفْسُدُ": لَا يَحْمَضُ او د هغه د دې قول "وَلَا يَفْسُدُ" معنیٰ ده: چي تروه نه سي وَوَجْهُهُ أَنَّ بَقَاءَ هٰذِهِ الْمُدَّةِ مِنْ غَيْرِ أَنْ يَحْمَضَ دَلَالَةُ قُوَّتِهِ وَشِدَّتِهِ او د دې وجه دا ده چي تر دومره مودې پوري [د دې نورو شرابونو] پاتېدل بغير له دې چي تروه سي د هغوی د قوت او شدت دليل دی فَكَانَ آيَةَ حُرْمَتِهِ نو دا د هغوی د حرامېدلو نښه ده وَمِثْلُ ذٰلِكَ يُرْوٰى عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او همدې ته ورته روايت له ابن عباس (رض) څخه هم نقل سوی دی وَأَبُوْحَنِيْفَةَ يَعْتَبِرُ حَقِيْقَةَ الشِّدَّةِ عَلَى الْحَدِّ الَّذِيْ او امام صاحب رَحِمَهُ الله د حقيقي شدت اعتبار کوي د هغه حدّ مطابق ذَكَرْنَاهُ فِيْمَا يَحْرُمُ أَصْلُ شُرْبِهِ وَفِيْمَا يَحْرُمُ السُّكْرُ مِنْهُ کوم چي موږ د هغه څه په باره کي ذکر کړی چي د هغه اصل چيښل حرام دی [يعني خمر] او د هغه څه په باره

کي چې د هغه نشه والی حرام دی [یعني نبیذ التمر او نبیذ الزبیب إذا طبخ کل واحد منهما أدنیٰ طبخة] عَلیٰ مَا نَذْکُرُهُ إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالیٰ لکه څرنګه چې وروسته به [هم] مونږ ان شاء الله تعالیٰ د دې یادونه وکړو وَأَبُوْیُوْسُفَ رَجَعَ إِلیٰ قَوْلِ أَبِيْ حَنِیْفَةَ او امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول وطرف ته رجوع وکړه فَلَمْ یُحَرِّمْ کُلَّ مُسْکِرٍ نو هر نشه کونکی شی یې حرام نه وګرځوی وَرَجَعَ عَنْ هٰذَا الشَّرْطِ أَیْضًا او له دغه [مذکوره] شرط څخه یې هم رجوع وکړه.

**اللغات**: ﴿تفرّد﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: یوازي کېدل (په یو څه کي یوازینی کېدل)، تنها کېدل.

﴿یحمّض﴾ د تفعیل د باب مضارع مجهوله ده: تریوی کېدل (تروش کېدل).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې په جامع صغیر کي امام محمد رَحِمَهُ الله داسي هم فرمایلي دي چې مخکي د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله مسلک دا وو چې کله دا نور شرابونه له جوش او اشتداد څخه وروسته تر لسو ورځو سالم پاته سي او خراب نه سي، نو هغوی به یې حرام ګڼل. بیا امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول وطرف ته رجوع وکړه. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اول قول د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول په څېر دی چې هر سکر حرام دی. یعني د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هر مُسکِر حرام دی او همدا به مخکي امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایل. یعني د هغه کوم قول چې اوس ذکر سو. هغه د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول په څېر دی، خو امام ابویوسف رَحِمَهُ الله یوه خبره زیاته کړې ده کوم چې د امام محمد رَحِمَهُ الله په قول کي نسته. یعني پورتنی شرط کوم چې اوس ذکر سو چې تر لسو ورځو د شرابو نه خرابېدل شرط دي؛ او د لسو ورځو د شرطولو وجه دا ده چې کله دا نور شرابونه لس ورځي پاته سي او تروه خراب نه سي، نو دا د هغوی د قوت او شدت دلیل دی کوم چې د حرمت نښانې ده. او دا کوم شرط چې له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوی دی. همداسي له ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت هم سوی دی. خو دا روایت مو چیري پیدا نه کړی.

وأبوحنیفة إلخ: فرمایي چې امام صاحب رَحِمَهُ الله په خمر او غیرِ خمر کي د حقیقي شدت (اشتداد) اعتبار کوي، لکه مخکي چې ذکر سوه چې د جوش او اشتداد سره ځګ هم را پورته کړي، نو بیا حرامیږي، خمر وي او که غیرِ خمر. په دواړو کي همدا حد مقرر دی. د دې نور تفصیل به وروسته هم راسي.

وأبويوسف إلخ: يعني امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله له خپل مذكوره قول څخه رجوع وكړه او د هغه سره يې له خپل مذكوره شرط څخه هم رجوع وكړه (چې تر لسو ورځو خراب نه سي)، او د امام صاحب قول او مسلك يې اختيار كړی چې مذكوره شرابونه حرام نه دي.

## د خرما او كشمشو د نبيذ بيان

وَقَالَ فِي الْمُخْتَصَرِ او [امام قدوري رَحِمَهُ الله] په مختصر القدوري كي فرمايلي دي وَنَبِيذُ التَّمْرِ وَالزَّبِيبِ إِذَا طُبِخَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَدْنَى طَبْخَةٍ حَلَالٌ چې د خرما او كشمشو نبيذ چې كه له دری څخه هر يو معمولي غوندي پوخ كړل سي نو حلال دی وَإِنِ اشْتَدَّ كه څه هم سخت سي [يعني جوش وخوري او ځک راوغورځوي] إِذَا شَرِبَ مِنْهُ مَا يَغْلِبُ عَلَى ظَنِّهِ أَنَّهُ لَا يُسْكِرُهُ [په دې شرط] كله چې له هغه څخه دومره مقدار وڅيښي چې د هغه غالب گومان دا وي چې دا به يې نشه نه كړي مِنْ غَيْرِ لَهْوٍ وَلَا طَرَبٍ [او په دې شرط چې] بغير له لهو او مستی څخه [يې وڅيښي. يعني صرف د نفساني خواهش او د مستی او سرور په غرض يې نه څيښي بلكي مراد يې تقوية البدن على الطاعات وي] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ او دا [حكم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ وَالشَّافِعِيِّ حَرَامٌ او د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نېز حرام دی وَالْكَلَامُ فِيهِ كَالْكَلَامِ فِي الْمُثَلَّثِ الْعِنَبِيِّ او خبره [بحث] په دې كي داسي دی لكه خبره د انگورو په مثلث كي [يعني په دې كي هغسي بحث دی كوم چې په مثلث عنبي كي دی] وَنَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او هغه به موږ انشاء الله تعالیٰ [څه وروسته] ذكر كړو.

**اللغات:** ﴿نبيذ﴾ كله چې اوبو ته خرما يا كشمش او داسي نور واچول سي او دومره وخت پكښې پرېښوول سي چې اوبه خندې او گاټه وگرځي. نو دې ته نبيذ وايي. ﴿زبيب﴾ كشمش (وچ كړي انگور، وشكي)، ﴿لهو﴾ عبث، بې ځايه، (نفس ته بې ځايه راحت او سكون وركول كوم چې بالكل د حكمت او پوهي خلاف وي)، ﴿طرب﴾ خمار، سرور او مستي. صاحب د معجم يې داسي تعريف كړی دی: نَشْوَةٌ تُصَاحِبُهَا خِفَّةٌ لِشِدَّةِ السُّرُورِ (يعني هغه معمولي غوندي نشه يا چستي چې د بدن سپكتيا هم ورسره وي كوم چې د سخت سرور او خوشحالی په نتيجه كي څرگند سي)، ﴿المثلث العنبي﴾ د انگورو مثلث. دې ته وايي چې د انگورو اوبه دومره پخې كړل سي چې دوه ثلثه يې ختم سي (وسوخي) او فقط يو ثلث يې پاته سي او په هغه كي جوش او سختي پيدا سي.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي نبيذ تمر او نبيذ زبيب چي کله څه غوندي پاخه کړل سوي وي نو د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز حلال دي. ليکن اول شرط څه غوندي پخوالی دي، دويم شرط دومره مقداره چيښل دي چي په هغه سره نشه نه سي، دريم شرط دا دی چي د چيښلو مقصد لهو او سرور نه وي بلکي مقصد د بدن تقويه وي.

او د امام محمد او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نيز حرام دي. لکه د انګورو اوبه چي کله پخې کړل سي او د هغوی دوه ثلثه ختم سي. په دې کي هم هغه اختلاف دی چي د هغه بيان به څه وروسته راسي.

## د خرماوو او کشمشو د مخلوط شربت حکم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِالْخَلِيْطَيْنِ فرمايي: د خرما او کشمشو په مخلوط شرابو کي څه حرج نسته لِمَا رُوِيَ عَنِ ابْنِ زِيَادٍ أَنَّهُ قَالَ د هغه دليل په وجه کوم چي له ابن زياد رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی چي هغه وويل سَقَانِيْ ابْنُ عُمَرَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا شَرْبَةً مَا كِدْتُ أَهْتَدِيْ إِلَى أَهْلِيْ چي حضرت ابن عمر (رض) په ما داسي شربت وچيښل چي نژدې نه وم خپلي کورنی ته لاره وموندلم [يعني دې ته نژدې سوم چي خپل کور ته به نه ورسېږم] فَغَدَوْتُ إِلَيْهِ مِنَ الْغَدِ بيا په سبا ورځ ابن عمر (رض) ته ولاړم فَأَخْبَرْتُهُ بِذٰلِكَ او هغه مي په دې [واقعه] خبر کړی فَقَالَ*: مَا زِدْنَاكَ عَلَى عَجْوَةٍ وَزَبِيْبٍ نو هغه وفرمايل چي: موږ اضافه نه ده کړې ستا لپاره پر عجوه خرماوو او کشمشو [يعني فقط د دې دوو شيانو شربت مي په تا چيښلی دی] وَهٰذَا مِنَ الْخَلِيْطَيْنِ او دا هغه خليطين دي وَكَانَ مَطْبُوْخًا او دا پاخه کړل سوي وه لِأَنَّ الْمَرْوِيَّ عَنْهُ حُرْمَةُ نَقِيْعِ الزَّبِيْبِ وَهُوَ النِّيْءُ مِنْهُ ځکه چي د ابن عمر (رض) څخه د نقيع الزبيب حرمت روايت سوی دی چي هغه د کشمشو اُوم [ناپوخ] نقيع دی وَمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ نَهٰى[1] عَنِ الْجَمْعِ بَيْنَ التَّمْرِ وَالزَّبِيْبِ او [پاته سو] هغه حديث کوم چي روايت سوی دی چي نبي ﷺ منع کړې ده له جمع کولو څخه د خرما او کشمشو وَالزَّبِيْبِ وَالرُّطَبِ او د کشمشو او د پخې خرما وَالرُّطَبِ وَالْبُسْرِ او د پخې خرما او نيم پخته خرما مَحْمُوْلٌ عَلَى حَالَةِ الشِّدَّةِ [دا حديث] د سختی [وچکالی] پر حالت محمول دی وَكَانَ ذٰلِكَ فِي الْاِبْتِدَاءِ او دا د اسلام په شروع کي وه.

---

* تخريج: أخرجه الإمام محمد في كتاب الآثار، باب الأشربة والأنبذة والشرب قائما، ص:١٨٢، حديث رقم:٨٢٩.

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد مفصلا، باب في الخليطين، ص:٥٣١، حديث رقم:٣٧٠٤.

**اللغات**: ﴿خليطين﴾ تثنيه د خَلِيْطٌ ده. د دې لفظ يوه معنیٰ ده: مخلوط يعني ګډ کړل سوی شی، ﴿النيء﴾ کچه، اُوم. ناپوخ. ﴿الرطب﴾ پخه خُرما. خيشته او تازه خرما. واحد يې رُطَبَة راځي، جمع يې رِطَاب راځي. وچې خرما ته ''تَمَر'' وايي. ﴿بسر﴾ نيم پخته خرما. هغه خرما کوم چې تر اوسه پخ سوې او رسېدلې نه وي.

**تشريح**: د خليطين مطلب دا دی چې خرما او انګور سره ګډ کړل سي يا کشمش او منقه (اوجوشي) سره ګډ کړل سي او شربت ځني جوړ کړل سي، نو دا حلال دی په دې شرط چې لږ غوندي پاخه سوي وي. لکه څرنګه چې ابن زياد رَحِمَهُ الله ويلي دي چې ابن عمر رضي الله عنهما ما ته يو شربت راکړی او د هغه په چيښلو سره زما کيفيت دا سو چې تر کوره تلل راته درانه او مشکل سوه. او په سبا ورځ ما ابن عمر ته دا واقعه بيان کړه، نو هغه وفرمايل چې له خرما او کشمشو څخه بغير ما تا ته بل څه نه دي درکړي، همدې ته خليطين وايي او دا پوخ کړل سوی هم وو؛ دليل يې دا دی چې له ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دی چې د کشمشو وغيره اُوم نا پوخ کړی سوی نقيع حرام دی، نو د هغه له دغه خبري څخه ښکاره سوه چې دا پوخ کړی سوی وو، کنې ابن زياد ته به يې نه ورکولای.

او که سوال وسي چې خليطين ته تاسي جائز واياست، حال دا چې په حديث کي له دې څخه منع سوې دي چې انګور او وچه خرما يا انګور او خيشته خرما سره ګډل سي او وچيښل سي؟.

نو جواب دا دی چې دغه منع د اسلام په شروع کي هغه وخت وه کله چې د وچکالۍ زمانه وه او مقصد يې دا وو چې دغه مېوې مه سره جمع کوئ، بلکي پر يوه مېوه يې اکتفاء کوئ (يعني صرف خرما يا انګور استعمالوئ) او بله غريبانو ته ورکوئ!.

## د مختلفه نبيذونو حکم

قَالَ: وَنَبِيْذُ الْعَسَلِ وَالتِّيْنِ وَنَبِيْذُ الْحِنْطَةِ وَالذُّرَةِ وَالشَّعِيْرِحَلَالٌ فرمايي: د شاتو او انځرو نبيذ او د غنمو، جوارو او اُوربشو نبيذ حلال دی وَإِنْ لَمْ يُطْبَخْ که څه هم پوخ نه کړل سي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ إِذَا كَانَ مِنْ غَيْرِلَهْوٍ وَطَرَبٍ او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی کله چې هغه د لهو او مستۍ څخه بغير وي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ الصَّلَاةُ وَالسَّلَامُ [1]: «اَلْخَمْرُمِنْ هَاتَيْنِ الشَّجَرَتَيْنِ»

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم، باب بيان أن جميع ما ينبذ مما يتخذ من النخل والعنب يسمى خمرا، ص:۸۸۶، حديث رقم۱۹۸۵، ۵۱۴۳.

د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه چې: خمر له دغه دوو درختو څخه وي وَأَشَارَ إِلَى الْكَرْمَةِ وَالنَّخْلَةِ او نبي ﷺ د انګورو تاک او د خرما درختي ته اشاره وکړه خَصَّ التَّحْرِيمَ بِهِمَا نو نبي کريم ﷺ حراموالی د دې دوو درختو سره خاص کړی وَالْمُرَادُ بَيَانُ الْحُكْمِ او مراد حکم بيانول دي.

**اللغات**: ﴿التين﴾ انځر. ﴿الكرمة﴾ دانګورو تاک.

**تشريح**: دا مذکوره ټوله نبيذونه د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حلال دي که څه هم پاخه کړل سوي نه وي، لېکن شرط دا دی چې بغير د لهو او مستۍ څخه د بدن د طاقت په غرض يې استعمال کړي.

مخکې ذکر سوه چې د پيغمرۍ د منصب لايق دا دي چې د پېغمبر د وينا مطلب او مقصد حکم بيانول دي، نه وضع او لغت بيانول. نو د دې حديث "الْخَمْرُ مِنْ هَاتَيْنِ" مطلب دا دی چې حرام شراب هغه دي کوم چې له دې دوو درختو يعني له انګورو او خرماوو څخه جوړ سي. نو له دې څخه معلومه سوه چې کوم شراب له شاتو، انځرو او داسې نورو څخه جوړ سي، هغه حرام نه دي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

ثُمَّ قِيلَ: يُشْتَرَطُ الطَّبْخُ فِيهِ لِإِبَاحَتِهِ بيا ويل سوي دي: چې په دې [هريوه نبيذ] کې پخول شرط دي وَقِيلَ: لَا يُشْتَرَطُ او ويل سوي دي: چې شرط نه دي وَهُوَ الْمَذْكُورُ فِي الْكِتَابِ او همدا په کتاب [قدوري] کې ذکر سوي دي لِأَنَّ قَلِيلَهُ لَا يَدْعُو إِلَى كَثِيرِهِ ځکه چې د هغه قليل وکثير ته داعي نه دي كَيْفَ مَا كَانَ هغه که هر څنګه وي [يعني مطبوخ وي او که غير مطبوخ].

**تشريح**: د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د دغه نبيذونو د حلت لپاره پخول شرط دي. که نه؟. نو فرمايي په دې باره کې دوه قوله دي: ① پخول شرط دی (چې هغوی به پاخه کړل سوي وي). ② شرط نه دي. لکه په قدوري کې چې هم د دې صراحت سوی دی.

دويمه خبره دا ده چې د دې نبيذونو قليل د کثير وطرف ته داعي نه دي، برابره ده اُومه وي او که پاخه کړل سوي وي.

## د اُوربشو او غنمو د شرابو پر نشه به حدّ جاري کول کېږي، که نه؟

وَهَلْ يُحَدُّ فِي الْمُتَّخَذِ مِنَ الْحُبُوبِ إِذَا سَكِرَ مِنْهُ؟ او آيا حدّ به جاري کيږي په هغه شرابو کې کوم چې له دانو [أوربشو وغيره] څخه جوړ کړل سوي وي قِيلَ: لَايُحَدُّ ويل سوي دي: چې حدّ به نه جاري کيږي وَقَدْ ذَكَرْنَا الْوَجْهَ مِنْ قَبْلُ او موږ مخکې [د دې] دليل ذکر کړی دی قَالُوا: وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يُحَدُّ لېکن مشايخ رَحِمَهُمَا الله فرمايي: زياته صحيح دا ده چې پر هغه به حدّ جاري کيږي فَإِنَّهُ رُوِيَ عَنْ مُحَمَّدٍ فِيمَنْ سَكِرَ مِنَ الْأَشْرِبَةِ أَنَّهُ يُحَدُّ مِنْ غَيْرِ تَفْصِيلٍ ځکه له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د هغه ... په باره کې روايت سوی دی کوم چې په شرابونو سره نشه سي چې پر هغه به حدّ جاري کيږي [دا روايت] بغير له تفصيله [څني نقل سوی دی] وَهَذَا لِأَنَّ الْفُسَّاقَ يَجْتَمِعُونَ عَلَيْهِ فِي زَمَانِنَا اجْتِمَاعَهُمْ عَلَى سَائِرِ الْأَشْرِبَةِ او دا ځکه چې زموږ په زمانه کې فساق پر دې هم جمع کيږي لکه څرنګه چې هغوی پر نورو شرابونو جمع کيږي بَلْ فَوْقَ ذَلِكَ بلکې تر هغه هم بالا [پر دې جمع کيږي] وَكَذَلِكَ الْمُتَّخَذُ مِنَ الْأَلْبَانِ إِذَا اشْتَدَّ او همدارنګه هغه شراب کوم چې له شيدو څخه جوړ کړل سوي وي کله چې هغوی سخت سي فَهُوَ عَلَى هَذَا نو هغه هم پر دغه حکم دي وَقِيلَ: إِنَّ الْمُتَّخَذَ مِنْ لَبَنِ الرِّمَاكِ لَا يَحِلُّ عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ او ويل سوي دي: چې د آسې له شيدو څخه جوړ کړل سوي شراب د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حلال نه دي اعْتِبَارًا بِلَحْمِهِ د آس پر غوښو په قياس کولو سره إِذْ هُوَ مُتَوَلِّدٌ مِنْهُ ځکه چې شيدې له همدې غوښو څخه پيدا کيږي قَالُوا: وَالْأَصَحُّ أَنَّهُ يَحِلُّ لېکن مشايخ رَحِمَهُمُ الله فرمايي: زياته صحيح دا ده چې دا شراب هم حلال دي لِأَنَّ كَرَاهَةَ لَحْمِهِ لِمَا فِي إِبَاحَتِهِ مِنْ قَطْعِ مَادَّةِ الْجِهَادِ ځکه د آس د غوښو کراهت په دې وجه دی چې د هغه په مباح ګرځولو کې د جهاد د مادې [او آلې] ختمول سته أَوْ لِاحْتِرَامِهِ يا [د غوښو کراهت] د هغه د احترام په وجه دی فَلَا يَتَعَدَّى إِلَى لَبَنِهِ لهذا دا به د هغه د شيدو وطرف ته نه متعدي کيږي.

**اللغات:** ﴿المتخذ﴾ د تفعّل د باب مفعول دی: جوړ کړل سوی، ترلاسه کړل سوی. ﴿الحبوب﴾ دانې، غله. يعني اُوربشې، جوارې، غنم او داسې نور.

**تشريح:** په دې عبارت کې د حدّ واجبېدلو په هکله دوې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... له اُوربشو او داسي نورو څخه چي کوم شراب جوړول کيږي، که څوک هغه وچيښي او مست نشه سي، حدّ به برې جاري کيږي، که نه؟، نو فرمايي چي په دې هکله دوه قوله دي: ① فقيه ابو جعفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي حدّ به نه پرې جاري کيږي؛ ځکه دا د بنګو او دآسي (اسپي) د شيدو په درجه کي دي. ② او دويم قول دا دی چي حدّ به پرې جاري کيږي، او همدا اصح قول دی؛ ځکه له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي کوم کس له خمرو څخه بغير په بل شراب سره نشه سي، نو پر هغه حدّ واجبيږي، او دا خبره امام محمد رَحِمَهُ الله بغير له تفصيله کړې ده. يعني په دې کي دا تفصيل او قيد نسته چي که شراب له دانو (اوربشو وغيره) څخه جوړ وي نو بيا دا حکم نه دی. د دې خبري هيڅ صراحت پکښي نسته. او د حدّ واجبېدلو وجه دا هم ده چي د دې په چيښلو عموماً فاسقان مشغوله وي او دا هم د نورو شرابونو په څېر بنه په شوق سره چيښي، نو د فساد دفع کولو لپاره حدّ واجبېدل پکار دي.

وکذالك المتخذ إلخ: (۲)... دويمه مسئله دا ده چي کوم شراب له شيدو څخه جوړ کړ سوي وي. په هغوی سره د نشه کېدلو په صورت کي حدّ واجبيږي، که نه؟، نو فرمايي چي په دې باره کي هم د مخکي په څېر دوه قوله دي. او بل قول دلته دا هم سته دي چي دآسي (اسپي) له شيدو څخه جوړ شراب د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز بالکل حلال نه دي، دآسي پر غوښو په قياس کولو سره؛ ځکه شيدې له غوښو څخه پيدا کيږي. خو مشايخ رَحِمَهُمَا الله فرمايي اصح دا ده چي داسي شرب حلال دي او دآس د غوښو کراهت خو يا د هغه داحترام په وجه دی يا په دې وجه دی چي د جهاد آله (آسونه) نيستي نه سي، او دا وجه په شيدو کي نسته؛ ځکه د شيدو په چيښلو سره د جهاد آله نه ختميږي.

## د انګورو د مثلث شرابو حکم

قَالَ: وَعَصِيْرُ الْعِنَبِ إِذَا طُبِخَ حَتّٰى ذَهَبَ ثُلُثَاهُ وَبَقِيَ ثُلُثُهُ حَلَالٌ فرمايي: او د انګور رَسْ چي کله پوخ کړل سي تر دې چي د هغه دوه ثلثه ختم سي او صرف يو ثلث يې پاته سي نو حلال دی وَإِنِ اشْتَدَّ که څه هم سخت سي وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَأَبِيْ يُوْسُفَ او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ وَمَالِكٌ وَالشَّافِعِيُّ ۞: حَرَامٌ او امام محمد، امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله فرمايي: چي حرام دی وَهٰذَا الْخِلَافُ فِيْمَا إِذَا قَصَدَ بِهِ التَّقَوِّيَ او دا اختلاف په هغه صورت کي دی

۞ القول الراجح: قول محمد رَحِمَهُ الله. انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۱۸]

کله چي چیښونکی کس په دې سره د قوت حاصلولو اراده لري أَمَّا إِذَا قَصَدَ بِهِ التَّلَهِّيَ لېکن که په دې سره د لهو اراده لري لَا يَحِلُّ بِالِاتِّفَاقِ نو بالاتفاق حلال نه دی وَعَنْ مُحَمَّدٍ مِثْلُ قَوْلِهِمَا او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه د شیخینو رَحِمَهُمَا الله د قول په څېر هم نقل سوي دي وَعَنْهُ أَنَّهُ كَرِهَ ذَلِكَ او له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه بل روایت دا دی چي هغه دا مکروه ګرځولي دي وَعَنْهُ أَنَّهُ تَوَقَّفَ فِيهِ او بل روایت ځني دا دی چي هغه په دې هکله توقف کړی دی.

لَهُمْ فِي إِثْبَاتِ الْحُرْمَةِ قَوْلُهُ الطَّيْئِلاَ [1] : «كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ» د حرمت ثابتولو په هکله د دوی [امام محمد، امام شافعي وغیره] دلیل د نبي ﷺ دا فرمان دی: هر نشه کونکی [نشه پیدا کونکی] شی خمر دی وَقَوْلُهُ الطَّيْئِلاَ : «مَا أَسْكَرَ [2] كَثِيرُهُ فَقَلِيلُهُ حَرَامٌ» او د نبي ﷺ دا فرمان دی: د کوم څه چي کثیر مقدار انسان نشه کوي نو د هغه قلیل هم حرام دی وَيُرْوَى عَنْهُ الطَّيْئِلاَ [3] : «مَا أَسْكَرَ الْجَرَّةُ مِنْهُ فَالْجَرْعَةُ مِنْهُ حَرَامٌ» او له نبي ﷺ څخه روایت سوی دی [یعني په بل روایت کي دي]: د کوم شراب چي یو منګی انسان نشه کوي نو د هغه یو غړپ هم حرام دی وَلِأَنَّ الْمُسْكِرَ يُفْسِدُ الْعَقْلَ او ځکه چي نشه کونکی [نشه پیدا کونکی شی] عقل فاسدوي فَيَكُونُ حَرَامًا قَلِيلُهُ وَكَثِيرُهُ كَالْخَمْرِ نو ځکه د خمرو په څېر به د هغه قلیل او کثیر دواړه حرام وي وَلَهُمَا قَوْلُهُ الطَّيْئِلاَ: «حُرِّمَتِ [4] الْخَمْرُ لِعَيْنِهَا» او د شیخینو رَحِمَهُمَا الله دلیل د نبي ﷺ دا فرمان دی چي: خمر بذات خود حرام دی [یعني د خمرو عین حرام دی] وَيُرْوَى «بِعَيْنِهَا قَلِيلُهَا وَكَثِيرُهَا وَالسُّكْرُ مِنْ كُلِّ شَرَابٍ» او روایت سوی دی [یعني په بل روایت کي دي]: بعینها د هغه قلیل او کثیر او د بل هر شراب سکر حرام دي خَصَّ السُّكْرَ بِالتَّحْرِيمِ فِي غَيْرِ الْخَمْرِ [دلته نبي ﷺ له خمرو څخه بغیر په بل شراب کي سکر [نشه] په حراموالي سره خاص کړی ده إِذِ الْعَطْفُ

---

[1] تخریج: أخرجه ابو داؤد، باب ما جاء فی السکر ص:۵۲۸، حدیث رقم:۳۶۷۹.

[2] تخریج: أخرجه ابو داؤد، باب ما جاء فی السکر، ص:۵۲۸، حدیث رقم:۳۶۸۱.

[3] تخریج: أخرجه بمعناه ابو داؤد، باب ما جاء فی السکر، ص:۵۲۹، حدیث رقم:۳۶۸۷.

[4] تخریج: أخرجه دار قطنی، باب الأشربة وغیرها، ج:۴، ص:۱۷۰، حدیث رقم:۴۶۱۹.

لِلْمُغَايَرَةِ ځکه چې عطف د مغايرت لپاره وي وَلِأَنَّ الْمُفْسِدَ هُوَالْقَدَحُ الْمُسْكِرُ او ځکه چې فساد راوستونکې هغه پياله ده کوم چې نشه کونکې وي [يعني هغه پياله چې چيښونکی نشه کړي] وَهُوَحَرَامٌ عِنْدَنَا او هغه خو زموږ په نيز [هم] حرام ده وَإِنَّمَا يَحْرُمُ الْقَلِيلُ مِنْهُ لِأَنَّهُ يَدْعُو لِرِقَّتِهِ وَلَطَافَتِهِ إِلَى الْكَثِيرِ او د خمرو قليل په دې وجه حرام دی ځکه چې هغه د خپل نرموالي او باريک والي په وجه د کثير وطرف ته داعي وي فَأُعْطِيَ حُكْمَهُ لهذا قليل دکثير حکم واخيستی وَالْمُثَلَّثُ لِغِلْظِهِ لَايَدْعُو او مثلث شراب د خپل سختوالي [گاته والي] په وجه داعي نه وي وَهُوَفِيْ نَفْسِهِ غِذَاءٌ او [بل دا چې] مثلث بذات خود غذاء ده فَبَقِيَ عَلَى الْإِبَاحَةِ نو هغه به پر اباحت باقي پاته وي وَالْحَدِيثُ الْأَوَّلُ غَيْرُ ثَابِتٍ او اول حديث ثابت نه دی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه [مخکې] چې موږ بيان کړه ثُمَّ هُوَمَحْمُوْلٌ عَلَى الْقَدَحِ الْأَخِيْرِ بيا هغه پر آخرنی پايله محمول دی إِذْهُوَالْمُسْكِرُحَقِيْقَةً ځکه چې په حقيقت کې هغه نشه پيدا کونکې ده.

**اللغات**: ﴿عصير﴾ د انګورو نخوړل سوي اوبه، رَسْ. ﴿الجرة﴾ منګی. ﴿توقف﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: درېدل، انتظار کول، وعدم القدرة على ترجيح أحد الاراء على ما سواه. ﴿مُسكِر﴾ د افعال د باب فاعل دی: هغه څه چې انسان نشه کوي، نشه پيدا کونکی، نشه راوستونکی.

**تشريح**: مخکې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله دا وعده کړې وه چې د مثلث عنبي حکم به څه وروسته ذکر کړو، نو دا هغه د مثلث عنبي مسئله ده. حاصل يې دا دی چې مثلث عنبي يا د انګورو مثلث دې ته وايي چې د انګورو اوبه دومره پخې کړل سي چې دوه ثلثه يې ختم سي (وسوځي) او فقط يو ثلث يې پاته سي او په هغوی کې جوش او سختي پيدا سي، نو په دې کې اختلاف دی. شيخين رَحِمَهُمَا الله دا جائز ګرځولی دی کله چې يې د چيښلو مقصد پر طاعاتو قوت ترلاسه کول وي، او که هسې لهو او له مستی څخه يې چيښي، نو بالاتفاق حرام دی.

امام محمد، امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله دا حرام ګرځولی دی او فتوىٰ هم د امام محمد رَحِمَهُ الله پر قول ده.

او په اول صورت کې يعني کله چې پر طاعاتو د قدرت ترلاسه کولو په نيت وچيښل سي (په دې کې) له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه نور درې روايتونه هم نقل سوي دي: ① د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په

ځېږ د امام محمد رَحِمَهُ الله په نبېز هم حلال دي. ② مکروه دي. ③ توقف. چي والله اعلم څه حکم يې دی؟.

لهم في إثبات الحرمة إلخ: دا د امام محمد. امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمُ الله دليل دی چي په هغه کي درې حديثونه او يو عقلي دليل دی: ① ... كُلُّ مُسْكِرٍ خَمْرٌ. لهذا قليل او کثير به يې برابر وي. ② د کوم شراب چي زيات مقدار انسان نشه کوي. د هغوی قليل هم حرام دی. ③ د کوم شراب چي يو منګی انسان نشه کوي. د هغوی يو غړپ هم حرام دی.

③ ... عقلي دليل دا دی چي څرنګه خمر عقل پټوي او فاسدوي چي په دې وجه د هغه قليل او کثير سره برابر دي. همداسي په مثلث شرابو کي هم سکر (نشه) سته. او سکر عقل فاسدوي. لهذا د هغه به هم قليل او کثير دواړه حرام وي.

ولهما إلخ: دا د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دی چي په هغه کي يو حديث دی او بل عقلي دليل دی: ① خمر حرام لعينه دي د هغوی قليل او کثير دواړه حرام دي. او د غيرِ خمرو يعني د نورو شرابو سکر (نشه) حرام ده (يعني بل شراب هغه وخت حرام ګرځي کله چي مُسکِر وګرځي). په دې حديث کي دا جمله "والسكر من كل شراب" پر دې جمله "حرمت الخمر لعينها" عطف سوې ده. او عطف د مغايرت تقاضا کوي. لهذا په دې حديث سره ثابته سوه چي د خمرو خو عين حرام دی لېکن د غيرِ خمرو سکر حرام دی او له سکر څخه مخکي حلال دي (يعني له خمرو څخه بغير بل شراب هغه وخت حراميږي کله چي مُسکِر وګرځي. لهذا مثلث عنبي چي تر څو مُسکِر نه سي. تر هغه وخته به حرام نه وي).

② ... عقلي دليل دا دی چي کله په حديث سره دا خبره ثابته سوه چي له خمرو څخه بغير د نورو شرابو سُکر او مُسکر حرام دي. نو بيا د حرمت تعلق به د نورو شرابو د هغه پيالې سره وي کوم چي په چيښونکي کس کي سکر (نشه) پيدا کړي. يعني که څوک مثلاً په پنځو پيالو سره نشه کيږي. نو اولي څلور پيالې شراب به د هغه لپاره حلال وي او آخري پياله شراب به حرام وي. د همدې سره به حرمت متعلق وي؛ ځکه په کوم شي کي چي د علت څو صورتونه وي. په هغه کي حکم د آخري وصف وطرف ته منسوب کيږي. او په دې مسئله کي د شرابو د حرمت وجه سکر ده او سکر په آخري پياله سره راځي. لهذا د حرمت حکم به هم د آخري پيالې سره متعلق وي يعني د نورو شرابو آخري پياله به حرامه وي. او د دې د حرمت خو موږ هم قائل يو (نو ځکه مثلث عنبي ته على الاطلاق حرام ويل به صحيح نه وي).

وإنما يحرم إلخ: پر شيخينو رَحِمَهُمَا الله يو اعتراض كيږي چې بيا د خمرو قليل مقدار ولې حرام دى حال دا چې هغه مُسكر نه دى؟. نو دلته د هغه جواب ورکوي چې په خمرو کې نرمي او لطافت وي چې په دې وجه د کثير وطرف ته داعي دي. لهذا کوم حکم چې د کثير دى، هغه قليل ته ورکول سو، لکه څرنګه چې د غسل واجبېدلو په حق کې التقاء ختانين ته د دخول او انزال درجه ورکول سوې ده. او پاته سو په مثلث شرابو کې نرمي او لطافت نسته، بلکې هغوی ګاټه او سخت وي کوم چې د کثير وطرف ته داعي نه دي. او بل دا چې مثلث شراب په حقيقت کې يو غذاء ده او په غذاء کې اصل اباحت دى، لهذا مثلث شراب پر اباحت باقي پاته سوه.

پاته سو د فريقِ مخالف (امام محمد رَحِمَهُ الله وغيره) اول دليل، نو دا خو هاغه حديث دى چې يحيى بن معين رَحِمَهُ الله د هغه په باره کې طعن کړى دى او هغه يې غيرِ ثابت ګرځولى دى چې "لم أجده في شيء من كتب الحديث" (يعني دا روايت ما د حديثو په هيڅ کتاب کې پيدا نه کړى). او له حضرت ابراهيم نخعي رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چې د فريق مخالف دويم روايت "ما أسكر كثيره فقليله حرام" هم له نبي ﷺ څخه ثابت نه دى، لهذا کله چې دا حديثونه له نبي ﷺ څخه په کامله توګه ثابت نه دي، نو بيا په هغوی سره دليل نيول هم صحيح نه دي.

او بالفرض که دا تسليم هم کړى سي چې له نبي ﷺ څخه ثابت دي، نو بيا دا پر هغه آخري پياله محمول دى کوم چې مُسكر وګرځي، يعني د غير خمرو کوم مقدار چې مُسكر وګرځي، نو پر هغه د خمرو په څېر د حرمت حکم جاري کيږي، او د مُسکر د حرمت خو موږ هم قائل يو.

## د انګورو د يو بل مثلث حکم

وَالَّذِي يُصَبُّ عَلَيْهِ الْمَاءُ بَعْدَ مَا ذَهَبَ ثُلُثَاهُ بِالطَّبْخِ او هغه مثلث چې اوبه پکښې واچول سي وروسته تر دې چې د پخولو په وجه د هغه دوه ثلثه ختم سي حَتّٰى يَرِقَّ ثُمَّ يُطْبَخُ طَبْخَةً تر دې چې [د اوبو اچولو په وجه] نرى سي بيا هغه پوخ کړل سي حُكْمُهُ حُكْمُ الْمُثَلَّثِ نو د هغه حکم د مثلث د حکم په څېر دى لِأَنَّ صَبَّ الْمَاءِ لَا يَزِيدُهُ إِلَّا ضَعْفًا ځکه اوبه اچول په هغه کې صرف ضعف پيدا کوي [يعني طاقت يې ورکمزوري کوي] بِخِلَافِ مَا إِذَا صُبَّ الْمَاءُ عَلَى الْعَصِيرِ په خلاف د هغه صورت کله چې د انګورو په رَسْ کې اوبه واچول سي ثُمَّ يُطْبَخُ حَتّٰى يَذْهَبَ ثُلُثَا الْكُلِّ بيا پوخ کړل سي تر دې چې له کُل [رَسْ او اُوبو دواړو] څخه دوه ثلثه ختم سي لِأَنَّ الْمَاءَ يَذْهَبُ أَوَّلًا لِلَطَافَتِهِ ځکه چې اوبه

د خپل باريکوالي په وجه اول ختميږي أَوْيَذْهَبُ مِنْهُمَا يا له دوی دواړو څخه [برابر] ختميږي فَلَا يَكُوْنُ الذَّاهِبُ ثُلُثَيْ مَاءِ الْعِنَبِ نو ختمېدونکې حصه به [خاص] دانګورو د اوبو دوه ثلثه نه وي [لهذا دا مثلث نه سو. فلايحلّ].

**اللغات**: ﴿يصبّ﴾ د ضرب د باب مضارع ده: اچول. بيول (بهول).

**تشريح**: د دې شرابو په نوم کي اختلاف دی او په څو نومانو سره نومول سوي دي چي ځيني دا دي:

① يعقوبي او ابو يوسفي، ځکه چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله به دا ډېر استعمالول. ② حُميدي. منسوب إلى حُميد بن هانئ. ③ جمهوري. منسوب إلى جمهور الناس. نو ځکه يې نوم نه دی ذکر کړی. وضاحت يې دا دی چي کله دانګورو د رَسْ (اوبو) دوه ثلثه وسوځل سي يعني مثلث وګرځي بيا په هغه کي نوري اوبه واچول سي او هغه نرۍ سي او بيا پوخ کړل سي. نو د دې حکم هم د مثلث عنبي په څېر دی؛ ځکه کله چي مثلث د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حلال دی. نو د اوبو په اچولو سره د هغه په قوت کي نوره کمي واقع کيږي. نو دا خو به په درجه اولیٰ حلال وي.

بخلاف ما إلخ: که چيري د انګورو په رَسْ کي له مخکي څخه اوبه ګډې کړل سي او بيا هغه دومره پوخ کړل سي چي دوه ثلثه يې وسوځي او ټوله يو ثلث پاته سي. نو دا حلال نه دی؛ ځکه يوازي مثلث حلال دی. او دلته دا مثلث پاته نه سو؛ ځکه مثلث خو هغه دی چي خاص دانګورو له رسْ (اوبو) څخه دوه ثلثه ختم سي او دلته خو (مجموعتاً) د اوبو او د انګورو د رَسْ دوه ثلثه ختم سوي دي. نو دا مثلث نه سو. لهذا حلال نه دی.

## د پاخه کړل سوي انګورو د شرابو حکم

وَلَوْ طُبِخَ الْعِنَبُ كَمَا هُوَ او که خودي انګور پاخه کړل سي ثُمَّ يُعْصَرُ بيا هغوی ونڅوړل سي يُكْتَفَى بِأَدْنَى طَبْخَةٍ فِي رِوَايَةٍ عَنْ أَبِي حَنِيْفَةَ نو پر معمولي [لږ] پخولو به اکتفا کيږي د امام صاحب رَحِمَهُ الله د يوه روايت مطابق وَفِي رِوَايَةٍ عَنْهُ لَا يَحِلُّ مَا لَمْ يَذْهَبْ ثُلُثَاهُ بِالطَّبْخِ او د هغه په دويم روايت کي نه حلاليږي تر څو چي په پخولو سره د هغوی دوه ثلثه ختم نه سي وَهُوَ الْأَصَحُّ او همدا زيات صحيح ده لِأَنَّ الْعَصِيرَ قَائِمٌ فِيْهِ مِنْ غَيْرِ تَغَيُّرٍ ځکه په انګورو کي رَسْ موجود دی بغير له څه تغيره فَصَارَ كَمَا بَعْدَ الْعَصْرِ نو داسي سو لکه تر نڅوړلو وروسته.

**اللغات**: ﴿عصر﴾ د ضرب د باب مصدر دى: نڅوړل (له مېوې وغيره څخه د کښېکارلو په ذريعه اوبه را ايستل. له ټوکر څخه د نستېړلو په ذريعه اوبه را ايستل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چې که خودې انګور (ثابت انګور) پاخه کړل سي او بيا نڅوړ کړل سي، نو د دې رَسْ څه حکم دى؟، فرمايي په دې اړه له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه نقل سوي دى:

①... يو روايت دا دى چې د داسي شرابو د حلت لپاره صرف معمولي غوندي پخول کافي دي. او د ډېرو پخولو ضرورت يې نسته.

②... دويم روايت دا دى چې د دې هاغه حکم دى کوم چې د انګور د رَسْ دى. يعني که دومره پوخ کړل سي چې دوه ثلثه يې ختم سي. نو حلال دى. کنې حلال نه دى. ځکه چې له تغيّر او لاس وهلو څخه بغير هم په هغه کي رَسْ موجود دى. لهذا دا تر نڅوړلو وروسته والا رَسْ په څېر سو چې (د هغه د حلت لپاره) د هغه دوه ثلثه ختمېدل شرط دي. لنډه دا چې په هر صورت کي د انګورو د رَسْ يو حکم دى. يعني تر نڅوړلو مخکي هم او وروسته هم.

**که د انګورو سره خرما وغيره ګډل سي او بيا شدت او سُکر پکښي پيدا سي نو څه حکم دى؟**

| |
|---|
| وَلَوْجُمِعَ فِي الطَّبْخِ بَيْنَ الْعِنَبِ وَالتَّمْرِ او که جمع راوستل سي په مينځ کي د [اوبو د] انګورو او خرما أَوْ بَيْنَ التَّمْرِ وَالزَّبِيْبِ يا په مينځ کي د خرما او کشمشو لَايَحِلُّ حَتّٰى يَذْهَبَ ثُلُثَاهُ نو [دا خليط] نه حلالېږي تر دې چې دوه ثلثه يې ختم سي لِأَنَّ التَّمْرَ اِنْ كَانَ يُكْتَفٰى فِيْهِ بِأَدْنٰى طَبْخَةٍ ځکه خرما که څه هم په هغې کي پر معمولي پخولو اکتفاء کيږي فَعَصِيْرُ الْعِنَبِ لَابُدَّ أَنْ يَذْهَبَ ثُلُثَاهُ لېکن [څرنګه چې] د انګورو په رَسْ کي چاره نسته له دې څخه چې د هغه دوه ثلث ختم سي [يعني کله چې د انګورو د دوو ثلثو ختمېدل ضروري دي] فَيُعْتَبَرُ جَانِبُ الْعِنَبِ اِحْتِيَاطًا نو ځکه [په دې خليط کي] احتياطاً د انګورو د جانب اعتبار سوى دى وَكَذَا إِذَا جُمِعَ بَيْنَ عَصِيْرِ الْعِنَبِ وَنَقِيْعِ التَّمْرِ او همدارنګه کله چې جمع راوستل سي په مينځ کي د انګورو د رَسْ او نقيع تمر لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړى. |

**اللغات**: ﴿زبيب﴾ کشمش (وچ کړي انګور. وڅکي).

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی که چیري انګور او خرما په اوبو کي واچول سي. نو تر څو چي د دوی دوه ثلثه ختم نه سي، تر هغه وخته نه حلالیږي؛ ځکه خرما که څه هم داسي ده چي په معمولي پخولو سره حلت پکښې راځي. لېکن څرنګه چي دلته د خرما سره انګور هم ګډ کړل سوي دي. نو ځکه احتیاطاً به د انګورو جانب لره ترجیح وي، او تاسي ته مخکي معلومه سوه چي د انګورو د اوبو چي تر څو دوه ثلثه ختم نه سي، تر هغه وخته نه حلالیږي، نو همداسي د انګورو او خرما د مجموعي اوبو چي تر څو دوه ثلثه ختم نه سي، تر هغه وخته نه حلالیږي.

همدا حکم د انګورو د اوبو او نقیعِ تمر هم دی، یعني په دغه خلیط کي هم چي تر څو دوه ثلثه ختم نه سي، تر هغه وخته نه حلالیږي.

**یادونه** : دلته مصنف رَحِمَهُ الله له "بین العنب والتمر" څخه وروسته فرمایلي دي: "أو بین التمر والزبیب"، دا صحیح نه ښکاري؛ ځکه ماء الزبیب داسي دي لکه ماء التمر چي په دواړو کي په معمولي پخولو سره اکتفاء کیږي. لکه مخکي چي په متن کي ذکر سوه "نبیذ التمر والزبیب إذا طبخ کل واحد منهما أدنی طبخة حلال وإن اشتد..." .

لهذا که مذکور عبارت داسي سي "أو بین العنب والزبیب" نو بیا صحت لري. کېدای سي دلته د مصنف رَحِمَهُ الله یا له ناسخ او ناقل څخه سهو سوې وي.

## د نقیع تمر او نقیع زبیب د معمولي پخولو او بیا په هغه کي د خرما یا کشمشو د اچولو حکم

وَلَوْ طُبِخَ نَقِیْعُ التَّمْرِ وَالزَّبِیْبِ أَدْنٰی طَبْخَةٍ او که چیري نقیعِ تمر او نقیعِ زبیب معمولي [کم] پاخه کړل سي ثُمَّ أُنْقِعَ فِیهِ تَمْرٌ أَوْ زَبِیْبٌ بیا په هغه کي خرما یا کشمش واچول سي إِنْ کَانَ مَا أُنْقِعَ فِیهِ شَیْئًا یَسِیْرًا لَا یُتَّخَذُ النَّبِیْذُ مِنْ مِثْلِهِ نو که هغه مقدار کوم چي ور اچول سوی دی معمولي غوندي وي چي له هغومره مقدار څخه نبیذ نه سي جوړېدلای لَا بَأْسَ بِهِ نو په هغه کي څه حرج نسته وَإِنْ کَانَ یُتَّخَذُ النَّبِیْذُ مِنْ مِثْلِهِ او که له هغومره مقدار څخه نبیذ جوړېدلای سي لَمْ یَحِلَّ نو بیا هغه نه حلالیږي کَمَا إِذَا صُبَّ فِي الْمَطْبُوْخِ قَدَحٌ مِنَ النَّقِیْعِ لکه کله چي په پوخ کړل سوي نبیذ کي چي د نقیع یوه پیاله واچول سي وَالْمَعْنٰی تَغْلِیْبُ جِهَةِ الْحُرْمَةِ او وجه د حرمت طرف ته غلبه [ترجیح] ورکول دي.

**اللغات** : ﴿تغلیب﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: غالب کول، غلبه ورکول.

**تشریح : صورت د مسئلې** : دا دی چي نقیعِ تمر او نقیعِ زبیب په معمولي پخولو سره حلالیږي. لېکن که تر معمولي پخولو وروسته په هغه کي خرما یا کشمش واچول سي، بیا یې څه حکم دی؟ نو

فرمايي چې که دومره خرما يا کشمش ور واچوي، چې له هغه څخه عادتاً نبيذ نه جوړول کيږي، يعني ډېر لږ مقدار ور واچوي، نو دا د عدم په درجه کې دي او د مځکې په څېر حلال دي. لېکن که دومره اندازه ور واچوي چې له هغه څخه په عامه توګه نبيذ جوړول کيږي، نو اوس هغه حلال نه دی، بلکې حرام دی. او دا بالکل داسې ده لکه په نبيذ تمر وغيره کې چې تر معمولي پخوولو وروسته د نقيع تمر يوه پياله واچول سي، نو په دې سره ټوله حراميږي.

او د دې وجه دا ده چې په کوم ځای کې حلت او حُرمت سره جمع سي، نو هلته غلبه او ترجيح حُرمت لره وي.

## د مذکوره نبيذ په چيښونکي باندي د حدّ جاري کولو حکم

وَلَاحَدَّ فِي شُرْبِهِ او د هغه په چيښلو کې حدّ نسته لِأَنَّ التَّحْرِيْمَ لِلاِحْتِيَاطِ ځکه چې [د دې نبيذو] حراموالی د احتياط په وجه دی وَهُوَ لِلْحَدِّ فِي دَرْئِهِ او احتياط حدّ لره د حدّ په ختمولو کې دی [يعني احتياط د حدّ په ساقطولو کې دی] وَلَوْ طُبِخَ الْخَمْرُ أَوْ غَيْرُهُ بَعْدَ الاِشْتِدَادِ او که چيري خمر وغيره تر اشتداد وروسته پاخه کړل سي حَتَّى يَذْهَبَ ثُلُثَاهُ تر دې چې دوه ثلثه يې ختم سي لَمْ يَحِلَّ نو نه حلاليږي لِأَنَّ الْحُرْمَةَ قَدْ تَقَرَّرَتْ ځکه چې [اوس] حرمت ثابت سوی دی فَلَا تَرْتَفِعُ بِالطَّبْخِ نو [تر ثابتېدلو وروسته] په پخولو سره هغه نه ليري کيږي.

**اللغات**: ﴿تقرّرت﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: قرار نيول، ثابتېدل.

**تشريح**: فرمايي مذکوره نبيذ يعني نبيذ تمر وغيره چې تر معمولي پخولو وروسته نقيع تمر ور واچول سي، نو د هغه چيښل حرام دي؛ ځکه د احتياط تقاضا همدا ده چې هغه دي حرام وي. لېکن که څوک يې وچيښي، نو حدّ به نه پرې جاري کيږي؛ ځکه د حدّ جاري کولو لپاره په واضحه توګه د جرم ښکاره کېدل ضروري دي او د احتياط والا په مسئله کې احتياط همدا دی چې حدّ ساقط کړی سي، نو ځکه په دې صورت کې به حدّ نه جاري کيږي.

ولو طبخ إلخ: فرمايي که شراب بالکل تيار سي يعني جوش، اشتداد او نشه پکښې راسي، برابره ده خمر وي که غير خمر وي، اوس که تر دې وروسته هغوی بيا پاخه کړل سي تر دې چې دوه ثلثه يې ختم سي، نو بيا هم نه حلاليږي؛ ځکه مځکې دا أصول تېر سو چې پخول د حرمت لپاره مانع خو دي، لېکن د حرمت لپاره دافع او ليري کونکي نه دي (يعني تر څو چې حرمت ثابت سوی نه وي، هغه خو منع کوي، لېکن کله چې يو وار حرمت ثابت او راسخ سي، نو بيا په پخولو سره هغه نه زايليږي).

## د كدو وغيره په لوښو كي د نبيذ جوړولو حكم

قَالَ: وَلَا بَأْسَ بِالِانْتِبَاذِ فِي الدُّبَّاءِ وَالْحَنْتَمِ وَالْمُزَفَّتِ فرمايي: او څه پروا نسته په نبيذ جوړولو كي د كدو په لوښي كي او په زرغون رنګه [د شرابو والا] لوښي كي او په قير داره لوښي كي لِقَوْلِهِ ﷺ فِي حَدِيثٍ [1] فِيهِ طُولٌ بَعْدَ ذِكْرِ هٰذِهِ الْأَوْعِيَةِ ځكه نبي ﷺ په يوه طويل [اوږده] حديث كي د دې لوښو تر ذكر كولو وروسته فرمايلي دي «فَاشْرَبُوا فِي كُلِّ ظَرْفٍ چي تاسي په هرلوښي كي څښاك كوئ! فَإِنَّ الظَّرْفَ لَا يُحِلُّ شَيْئًا وَلَا يُحَرِّمُهُ ځكه لوښى يو شى نه حلالوي او نه يو شى حراموي وَلَا تَشْرَبُوا الْمُسْكِرَ» او نشه كونكى [نشه پيدا كونكى] شى مه څيښئ وَقَالَ ذٰلِكَ بَعْدَ مَا أَخْبَرَ عَنِ النَّهْيِ عَنْهُ او نبي ﷺ دا خبره د دې لوښو څخه د منع تر خبر وركولو وروسته كړې وه [يعني مخكي خويې د دې لوښو څخه منع كړې وه او تر هغه وروسته يې دا فرمان او حكم صادر كړى چي فاشربوا إلخ] فَكَانَ نَاسِخًا لَهُ نو دا فرمان د هغه لپاره ناسخ سو.

**اللغات**: ﴿الدُّبَّاء﴾ (بتشديد المضمومة): د كدو لوښى (له كدو څخه جوړ لوښى). پخوا به د غټ كدو مينځ وكښل سو او لوښى به ځني جوړ كړى سو. ﴿الحنتم﴾ د دې لفظ يوه معنىٰ ده: هغه منګى چي په زرغون رنګ سره رنګول سوى وي، په دې كي به عموماً شراب ساتل كېدل. ﴿المزفت﴾ هغه لوښى يا منګى چي په قير (تاركول) يا په داسي بله مضبوطه ماده سره پوښل سوى وي، (قير يا تاركول هغه ګاټه، سربښناكه، توره ماده ده چي زياتره د سړک په جوړولو كي كارځني اخيستل كيږي چي په بله ورينا ډامبر او لوک هم ورته وايي).

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دى چي د جاهليت په زمانه كي به د كدو (دباء) وغيره په لوښو كي شراب جوړېدل، ليكن كله چي د شرابو حرمت نازل سو، نو نبي ﷺ خلك له دې څخه منع كړل، تر دې چي په كومو لوښو كي به شراب جوړېدل، هغه يې هم ممنوع الاستعمال وګرځول، او كله چي خلكو په كراره، كراره شراب او د شرابو لوښي هېر كړل، نو بيا د دغه لوښو د استعمالولو حلت او اباحت بيرته عود وكړى. په عبارت كي د همدې خبري وضاحت سوى دى چي په دباء، حنتم او داسي نورو لوښو كي كه نبيذ جوړ كړل سي، نو څه پروا نه لري؛ جائز دي؛ ځكه نبي ﷺ فرمايلي دي "فَاشْرَبُوا فِي كُلِّ ظَرْفٍ" يعني په هر ډول لوښي كي څښاك كوئ؛ ځكه لوښى خو نه يو شى حلالوي او نه يې حراموي.

او څرنګه چې دغه خبره نبي ﷺ د دباء وغيره له استعمال څخه تر منع کولو وروسته فرمايلې ده. نو ځکه دا فرمان د مخکينې حکم لپاره ناسخ سو او په دې سره په دباء، حنتم او مزفت کې چښاک وغيره بيرته جائز وګرځېده

## د پورتني مذکوره لوښو د طهارت طريقه

وَإِنَّمَا يُنْتَبَذُ فِيهِ بَعْدَ تَطْهِيرِهِ او په دې لوښو کې به د دوی تر پاکولو وروسته نبيذ جوړول کيږي فَإِنْ كَانَ الْوِعَاءُ عَتِيقًا بيا که دا لوښی پخوانی وي يُغْسَلُ ثَلَاثًا نو درې وار دې پرېولل سي فَيَطْهُرُ نو هغه پاکيږي وَإِنْ كَانَ جَدِيدًا او که نوی وي لَا يَطْهُرُ عِنْدَ مُحَمَّدٍ نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز نه پاکيږي لِتَشَرُّبِ الْخَمْرِ فِيهِ ځکه په هغه کې شراب جذب سوي وي بِخِلَافِ الْعَتِيقِ په خلاف د پخواني لوښي [چې په هغه کې شراب نه جذب کيږي] وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يُغْسَلُ ثَلَاثًا او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا لوښی دې درې واره پرېولل سي وَيُجَفَّفُ فِي كُلِّ مَرَّةٍ او هر وار دې وچ کړی سي وَهِيَ مَسْأَلَةُ مَا لَا يَنْعَصِرُ بِالْعَصْرِ او دا د هغه شي مسئله ده کوم چې په نچوړلو سره نه نچوړل کيږي [لکه مخکې چې هم ذکر سوه چې داسې شی به درې واره وچول کيږي] وَقِيلَ: عِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يُمْلَأُ مَاءً مَرَّةً بَعْدَ أُخْرَى او ويل سوي دي: چې د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا لوښی دې څو واره په اوبو سره ډک کړل سي حَتَّى إِذَا خَرَجَ الْمَاءُ صَافِيًا غَيْرَ مُتَغَيِّرٍ تر دې چې کله صفا اوبه راووځي کوم چې متغيّرې نه وي يُحْكَمُ بِطَهَارَتِهِ نو بيا به د لوښي د پاکوالي فيصله کيږي.

**اللغات:** ﴿الانتباذ﴾ د افتعال د باب مصدر دی: نبيذ جوړول. ﴿العتيق﴾ د دې لفظ يو معنیٰ ده: پخوانی (قديم). ﴿عصر﴾ د ضرب د باب مصدر دی: نچوړل (له يو شي څخه د کښېکارلو يا نستېږلو په ذريعه اوبه را ايستل).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې دُباء، حنتم او مزفت کوم چې له مخکې څخه ناپاک او په شرابو ککړ وي. دغه لوښي دي تر استعمالولو او نبيذ پکښې جوړولو مخکې درې واره پرېولل سي. او دا درې واره پرېولل د هغوی لپاره طهارت او پاکي ده. يعني په درې واره پرېوللو سره دا لوښي پاکيږي. او که چيرې دا له مخکې څخه ککړ لوښي نوي (جديد) وي. نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز د هغه د پاکولو هيڅ

طريقه نسته، ځکه په هغه کي شراب او د هغه اجزاء جذب سوي وي. لهذا د دې لوښي د پاکولو هيڅ لاره نسته. لېکن امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي د نوي لوښي د پاکولو دوې طريقې دي: ① يوه دا چي هغه درې واره پرېولل سي او هر وار وچ کړل سي. لکه په نه نستېږل کېدونکي شي کي چي همدغه حکم دی چي هغه به هر وار وچول کيږي (مثلاً يو داسي غټ فرش مردار سو چي نستېږل يې ممکن نه دي نو هغه به درې واره پرېولل کيږي او په هر وار کي به وچول کيږي). ② دويمه طريقه يې دا ده چي دا لوښي دې په اوبو ډک کړي او بيا دې اوبه ځني چپه کړي او داسي دې څو واره وکړي يعني تر دې چي يقين يې سي چي اوس نو په هغه کي د بل شي اثر پاته نه دی. بيا هغه پاکيږي او استعمالول يې روا کيږي.

## شراب په سرکه بدلېدل يا بدلول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا تَخَلَّلَتِ الْخَمْرُ فرمايي: او کله چي خمر سرکه وګرځي حَلَّتْ نو هغه حلال سوه سَوَاءٌ صَارَتْ خَلًّا بِنَفْسِهَا برابره ده خپله [بذاتِ خود] هغه سرکه وګرځي أَوْ بِشَيْءٍ يُطْرَحُ فِيهَا يا په داسي شي سره [سرکه وګرځي] کوم چي پکښي واچول سي [يعني يا د دارُو وغيره په ذريعه سرکه ځني جوړه کړل سي] وَلَا يُكْرَهُ تَخْلِيلُهَا او د خمرو سرکه جوړول مکروه نه دي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يُكْرَهُ التَّخْلِيلُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي سرکه جوړول مکروه دي وَلَا يَحِلُّ الْخَلُّ الْحَاصِلُ بِهِ إِنْ كَانَ التَّخْلِيلُ بِإِلْقَاءِ شَيْءٍ فِيهِ او له خمرو څخه تر لاسه کړل سوې سرکه حلاله نه ده که چيري په خمرو کي ديو شي په اچولو سره له هغوی څخه سرکه جوړه کړل سوې وي قَوْلًا وَاحِدًا په يوه قول سره [يعني په دې باره کي له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه صرف دا يو قول نقل سوی دی چي داسي سرکه بالکل حلاله نه ده] وَإِنْ كَانَ بِغَيْرِ إِلْقَاءِ شَيْءٍ فِيهِ او که په خمرو کي د يو شي له اچولو څخه بغير له هغوی څخه سرکه جوړه کړل سوې وي فَلَهُ فِي الْخَلِّ الْحَاصِلِ بِهِ قَوْلَانِ نو بيا د دې تر لاسه کړل سوې سرکې په هکله د امام شافعي رَحِمَهُ الله لپاره دوه قوله [نقل سوي] دي لَهُ: أَنَّ فِي التَّخْلِيلِ اقْتِرَابًا مِنَ الْخَمْرِ عَلَى وَجْهِ التَّمَوُّلِ د امام شافعي رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي په سرکه جوړولو کي خمر ته نژدېکت راځي د تموّل [مال تر لاسه کولو] په توګه وَالْأَمْرُ بِالِاجْتِنَابِ يُنَافِيهِ حال دا چي له خمرو څخه د ځان ساتلو [کوم حکم چي موږ ته سوی دی. هغه] د نژدېکت منافي دی وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ: «نِعْمَ[1] الْإِدَامُ الْخَلُّ» او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دی چي: سرکه ډېر غوره سالن دی وَلِأَنَّ بِالتَّخْلِيلِ يَزُولُ

---

[1] تخريج: أخرجه ابو داؤد، باب في الخل، ص:٥٤٥، حديث رقم: ٣٨٢٠. و مسلم في كتاب الأشربة، باب فضيلة الخل، ص:٩١٥، حديث رقم: ٢٠٥١، ٥٣٥٠.

الْوَصْفُ الْمُفْسِدُ او ځکه چي په سرکه جوړولو سره فاسدونکی وصف زائليږي وَتَثْبُتُ صِفَةُ الصَّلَاحِ او د سمون وصف ثابتيږي مِنْ حَيْثُ تَسْكِينِ الصَّفْرَاءِ وَكَسْرِ الشَّهْوَةِ وَالتَّغَذِّي بِهِ لکه صفراء ته تسکين ورکول، شهوت ماتول او د دې سرکې په ذريعه غذاء حاصلول وَالْإِصْلَاحُ مُبَاحٌ او داسې اصلاح [سمونه] مباح ده وَكَذَا الصَّالِحُ لِلْمَصَالِحِ او همدارنګه [حلال دی] هغه شی کوم چې د مصلحتونو قابل وي [يعني چې په انساني مصلحت او ښېګڼه کې په کار راځي. مراد يې دغه سرکه ده] اعْتِبَارًا بِالْمُتَخَلِّلِ بِنَفْسِهِ وَبِالدِّبَاغِ په قياس کولو سره پر هغه خمرو کوم چې خپله سرکه ګرځېدلي وي او پر دباغت وَالِاقْتِرَابُ لِإِعْدَامِ الْفَسَادِ او نژدېکت خو د فساد ختمولو لپاره دی فَأَشْبَهَ الْإِرَاقَةَ نو دا د چپه کولو [بهولو] سره مشابه سو وَالتَّخْلِيلُ أَوْلَى او [له شرابو څخه] سرکه جوړول اولیٰ دي لِمَا فِيهِ مِنْ إِحْرَازِ مَالٍ يَصِيرُ حَلَالًا فِي الثَّانِي ځکه په دې کي د داسې مال خوندي کول سته کوم چي په آينده زمانه کي حلال ګرځي فَيَخْتَارُهُ مَنِ ابْتُلِيَ بِهِ نو ځکه [له خمرو څخه] سرکه جوړول به اختياروي هغه کس چي په دې سره مبتلا سي [نه د هغوی چپه کول].

**اللغات**: ﴿تخلّلت﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: سرکه ګرځېدل، سرکه جوړېدل. ﴿يطرح﴾ د فتح د باب مضارع مجهوله ده: اچول. غورځول. ﴿تموّل﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: مال حاصلول او ترلاسه کول. مال ذخيره کول. مال والا کېدل. ﴿إدَام﴾ سالن. کتغ. ترکاري. لمده بل. هر داسي شی چي ډوډۍ ور سره خوړل کيږي. ﴿صَالِح﴾ د کَرُم د باب فاعل دی: صلاحيت لرونکی، قابل، وړ. ﴿مَصَالِح﴾ جمع د مَصْلَحَةٌ ده: مصلحتونه يعني ښېګڼې. د ښېګڼې کارونه. ﴿التغذّی﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: يو شی د ځان لپاره غذا ګرځول. غذا حاصلول. ﴿إحراز﴾ د افعال د باب مصدر دی: خوندي کول (ساتل). جمع کول او ذخيره کول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دې که خمر (شراب) خپله سرکه وګرځي يا بل څوک سرکه ځني جوړه کړي، نو اوس هغه حلاليږي، او له خمرو څخه سرکه جوړول مکروه هم نه دي.

لېکن د امام شافعي رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي له خمرو څخه سرکه جوړول مطلقاً مکروه دي. او که سرکه ځني جوړه کړل سي. نو په حلال والي کي يې څه تفصيل دی: ① که ديو شي او دَارُو په اچولو سره دا سرکه جوړه کړل سوې وي. نو په دې باره کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله صرف همدا يو قول نقل سوی دی چي هغه حلاله نه ده. ② او که د شي له اچولو څخه بغير سرکه جوړه کړل سوې وي. نو په دې باره کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله دوه قوله دي: يو دا چي حلاله ده. او بل دا چي حلاله نه ده.

له أن في التخليل إلخ: دا د امام شافعي رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دی چي په قرآن کريم کي له خمرو څخه د ځان ساتلو او بچ کېدلو حکم سوی دی. او دا ښکاره خبره ده چي د خمرو په سرکه جوړولو کي هغوی ته نژدېکت راځي هغه هم د تمول په توګه چي په دې ډول هغه کس له دې شرابو څخه مال جوړوي او مالک يې جوړېږي (ځکه چي خمر د مسلمان په حق کي مال نه دي او نه يې مالک کېږي). او په نژدېکت کي د الهي حکم مخالفت راځي. نو ځکه د خمرو سرکه جوړول حلال نه دي.

ولنا إلخ: زموږ د دليل حاصل دا دی چي په حديث کي سرکې ته ښه سالن (نعم الإدام) ويل سوي دي. بيا پکار دي چي سرکه جوړول دي حلال وي: ځکه د خمرو په سرکه جوړولو سره اوس مفسد وصف زائلېږي او د روغتيا او سمون وصف پکښي پيدا کيږي يعني په دې سرکه سره صفراء تيتېږي او شهوت ماتيږي او انسان ته غذائيت ورکوي. او داسي اصلاح صحيح ده. همدارنګه دا سرکه د دې قابله ده چي په انساني مصلحتونو او ښېګنو کي په کار راسي. نو څرنګه چي هغه خمر حلال دي کوم چي خپله سرکه وګرځي، همداسي دغه خمر (کوم چي سرکه جوړ کړل سي) هم حلال کېدل پکار دي. او لکه څرنګه چي د مردار سوي څاروي څرمن په دباغت ورکولو سره پاکيږي او هغې ته دباغت ورکول بلا کراهته جائز دي. نو همداسي دلته هم کېدل پکار دي. او پاته سو حرام شي ته نژدې کېدل که د هغه د فساد لېري کولو لپاره وي، نو داسي نژدېکت جائز دی. لکه څوک چي وغواړي شراب چپه او توی کړي. نو هغه ته نژدېکت بالاتفاق جائز دی.

والتخليل إلخ: د دې حاصل دا دی چي که يو چا ته په ميراث يا هبة وغيره کي شراب حاصل سي. نو له دې شرابو څخه سرکه جوړول د هغوی له چپه کولو او ضايع کولو څخه اولیٰ او افضل دي: ځکه که څه هم دا شراب دي او حرام دي. لېکن کله چي هغه دا خوندي کړي او په آينده کي سرکه ځني جوړه کړي. نو بيا د هغوی حرمت په حلت بدليږي او حلال ګرځي. چي په دې توګه به د هغه مال هم بچ سي او په کار به هم ورسي.

## له سرکې جوړېدلو څخه وروسته د لوښي د طهارت مسئله

وَإِذَا صَارَ الْخَمْرُ خَلًّا او کله چي خمر سرکه وګرځي يَطْهُرُ مَا يُوَازِيهَا مِنَ الْإِنَاءِ نو د لوښي هغه حصه پاکيږي کوم چي د خمرو سره مقابل [الکېدلې] وي فَأَمَّا أَعْلَاهُ وَهُوَ الَّذِي نَقَصَ مِنْهُ الْخَمْرُ او پاته سوه پورتنۍ حصه يعني هغه حصه چي خمر ځني لاندي وي قِيلَ: يَطْهُرُ تَبَعًا نو ويل سوي دي: چي هغه هم تبعًا پاکيږي وَقِيلَ: لَا يَطْهُرُ او ويل سوي دي: چي نه پاکيږي لِأَنَّهُ خَمْرٌ يَابِسٌ ځکه هغه وچ خمر دي

إِلَّا إِذَا غُسِلَ بِالْخَلِّ لېکن کله چې لوښی په سرکه سره پرېولل سي فَيَتَخَلَّلُ مِنْ سَاعَتِهِ او دا په هغه ګړۍ [سمدستي] سرکه وګرځي فَيَطْهُرُ نو پاکيږي وَكَذَا إِذَا صُبَّ فِيهِ الْخَمْرُ ثُمَّ مُلِئَ خَلًّا او همدارنګه کله چې په لوښي کې خمر واچول سي بيا لوښی له سرکې څخه ډک کړل سي يَطْهُرُ فِي الْحَالِ نو لوښی في الحاله [سمدستي] پاکيږي عَلَى مَا قَالُوا لکه څرنګه چې فقهاؤ ويلي دي.

**اللغات**: ﴿يُوازي﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: مقابل کېدل، مخامخ کېدل. ﴿من ساعته﴾ په هغه ګړۍ، سمدستي. ﴿صُبَّ﴾ د ضرب د باب ماضي مجهوله ده: اچول، بيول (بهول).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې په يو لوښي کې خمر پراته دي او هغوی سرکه وګرځي. نو تر کومه ځايه چې دا لوښی په دغه سرکه سره ډک وي، تر هغه ځايه لوښی پاکيږي. او پاته سوه پورتنی حصه چې خمر څنې لاندې وي يعنې له دغه سرکې څخه پورته والا حصه. د هغه په باره کې دوه قوله دي: ① د علامه صدر الشهيد وغيره قول دا دی چې د لاندينۍ حصې په متابعت کې د لوښي هغه پورتنۍ حصه هم پاکيږي ② دويم قول دا دی چې هغه حصه نه پاکيږي؛ ځکه چې په دې لوښي کې مخکې هم شراب اچول سوي وي او د شرابو اجزاء د هغه سره لګېدلي او پيوست سوي وي. خو که لوښی په سرکه سره پرېولل سي. نو هغه پاکيږي. او که له مخکې څخه په لوښی کې شراب وي، لېکن هغه چپه کړل سي او دا لوښی په سرکې سره ډک کړل سي. نو هم سمدستي لوښی پاکيږي؛ ځکه کله چې تر شرابو وروسته په لوښي کې سرکه واچول سوه. نو اوس د سرکې اجزاء د هغه سره پيوست سوه او سرکه حلاله ده. لهذا دا لوښی به هم پاک وي.

## کوم شراب چې په تـل (لاندينی حصه) کې پاته سي د هغه د استعمالولو حکم

قَالَ: وَيُكْرَهُ شُرْبُ دُرْدِيِّ الْخَمْرِ فرمايي: او مکروه دي د خمرو تَل څښل وَالِامْتِشَاطُ بِهِ او د هغه په ذريعه ورېښتان ږمنځول [او داسې ځکه کيږي چې په دې سره ورېښتان ښايسته کيږي. نو دا هم مکروه دي] لِأَنَّ فِيهِ أَجْزَاءَ الْخَمْرِ ځکه چې په تَل کې د خمرو اجزاء وي وَالِانْتِفَاعُ بِالْمُحَرَّمِ حَرَامٌ او په حرام شي سره نفع اخيستل حرام دي وَلِهَذَا لَا يَجُوزُ أَنْ يُدَاوِيَ بِهِ جُرْحًا أَوْ دَبَرَةَ دَابَّةٍ په همدې وجه دا جائز نه دي چې په خمرو سره د يو ټپ [پرهار] يا د څاروي د شا د زخم علاج وکړي وَلَا أَنْ يَسْقِيَ ذِمِّيًّا او نه دا [جائز دي] چې په يو ذمي يې وڅښي وَلَا أَنْ يَسْقِيَ صَبِيًّا لِلتَّدَاوِي او نه دا [جائز دي] چې په يو کوچني يې وڅښي د درملنې [علاج] لپاره وَالْوَبَالُ عَلَى مَنْ سَقَاهُ [او که داسې وسي] نو وبال پر هغه کس دی. کوم چې يې په وڅښي وَكَذَا لَا يَسْقِيهَا الدَّوَابَّ او همدارنګه په څارويو به هم شراب نه څښي [...څارويان به نه په اوبوي] وَقِيلَ: لَا تُحْمَلُ الْخَمْرُ إِلَيْهَا او ويل سوي دي: چې شراب به څارويو ته نه ور وړل کيږي أَمَّا إِذَا قِيدَتْ إِلَى الْخَمْرِ

لېکن که هغوی شرابو ته راکش کړل سي [راوستل سي] فَلَا بَأْسَ بِهٖ نو په دې کي څه پروا نسته كَمَا فِي الْكَلْبِ وَالْمَيْتَةِ لکه په سپي او مرداره [مرږګه] کي [چي دغه حکم دی] وَلَوْ أُلْقِيَ الدُّرْدِيُّ فِي الْخَلِّ او که د خمرو تَل په سرکه کي واچول سي لَا بَأْسَ بِهٖ نو په دې کي څه پروا نسته لِأَنَّهٗ يَصِيْرُ خَلًّا ځکه چي هغه هم سرکه ګرځي لٰكِنْ يُبَاحُ حَمْلُ الْخَلِّ إِلَيْهِ لېکن روا دا دي چي سرکه د تَل وطرف ته يووړل سي لَا عَكْسُهٗ نه د دې برعکس [يعني چي د خمرو تَل سرکې ته راوړل سي] لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی.

**اللغات**: ﴿دُرْدِيٌ﴾ تَلْ. يعني هغه څه چي د شرابو وغيره په بېخ کي پاته سي. څرنګه چي د تېلو وغيره تَل وي. همداسي د شرابو هم تَل وي. ﴿دَبَـرَةٌ﴾ د څاروي د شا زخم کوم چي د کجاوې يا درانه شي وغيره په اېښولو سره پکښي جوړ سوي وي. ﴿امتشاط﴾ د افتعال د باب مصدر دی: رِمنځول (ګمنځول). ﴿يـداوي﴾ د مفاعلې د باب مضارع ده: درملنه کول. عـلاج کول. ﴿قِيْـدَتْ﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي مجهولي صيغه ده. مصدر يې قَوْد راځي: څاروی راکشول (بېول).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي د شرابو تَـل چيښل. په بل چا چيښل. يا په دوا کي کارول دا ټوله ناجائز دي. په همدې وجه فقهاؤ ويلي دي چي د انسان يا حيوان پر زخم د علاج لپاره شراب مږل. يا په ذميانو چيښل. يا د علاج لپاره کوچني ته ورکول ټوله ناجائز کارونه دي.

بلکي تر دې حده ويل سوي دي چي و څارويو ته شراب ته راوړل هم جائز نه دي. ها! که څاروي د شرابو طرف ته کش کړل سي او هلته پرېښوول سي، نو په دې کي څه حرج نسته. لکه مرږګه يا مرداره ږوبنه سپي ته د وړلو لپاره را اخيستل صحيح نه دي. خو که سپی د هغه وطرف ته راوستل سي او پرېښوول سي. نو صحيح دي. همداسي دلته هم دي.

ولو القی إلخ: فرمايي که څوک د شرابو تَـل سرکې ته واچوي. نو په دې کي څه حرج نسته؛ ځکه دا تَل چي سرکې ته ولوېږي. نو هغه هم سرکه ګرځي. خو داسي به نه کيږي چي تَل سرکې ته يووړل سي بلکي سرکه دي تَل ته يووړله سي. لکه اوس چي د سپي او مرږګي مسئله تېره سوه؛ دا د دې لپاره چي حتی الوسع شرابو ته نژديکت (اقتراب) رانه سي او اجتناب عن الخمر باقي پاته سي.

## د شرابو د تل په چيښونکي باندي د حدّ جاري کولو حکم

قَالَ: وَلَا يُحَدُّ شَارِبُهٗ فرمايي: او د هغه پر چيښونکي به حدّ نه جاري کيږي أَيْ شَارِبُ الدُّرْدِيِّ يعني د خمرو د تَلْ پر چيښونکي إِنْ لَمْ يَسْكَرْ که چيري [د هغه په چيښلو سره] نشه نه سي وَقَالَ

الشَّافِعِيُّ: يُحَدُّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي حدّ به پرې جاري کيږي لِأَنَّهُ شَرِبَ جُزْءًا مِنَ الْخَمْرِ ځکه چي هغه د خمرو يو جزء چيښلی دی وَلَنَا: أَنَّ قَلِيْلَهُ لَا يَدْعُوْ إِلَى كَثِيْرِهِ او زموږ دليل دا دی: چي د تَل قليل د هغه د کثير وطرف ته نه داعي کيږي لِمَا فِي الطِّبَاعِ مِنَ النَّبْوَةِ عَنْهُ ځکه په طبيعتونو کي له هغه څخه نفرت دی فَكَانَ نَاقِصًا لهذا هغه ناقص خمر سوه فَأَشْبَهَ غَيْرَ الْخَمْرِ مِنَ الْأَشْرِبَةِ نو له خمرو څخه بغير د نورو شرابونو سره مشابه سوه وَلَا حَدَّ فِيْهَا إِلَّا بِالسُّكْرِ او په نورو شرابونو کي حدّ نسته مګر د نشې په شرط سره وَلِأَنَّ الْغَالِبَ عَلَيْهِ الثِّقَلُ او ځکه چي پر تَل دروندوالی غالب وي [يعني تَل څه دروند وي په همدې وجه لاندي ځي] فَصَارَ كَمَا إِذَا غَلَبَ عَلَيْهِ الْمَاءُ بِالِامْتِزَاجِ نو داسي سو لکه د ګډېدلو په وجه چي پر خمرو اوبه غالبه سي.

**اللغات**: ﴿النَّبْوَة﴾ ليري والی، نفرت، ﴿ثِقَل﴾ دروند والی، وزن.

**تشريح**: **صورت د مسئلي**: دا دی که څوک د خمرو تَل وچيښي، نو زموږ په نيز تر څو چي هغه په دې سره نشه نه سي، تر هغه وخته به حدّ نه پرې جاري کيږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي چي حدّ به پرې جاري کيږي؛ د هغه دليل دا دی چي د خمرو په تَل کي د خمرو اجزاء موجود دي، او خمر خپل د ټولو اجزاؤ سره حرام دي؛ نو ځکه د تَل پر چيښونکي به حدّ جاري کيږي.

زموږ دليل د دی چي تَل که څه هم د خمرو له اجزاؤ څخه دی لېکن د هغه خمريّت ناقص دی او د تَل قليل د کثير وطرف ته نه داعي کيږي؛ ځکه له هغه څخه طبيعتونه نفرت کوي. لهذا هغه ناقص (د کمي درجې) خمر سو. نو هغه داسي سو لکه له خمرو څخه بغير نور شرابونه. او هلته دا حکم دی چي تر څو انسان نشه نه کړي، حدّ نه واجبيږي، نو همداسي د خمرو د تَل به هم دغه حکم وي.

او بل دليل دا چي تَل د خمرو په بېخ کي شتون لري چي په هغه کي خيرن او ګنده خمر غالب وي، نو دا د هغه خمرو په څېر دی چي اوبه پرې غالبه وي. او پر کوم خمرو چي اوبه غالبه وي. د هغه پر چيښونکي له سکر (نشې) څخه بغير حدّ نه جاري کيږي، لهذا د تَل پر چيښونکي به هم له سکر څخه بغير حدّ نه جاري کيږي.

## شراب د علاج په توګه استعمالول (حکم او تفصيل)

وَيُكْرَهُ الِاحْتِقَانُ بِالْخَمْرِ او مکروه دي په خمرو سره حقنه کول وَإِقْطَارُهَا فِي الْإِحْلِيلِ او خمر د ذکر په سُوري کي څڅول لِأَنَّهُ انْتِفَاعٌ بِالْمُحَرَّمِ ځکه چي دا په حرام شي سره نفع اخيستل دي وَلَا يَجِبُ الْحَدُّ او حدّ نه واجبيږي لِعَدَمِ الشُّرْبِ ځکه چيښل معدوم دي وَهُوَ السَّبَبُ او همدا چيښل [د حدّ واجبېدلو] سبب دي وَلَوْ جُعِلَ الْخَمْرُ فِي مَرَقَةٍ او که خمر په ښوروا ګډ کړل سي لَا تُؤْكَلُ نو هغه ښوروا به نه خوړول کيږي لِتَنَجُّسِهَا بِهَا ځکه د خمرو په وجه ښوروا نجسه [ناپاکه] سوه وَلَا حَدَّ مَا لَمْ يَسْكَرْ مِنْهُ او حدّ نسته تر څو چي ... ځي په چيښلو سره نشه نه سي لِأَنَّهُ أَصَابَهُ الطَّبْخُ ځکه چي هغه ته پخېدل رسېدلي دي وَيُكْرَهُ أَكْلُ خُبْزٍ عُجِنَ عَجِينُهُ بِالْخَمْرِ او مکروه دي خوړل د هغه ډوډۍ چي اوړه يې په خمرو سره اخښل سوي وي لِقِيَامِ أَجْزَاءِ الْخَمْرِ فِيهِ ځکه په هغې کي د خمرو اجزاء موجود دي.

**اللغات:** ﴿احتـقان﴾ د افتعال د باب مصدر دی: حقنه ورکول. حقنه لګول (د شا د لاري [يعني د مقعدي لخوا] د مريض معدې ته دواء رسول)، وتطلق اليوم على إدخال الدواء إلى داخل الجسم بواسطة الضغط سواء كان عن طريق الدبر أم عن طريـــق الجلـــد. ﴿إقطار﴾ د افعال د باب مصدر دی: قطرې څڅول.

﴿المَرَقَة﴾ او مَرَق: ښوروا. (مصباح اللغات)

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي له شرابو څخه هر ډول نفع اخيستل حرام دي، لهذا هغه په حقنه کي استعمالول او د ذکر په سُوري کي څڅول دا ټوله مکروه دي، ليکن که څوک داسي وکړي، نو حدّ نه پرې واجبيږي؛ ځکه د حدّ سبب خو چيښل دي، او دلته چيښل موجود نه سوه.

او که شراب په ښوروا کي اچول سوي وي، نو خوړل يې جائز نه دي؛ ځکه اوس هغه ښوروا ناپاکه سوه، ليکن بيا هم که څوک دا سي ښوروا استعمال کړي، نو تر چي د هغه په وجه نشه نه سي، حدّ به نه پرې جاري کيږي؛ ځکه دلته شراب د ښوروا سره پخ سوي دي، او په پخ سوي (مطبوخ) شرابو کي د حدّ واجبېدلو لپاره سُکر (نشه) شرط ده. نو ځکه بغير له سُکر څخه حدّ نه واجبيږي.

ويکره إلخ: يعني داسي ډوډۍ خوړل مکروه دي چي اوړه يې په خمرو سره اخښل سوي وي: ځکه په دغه ډوډۍ د خمرو اجزاء ګډ دي خو هغه مغلوب دي (د اوړو اجزاء پر غالب دي). لهذا د هغې خوړول که څه هم حرام خو نه دي ليکن مکروه خامخا دي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

❀❀❀

# فَصْلٌ فِيْ طَبْخِ الْعَصِيْرِ

## دا فصل د رَسْ پخولو په بيان کې دی

**تشريح:** مخکې دا خبره ذکر سوه چې کله عصيرِ عنب (دانګورو رَسْ) پخول کيږي، نو تر څو چې د هغه دوه ثلثه ختم نه سي، تر هغه وخته نه حلاليږي، صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په دغه فصل کې د پخولو او د دوو ثلثو د ختمولو (وچولو) طريقه بيان کړې ده. (بنايه ج: ۱۱، ص: ۴۶۲)

### تر دوو ثلثو پورې د انګورو د رَسْ ختمولو قاعده

وَالْأَصْلُ أَنَّ مَا ذَهَبَ بِغَلَيَانِهِ بِالنَّارِ وَقَذْفِهِ بِالزَّبَدِ او اصل دا دی چې کوم مقدار په اُور سره د جوش خوړلو او د ځګ راغورځولو په وجه ختم سي يُجْعَلُ كَأَنْ لَمْ يَكُنْ نو هغه مقدار به داسې ګڼل کيږي لکه چې نه وو [يعني معلوم به شمېرل کيږي] وَيُعْتَبَرُ ذِهَابُ ثُلُثَيْ مَا بَقِيَ او د پاتې سوي مقدار د دوو ثلثو د ختمېدلو اعتبار به کيږي لِيَحِلَّ الثُّلُثُ الْبَاقِي دې لپاره چې پاتې ثلث حلال سي بَيَانُهُ عَشَرَةُ دَوَارِقَ مِنْ عَصِيْرٍ طُبِخَ دې بيان [وضاحت] دا دی چې لس پيمانې د انګورو رَسْ پوخ کړل سو فَذَهَبَ دَوْرَقٌ بِالزَّبَدِ بيا په ځګ راغورځولو سره يوه پيمانه ختم سوه [او نهه پيمانې پاته سوې] يُطْبَخُ الْبَاقِيْ حَتَّى يَذْهَبَ سِتَّةُ دَوَارِقَ نو پاته رَس [نهه پيمانې] به دومره پخول کيږي چې شپږ پيمانې ختم سي وَيَبْقَى الثُّلُثُ او درې پيمانې پاته سي فَيَحِلُّ نو هغه [درې پيمانې] حلال دي لِأَنَّ الَّذِيْ يَذْهَبُ زَبَدًا هُوَ الْعَصِيْرُ أَوْ مَا يُمَازِجُهُ ځکه کوم ځګ چې ختم سو هغه رَسْ دی يا د رَسْ سره ګډ سوی شی دی [يعني تَلْ: خيره وغيره] وَأَيًّا مَا كَانَ جُعِلَ كَأَنَّ الْعَصِيْرَ تِسْعَةُ دَوَارِقَ [خير!] هغه که هر شی وي داسې به ګڼل کيږي ګواکې رَسْ نهه پيمانې دی فَيَكُوْنُ ثُلُثُهَا ثَلَاثَةً نو د هغه ثلث به درې پيمانې وي.

**اللغات:** ﴿غَلَيَان﴾ مصدر دی: جوش خوړل، جوشېدل، خوټکېدل. ﴿ثُلُث﴾ او ثُلْث: دريمه (دريمه حصه). ﴿دَوَارِق﴾ جمع د دَوْرَقٌ ده: د شرابو او شربتو پيمانه، دا پخوا يو ډول د نبيښې پيمانه

(لوښي) وو چې خوله یې تنګه او غاړه به یې اوږده وه، او په دې سره به شراب، شربت وغیره پېمانه کېدل چې مقدار به یې درې یا څلور رطل بغدادي وو.

**تشریح:** په دې فصل کې مصنف رَحِمَهُ الله څو قاعدې بیان کړې دي، دا اوله قاعده ده، حاصل یې دا دی چې د انګورو د رَسْ کوم مقدار چې په جوشېدلو او ځګ غورځولو سره ختم سي، نو هغه به کالعدم شمېرل کېږي (یعني دا مقدار به له اصل مقدار څخه معدوم شمېرل کېږي او په حساب کې به نه راوړل کېږي)، نو له دې مقدار څخه بغیر نور چې څومره مقدار پاته وي، د هغه د دوو ثلثو ختمېدل او وچېدل ضروري دي، مثلاً لس (۱۰) لېټره خمر دي چې په جوش خوړلو او ځګ غورځولو سره یې یو لېټر ختم سو، نو اوس د پاته نهو (۹) لېټرو دوه ثلثه یعني شپږ لېټره په پخولو سره ختمول او وچول ضروري دي، تر دې وروسته چې کوم درې لېټره باقي پاته سي، هغه حلال دي.

**بیانه إلخ:** د دې بیان خو پورته ذکر سو او دا ښکاره هم دي، او د "دَوارق" تعریف هم په لغاتو کې وسو.

## دویمه قاعده

وَأَصْلٌ آخَرُ أَنَّ الْعَصِيرَ إِذَا صُبَّ عَلَيْهِ مَاءٌ قَبْلَ الطَّبْخِ او بل اصل دا دی چې د انګورو په رَسْ کې چې کله تر پخولو مخکې اوبه واچول سي ثُمَّ طُبِخَ بِمَائِهِ بیا هغه داوبو سره پوخ کړل سي إِنْ كَانَ الْمَاءُ أَسْرَعَ ذِهَابًا لِرِقَّتِهِ وَلَطَافَتِهِ نو که اوبه د خپل نرموالي او باریکوالي په وجه اول [مخکې] ختمېدونکي وي يُطْبَخُ الْبَاقِي بَعْدَ مَا ذَهَبَ مِقْدَارُ مَا صُبَّ فِيهِ مِنَ الْمَاءِ نو پاته مقدار به پخول کېږي د هغه اوبو تر ختمېدلو وروسته کوم چې په رَسْ کې اچول سوي وي حَتَّى يَذْهَبَ ثُلُثَاهُ [دومره به پخول کېږي] تر دې چې د رَسْ دوه ثلثه ختم سي لِأَنَّ الذَّاهِبَ الْأَوَّلَ هُوَ الْمَاءُ ځکه کوم مقدار چې اول ختم سوی دی هغه اوبه دي وَالثَّانِيَ الْعَصِيرُ او دویم رَسْ دی فَلَا بُدَّ مِنْ ذَهَابِ ثُلُثَيِ الْعَصِيرِ نو ځکه د رَسْ د دوو ثلثو ختمېدل ضروري دي.

**اللغات:** ﴿العصير﴾ د انګورو نڅوړل سوي اوبه، رَسْ. ﴿أسرع﴾ د اسم تفضیل صیغه ده: زیات تېز، تر ټولو مخکې. ﴿لطافة﴾ باریک والی، نری والی.

**تشریح:** دا دویمه قاعده ده چې که تر پخولو مخکې د انګورو رَسْ ته اوبه واچول سي، بیا هغه د اوبو سره پوخ کړل سي، نو د دې صورت به څه وي؟، فرمایي دې ته به کتل کېږي چې اول اوبه وچېږي (ختمېږي) او که اوبه او رَسْ دواړه یو ځای سره وچېږي، که چېرې اوبه مخکې وچېږي، نو

دومره به پخول کيږي چې اول اوبه ختمې سي او بيا تر دې وروسته د رَسْ دوه ثلثه ختم سي، دا حکم هغه وخت دی چې اول اوبه وچيږي او که دواړه يو ځای وچيږي، نو د دې حکم به په را روان عبارت کې ذکر سي.

## د پورتني قاعدې نور وضاحت

وَإِنْ كَانَا يَذْهَبَانِ مَعًا او که اوبه او رَسْ دواړه يو ځای ختميږي [وچيږي] تُغْلَى الْجُمْلَةُ حَتَّى يَذْهَبَ ثُلُثَاهُ نو کُل [دواړو] ته به جوش ورکول کيږي تر دې چې د کُل دوه ثلثه ختم سي وَيَبْقَى ثُلُثُهُ او يو ثلث يې پاته سي فَيَحِلُّ نو بيا هغه حلاليږي لِأَنَّهُ ذَهَبَ الثُّلُثَانِ مَاءً وَعَصِيرًا ځکه چې د اوبو او رَسْ دوه ثلثه ختم سوه وَالثُّلُثُ الْبَاقِي مَاءٌ وَعَصِيرٌ او پاته ثلث [هم] اوبه او رَسْ دي فَصَارَ كَمَا إِذَا صُبَّ الْمَاءُ فِيهِ بَعْدَ مَا ذَهَبَ مِنَ الْعَصِيرِ بِالْغَلْيِ ثُلُثَاهُ نو داسي سو لکه د جوش خوړلو په وجه د رَسْ د دوو ثلثو تر ختمېدلو وروسته چې په هغه کې اوبه واچول سي بَيَانُهُ عَشَرَةُ دَوَارِقَ مِنْ عَصِيرٍ وَعِشْرُونَ دَوْرَقًا مِنْ مَاءٍ د دې بيان داسي دی چې لس پېمانې رَسْ دی او شل پېمانې اوبه دي فَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ يُطْبَخُ حَتَّى يَبْقَى تُسْعُ الْجُمْلَةِ نو په اول صورت کې به دومره پخول کيږي چې د کُل [رَس او اوبو دواړو] نهمه حصه پاته سي لِأَنَّهُ ثُلُثُ الْعَصِيرِ ځکه چې دا د رَسْ ثلث دی وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي حَتَّى يَذْهَبَ ثُلُثَا الْجُمْلَةِ او په دويم صورت کې به دومره پخول کيږي چې د کُل دوه ثلثه ختم سي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ ذکر کړی.

**تشريح:** فرمايي که چيرې اوبه او رَسْ دواړه يو ځای وچيږي او ختميږي، نو په دې صورت کې چې د کُل (يعني د اوبو او رَسْ) دوه ثلثه ختم سي، نو حلال دي: ځکه دا کوم دوه ثلثه چې ختم سوه، هغه د اوبو او رَسْ دواړو څخه ختم سوه، او کوم ثلث چې پاته دی، هغه هم د اوبو او رَسْ دواړو ثلث دی. نو ځکه دا حلال دی.

او د دې مثال بالکل داسي دی لکه د انګورو رَسْ چې پوخ کړل سي او د هغه دوه ثلثه ختم کړل سي، بيا په پاته ثلث کې اوبه واچول سي، نو هغه حلال دی، بس همدغسي د دې پورتني صورت حکم هم دی.

بيانه إلخ: په دې سره مصنف رَحِمَهُ الله د مذكوره قاعدې مثال پېشوي. چې مثلاً لس لېټره د انګورو رَسْ دى او شل لېټره اوبه دي. نو په اول صورت کې يعني كه اول اوبه وچيږي. نو دا به دومره پخول كيږي چې د كُل مقدار يعني د دېرشو لېټرو نهمه حصه پاته سي. او دلته نهمه حصه درې لېټره او د يوه لېټره يو ثلث (درېيمه حصه) راځي. او همدا مقدار (يعني درې او ديوه يو ثلث) د عصير (لسو لېټرو) يو ثلث دى. نو اوس چې له كُل مقدار څخه درې لېټره او ديوه لېټر يو ثلث باقي پاته سي. نو دا د رَسْ ثلث شمېرل كيږي او حلال دى.

او كه اوبه او رَسْ دواړه يو ځاى سره وچيږي، نو بيا د كُل مقدار دوه ثلثه ختمول ضروري دي چې يو ثلث باقي پاته سي، يعني له دېرشو څخه شل ختمول او وچول ضروري دي چې لس باقي پاته سي.

لما قلنا إلخ: د هاغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړى يعني په دې صورت کې چې كوم دوه ثلثه ختم سوه هغه د كُل (اوبو او رَسْ دواړو) څخه ختم سوه. او كوم ثلث چې پاته سو. هغه هم د كُل ثلث دى.

## د انګورو د رَس دوه ثلثه كه په هر څو واره پخولو سره ختم كړل سي حكم يې يو دى

| وَالْغَلْيُ بِدَفْعَةٍ وَدَفَعَاتٍ سَوَاءٌ او په يوه وار يا په څو وارو سرمجوش وركول سره برابر دي إِذَا حَصَلَ قَبْلَ أَنْ يَصِيْرَ مُحَرَّمًا كله چې دا كار مخكې تر دې حاصل سي چې رَسْ حرام [خمر] وګرځي وَلَوْ قُطِعَ عَنْهُ النَّارُ او كه له هغه څخه اُور منقطع [مړ] سي فَغَلَى حَتَّى ذَهَبَ الثُّلُثَانِ بيا هغه خپله دومره جوش وخوري چې دوه ثلثه يې ختم سي يَحِلُّ نو حلاليږي لِأَنَّهُ أَثَرُ النَّارِ ځكه چې دا د اُور اثر دى. |
| --- |

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دى چې د انګورو د رَسْ دوه ثلثه په پخولو سره سوځل او ختمول ضروري دي، برابره ده په يوه وار سره وسوځل سي يا په څو وارو سره. لېكن شرط دا دى چې د هغه د خمر كېدلو څخه مخكې به داسي كيږي. كنې تر خمر ګرځېدلو وروسته بيا پخول مفيد نه دي، ځكه چې پخول د حرمت د ثبوت مانع خو دي. لېكن د هغه رافع نه دي (لكه مخكې چې ذكر سوه).

ولو قطع إلخ: د دې حاصل دا دى چې كه د رَسْ پخولو په دوران کې اُور مړ سي. خو رسْ خپله دومره وخوټيږي چې دوه ثلثه يې ختم سي. نو حلال دى؛ ځكه چې دا خوټېدل د اُور په اثر سره وه. او تاسي ته معلومه ده چې كه په اُور سره دوه ثلثه ختم كړل سي نو حلاليږي، همداسي به دا هم حلال وي.

## دریمه قاعده

وَأَصْلٌ آخَرُ أَنَّ الْعَصِيْرَ إِذَا طُبِخَ فَذَهَبَ بَعْضُهُ او بل اصل دا دی چي کله د انګورو رَسْ پوخ کړل سي او د هغه څه حصه ختمه سي ثُمَّ أُهْرِيْقَ بَعْضُهُ بيا د هغه بعضي حصه چپه کړل سي ثُمَّ تُطْبَخُ الْبَقِيَّةُ حَتَّى يَذْهَبَ الثُّلُثَانِ نو پاته حصه به څومره پخول کيږي چي د هغه دوه ثلثه ختم سي؟ فَالسَّبِيْلُ فِيْهِ أَنْ تَأْخُذَ ثُلُثَ الْجَمِيْعِ نو د دې طريقه دا ده چي ته د ټوله رَسْ ثلث واخله [له ټوله رَس څخه يو ثلث وباسه!] فَتَضْرِبَهُ فِي الْبَاقِيْ بَعْدَ الْمُنْصَبِّ بيا دې ته په هغه مقدار کي ضرب ورکړه کوم چي تر چپه کولو وروسته پاته سوی وي ثُمَّ تَقْسِمَهُ عَلَى مَا بَقِيَ بَعْدَ ذِهَابِ مَا ذَهَبَ بِالطَّبْخِ قَبْلَ أَنْ يَنْصَبَّ مِنْهُ شَيْءٌ بيا دا تقسيم کړه پر هغه مقدار کوم چي باقي پاته سوی وي د هغه مقدار تر ختمېدلو وروسته کوم چي په پخولو سره ختم سوی وي له هغه څخه د څه تر چپه کولو مخکي [يعني دا بيا پر هغه مقدار تقسيم کړه کوم چي په پخولو سره تر ختمولو وروسته او له چپه کولو څخه مخکي پاته سوی وي] فَمَا يَخْرُجُ بِالْقِسْمَةِ نو کوم مقدار چي له تقسيم څخه حاصل سي فَهُوَ حَلَالٌ نو هغه حلال دی بَيَانُهُ عَشَرَةُ أَرْطَالِ عَصِيْرٍ طُبِخَ حَتَّى ذَهَبَ رِطْلٌ د دې بيان دا دی چي لس رطله د انګورو رَسْ دی کوم چي دومره پوخ کړل سو چي يو رطل يې ختم سو ثُمَّ أُهْرِيْقَ مِنْهُ ثَلَاثَةُ أَرْطَالٍ بيا له هغه څخه درې رطله چپه کړل سوه تَأْخُذُ ثُلُثَ الْعَصِيْرِ كُلِّهِ وَهُوَ ثَلَاثَةٌ وَثُلُثٌ نو ته د ټوله رَسْ ثلث واخله چي هغه درې [رطله] او ثلث [د رطل] دی وَتَضْرِبُهُ فِيْمَا بَقِيَ بَعْدَ الْمُنْصَبِّ وَهُوَ سِتَّةٌ او ته هغه ضرب کړه! په هغه مقدار کي کوم چي تر چپه کولو وروسته پاته سوی دی چي هغه شپږ دي فَيَكُوْنُ عِشْرِيْنَ نو دا به شل سي ثُمَّ تَقْسِمُ الْعِشْرِيْنَ عَلَى مَا بَقِيَ بَعْدَ مَا ذَهَبَ بِالطَّبْخِ مِنْهُ قَبْلَ أَنْ يَنْصَبَّ مِنْهُ شَيْءٌ بيا ته دا شل پر هغه مقدار تقسيم کړه! کوم چي په پخولو سره تر ختمېدلو وروسته او له چپه کولو څخه مخکي پاته سوی دی وَذٰلِكَ تِسْعَةٌ او هغه نهه دي فَيَخْرُجُ لِكُلِّ جُزْءٍ مِنْ ذٰلِكَ اِثْنَانِ وَتُسْعَانِ نو له

هغوی څخه د هر جزء لپاره دوه [رطله] او [دیوه رطل] دوې نهمې حصې راوځي فَعَرَفْتَ أَنَّ الْحَلَالَ فِيمَا بَقِيَ مِنْهُ رِطْلَانِ وَتُسْعَانِ نو تا وپېژندل چي د دې رَسْ هغه مقدار حلال دی کوم چي له دې رَسْ څخه دوه رطله او دوې نهمې حصې پاته سي وَعَلَى هٰذَا تُخَرَّجُ الْمَسَائِلُ او پر همدې اصل د څو مسائلو تخريج کيږي وَلَهَا طَرِيقٌ آخَرُ او د دې لپاره بله طريقه هم سته وَفِيمَا اكْتَفَيْنَا بِهِ كِفَايَةٌ وَهِدَايَةٌ إِلَى تَخْرِيجِ غَيْرِهَا مِنَ الْمَسَائِلِ او په هغه طريقه کي چي موږ اکتفاء په کړې ده کافي والی او لارښوونه ده د نورو مسائلو د تخريج وطرف ته.

**اللغات:** ﴿أُهرِيقَ﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: چپه کول، بهول. ﴿منصب﴾ د انفعال د باب مصدر ميمي دی، چپه کېدل، بهېدل. ﴿أرطال﴾ جمع د رِطلٌ ده: دا پخوا يو پيمانه (لوښی) وو چي په هغه سره به شيان اندازه کېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کي د رېيم اصل بيان سوی دی، حاصل یې دا دی چي که په پخولو سره د رَسْ څه مقدار ختم سي او بيا څه مقدار چپه کړل سي، نو اوس د ما بقي رَسْ د حلت لپاره به هغه څومره پخول کيږي.

نو په دې باره کي اصل او قاعده دا ده چي د ټوله رَسْ ثلث څني وباسه محفوظ یې کړه، بيا وګوره چي تر چپه کولو مخکي په پخولو سره څومر مقدار ختم سوی دی هغه هم نوټ او محفوظ کړه، بيا وګوره چي څومره مقدار چپه کړل سوی دی، هغه هم محفوظ کړه او تر چپه کولو وروسته څومره مقدار پاته دی، هغه هم محفوظ کړه، اوس تر چپه کولو وروسته چي کوم مقدار پاته دی، په دې کي هغه ثلث ضرب کړه کوم چي له ټوله رَسْ څخه ايستل سوی وو، او د ضرب چي کوم حاصل راووځي، دا پر هغه مقدار تقسيم کړه کوم چي تر پخولو وروسته او چپه کولو مخکي پاته سوی دی، اوس د تقسيم چي کوم حاصل راووځي، نو ما بقي رَسْ دومره وسوځه چي د تقسيم د حاصل په مقدار پاته سي، نو بيا دغه پاته مقدار حلال دی.

مثال يې دا دی چي مثلاً ۱۰ رطله د انګورو رَسْ دی چي له هغه څخه يو رطل په پخولو سره ختم سو، او له پاته (۹) رطلو څخه (۳) رطله چپه کړل سوه او (۶) رطله پاته سوه، نو اوس د ما بقي (۶)

رطلو د حلت طریقه دا ده چې د پورتنی قاعدې مطابق دې اول د ټوله رَسْ یعني د (۱۰) رطلو ثلث ویستل سي چې هغه درې رطله او دیوه رطل یو ثلث (دریمه حصه) کیږي یعني درې او دیوه دریمه حصه دې څنې ویستل سي او دا دې په ما بقي (۶) رطلو کې ضرب کړل سي. نو حاصلِ ضرب (۲۰) راځي، اوس دې دغه حاصلِ ضرب په پر هغه مقدار تقسیم کړل سي کوم چې تر پخولو وروسته او تر چپه کولو مخکې پاته سوی دی، ښکاره خبره ده چې هغه مقدار (۹) رطله وو. نو حاصلِ ضرب یعني (۲۰) پر (۹) تقسیم کړه. دا چې پر تقسم سي نو حاصلِ تقسیم ۲/۹۹ راځي (یا په بل شکل ۲/۲۲)، یعني دوه لیټره کامل او بل دوې نهمې حصې یا په بله وینا دا چې دوه لیټره کامل او دیوه لیټر دوې دانې نهمې حصې (کوم چې تقریبا ۲۲۲ گرامه کیږي) په لنډه وینا دا چې څه د پاسه دوه لیټره. نو تر دې وروسته به هغه پاته رَسْ دومره سوځول کیږي چې دوه لیټره او دیوه لیټر دوې نهمې حصې پاته سي، نو اوس دغه پاته سوی مقدار (دوه لیټره...) حلال دی او چیښل یې روا دي، تاسي خپله هم ماشین راوخلئ! او حساب ورته وکړئ (د حساب په ماشین کې چې ۲۰ پر ۹ تقسیم کړل سي. نو حاصلِ تقسیم ۲.۲۲ یا په بل شکل ۲/۲۲. نور د دې مطلب هغه دی کوم چې مونږ ذکر کړی).

وعلى هذا إلخ: فرمايي مونږ چې ستاسي مخ ته د رَسْ پخولو او حلال گرځولو په هکله کومې قاعدې او طریقه پېش کړې ده، له هغه څخه تاسي په آسانۍ د دې ډول مسائلو تخریج کولای سي، که څه هم په دې هکله د حساب بله طریقه هم سته، خو مذکوره طریقه کافي او وافي ده. د نور تفصیل لپاره دې کفاية المنتهي وغیره مطالعه کړی سي.

**یادونه:** په کِفَايَةٌ او هِدَايَةٌ کې بارېکه اشاره ده د کفاية المنتهی او د هِداية وطرف ته. فقط والله أعلم وعلمهٗ أتم.

❀❀❀

# كِتَابُ الصَّيْدِ

## (دا) کتاب د "ښکار" (په بیان کي) دی

**تشريح**: د کتابُ الأشربة او کتابُ الصيد تر مينځ مناسبت په دې توګه دی چي څرنګه په شرابو سره انسان ته سرور او مستي حاصليږي، همداسي په صَيداو ښکار سره هم ده ته سرور او خوند حاصليږي. نو ځکه يو تر بل وروسته بيان کړل سوي دي، خو څرنګه چي په اشربه وو کي د حرمت طرف غالب وي. نو د اجتناب عن المعاصي اړخ ته په کتلو سره مصنف رَحِمَهُ الله کتابُ الاشربة تر کتابُ الصَّيد مخکي بيان کړی دی. (احسن الهدایه)

**د صيد لغوي او اصطلاحي معنی**: د "صَيْد" لغوي معنیٰ ده: "ښکار کول" (ښکارول). ګواکي صَيْد د اصطياد په معنیٰ سره دی چي د هغه هم دغه معنیٰ ده.

د صيد اصطلاحي معنیٰ ده: "كُلُّ مُمْتَنِعٍ مُتَوَحِّشٍ طَبْعًا لَا يُمْكِنُ أَخْذُهُ إِلَّا بِحِيْلَةٍ" يعني (نيول د) هر هغه حيوان کوم چي په طبعي توګه له انسانانو څخه بيرېږي او له څه چل او حيلې څخه بغير د هغه نيول ممکن نه وي، نو دې ته صَيد وايي. (احسن الهدایه)

### د ښکار حکم او شرعي حيثيت

قَالَ: الصَّيْدُ الِاصْطِيَادُ فرمايي: صيد ښکار کول دي [يعني د صيد معنیٰ ده: ښکار کول] وَيُطْلَقُ عَلَى مَا يُصَادُ او د صَيد اطلاق پر ښکار کړل سوي ښکاروي [هم] کيږي وَالْفِعْلُ مُبَاحٌ لِغَيْرِ الْمُحْرِمِ فِي غَيْرِ الْحَرَمِ او دا فعل [ښکار کول] د غير محرم لپاره په غير حرم کي روا دي لِقَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا﴾ [المائدة: ۲] د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه: او کله چي تاسي [له احرام څخه] حلال سی نو بيا ښکار وکړئ! وَلِقَوْلِهِ عَزَّ وَجَلَّ: ﴿وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا﴾ [المائدة: ۹۶] او د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه: او پر تاسي د وچي ښکار حرام دی تر څو چي په احرام کي ياست وَلِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ[1] لِعَدِيِّ بْنِ

[1] تخريج: أخرجه البخاري، باب صيد المعراض، ص: ۹۷۵، حديث رقم: ۵۴۷۶، كتاب الذبائح والصيد. ومسلم، باب الصيد بالكلاب المعلمة والرمي، ص: ۸۶۱، حديث رقم: ۱۹۲۹.

حَاتِمِ الطَّائِي رضي الله عنه او عدی بن حاتم طائي رضي الله عنه ته د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه «إِذَا أَرْسَلْتَ كَلْبَكَ الْمُعَلَّمَ "كله چې ته خپل تعليم يافته [يعني ښكار وربنوول سوی] سپی [پر ښكار] ور ايله كړې وَذَكَرْتَ اِسْمَ اللهِ عَلَيْهِ او پر هغه دالله تعالیٰ نوم واخلې فَكُلْ نو [د هغه ښكار] وخوره وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ او كه سپی له هغه ښكار څخه خوراک وكړي فَلَا تَأْكُلْ نو مه يې خوره لِأَنَّهُ إِنَّمَا أَمْسَكَ عَلَى نَفْسِهِ ځكه چې سپي دا ښكار د خپل ځان لپاره راوګرځوی وَإِنْ شَارَكَ كَلْبَكَ كَلْبٌ آخَرُ او كه ستا سپي سره بل سپی هم شريک سي فَلَا تَأْكُلْ نو هم يې مه خوره فَإِنَّكَ إِنَّمَا سَمَّيْتَ عَلَى كَلْبِكَ وَلَمْ تُسَمِّ عَلَى كَلْبِ غَيْرِكَ» ځكه تا خو پر خپل سپي بسم الله ويلې ده او د بل چا پر سپي دي بسم الله نه ده ويلې " وَعَلَى إِبَاحَتِهِ انْعَقَدَ الْإِجْمَاعُ او د ښكار په روا ښت باندي اجماع [هم] منعقد سوې ده وَلِأَنَّهُ نَوْعُ اِكْتِسَابٍ وَانْتِفَاعٍ بِمَا هُوَ مَخْلُوقٌ لِذٰلِكَ او ځكه چې دا يو كسب [لاس ته راوړنه] ده او نفع اخيستل دي په هغه حيوان سره كوم چې د نفع اخيستلو لپاره پيدا سوی دی وَفِيهِ اِسْتِبْقَاءُ الْمُكَلَّفِ وَتَمْكِينُهُ مِنْ إِقَامَةِ التَّكَالِيفِ او په دې كې د مكلف [انسان] باقي ساتل او هغه ته د تكاليفو د قايمولو قدرت وركول [هم] سته [په آسانه وينا دا چې ښكار كول دا دالله له مخلوق څخه فايده اخيستل دي او داسي فايده، كه اخلې نو مكلف يعني انسان باقي پاتيږي او تكاليف يعني انسان چې په كومو عباداتو سره مكلف سوی دی د هغه پر پوره كولو به قادره وي] فَكَانَ مُبَاحًا بِمَنْزِلَةِ الْاِحْتِطَابِ نو ځكه دا به روا وي لكه بوټي [لرګي] ټولول ثُمَّ جُمْلَةُ مَا يَحْوِيهِ الْكِتَابُ فَصْلَانِ بيا هغه ټوله بحثونه چې دا كتابُ الصيد پر مشتمل دی دوه فصلونه دي أَحَدُهُمَا فِي الصَّيْدِ بِالْجَوَارِحِ له هغوی څخه يو فصل په جوارحو سره د ښكار كولو په بيان كې دی وَالثَّانِي فِي الْاِصْطِيَادِ بِالرَّمْيِ او بل فصل په غشي ويشتلو سره د ښكار كولو په بيان كې دی.

**اللغات:** ﴿البَرّ﴾ وچه. له سمندرونو څخه بغير نوره ځمكه. مَا انبسط من سطح الأرض ولم يغطه الماء
﴿إرسال﴾ د افعال د باب مصدر دی. د دې باب يوه معنیٰ ده: ايله كول (خوشي كول). پر ښوول. يعني ښكارونكی حيوان پر ښكار ورايله كول. ﴿اكتساب﴾ د افتعال د باب مصدر دی: ګټل او لاس ته راوړل.
﴿أمسک﴾ د افعال د باب ماضي ده: نيول. راګرځول. ﴿احتطاب﴾ د افتعال د باب مصدر دی: بوټي او لرګي جمع كول (يعني وچ بوټي او لرګي پريكول او سره ټولول). ﴿يحوي﴾ د ضرب د باب مضارع ده: مشتمل كېدل

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې د صَيد دوې معناوې دي: ① ښکار کول. ② ښکار کړی سوی حيوان. او ښکا کول روا دي. خو د محرم لپاره هيڅ ځای هم او د غير محرم لپاره په حرم کې ښکار کول جائز نه دي؛ ځکه چې قرآن کريم کې په ښکاره الفاظو له دې څخه منع سوې ده: ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوا﴾ (يعني کله چې تاسي له احرام څخه حلال سی نو بيا ښکار کولای سی). معلومه سوه چې محرم کس لره ښکاره کول ممنوع او حرام دي، او په بل آيت کې راځي ﴿وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا﴾ (يعني د احرام په حالت کې پر تاسي د وچې ښکار حرام کړی). او د ښکار په روايښت باندې هغه حديث دليل دی کوم چې په کتاب مذکور دی چې په هغه کې نبي ﷺ عدی بن حاتم طائي رضي الله عنه ته فرمايلي دي چې که ته په بسم الله ويلو سره خپل سپی ښکار ور ايله کړې او سپی هغه ښکار نه وخوري، نو هغه ستا لپاره حلال دی، خو که سپی يې وخوري. يا ستا د سپي سره بل سپی هم په هغه ښکار کې شرکت وکړي، نو بيا يې د خوړلو اجازت نسته، په دغه حديث کې په "فَكُلْ" سره د ښکار حلت او روايښت ثابتيږي.

وعلى إباحته إلخ: فرمايي د ښکار په روايښت باندې د اُمت اجماع منعقد سوې ده. او اجماع له شرعي حجتونو څخه يو قوي حجت دی چې په هغه سره حلت او حُرمت ثابتېدای سي.

ولأنه إلخ: دا د ښکار د روايښت عقلي دليل دی چې ځارويان د انسانانو د منفعت لپاره پيدا کړل سوي دي، اوس دا منفعت د هغوی په شيدو سره هم ترلاسه کېدلای سي او د هغوی په غوښو سره هم. او بل دا چې د ښکار په روا ګرځولو کې د مکلف انسان بقاء هم سته او په دې سره هغه ته د تکاليفو يعني د مکلفاتو د قايمولو قدرت هم حاصليږي، او که انسان له دې کار څخه منع سي او ځاروی خپله هلاکېدو ته پرېښوول سي چې هلاک سي او حرام سي، نو د هغه منفعت فوتيږي او انسان يې له نفعې څخه محروميږي، نو ځکه په دې حواله سره هم ښکار کول جائز او روا دي.

ثم جملة إلخ: فرمايي چې د دغه کتاب ټوله بحثونه او مسائل پر دوو فصلونو مشتمل دي چې له هغوی څخه اول فصل د جوارحو يعني په ښکاري حيوانانو سره د ښکار کولو په بيان کې دی او دويم فصل په غشي وغيره سره د ښکار کولو په بيان کې دی.

❀❀❀

# فَصْلٌ فِی الْجَوَارِحِ

دا فصل په (بیان د) زخمي کونکو (ښکار کونکو) حیوانانو کي دی

**تشریح**: څه مخکې ذکر سوه چي په کتابُ الصید کي دوه فصلونه دي: ① فصل فی الجوارح. ② فصل فی الرمی. اوس له دې دواړو څخه اول فصل فی الجوارح بیانوي. او له فصل فی الرمی څخه د هغه د مخکې کولو وجه دا ده چي جوارح له حیوانانو (ساکښو) څخه دي او رمی له جماداتو څخه ده. او حیوان له جماد څخه افضل دی، نو ځکه یې د هغه بیان مخکې کړی دی.

ښکاره دي وي چي جَوارِح جمع د جَارِحَةٌ ده چي د هغه معنیٰ ده: زخمي کونکي (زخم جوړونکي).

## د ښکاري حیوان په ذریعه د ښکار کولو حکم

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمایي وَيَجُوزُ الاِصْطِيَادُ بِالْكَلْبِ الْمُعَلَّمِ وَالْفَهْدِ وَالْبَازِيِّ وَسَائِرِ الْجَوَارِحِ الْمُعَلَّمَةِ فرمایي: او جائز دي ښکار کول په تعلیم یافته [ښکار ورښودل سي] سپي سره او په باز سره او په پړانګ سره او په ټولو زخمي کونکو تعلیم یافته حیوانانو سره وَفِي الْجَامِعِ الصَّغِيرِ: وَكُلُّ شَيْءٍ عَلَّمْتَهُ مِنْ ذِي نَابٍ مِنَ السِّبَاعِ وَذِي مِخْلَبٍ مِنَ الطَّيْرِ او په جامع صغیر کي دي: او هر هغه شه چي تا تعلیم ورکړی وي [ښکار دي ورښودلی وي] یعني له درندګانو څخه داړي لرونکي درنده او له مرغانو څخه منګولي لرونکي مرغه فَلَا بَأْسَ بِصَيْدِهِ نو د هغه په ښکار کولو کي څه پروا نسته وَلَا خَيْرَ فِيمَا سِوَى ذَلِكَ إِلَّا أَنْ تُدْرِكَ ذَكَاتَهُ او له دې څخه بغیر په نورو کي خیر نسته مګر دا چي ته د هغه ذبح ته ورسیږې وَالأَصْلُ فِيهِ قَوْلُهُ تَعَالَى او اصل په دې باره کي [یعني په مذکوره قسم درنده او مرغه سره ښکار کولو په باره کي اصل] د الله تعالیٰ دا فرمان دی ﴿وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِينَ﴾ [المائدة: ۴] او [حلال دي ستاسي لپاره] ښکار د هغه زخمي کونکو او روزل سوو حیوانانو چي تاسي [د ښکار] تعلیم ورکړی وي وَالْجَوَارِحُ الْكَوَاسِبُ فِي تَأْوِيلٍ او دیوه تأویل مطابق جوارح [په معنیٰ سره د] کسب کونکي

دي [یعني د ښکار کسب کونکي] وَالْمُكَلِّبِينَ الْمُسَلِّطِينَ او مکلبین [په معنیٰ سره د] مسلط کړل شوي [روزل سوي] دي [رفَيَتَنَاوَلُ الْكُلَّ بِعُمُوْمِهِ نو دا فرمان به د خپل عموم په وجه ټولو زخمي کونکو [جوارحو] لره شامل سي دَلَّ عَلَيْهِ مَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيْثِ عَدِيٍّ رضي الله عنه او پر همدې هغه حدیث دلالت کوي کوم چي موږ روایت کړی یعني د حضرت عدی رضي الله عنه حدیث وَاِسْمُ الْكَلْبِ فِي اللُّغَةِ يَقَعُ عَلَىٰ كُلِّ سَبُعٍ او د کلب لفظ په لغت کي پر هر درنده واقع کیږي حَتَّى الْأَسَدِ تر دې چي پر زمري هم وَعَنْ أَبِي يُوْسُفَ أَنَّهُ اُسْتَثْنَى مِنْ ذٰلِكَ الْأَسَدَ وَالذِّئْبَ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي هغه له دې عموم څخه زمری او دېب مستثنی کړي دي لِأَنَّهُمَا لَا يَعْمَلَانِ لِغَيْرِهِمَا ځکه چي دا دواړه د بل چا لپاره کار نه کوي الْأَسَدُ لِعُلُوِّ هِمَّتِهِ زمری د خپل لوړ همتی په وجه وَالذِّئْبُ لِخَسَاسَتِهِ او دېب د خپل رذالت په وجه وَأَلْحَقَ بِهِمَا بَعْضُهُمُ الْحِدَأَةَ او بعضي حضراتو [په دې استثناء کي] ټپوس هم د زمري او دېب سره یوځای کړی دی لِخَسَاسَتِهَا ځکه چي په هغه کي [هم] رذالت ښته وَالْخِنْزِيرُ مُسْتَثْنًى او خنزیر [خو بالکل د آیت له عموم څخه] مستثنی دی لِأَنَّهُ نَجِسُ الْعَيْنِ ځکه چي هغه نجس العین دی فَلَا يَجُوْزُ الِانْتِفَاعُ بِهِ نو ځکه په هغه سره نفع اخیستل جائز نه دي ثُمَّ لَا بُدَّ مِنَ التَّعْلِيمِ بیا تعلیم [ښکار ورښودل ځکه] ضروري دی لِأَنَّ مَا تَلَوْنَا مِنَ النَّصِّ يَنْطِقُ بِاشْتِرَاطِ التَّعْلِيمِ ځکه چي زموږ لوستل سوی نص [آیت] د تعلیم پر شرط کېدو ګویا [دلالت کونکي] دی وَالْحَدِيْثُ بِهِ وَبِالْإِرْسَالِ او [زموږ روایت کړی سوی] حدیث د تعلیم او د ارسال پر شرط کېدو [دلالت کونکي دي] وَلِأَنَّهُ إِنَّمَا يَصِيْرُ آلَةً بِالتَّعْلِيمِ او ځکه چي ښکاري حیوان صرف په تعلیم [ښکار ورښودلو] سره آله ګرځي لِيَكُوْنَ عَامِلًا لَهُ د دې لپاره چي هغه د مالک لپاره کار کونکی [ښکار کونکی] سي فَيَتَرَسَّلُ بِإِرْسَالِهِ چي د مالک په ایله کولو سره هغه [پر ښکار] ور ایله کیږي [حمله کوي] وَيُمْسِكُهُ عَلَيْهِ او د خپل مالک لپاره ښکار نیسي [نه د ځان لپاره].

**اللغات**: ﴿ناب﴾ داړه، تېره (نوکداره) غاښ. ﴿السباع﴾ جمع د سبُع ده: درنده، څیرونکی حیوان. ﴿ذکاة﴾ حلالول، ذبح کول. ﴿کواسب﴾ جمع د کَاسِبَةٌ ده: کسب کونکی، بل چا ته دیو څه راوړونکی

او ور کـونکی (چـي تعليـم يافتـه درنـده خپـل مالـک تـه د ښکار کسب کـوي او هغـه تـه نيـول سـوی ښکار راوړي). ﴿الذُّب﴾ دېب. ﴿خساسة﴾ رذالت (د لاندي او ټيټي درجې کېدل). ټيټتوب. ﴿يترسّل﴾ د تفعّل د باب مضارع ده. د دې باب يوه معنیٰ ده: ايله کېدل (خوشي کېدل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي په جارح او زخمي کونکي حيوان سره ښکار کول جائز او روا دي، برابره ده هغه سپی که تازي وي، يا پړانګ يا باز وغيره وي، که چيري دوی تعليم يافته يعني ښکار ور ښودل سوی وي او په بسم الله ويلو سره پر ښکار ورپرېښودل سوي وي، نو د دوی ښکار حلال دی. امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي عموم اختيار کړی دی او داسې يې فرمايلي دي چي هر زخمي کونکی حيوان (ساکښ) هغه که له درندګانو څخه وي يا له مرغانو څخه وي که چيري هغه ته ښکار ور ښودل سوی وي، نو په هغه سره ښکار کول حلال او روا دي، لېکن که تعليم پکښې نه وي او ښکار نه وي ور ښودل سوی، نو بيا د دوی ښکار حلال نه دی، ها! که چيري د دوی تر ښکار کولو وروسته ښکاروی ژوندی پاته سي او چا ته په لاس ورسي، نو تر ذبح کولو وروسته هغه حلالیږي. لېکن بغير له ذبح څخه نه حلالیږي.

<u>والأصل فيه إلخ</u>: فرمايي دا پورتنی خبري په قرآن سره مشروط دي چي ښکار کونکی حيوان به له جوارحو څخه تعليم يافته او روزل سوی وي چي د ښکار نيولو طريقه به ور ښودل سوې وي او پر ښکار به بسم الله ويل سوي وي، پوره آيت داسي دی: ﴿يَسْئَلُوْنَكَ مَا ذَا أُحِلَّ لَهُمْ قُلْ أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَاتُ وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِيْنَ تُعَلِّمُوْنَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللهُ فَكُلُوْا مِمَّا أَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللهِ عَلَيْهِ﴾، په دې آيت کي هغه ټولي خبري ذکر سوي دي کوم چي د ښکار د اباحت او حلت سره متعلق دي؛ ځکه په دې آيت کي "وَمَا عَلَّمْتُمْ إلخ" پر "أُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبَات" عطف سوی دی او د آيت مفهوم دا دی چي پاک شيان هم حلال دي او د تعليم يافته حيوانانو ښکار هم حلال دی. او بل دا چي جَوارِح د کَواسِب (کسب کونکو) په معنیٰ سره دی او مُکلّبين د مُسلّطين په معنیٰ سره دی. لهذا د دغه معنیٰ په اعتبار سره کولو دا آيت عام دی او په دې کي هر هغه حيوان شامل او داخل دی کوم چي تعليم يافته او پر ښکار کولو ګومارل سوی وي. او پر همدې عموم د حضرت عدی بن حاتم رضي الله عنه حديث هم دلالت کوي؛ ځکه په هغه کي لفظ د کَلْب راغلی دی او کلب په لغت کي درنده ته وايي او پر هر درنده يې اطلاق کيږي تر دې چي پر زمري (شېر) هم د کلب اطلاق کيږي. لکه څرنګه چي په يو

حديث کي ذکر سوي دي چي نبي ﷺ عتبه بن أبي لهب ته داسي ښېرا کړې وه "اللّٰهُمَّ سَلِّطْ عَلَيْهِ كَلْبًا مِنْ كِلَابِكَ..."، نو الله تعالیٰ پر هغه يو زمری مسلط کړی چي آخريې هغه قتل کړی. له دې څخه معلومه سوه چي هر درنده دآيت په عموم کي شامل دی، او که هغه تعليم يافته وي. نو ښکار حلال او مباح دی.

وعن أبي يوسف إلخ: د دې حاصل دا دی چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د "وَمَا عَلَّمْتُم إلخ" له عموم څخه د زمري او دېب استثناء کوي او د هغوی په ذريعه ښکار کول حلال نه ګڼي؛ ځکه دا دواړه د بل چا لپاره د ښکار وغيره کار نه کوي، ځکه زمری خو لوړ همته وي او دېب خسيسه وي. نو ځکه په هغوی ښکار کول صحيح نه دي، ځيني حضراتو د خساست او رذالت په علت سره ټپوس او مرږګه خور هم د پورتني آيت له عموم څخه مستثنیٰ کړي دي.

والخنزير إلخ: فرمايي خنزير د ټولو په نېز مستثنیٰ او دآيت له عموم څخه وتلی دی: ځکه چي هغه نجس العين دی او په هيڅ ډول هم له هغه څخه نفع اخيستل جائز دي.

ثم لا بد إلخ: د دې مطلب ښکاره دی چي په درنده حيوان او درنده مرغه سره د ښکار کولو د روايښت لپاره دا ضروري ده چي هغوی به تعليم يافته او د ښکار پر نيولو روزل سوي او ګومارل سوي وي: دليل پورتنی آيت او حديث دی يعني ﴿وما علّمتم إلخ﴾ او حديث "إذا أرسلتَ كلبك المُعلَّم".

او د دې شيانو د ضروري کېدلو عقلي دليل دا دی چي د تعليم په ذريعه حيوان د انسان د ښکار آله جوړېږي او د ښکاروي په ذبح کولو کي هغه د انسان قائم مقام کيږي. او تاسي ته معلومه ده چي د ذابح تعليم يافته کېدل شرط دي يعني څوک چي ښکاروی ذبح کوي، د هغه لپاره دا ضروري ده چي د ذبح په طريقه به پوهيږي او د ذبح رګونه به پېژني. نو کوم څه چي په ذبح کي د انسان قائم مقام وي يعني ښکار کونکی حيوان. د هغه تعليم يافته کېدل به هم شرط وي، د دې لپاره چي د انسان نيابت وکړی سي او د هغه په خوله او اشاره مطلوب ښکاروی ونيسي او د خپل مالک او لاربنوونکي په خدمت کي يې حاضر کړي.

## د ښکاري حيوان تعليم

قَالَ: وَتَعْلِيمُ الْكَلْبِ أَنْ يَتْرُكَ الْأَكْلَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ فرمايي: او د سپي تعليم دا دی چي هغه درې واره خوړل پرېږدي وَتَعْلِيمُ الْبَازِيّ أَنْ يَرْجِعَ او د باز تعليم دا دی چي راګرځي وَيُجِيبَ إِذَا دَعَوْتَهُ او چي کله ته هغه راوغواړې نو جواب درکوي [يعني ستا په وينا سره واپس راګرځي] وَهُوَ مَأْثُورٌ عَنِ ابْنِ

عَبَّاسٍ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا او همدا له ابن عباس (رض) څخه نقل سوي دي وَلِأَنَّ بَدَنَ الْبَازِي لَا يَحْتَمِلُ الضَّرْبَ او ځکه چي د باز بدن وهل نه سي زغملای وَبَدَنُ الْكَلْبِ يَحْتَمِلُهُ او د سپي بدن یې زغملای سي فَيُضْرَبُ لِيَتْرُكَهُ نو ځکه سپی به وهل کیږي چي خوړل پرېږدي وَلِأَنَّ آيَةَ التَّعْلِيمِ تَرْكُ مَا هُوَ مَأْلُوفُهُ عَادَةً او ځکه چي د تعليم علامت د هغه شي پرېښوول دي کوم چي د ده عادتاً مرغوب [خوښ] وي وَالْبَازِيُّ مُتَوَحِّشٌ مُتَنَفِّرٌ او باز [له انسان څخه] تزهېدونکی او نفرت کونکی وي فَكَانَتِ الْإِجَابَةُ آيَةَ تَعْلِيمِهِ نو ځکه د باز جواب ویل به د هغه د تعليم علامت وي وَأَمَّا الْكَلْبُ فَهُوَ أَلُوفٌ يَعْتَادُ الِانْتِهَابَ او هر چي سپی دی نو هغه الفت کونکی او په لوټماری عادت وي فَكَانَ آيَةُ تَعْلِيمِهِ تَرْكَ مَأْلُوفِهِ نو د هغه د تعليم علامت به د هغه د خپل خوښ شي پرېښوول وي وَهُوَ الْأَكْلُ وَالِاسْتِلَابُ چي هغه خوړل او سلبول دي.

**اللغات**: ﴿يجيب﴾ د افعال د باب مضارع ده: جواب ورکول (جواب ویل)، خبره منل او قبلول. ﴿مألوف﴾ خوښ او مرغوب، عادت او معمول. ﴿ألوف﴾ الفت کونکی، اموخته. ﴿استلاب﴾ د استفعال د باب مصدر دی: سلبول، په زوره اخیستل.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي ښکار کونکي حيوان ته د تعليم ورکولو او ښکار ورښودلو طريقه به څه وي؟، نو په دې هکله عرض دا دی چي د سپي او باز د تعليم په طريقه کي فرق دی. د سپي تعليم به داسي کيږي چي بيا خپل شکار کړی سوی شی نه خوري او په دې باره کي به وهل کيږي تر هغه وخته چي کم از کم درې واره له هغه څخه دا فعل صادر سي يعني درې واره هغه ښکار ونيسي او خپل مالک ته يې پرېږدي، او کله چي درې واره داسي وکړي، نو بيا به د هغه د تعليم يافته کېدو حکم کيږي او د ښکار کولو سند او اجازت به ورکول کيږي. او د باز د تعليم طريقه دا ده چي هغه ته صرف دومره تعليم ورکول سي چي کله هغه والوزي نو د مالک پر بلنه بېر ته راسي، که په باز کي دا صفت پيدا سي، نو هغه به هم تعليم يافته ګڼل کيږي او پر ښکار به ور پرېښوول کيږي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د تعليم دا طريقه او صورت له ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا څخه هم مروي دي او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: وبه نأخذ وهو قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله. (بنايه ج: ۱۱، ص: ۴۷۶)

ولأن بدن إلخ: فرمايي چي د سپي او باز په تعليم كي د فرق يوه وجه دا هم ده چي سپى وهل زغملاى سي او د وهلو په ذريعه هغه ته تعليم وركول آسانه او ممكن دي. نو ځكه د هغه په حق كي به "ترك الأكل" تعليم شمېرل كيږي، د دې په خلاف باز وهل نه سي زغملاى، لهذا د هغه په حق كي به صرف واپس راتلل تعليم شمېرل كيږي. او بل دلته د تعليم علامت دا دى چي حيوان له خپل فطري عادت څخه راوګرځي او خپل خوښ شى پرېږدي، او ښكاره خبره ده چي د سپي فطري عادت د ښكار خوړل او څېرل دي، لهذا كله چي هغه درې واره ښكاره نه وخوري، نو دا به ګڼل كيږي چي هغه خپل فطرت بدل كړى او تعليم اثر پر وكړى، نو ځكه د سپي په حق كي به نه خوړل د هغه د تعليم يافته كېدلو علامت وي. پاته سوه د باز مسئله نو هغه فطرتاً نا اموخته او له انسانانو څخه متنفر وي چي د انسان له بوى څخه هم ليري اووسي، خو كله چي باز د انسان سره دومره اموخته سي چي د هغه پر بلنه راځي، نو دا به ګڼل كيږي چي هغه تعليم يافته او د ښكار كولو قابل سو.

## درې واره د ښكار نه خوړلو د شرط وجه او تفصيل

ثُمَّ شَرَطَ تَرْكَ الْأَكْلِ ثَلَاثًا بيا امام قدوري رَحِمَهُ الله شرط لګولى دى درې واره د خوراک پرېښوولو وَهٰذَا عِنْدَهُمَا او دا د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز دي وَهُوَ رِوَايَةٌ عَنْ أَبِي حَنِيفَةَ او همدا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دى لِأَنَّ فِيمَا دُونَهُ مَزِيدَ الِاحْتِمَالِ ځكه چي له دريو څخه په كمو وارونو كي نور احتمال سته فَلَعَلَّهُ تَرَكَهُ مَرَّةً أَوْ مَرَّتَيْنِ شِبَعًا ځكه كېداى سي چي هغه د موړتيا په وجه يو يا دوه واره پرې ايښى وي فَإِذَا تَرَكَهُ ثَلَاثًا خو كله چي هغه درې واره پرېږدي دَلَّ عَلَى أَنَّهُ صَارَ عَادَةً لَهُ نو دا د دې خبري دليل سو چي پرېښوول د هغه عادت وګرځېدل وَهٰذَا لِأَنَّ الثَّلَاثَ مُدَّةٌ ضُرِبَتْ لِلِاخْتِبَارِ وَإِبْلَاءِ الْأَعْذَارِ او دا ځكه چي درې داسي مودت دى كوم چي د امتحان [ازموېني] او د عذرونو د ازمايښت لپاره ټاكل سوى دى كَمَا فِي مُدَّةِ الْخِيَارِ لكه د خيار په مودت كي وَفِي بَعْضِ قِصَصِ الْأَخْيَارِ او [لكه] د بعضي غوره حضراتو په قصو كي وَلِأَنَّ الْكَثِيرَ هُوَ الَّذِي يَقَعُ أَمَارَةً عَلَى الْعِلْمِ دُونَ الْقَلِيلِ او ځكه چي كثير هغه مقدار دى كوم چي د علم [تعليم] علامت جوړېدلاى سي، نه قليل وَالْجَمْعُ هُوَ الْكَثِيرُ وَأَدْنَاهُ الثَّلَاثُ او كثير جمع ده چي د هغه كم مقدار درې دى فَقُدِّرَ بِهَا نو ځكه علم [تعليم] په دريو وارو سره متعيّن كړى سوى دى وَعِنْدَ أَبِي

حَنِيْفَةَ ۞ عَلَى مَا ذُكِرَ فِي الْأَصْلِ لَا يَثْبُتُ التَّعْلِيْمُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز (لكه څرنګه چي په مبسوط كي ذكر سوي دي) تعليم [تر هغه وخته] نه ثابتيږي مَا لَمْ يَغْلِبْ عَلَى ظَنِّ الصَّائِدِ أَنَّهُ مُعَلَّمٌ تر څو چي د ښكار كونكي پر ګومان دا غالبه نه سي چي هغه تعليم يافته سو وَلَا يُقَدَّرُ بِالثَّلَاثِ او په دريو وارو سره به نه متعينول كيږي لِأَنَّ الْمَقَادِيْرَ لَا تُعْرَفُ اجْتِهَادًا ځكه چي مقدارونه په اجتهاد سره نه پېژندل كيږي بَلْ نَصًّا وَسَمَاعًا بلكي په نص او سماع سره [معلوميږي. چي له شارع څخه واورېدل سي] وَلَا سَمْعَ او [په دې باره كي] سماع نسته فَيُفَوَّضُ إِلَى رَأْيِ الْمُبْتَلٰى بِهِ نو ځكه دا به د مبتلیٰ به رايي ته سپارل كيږي كَمَا هُوَ أَصْلُهُ فِي جِنْسِهَا لكه څرنګه چي دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله اصل دى په دغه ډول مسئلو كي.

**اللغات:** ﴿شَبْع﴾ د فتح مصدر دى: مړېدل (موړتيا)، نس ډكېدل. ﴿اختبار﴾ د افتعال د باب مصدر دى: امتحان، ازموينه. ﴿ابلاء﴾ د افعال د باب مصدر دى. دې باب څو معناوي دي چي له هغوى دوې دا دي: ازمايل، او په عذر پېښولو كي جهد كول چي جانب مقابل راضي سي، يُقَالُ: أَبْلَاهُ عُذْرًا، أي اِجْتَهَدَ فِي الْاِعْتِذَارِ إِلَيْهِ حَتّٰى رَضِيَ (معجم الوسيط). ﴿سَمَاع﴾ د سمع د باب يو مصدر دى: اورېدنه. اورېدل. ﴿فيفوّض﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: ورسپارل، حواله كول. ﴿مُبتلٰى بِهِ﴾ كوم څوک چي په يو څه مبتلا سوى وي، كوم چي په يو څه كي راګير وي.

**تشريح:** فرمايي مخكي چي د سپي د تعليم يافته كېدو او ښكار زده كېدو لپاره درې واره د نه خوړلو كوم شرط ذكر سوى دى هغه په حقيقت كي د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دى همدارنګه د امام صاحب رَحِمَهُ الله هم يو روايت دغسي دى؛ او د دې دليل دا دى چي له دريو وارو څخه په كم كي دا احتمال سته چي كېداى سي دغه سپي په يو بل شي سره د ځان مړولو او نس ډكولو په وجه دا يو يا دوه واره ښكاره پرې ايښي وي، لېكن كله چي هغه درې واره داسي وكړې او ښكار نه وخوري، نو اوس به دا ګڼل كيږي چي هغه تعليم يافته سو او ښكار نه خوړل د هغه په فطرت واخښله سوه. او خاص د دريو وارو د شرط وجه دا ده چي ثلاث داسي مودت دى چي په شريعت كي څو ځايه هغه د ازمايښت (ازموني) وغيره لپاره متعين سوى دى، مثلاً د حضرت موسىٰ عليه السلام او د حضرت خضر عليه السلام په

۞ القول الراجح: قول الصاحبين رَحِمَهُمَا الله، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۲۰]

واقعه کې هم په درېيم وار حضرت موسیٰ عليه السلام وفرمايل: ﴿إِنْ سَأَلْتُكَ عَنْ شَيْءٍ بَعْدَهَا فَلَا تُصَاحِبْنِي قَدْ بَلَغْتَ مِنْ لَّدُنِّي عُذْرًا﴾ [سورة الكهف: ۷۶]، همدارنګه په شريعت کې د خيار مودت درې ورځې دی او د حيض اقل مودت درې ورځې دي، او ﴿تَمَتَّعُوا فِي دَارِكُمْ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ﴾ په دې کې هم د ثلاث مودت ذکر سوی دی (بنايه ج: ۱۱، ص: ۲۷۸)، نو ځکه په صورت مسئله کې د تعليم د ازمايښت او تحقيق لپاره هم ثَلاثَ دَفَعَات (درې واره) ټاکل سوي دي.

ولأن الكثير إلخ: او بل دليل دا دی چې د تعليم او زده کړې علامت به کثير وي چې پر تعليم زيات دلالت کونکی وي، نه قليل، ځکه قليل ځيني وخت خلاف عادت هم صادرېږي، نو ځکه کثير مقدار به د تعليم او زده کړې علامت ټاکل کېږي او کثير جمع دی چې د هغه ادنیٰ مقدار ثلاث دی، لهذا ثلاث دفعات به د تعليم يافته کېدو علامت او دليل شمېرل کېږي.

وعند أبي حنيفة إلخ: مخکې ذکر سوه چې دا درې واره نه خوړل د امام صاحب رَحِمَهُ الله هم يو روايت دی کوم چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی، دلته د امام صاحب رَحِمَهُ الله دويم روايت بيانوي چې دا معامله به د تعليم ورکونکي (ښکار ور زده کونکي) رايې ته سپارل کېږي يعني چې کله هم د هغه غالب ګومان داسې چې اوس نو سپی تعليم يافته سو، نو بيا به هغه تعليم يافته دی، کنې نه دی، يعني دا به پر يو مقدار نه موقوف کول کېږي بلکې هر کله چې هغه ته د تعليم پوره کېدو يقين يا غالب ګومان سي، نو په دې وخت کې به سپی تعليم يافته ګڼل کېږي او پر ښکار به ور ايله کېږي، او په دا ډول مسئلو کې د امام صاحب رَحِمَهُ الله أصول همدا دی چې هغه دا د مبتلیٰ به رايې ته پرېږدي.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت

وَعَلَى الرِّوَايَةِ الْأُولَى عِنْدَهُ يَحِلُّ مَا اصْطَادَهُ ثَالِثًا او د اول روايت مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه ښکار حلال دی کوم چې سپي په درېيم وار ښکار کړی وي وَعِنْدَهُمَا لَا يَحِلُّ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز حلال نه دی لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَصِيرُ مُعَلَّمًا بَعْدَ تَمَامِ الثَّلَاثِ ځکه چې سپی د دريو وارو له پوره کېدو څخه وروسته تعليم يافته ګرځي وَقَبْلَ التَّعْلِيمِ غَيْرُ مُعَلَّمٍ او له تعليم څخه مخکې هغه بې تعليمه [نا تعليم يافته] دی فَكَانَ الثَّالِثُ صَيْدَ كَلْبٍ جَاهِلٍ نو دا درېيم وار ښکار به د جاهل

[بې تعليمه] سپي ښکار وي وَصَارَ كَالتَّصَرُّفِ الْمُبَاشِرِ فِي سُكُوتِ الْمَوْلَى او دا د هغه تصرف په څېر سو كوم چې د مالک په خاموشي [چپتيا] کې سوی وي [يعني چې غلام يو تصرف وکړي او مالک د هغه پر ليدلو چپ پاته سي] وَلَهُ: أَنَّهُ آيَةُ تَعْلِيمِهِ عِنْدَهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چې د درېيم وار ښکار په وخت کې نه خوړل د سپي د تعليم يافته کېدو علامت دی فَكَانَ هٰذَا صَيْدَ جَارِحَةٍ مُعَلَّمَةٍ نو دا درېيم وار ښکار به د تعليم يافته درنده ښکاره وي بِخِلَافِ تِلْكَ الْمَسْأَلَةِ په خلاف د هغه [تصرف والا] مسئلې لِأَنَّ الْإِذْنَ إِعْلَامٌ ځکه چې اذن اگاه کول دي [يعني اذن اطلاع ورکولو ته وايي] وَلَا يَتَحَقَّقُ دُونَ عِلْمِ الْعَبْدِ او اگاه کول د غلام له خبرېدلو څخه مخکې نه ثابتيږي [يعني هغه وخت ثابتيږي کله چې غلام په دې خبر سي چې ماته مالک دا جازت اگاهي او اطلاع راکړه] وَذٰلِكَ بَعْدَ الْمُبَاشَرَةِ او دا د غلام خبرېدل تر [تصرف] کولو وروسته راځي.

**اللغات**: ﴿مُباشر﴾ د مفاعلې له باب څخه دی، که مفعول سي يعني مُبَاشَر نو معنیٰ يې ده: کړی سوی، او که فاعل سي يعني مُبَاشِر نو معنیٰ يې ده: کونکی. ﴿مباشرة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو کار خپله کول، ارتکاب.

**تشريح**: صورت د مسئلې دا دی چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله هغه روايت کوم چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د قول په څېر دی يعني چې په هغه کې د سپي د تعليم لپاره درې واره د ښکار نه خوړلو شرط لګول سوی دی، د هغه روايت مطابق په درېيم وار نيول سوی ښکار د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز حلال دی لېکن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې له درې واره نيولو او نه خوړلو څخه وروسته د څلورم وار ښکار حلال دی.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چې سپی له درې واره ښکار کولو او نه خوړلو څخه وروسته مُعلَّم شمېرل کيږي او له دې څخه مخکې هغه غيرِ مُعلَّم (نا تعليم يافته) وي. لهذا درېم وار د هغه ښکار کول د ناتعليم يافته او جاهل سپي د ښکار په څېر دي، او د نا تعليم يافته سپي ښکار حلال نه دی. نو ځکه د تعليم يافته او مُعلَّم سپي درېيم وار ښکار به هم حلال نه وي. او د دې مثال داسي دی لکه کله چې مالک (مولیٰ) خپل غلام پر يو تصرف کولو ويني لېکن خاموش پاته سي او غلام ته

څه نه ووايي، نو د مالک دا خاموشي د دغه اول وار تصرف په حق کي اجازت نه دی بلکي تر دې وروسته د آینده تصرف کولو په حق کي اجازت دی او د غلام دغه تصرف باطل او واجبُ الرد دی. نو همداسي په صورت مسئله کي د سپي درېيم وار ښکار حلال نه دی بلکي کله چي درېيم وار هم نه خوړل ثابت سي، نو تر دې وروسته آینده والا ښکار حلال دی.

ولـه إلـخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي کله سپی درېيم وار هم ښکار ونيسي او نه يې وخوري، نو اوس د هغه له طرفه درې واره نه خوړل موجود او ثابت سوه. او د ښکار د حلت لپاره همدا درې واره نه خوړل شرط دي، لهذا د هغه درېيم وار ښکار کول د تعليم يافته سپي ښکار کول سوه او د تعليم يافته سپي ښکار حلال دی، لهذا د هغه دغه ښکار به هم حلال وي.

او پاتـه سو صاحبينو رَحِمَهُمَا الله چي په قياس کي د تصرف او إذن مسئله پېش کړې ده. دا صحيح نه دي؛ ځکه چي إذن (اجازت) اګاه کولو او اطلاع ورکولو ته وايي او تر څو چي غلام ته د إذن اګاهي او خبر حاصل نه سي، تر هغه وخته إذن نه ثابتيږي، او غلام ته د هغه خبر تر اول تصرف کولو وروسته حاصليږي، نه تر هغه مخکي، نو ځکه د هغه دغه اول تصرف کوم چي يې د مالک د خاموشي په وخت کي کړی دی د محجور غلام تصرف دی، او د محجور غلام تصرف نه نافذيږي، نو ځکه پر دې مسئله قياس کول صحيح نه دي. (بنايه ج: ۱۱. ص: ۴۸۰)

## د ښکار کونکي حيوان د پرېښوولو په وخت کي بسم الله ويل کافي دي

قَالَ وَإِذَا أَرْسَلَ كَلْبَهُ الْمُعَلَّمَ أَوْ بَازِيَهُ فرمايي: او کله چي هغه خپل تعليم يافته [ښکار ور ښوول سوی] سپی يا باز [پر ښکار] ور ايله کړي وَذَكَرَ اسْمَ اللهِ تَعَالَى عِنْدَ إِرْسَالِهِ او د هغه د ايله کولو په وخت کي د الله نوم واخلي فَأَخَذَ الصَّيْدَ وَجَرَحَهُ او هغه ښکار ونيسي او زخمي يې کړي فَمَاتَ نو ښکار مړ سي حَلَّ أَكْلُهُ نو د هغه خوړل حلال دي لِمَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيثِ عَدِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حضرت عدی بن حاتم رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د حديث په وجه کوم چي موږ روايت کړی وَلِأَنَّ الْكَلْبَ أَوِ الْبَازِيَ آلَةٌ او ځکه چي سپی يا باز آله ده وَالذَّبْحُ لَا يَحْصُلُ بِمُجَرَّدِ الْآلَةِ إِلَّا بِالِاسْتِعْمَالِ او ذبح محض په آله سره نه حاصليږي مګر [د آلې] په استعمالولو سره وَذٰلِكَ فِيهِمَا بِالْإِرْسَالِ او په سپي او باز کي استعمال په ور ايله کولو سره دی [لکه څرنګه چي د چاړې استعمال د څاروي پر غاړي د چاړې په تېرولو سره راځي. همداسي د دوی استعمال پر ښکار د دوی په ور ايله کولو سره راځي] فَنَزَلَ مَنْزِلَةَ الرَّمْيِ وَإِمْرَارِ السِّكِّينِ نو دا

[ور ایله کول] د غشي ویشتلو او چاړې تېرولو په درجه کې سو فَلَا بُدَّ مِنَ التَّسْمِيَةِ عِنْدَهُ نو ځکه د ور ایله کولو په وخت کي بسم الله ویل ضروري دي وَلَوْ تَرَكَهُ نَاسِيًا او که په هېره بسم الله پرېږدي حَلَّ أَيْضًا نو هم حلال دی عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چې دا [د ترک التسمية بحث] موږ مخکې [په کتاب الذبائح کي] بیان کړی دی وَحُرْمَةَ مَتْرُوكِ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا فِي الذَّبَائِحِ او [همدارنګه موږ بیان کړی دی] د هغه ښکار حرمت چې پر هغه قصداً بسم الله پرېښوول سوې وي په کتابُ الذبائح کي.

[ "حرمة" منصوب دی چي د "بيّناه" پر ضمير عطف دی].

**اللغات:** ﴿أُرسل﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب یوه معنیٰ ده: ایله کول او پرېښوول، یعني تعلیم یافته درنده پر ښکار ور ایله کول چې هغه ونیسي، ﴿إمرار﴾ د افعال د باب مصدر دی: تېرول، چلول، ﴿تسمية﴾ د تفعیل د باب مصدر دی، د دې باب یوه معنیٰ ده: بسم الله ویل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله څوک خپل تعلیم یافته سپی (تازي) یا باز په بسم الله ویلو سره پر ښکار ور ایله کړي او هغه ښکاره ونیسي او زخمي یې کړي بیا ښکار مړ سي، نو د هغه خوړل حلال او جائز دي؛ ځکه د حضرت عدی بن حاتم ﷺ په حدیث کي صراحتاً دا خبره ذکر سوې ده چي کله ته خپل مُعلَّم سپی پر ښکار ور ایله کړې او بسم الله ووايې نو د هغه ښکار وخوره!.

په دې هکله عقلي دا دی چي څرنګه غشي او چاړه د ذبح آله ده، لېکن د دوی له استعمالولو (غشي ویشتلو او چاړې تېرولو) څخه بغیر په هغوی سره ذبح نه حاصلیږي، نو همداسي سپی او باز هم د ذبح آله ده، لېکن بغیر له استعماله په دوی سره ذبح نه ثابتیږي او د دوی استعمال پر ښکار د دوی ور ایله کول دي. نو ځکه حکم دا دی چي که د دوی د ایله کولو په وخت کي بسم الله ویل سوې وي. نو بیا د دوی ښکار کړده حیوان حلال او مباحُ الأکل دی.

ولوترکه إلخ: فرمايي که د ایله کولو په وخت کي بسم الله پرېږدي. نو د دې دوه حالتونه دي: ① قصداً او عمداً به یې په پرې ایښي وي، ② یا ناسیاً (په هېره). که اول حالت وي یعني قصداً یې پرې ایښې وي. نو ښکار حرام دی او که ناسیاً یې پرې ایښې وي، نو ښکار حلال دی. لکه په کتابُ الذبائح کي چي د دې تفصیل بیان سوی دی.

## د ښکار زخمي کېدل ضروري دي

وَلَا بُدَّ مِنَ الْجَرْحِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او چاره نسته له زخمي کولو څخه [یعني د ښکار زخمي کول ضروري دي] د ظاهر روایت مطابق لِيَتَحَقَّقَ الذَّكَاةُ الِاضْطِرَارِيُّ د دې لپاره چي ذبح اضطراري ثابته سي وَهُوَ الْجَرْحُ فِي أَيِّ مَوْضِعٍ كَانَ مِنَ الْبَدَنِ او دا [ذبح اضطرار] زخمي کول دي هغه که د بدن په هر ځایکي

وي بِانْتِسَابِ مَا وُجِدَ مِنَ الْآلَةِ إِلَيْهِ بِالْاسْتِعْمَالِ په منسوب کېدلو سره د موجوده آلې د ښکاري وطرف ته په استعمال سره [يعني ځکه چي کومه آله موجوده ده، هغه د استعمالولو په وجه د ښکار کونکي کس وطرف ته منسوبه ده] وَفِيْ ظَاهِرِ قَوْلِهِ تَعَالَى: ﴿وَمَا عَلَّمْتُمْ مِنَ الْجَوَارِحِ﴾ [المائدة: ۴] مَا يُشِيْرُ إِلَى اشْتِرَاطِ الْجَرْحِ او د الله تعالیٰ د دې فرمان "وما علّمتُم من الجوارح" په ظاهر کي هغه خبره ده کوم چي د زخمي کولو شرطېدو ته اشاره کوي إِذْ هُوَ مِنَ الْجَرْحِ بِمَعْنَى الْجِرَاحَةِ فِيْ تَأْوِيْلٍ ځکه چي دا [جوارح] له جرح څخه دی چي په يوه تأويل کي هغه د جراحت [زخم] په معنیٰ سره دی فَيُحْمَلُ عَلَى الْجَارِحِ الْكَاسِبِ بِنَابِهِ وَمِخْلَبِهِ نو دا به پر هغه زخمي کونکي درنده حمل کيږي کوم چي په خپلو داړو او منګولو سره [د ښکار] کسب کونکی وي وَلَا تَنَافِيْ او [د دواړو تأويلونو] په جمع کولو کي منافات نسته وَفِيْهِ أَخْذٌ بِالْيَقِيْنِ او په دې کي [يعني د دواړو تأويلونو په مرادولو کي] پر يقين عمل کول ښته وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّهُ لَا يُشْتَرَطُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي زخمي کول شرط نه دي رُجُوْعًا إِلَى التَّأْوِيْلِ الْأَوَّلِ د اول تأويل و طرف ته په رجوع کولو سره وَجَوَابُهُ مَا قُلْنَا او د دې جواب هغه دی کوم چي موږ ذکر کړی.

**اللغات:** ﴿جَرْح﴾ د فتح د باب مصدر دی: زخمي کول، او جُرْح زخم ته وايي. ﴿ناب﴾ داړه، تېره (نوکداره) غاښ، ﴿مخلب﴾ د درنده حيواناتو او مرغانو منګولي، پنجه، (يا په بله وينا د درندګانو نوکان). ﴿جِرَاحة﴾ زخم، جمع: جِرَاحَات.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د ښکار د حلت لپاره د ظاهر روايت مطابق دا شرط او ضروري ده چي سپي او باز به ښکار زخمي کړی وي؛ ځکه د ذبح د حلت لپاره ذبح شرط ده، برابره ده هغه ذبح حقيقي وي يا ذبح اضطراري وي او په ښکار کي حقيقي ذبح ممکن نه ده، نو له ذبح اضطراري څخه به کار اخيستل کيږي، او دا چي د بدن په هره حصه کي زخم جوړ کړل سي نو ذبح اضطراري ثابتيږي، ځکه په کومه آله (سپي وغيره) سره چي زخم جوړ کړل سوی دی، هغه آله د ښکار کونکي مالک وطرف ته په استعمالولو کي منسوبه ده چي ګواکي دا زخم هغه جوړ کړی دی ځکه چي همدا مالک هغه آله استعمال کړې ده، په همدې وجه فقهاؤ دا شرط لګولی دی چي د ښکار د حلت لپاره د ښکار کونکي تسميه (بسم الله) ويل او د تسميې اهل کېدل ضروري دي.

وفي ظاهر الرواية إلخ: فرمايي چي د دې آيت ﴿وَمَا عَلَّمْتُمْ...إلخ﴾ له ظاهري مفهموم څخه هم د جرح معنیٰ ثابتيږي؛ ځکه چي جَوَارِح له جَرْح څخه مشتق دی چي د يوه تفسير مطابق د هغه معنیٰ زخمي کول دي، نو په دې کې اشاره ده چي ښکار به زخمي کوي نو بيا حلاليږي، بيا فرمايي د جَرْح که څه هم دوې معناوي دي يعني زخمي کول او بل کسب کول، خو دلته د دواړو معنیٰ د مرادولو ګنجايش شته چي دا سپي وغيره زخم هم جوړوي او په خپل داړو او منګولو سره د خپل مالک لپاره (د ښکار) کسب هم کوي يا په بله وينا دا چي د ښکار د کسب کولو سره زخمي کول هم کوي، او د دې دواړو معناوو په مرادولو کي پر يقين عمل کيږي؛ ځکه کله چي د يوې معنیٰ سره بله معنیٰ هم مراد کړل سوه يعني په داړو او منګولو سره د کسب کولو د معنیٰ سره د زخمي کولو معنیٰ هم مراد کړل سوه، نو د جرح پر معنیٰ په يقين سره عمل وسو او په يقيني توګه ثابته سوه چي د ښکار د حلت لپاره د هغه زخمي کول او خوړول شرط دي، لېکن که يوه معنیٰ مراد کړل سي نو د بلي معنیٰ د مرادېدلو احتمال باقي پاتيږي، لهذا دواړې به مرادول کيږي چي پر يقين عمل وسي.

وعن أبي يوسف إلخ: فرمايي چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله جَوَارِح د كَوَاسِب پر معنیٰ حمل کوي او پر دې بناء د زخمي کولو له شرط څخه انکار کوي چي د سپي وغيره زخمي کول ضروري نه دي، بلکي له دې څخه بغير هم ښکار حلاليږي، خو زموږ جواب هاغه دی کوم چي اوس بيان سو چي په دې صورت کي د بلي معنیٰ (زخمي کولو) احتمال باقي پاتيږي، نو ځکه دواړې معناوي به مرادول کيږي او د ښکار د حلال کېدلو لپاره به زخمي کول ضروري وي.

## که ښکاري حيوان له ښکار څخه څه وخوري نو څه حکم دی؟

قَالَ: فَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ الْكَلْبُ أَوِ الْفَهْدُ فرمايي: بيا که له ښکار څه سپی يا پړانګ خوراک وکړي لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه ښکار به نه خوړل کيږي وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ الْبَازِيْ او که له هغه څخه باز خوراک کړي أُكِلَ نو هغه به خوړل کيږي وَالْفَرْقُ مَا بَيَّنَّاهُ فِي دَلَالَةِ التَّعْلِيْمِ او فرق هغه دی کوم چي موږ د تعليم په دلالت کي بيان کړی [يعني التعليم في الكلب بترك الأكل وفي البازي بالإجابة وأن التعليم شرط فيما يصاد به من الجوارح لقوله تعالى "وما علمتم من الجوارح"] وَهُوَ مُؤَيَّدٌ بِمَا رَوَيْنَا مِنْ حَدِيْثِ عَدِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ او دا په هغه حديث سره تائيد سوي دي کوم چي موږ له حضرت عدي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روايت کړی دی وَهُوَ حُجَّةٌ عَلَى مَالِكٍ او

هغه د امام مالک او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په خلاف حجت دی وَالشَّافِعِيِّ فِي قَوْلِهِ الْقَدِيمِ فِي إِبَاحَةِ مَا أَكَلَ الْكَلْبُ مِنْهُ او د امام شافعي په خلاف هم د ده د مخکيني قول په هکله حجت دی د هغه ښکار په روا ګرځولو کي چي له هغه څخه سپي خوراک کړی وي وَلَوْ أَنَّهُ صَادَ صُيُودًا وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهَا او که سپی څو ښکاره کړي وي او له هغوی څخه يې خوراک نه وي کړی ثُمَّ أَكَلَ مِنْ صَيْدٍ بيا له يوه ښکار څخه خوراک وکړي لَا يُؤْكَلُ هٰذَا الصَّيْدُ نو دغه ښکار به نه خوړل کيږي لِأَنَّهُ عَلَامَةُ الْجَهْلِ ځکه چي دا د جهالت [عدم تعليم] نښه ده وَلَا مَا يَصِيدُهُ بَعْدَهُ او نه به يې هغه ښکار خوړل کيږي کوم چي يې تر دې وروسته ښکاروي حَتّٰى يَصِيرَ مُعَلَّمًا عَلَى اخْتِلَافِ الرِّوَايَاتِ تر دې چي هغه بيرته تعليم يافته وګرځي د رواياتو د اختلاف مطابق كَمَا بَيَّنَّاهَا فِي الِابْتِدَاءِ لکه څرنګه چي په شروع کي مو ړ دا بيان کړه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که سپی يا پړانګ له ښکار څخه خوراک وکړي، نو بيا د هغه ښکار خوړل جائز نه دي او که باز له ښکار څخه خوراک وکړي، نو د هغه خوړل جائز دي. چي د دې تفصيلي بيان مخکي تېر سوی دی او د حضرت عدی بن حاتم طائي رضي الله عنه په حديث سره د دې تائيد کيږي. د امام مالک رَحِمَهُ الله قول او د امام شافعي رَحِمَهُ الله مخکينی قول دا دی چي که سپی له ښکار څخه خوراک وکړي، نو د هغه ښکار خوړل روا دي، خو د دوی په خلاف د حضرت عدي رضي الله عنه حديث حجت دی چي په هغه کي صراحتاً ذکر سوي دي "وَإِنْ أَكَلَ مِنْهُ فَلَا تَأْكُلْ".

**ولوأنه صاد إلخ:** فرمايي که يو سپي څو ښکاره نيولي وُه او له هغوی څخه يې خوراک نه وو کړی چي په دې سره دا ثابته او معلومه سوه چي دغه سپی تعليم يافته (مُعلم) سو. خو تر دې وروسته هغه يو ښکار ونيوی او له هغه څخه يې خوراک وکړی، نو دا ښکار به يې نه خوړل کيږي. همدارنګه تر څو چي ده ته بيرته تعليم نه ورکول سي، تر هغه وخته به د ده نيول سوی ښکار نه خوړل کيږي؛ ځکه د ښکار خوړلو په وجه دا سپی غير مُعلم وګرځېدي، او د غيرِ مُعلم سپي ښکار نه خوړل کيږي.

**على اختلاف الروايات:** په دې سره د مام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمُ الله د قول و طرف ته اشاره سوې ده. يعني د سپي د مُعلم کېدلو لپاره د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز درې واره د هغه عدمِ أكل شرط دی. او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دا د مبتلیٰ به پر رايه موقوف دي. (احسن الهدايه)

وَأَمَّا الضُّيُوْدُ الَّتِيْ أَخَذَهَا مِنْ قَبْلُ او پاته سوه هغه ښکارونه کوم چي ده مخکي نيولي وي فَمَا أُكِلَ مِنْهَا نو کوم ښکارونه چي مالک له هغوی څخه خوړلي وي لَا تَظْهَرُ الْحُرْمَةُ فِيْهِ په هغوی کي حرمت نه ښکاره کيږي لِانْعِدَامِ الْمَحَلِّيَّةِ د محل والي د معدوم کېدو په وجه وَمَا لَيْسَ بِمُحْرَزٍ او کوم ښکارونه چي [د مالک له طرفه] خوندي کړل سوي نه وي بِأَنْ كَانَ فِي الْمَفَازَةِ بِأَنْ لَمْ يَظْفَرْ صَاحِبُهُ بَعْدُ په دې توګه چي هغوی په دښت [بيابان] کي وي او تر اوسه مالک [د هغوی پر موندلو] بريالی سوی نه وي تَثْبُتِ الْحُرْمَةِ فِيْهِ بِالْاِتِّفَاقِ نو په هغوی کي بالاتفاق حرمت ثابتيږي وَمَا هُوَ مُحْرَزٌ فِيْ بَيْتِهِ او کوم ښکارونه چي د ده په کور کي خوندي کړل سوي وي يَحْرُمُ عِنْدَهُ ۞ نو هغوی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز حراميږي خِلَافًا لَهُمَا په خلاف د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله.

**اللغات:** ﴿المفازة﴾ دښت، بيابان.

**تشريح:** فرمايي د هغه ښکارونو (ښکاريانو وغيره) حکم څه دی کوم چي دغه سپي مخکي نيولي او ښکار کړي دي؟، نو فرمايي چي د هغوی درې قسمونه دي:

①... هغه ښکارونه کوم چي مالک وغيره خوړلي وي.

②... هغه کوم چي يو ځای په دښت او بيابان کي پراته وي او تر اوسه د مالک لاس ته نه وي راغلي.

③... هغه کوم چي تر اوسه په کور کي موجود پاته وي او خوړل سوي نه وي.

دا درې قسمونه دي چي له دوی څخه په اول قسم کي د حُرمت حکم نه ښکاره کيږي؛ ځکه چي محليّت (محل والی) معدوم دی ځکه کله چي مالک ښکار وخوري نو ښکاره خبره ده چي هغه اوس د حُرمت محل پاته نه سو چي حرمت پکښې ثابت سي، هغه به مالک اوس وختي لا هضم کړی وي. او پاته سو دويم قسم بالاتفاق حرام دی.

او دريم قسم مختلف فيه دی، امام صاحب رَحِمَهُ الله هغه هم ناجائز ګرځوي خو د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هغه حلال دی. په را روان عبارت کي به د دوی دلائل ذکر سي.

---

۞ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، قال صاحب العناية: ما قال أبو حنيفة أقرب إلى الاحتياط وعليه مبنى الحل والحرمة (العناية ج:۹، ص:۵۰). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۲۱]

## د صاحبينو دليل

هُمَا يَقُوْلَانِ: إِنَّ الْأَكْلَ لَيْسَ يَدُلُّ عَلَى الْجَهْلِ فِيمَا تَقَدَّمَ صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي [د سپي دغه] خوړل په مخکينيو ښکارنو کي [د سپي] پر جهالت [عدم تعليم] دلالت نه کوي لِأَنَّ الْحِرْفَةَ قَدْ تُنْسَى ځکه چي پېشه ځيني وخت هيرېږي وَلِأَنَّ فِيمَا أَحْرَزَهُ قَدْ أَمْضَى الْحُكْمُ فِيهِ بِالِاجْتِهَادِ او ځکه کوم ښکار چي مالک خوندي کړی دی په هغه کي په اجتهاد سره [د حلت] حکم نافذ سوی دی فَلَا يَنْتَقِضُ بِاجْتِهَادٍ مِثْلِهِ لهذا د هغه په څېر بل اجتهاد سره به هغه حکم نه ماتيږي لِأَنَّ الْمَقْصُودَ قَدْ حَصَلَ بِالْأَوَّلِ ځکه چي مقصود په اول اجتهاد سره حاصل سوی دی بِخِلَافِ غَيْرِ الْمُحْرَزِ په خلاف د نا خوندي کړل سوي ښکار لِأَنَّهُ مَا حَصَلَ الْمَقْصُودُ مِنْ كُلِّ وَجْهٍ ځکه چي من کل وجه [په هر اعتبار سره] [د ښکار] مقصود نه دی حاصل سوی لِبَقَائِهِ صَيْدًا مِنْ وَجْهٍ لِعَدَمِ الْإِحْرَازِ ځکه د نا خوندي کېدلو په وجه هغه من وجه [په يوه اعتبار سره] ښکار پاته دی فَحَرَّمْنَاهُ احْتِيَاطًا نو ځکه احتياطاً موږ هغه حرام گرځولی دی وَلَهُ: أَنَّهُ آيَةُ جَهْلِهِ مِنَ الِابْتِدَاءِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي دا [يعني د دې سپي خوړل] له شروع څخه د هغه د جهالت [عدم تعليم] نښه ده لِأَنَّ الْحِرْفَةَ لَا تُنْسَى أَصْلُهَا ځکه چي د پېشې اصل نه هيريږي [وأصل هذه الحرفة ترك الأكل] فَإِذَا أَكَلَ لهذا کله چي دغه سپي خوراک وکړی تَبَيَّنَ أَنَّهُ كَانَ تَرَكَ الْأَكْلَ لِلشِّبَعِ لَا لِلْعِلْمِ نو څرگنده سوه چي هغه موږ تيا له کبله خوړل [خوراک] پرې ايښی وو، نه د علم [تعليم] په وجه وَتَبَدُّلُ الِاجْتِهَادِ قَبْلَ حُصُولِ الْمَقْصُودِ او د اجتهاد بدلېدل [دلته] له مقصود حاصلېدلو څخه مخکي دي لِأَنَّهُ بِالْأَكْلِ ځکه چي هغه [يعني د مقصود حاصلېدل] په خوړلو سره دي [يعني د ښکار مقصود په خوړلو سره حاصليږي] فَصَارَ كَتَبَدُّلِ اجْتِهَادِ الْقَاضِي قَبْلَ الْقَضَاءِ نو داسي سو لکه د قضاوت [فيصلې] کولو څخه مخکې د قاضي اجتهاد بدلېدل.

**اللغات:** ﴿الحِرْفَة﴾ پېشه، کسب. ﴿قضاء﴾ قضاوت، حکم او فيصله کول.

**تشريح:** په مخکيني عبارت کي ذکر سوه چي هغه ښکارونه کوم چي تر اوسه په کور کي موجود پاته وي او خوړل سوي نه وي، هغوی د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نز[د] ... [illegible]

الله په نيز حلال دی. دلته د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل ذکر کوي. چې د هغه حاصل دا دی چې ځيني وخت حرفت او مهارت له ذهن شخه ووځي او هېره واقع سي لکه دانسان شخه چې يو شی هېر سي. لهذا دغه سپي چې يو وار ښکار خوړلی دی. هغه د دې خبري دليل نه سي کېدلای چې کوم ښکارونه ده مخکي نيولي دي. نو په هغوی کي به هم جاهل (نا تعليم يافته) وو. نو ځکه د ده نيول سوي کوم ښکارونه چې مالک في الحاله په کور کي خوندي کړي دي. هغوی حلال دي.

او بل دليل دا دی چې يو اجتهاد په بل اجتهاد سره نه ساقطيږي يعني مالک چې کوم ښکارونه خوندي کړي دي. په هغوی کي اول کي د حلت حکم جاري سوی وو (په دې اجتهاد سره چې دغه سپي درې واره ښکار نه دی خوړلی لهذا هغه مُعلم [تعليم يافته] دی او د مُعلم سپي ښکار حلال دی). نو اوس په بل اجتهاد سره هغه د حلت حکم نه ختميږي او د حرمت حکم نه پکښي جاري کيږي (مثلاً په دې اجتهاد سره چې دغه سپي چې درې واره ښکار نه دی خوړلی هغه يې د موړتيا [شبع] په وجه نه دی خوړلی. نه د تعليم يافته کېدو وجه. نو هغه مُعلم نه دی لهذا د هغه ښکارونه حلال نه سوه. نو فرمايي چې په داسي اجتهاد سره هغه اول اجتهاد نه باطليږي)؛ ځکه چې مقصود شی هغه احراز (خوندي کول) دي او دا مقصود په اول اجتهاد سره حاصل سوی دی. او پاته سو غير محرز (نا خوندي کړل سوي) يعني هغه ښکارونه کوم چې لاس ته نه دي راوړل سوي بلکي په دښت وغيره کي يو ځای پراته پاته دي، نو د غير محرز کېدلو په وجه په هغوی کي مقصود نه حاصليږي. نو ځکه احتياطاً (د حرمت جانب ته د ترجيح ورکولو په وجه) هغوی حرام گرځول سوي دي.

ولـه إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چې کله دغه سپي خوراک وکړي، نو دا دليل د دې خبر دی چې هغه له شروع شخه جاهل (بې تعليمه) دی؛ ځکه چې د زده سوي حرفت او مهارت اصل نه هيريږي ځکه کله چې سپي ته د ښکار تعليم ورکول سي او په دې باره کي هغه پوخ سي. نو بيا د همېشه لپاره ښکار نيول او نه خوړل د هغه فطرت وگرځي. لهذا تر دې وروسته د هغه خوړل د دې خبري دليل دی چې مخکي کوم ښکارونه چې دغه سپي نه دي خوړلی هغه د تعليم په وجه نه وه بلکي د موړتيا په وجه وه. نور دئ هغسي جاهل او غير مُعلم دی. لهذا د ده نيول سوي ټوله ښکارونه به حرام او نا روا وي. برابره ده هغوی محرز وي او که غير محرز وي؛ ځکه چې حرفت او د تعليم اصل بيا نه هيريږي، نو د ده خوړل به پر هېره او شدت جُوع نه بلکي پُر جهالت او عدم تعليم حمل کيږي.

وتبدل الاجتهاد إلخ: صاحبينو رَحِمَهُمَا الله چې کوم د اجتهاد ساقطېدلو خبره کړې ده. په دې سره د هغه جواب ورکوي، حاصل يې دا دی چې ستاسي دا خبره صحيح نه ده (چې يو اجتهاد په بل اجتهاد سره نه ساقطيږي)؛ ځکه تاسي احراز مقصود گرځولی دی او پر دې بناء مو دا خبره کړې ده. حال دا چې د

ښکار مقصود احراز نه، بلکي اکل (د ښکار خوړل) دي کوم چي تر اوسه نه دي حاصل سوي. او له اکل څخه مخکي که اجتهاد بدل سي، نو دا صحیح او جائز دي او په دې سره تر هغه د مخکي والا اجتهاد حکم ساقطيږي، لهذا دلته د عدمِ تعلیم او جهالت په وجه هغه مخکینی اجتهاد ساقطيږي او په محرز ښکار کي هم حرمت ثابتيږي. د دې مثال داسي دی لکه قاضي چي د يوې دعوې او مسئلې په هکله اجتهاد وکړي او په اجتهاد سره هغه يو نتيجې ته ورسيږي، لېکن بيا له حکم او فيصلې کولو څخه مخکي د هغه اجتهاد بدل سي او په ذهن کي يې يو بل حکم او فيصله راسي، نو اول اجتهاد او په هغه سره ثابتېدونکی حکم ساقطيږي او دا بل اجتهاد يې ځای نيسي، نو همداسي دلته به هم اول اجتهاد ساقطيږي او پر بل اجتهاد به عمل کيږي.

## د تښتېدونکي ښکاري حیوان حکم

وَلَوْ أَنَّ صَقْرًا فَرَّ مِنْ صَاحِبِهِ او که چیري یوه باښه له خپل مالک څخه وتښتي فَمَكَثَ حِينًا ثُمَّ صَادَ او څه وخت ودريږي بيا ښکار وکړي [یعني تر تښتېدلو څه وخت وروسته ښکار وکړي] لَا يُؤْكَلُ صَيْدُهُ نو د هغې ښکار به نه خوړل کيږي لِأَنَّهُ تَرَكَ مَا صَارَ بِهِ عَالِمًا ځکه چي دغه باښې خپل هغه کار پرېښووی چي د هغه په وجه تعليم يافته ګرځېدلې وه [چي هغه د خپل مالک پر بلنه واپس راتلل او نه تښتېدل دي] فَيُحْكَمُ بِجَهْلِهِ نو ځکه د هغې د جاهل کېدلو فيصله به کيږي كَالْكَلْبِ إِذَا أَكَلَ مِنَ الصَّيْدِ لکه سپی چي کله له ښکار څخه خوراک وکړي.

**اللغات:** ﴿صقر﴾ باښه، يو ښکاري مرغه دی، ﴿فرّ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: تښتېدل. ﴿مكث﴾ د نصر د باب ماضي ده: درنګ او توقف کول، درېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که يو باز يا باښه د خپل مالک د لاس څخه والوزي وتښتي او مالک چي هر څومره هغه ته آواز وکړي، هغه هيڅ سر نه خلاصوي او نژدې نه راځي. بيا څه وخت وروسته هغه يو ښکار وکړي، نو حکم دا دی چي د هغه ښکار به نه خوړل کيږي؛ ځکه چي هغه جاهل يعني غيرِ مُعلَم (بې تعليمه) باز او باښه ده او د غيرِ مُعلَم ښکار حلال نه دی. ځکه د باز او باښې د تعليم يافته کېدلو علامت دا دی چي د مالک پر بلنه واپس راځي، لېکن دغه باز او باښې داسي نه وکړه. لهذا هغه به غيرِ مُعلَم ګرځول کيږي او ښکار به يې حرام وي. لکه يو مُعلَم سپی چي له ښکار څخه خوراک وکړي، نو هغه هم غيرِ مُعلَم ګرځول کيږي او ښکار يې حراميږي.

## سپی که صرف د ښکار وينه وچيښي نو څه حکم دی؟

وَلَوْشَرِبَ الْكَلْبُ مِنْ دَمِ الصَّيْدِ او که سپی د ښکار وينه وچيښي وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ او له ښکار څخه خوراک نه وکړي [يعني غوښه وغيره يې نه وخوري] أُكِلَ نو دا ښکار به خوړل کيږي لِأَنَّهُ مُمْسِكٌ لِلصَّيْدِ عَلَيْهِ ځکه چې هغه د خپل مالک لپاره د ښکار راګرځونکی [ساتونکی] دی وَهٰذَا مِنْ غَايَةِ عِلْمِهِ او دا د سپي د انتهايي علم [او بشپړ تعليم] نښه ده حَيْثُ شَرِبَ مَا لَا يَصْلُحُ لِصَاحِبِهِ چې ده هغه څه وچيښل کوم چې د ده د مالک لپاره وړ [او صحيح] نه دي وَأَمْسَكَ عَلَيْهِ مَا يَصْلُحُ لَهُ او هغه څه يې د مالک لپاره راوګرځول کوم چې د مالک لپاره وړ دي.

**اللغات**: ﴿مُمْسِک﴾ د افعال د باب فاعل دی، أَمْسَكَ يُمْسِكُ إِمْسَاكًا: نيول، راګرځول. ﴿يصلح﴾ د کرم د باب مضارع ده: صلاحيت (وړتيا) لرل، وړ کېدل (قابل کېدل).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که تعليم يافته سپی (تازي) يو ښکار وکړي او د هغه وينه وچيښي خو د هغه په غوښه وغيره هيڅ لاس نه ووهي، نو حکم يې دا دی چې د هغه دغه ښکار حلال او پاک دی؛ ځکه سپي چې کوم څه چيښلي دي يعني وينه، هغه د مالک د کار شی نه ده (په هيڅ کار نه ورځي) او کوم چې د مالک د کار شی دی يعني غوښه وغيره، هغه ته سپي خوله نه ده ور وړې، نو دا خو نور د هغه د کامل تعليم او مهارت نښه ده چې کوم شی د مالک لپاره حلال دی هغه يې پرې ايښی دی او کوم چې د مالک لپاره حرام دی هغه يې چيښلی دی.

## که مالک له ښکار څخه ښکاري سپي (تازي) ته څه ورکړي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ أَخَذَ الصَّيْدَ مِنَ الْمُعَلَّمِ او که مالک [ښکاري] له خپل تعليم يافته سپي څخه ښکار واخلي ثُمَّ قَطَعَ مِنْهُ قِطْعَةً وَأَلْقَاهَا إِلَيْهِ بيا له هغه ښکار څخه يوه ټوټه پرېکړي او سپي ته يې وغورځوي فَأَكَلَهَا او سپی هغه وخوري يُؤْكَلُ مَا بَقِيَ نو پاته ښکار به خوړل کيږي لِأَنَّهُ لَمْ يَبْقَ صَيْدًا ځکه چې [د مالک د خوندي کولو په وجه] هغه اوس ښکار پاته نه سو فَصَارَ كَمَا إِذَا أَلْقَى إِلَيْهِ طَعَامًا غَيْرَهُ نو داسې سو لکه مالک چې هغه ته له ښکار څخه بغير بل خوراک وغورځوي وَكَذَا إِذَا وَثَبَ الْكَلْبُ فَأَخَذَهُ مِنْهُ وَأَكَلَ مِنْهُ او همدارنګه کله چې سپی حمله وکړي او له مالک څخه ښکار واخلي او له هغه څخه خوارک وکړي [نو هم به پاته ښکار خوړل کيږي] لِأَنَّهُ مَا أَكَلَ مِنَ الصَّيْدِ ځکه

چي سپي له ښکار څخه خوراک نه دی کړی وَالشَّرْطُ تَرْكُ الْأَكْلِ مِنَ الصَّيْدِ او شرط د ښکار خوړل پرېښوول دي فَصَارَ كَمَا إِذَا افْتَرَسَ شَاتَهُ نو داسې سو لکه سپی چي د مالک پسه څیري کړي [او يې خوري] بِخِلَافِ مَا إِذَا فَعَلَ ذٰلِكَ قَبْلَ أَنْ يُحْرِزَهُ الْمَالِكُ په خلاف د هغه صورت کله چي سپی داسي حرکت وکړي مخکي تر دې چي مالک هغه [ښکار] خوندي کړي [یعني د مالک له خوندي کولو څخه مخکي سپی له ښکار څخه خوراک وکړي، نو پاته ښکار به نه خوړل کیږي] لِأَنَّهُ بَقِيَتْ فِيهِ جِهَةُ الصَّيْدِيَّةِ ځکه چي [تر خوندي کولو مخکي] په هغه کي د ښکار والي اړخ پاته دی.

**اللغات:** ﴿وثب﴾ د ضرب د باب ماضي ده: راغورځېدل، ټوپ وهل، برید او حمله کول. ﴿افترس﴾ د افتعال د باب ماضي ده: سره څیرل، ﴿شاة﴾ مخکي څو ځله ذکر سوي دي چي د "شَاة" اطلاق پر پسه، بزې وغیره ټولو باندي کیږي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کله سپی ښکار ونیسي او هیڅ خوراک نه څني وکړي بلکي سیده یې راوړي او خپل مالک ته یې وسپاري نو هغه حلال دی (لکه مخکي چي ذکر سوه)، بیا تر دې وروسته که مالک له دغه ښکار څخه یوه ټوټه پرېکړي او سپي ته یې ورکړي او هغه یې وخوري، نو په دې سره د ښکار پر حلت هیڅ اغیز نه پرېوځي؛ ځکه چي اوس هغه ښکار نه دی، ځکه کله چي سپي دا ښکار مالک ته حواله کړی او مالک واخیستی، نو د سپي وظیفه ختم سوه او د مالک د اخیستلو په وجه دا ښکار د ښکار له ټولي څخه ووتی، نو سپي ته د دې ښکار ټوټه ورکول داسي دي لکه مالک چي له دې ښکار څخه بغیر بل شی ورکړي او هغه یې وخوري.

وروسته فرمايي که په دې حالت کي سپی خپله د مالک د لاس څخه ښکار حمله کړي او څه څني وخوري، نو بیا هم پاته ښکار حلال دی؛ ځکه چي اوس هغه ښکار نه دی، او شرط دا دي چي سپی به له ښکار څخه خوراک نه کوي او دغه سپي هم له ښکار څخه خوراک نه دی کړی بلکي د مالک په لاس کي چي کوم شی محرز او خوندي سوی وو، هغه یې خوړلی دی، لهذا څرنګه چي د مالک د لاس بل شی خوړل د ښکار پر حلت هیڅ اثر نه کوي، همداسي د مذکوره محرز ښکار خوړل هم د ما بقي ښکار پر حلت او اباحت هیڅ اثر نه کوي، او لکه څرنګه چي که ښکاري سپی د مالک پر یو پسه حمله وکړي او ویې خوري، نو دا د هغه د جهالت او عدمِ تعلیم نښه نه سي کېدلای. همداسي د مالک په لاس کي د موجوده ښکار خوړل به هم د هغه د جهالت او عدمِ تعلیم نښه نه وي او ما بقي ښکار به حلال پاته وي.

بخلاف إلخ: يعني که مخکي تر دې چې مالک ته ښکار وسپاري او مالک يې خوندي کړي سپی له هغه ځخه خوراک وکړي، نو اوس ما بقي ښکار حلال نه دی؛ ځکه چې د مالک تر احراز او خوندي کولو مخکي هغه ښکار پاته دی، نو په دې حالت کي د سپي خوړل داسې دي لکه د ښکار کولو په حالت کي ښکار خوړل. او د ښکار کولو په حالت کي که سپی له ښکار ځخه خوراک وکړي، نو هغه حلال نه پاتيږي، لهذا مذکوره ښکار به هم حلال نه وي.

## د ښکار د حرامېدلو يو ځانګړې صورت

> وَلَوْنَهَسَ الصَّيْدَ او که سپی ښکار وچيچي [خوله په جګه کړي] فَقَطَعَ مِنْهُ بِضْعَةً فَأَكَلَهَا نو له هغه ځخه يوه ټوټه پرېکړي او هغه وخوري ثُمَّ أَدْرَكَ الصَّيْدَ فَقَتَلَهُ بيا ښکار ونيسي او هغه قتل کړي وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ او له ښکار ځخه خوراک نه وکړي لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه ښکار به نه خوړل کيږي. لِأَنَّهُ صَيْدُ كَلْبٍ جَاهِلٍ ځکه چې دا د جاهل [نا تعليم يافته] سپي ښکار دی حَيْثُ أَكَلَ مِنَ الصَّيْدِ ځکه چې هغه له ښکار ځخه خوراک کړی دی.

**اللغات**: ﴿نهس﴾ د فتح د باب ماضي ده: چيچيل او داړل، غوښه وغيره د مخ په غاښو سره نيول او راجلا کول (د خوړلو لپاره)، ﴿بضعة﴾ حصه او ټوټه، ټوکړه، ﴿أدرک﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب يوه معنیٰ ده: رسېدل او نيول.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي کله مالک خپل سپی پر ښکار ور ايله کړي او هغه پر ښکار حمله وکړي او خوله په ولګوي چي په دې سره د ښکار يوه ټوټه غوښه را جلا سي او دا سپی په هغه اخته سي او ويې خوري، بيا له خوراک ځخه تر فارغېدلو وروسته په ښکار پسې سي او هغه ونيسي قتل يې کړي او په دې وار څه نه ځني وخوري، نو دا ښکار به نه خوړل کيږي؛ ځکه کله چي دغه سپی د ښکار د ټوټې په خوړلو اخته سو او ښکار يې پرېښودی، نو معلومه سوه چي دا جاهل او غير مُعلَم سپی دی، او د جاهل سپي نيول سوی او قتل سوی ښکار حلال نه دی.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

> وَلَوْ أَلْقَى مَانَهَسَهُ او که سپی هغه ټوټه وغورځوي کوم چي يې چيچلې [را جلا کړې] وي وَاتَّبَعَ الصَّيْدَ فَقَتَلَهُ او په ښکار پسې سي او قتل يې کړي وَلَمْ يَأْكُلْ مِنْهُ او له ښکار ځخه خوراک نه وکړي وَأَخَذَهُ صَاحِبُهُ او ښکار د هغه مالک واخلي ثُمَّ مَرَّ بِتِلْكَ الْبِضْعَةِ فَأَكَلَهَا بيا سپی د هغه

[غورځول سوي] ټوټې سره تېر سي او ويې خوري يُؤْكَلُ الصَّيْدُ نو دا ښکار به خوړل کيږي لِأَنَّهُ لَوْ أَكَلَ مِنْ نَفْسِ الصَّيْدِ فِي هٰذِهِ الْحَالَةِ ځکه که سپی په دې حالت کي [يعني کله چي مالک ښکار واخلي] له خپلوي ښکار څخه خوراک وکړي لَمْ يَضُرَّهُ نو هم دا ښکار ته نقصان نه کوي فَإِذَا أَكَلَ مَا بَانَ مِنْهُ وَهُوَ لَا يَحِلُّ لِصَاحِبِهِ نو کله چي سپی له ښکار څخه جلا سوې ټوټه وخوري چي هغه د ده د مالک لپاره حلاله نه ده أَوْلَىٰ نو دا به په درجه اولیٰ [ښکار ته نقصان نه کوي] بِخِلَافِ الْوَجْهِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت لِأَنَّهُ أَكَلَ فِي حَالَةِ الْاِصْطِيَادِ ځکه چي [هلته] سپي د ښکار کولو په حالت کي خوراک کړی دی فَكَانَ جَاهِلًا مُمْسِكًا لِنَفْسِهِ نو ځکه هغه به جاهل [غير مُعلم] او د ځان لپاره [د ښکار] راګرځونکی وي وَلِأَنَّ نَهْسَ الْبِضْعَةِ قَدْ يَكُونُ لِيَأْكُلَهَا او ځکه چي د ټوټې چيچل [راجلا کول] کله د دې لپاره کيږي چي سپی يې وخوري وَقَدْ يَكُونُ حِيلَةً فِي الْاِصْطِيَادِ او کله د حيلې لپاره وي په ښکار نيولو کي لِيَضْعُفَ بِقَطْعِ الْقِطْعَةِ مِنْهُ فَيُدْرِكَهُ چي د ټوټې پرېکولو په وجه ښکار کمزوری سي نو سپی هغه ونيسي فَالْأَكْلُ قَبْلَ الْأَخْذِ يَدُلُّ عَلَى الْوَجْهِ الْأَوَّلِ نو [د مالک] له اخيستلو څخه مخکي خوړل پر اول صورت [النهس للأكل] باندي دلالت کوي وَبَعْدَهُ عَلَى الْوَجْهِ الثَّانِي او [د مالک] تر اخيستلو وروسته پر دويم صورت [النهس للحيلة فى الاصطياد] باندي دلالت کوي [يعني کله چي مالک ښکار واخلي او خوندي يې کړي بيا سپی هغه را جلا کړې ټوټه وخوري، نو دا پر دې دلالت کوي چي سپي د ښکار د کمزوري کولو او نيولو د حيلې لپاره هغه ټوټه ځني را جلا کړې وه. نه د خوړلو لپاره] فَلَا يَدُلُّ عَلَى جَهْلِهِ نو ځکه دا [بعد الأخذ خوړل] به د سپي پر جهالت دلالت نه کوي.

**اللغات:** ﴿نهس﴾ د تېر عبارت په لغاتو کي د دې وضاحت وسو. ﴿بَانَ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جلا کېدل، عليحده کېدل. ﴿حيلة﴾ چل او تدبير، طريقه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که سپی له ښکار څخه ټوټه راجلا کړي پر هغه ځای يې وغورځوي او په ښکار پسې سي او هغه ونيسي او قتل يې کړي، نو اوس د هغه دا ښکار حلال دی او خوړل يې روا دي، که څه هم د مالک له ښکار اخيستلو څخه وروسته سپي هغه ټوټه واخلي او ويې خوري، نو بيا هم حلال دی، ځکه کله چي ښکار د مالک لاس ته راغلی، نو اوس هغه ښکار پاته نه سو، همدا وجه ده که په دغه حالت کي سپی له مالک څخه ښکار حمله کړي او خوراک ځني وکړي،

نو هم ښکار حلال پاتېږي، لهذا کله چي سپی هغه ټوټه وخوري کوم چي د مالک لپاره حلاله نه ده، نو په دې صورت کي خو به په درجه اولیٰ ښکار حلال وي.

بخلاف الوجه الخ: د دې په خلاف په اول صورت کي ښکار ځکه حرام ګرځول سوی دی چي هلته سپي د ښکار کولو په حالت کي هغه ټوټه خوړلې ده، نو د داسي حرکت په وجه سپی جاهل او د خپل ځان لپاره د ښکار راګرځونکی وشمېرل سو، او ښکاره ده چي کله په سپي کي د تعليم صفت ختم سي، نو بيا د هغه ښکار حلال نه پاتېږي.

ولأن نهس الخ: د دې دليل حاصل دا دی چي له ښکار څخه ټوټه را جلا کول کله د خوړلو لپاره کيږي او کله د ښکار د کمزوري کولو او په آساني سره د هغه د نيولو لپاره، اوس که اول صورت وي يعني سپي ټوټه راجلا کړي او د هغه په خوړلو اخته سي، نو دا علامت د دې خبري دی چي سپي د خپل ځان لپاره ښکار کړی دی، نو ځکه دا ښکار حرام ګرځي، او که دويم صورت وي يعني سپی د ټوټې له راجلا کولو څخه وروسته په ښکار پسې سي او هغه ونيسي خپل مالک ته يې وسپاري، نو دا دليل د دې خبري دی چي سپي د مالک لپاره ښکار کړی دی، نو ځکه د دې ښکار خوړل حلال او روا دي، بيا تر دې وروسته د سپي خوړل د هغه د جهالت او عدم تعليم دليل نه ګرځي. (احسن الهدايه)

## د ژوندي ښکار د نيولو يا د هغه د مړ کېدلو حکم او تفصيل

قَالَ: وَإِنْ أَدْرَكَ الْمُرْسِلُ الصَّيْدَ حَيًّا فرمايي: او که ايله کونکی کس [يعني د سپي وغيره مالک] ښکار ژوندی ونيسي وَجَبَ عَلَيْهِ أَنْ يُذَكِّيَهُ نو پر هغه واجب دي چي دا ښکار ذبح [حلال] کړي وَإِنْ تَرَكَ تَذْكِيَتَهُ حَتَّى مَاتَ او که د دې ښکار ذبح کول پرېږدي تر دې چي هغه مړ سي لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه به نه خوړل کيږي وَكَذَا الْبَازِيُّ وَالسَّهْمُ او همداسي باز او غشی دی [يعني که مالک باز يا غشی پر ښکار ور ايله کړی وي او بيا ښکار ژوندی ونيسي، نو همدا حکم دی، صاحب د حاشيې وايي چي دغه جملې "وكذا البازی" ته ضرورت نسته، د تفصيل لپاره حاشيه وګورئ!] لِأَنَّهُ قَدَرَ عَلَى الْأَصْلِ ځکه چي مالک [مُرسِل] پر اصل [ذبح اختياري] باندي قادر سو قَبْلَ حُصُوْلِ الْمَقْصُوْدِ بِالْبَدَلِ مخکي تر دې چي د بدل [ذبح اضطراري] په ذريعه مقصود حاصل سي إِذِ الْمَقْصُوْدُ هُوَ الْإِبَاحَةُ ځکه چي مقصود د ښکار اباحت [روا کول] دي وَلَمْ تَثْبُتْ قَبْلَ مَوْتِهِ او د ښکار تر مرګ مخکي اباحت نه ثابتيږي فَبَطَلَ حُكْمُ الْبَدَلِ نو ځکه د بدل حکم به باطليږي وَهٰذَا إِذَا تَمَكَّنَ مِنْ ذَبْحِهِ او دا [حکم] په هغه وخت کي دی

کله چې مالک [مُرسل] د دې ښکار پر ذبح کولو قدرت لري [پر ذبح قادر وي] أَمَّا إِذَا وَقَعَ فِي يَدِهِ وَلَمْ يَتَمَكَّنْ مِنْ ذَبْحِهِ لېکن که ښکار د ده لاس ته ورسي او دئ د هغه پر ذبح کولو قدرت نه لري وَفِيهِ مِنَ الْحَيَاةِ فَوْقَ مَا يَكُونُ فِي الْمَذْبُوحِ او په ښکار کې له ذبح کړل سوي څاروي څخه زيات ژوند پاته وي لَمْ يُؤْكَلْ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ نو هغه به نه خوړل کيږي د ظاهر روايت مطابق وَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ وَأَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ يَحِلُّ او له شيخينو رَحِمَهُمَا الله څخه روايت دی چې هغه حلال دی [لهذا خوړل کيږي به] وَهُوَ قَوْلُ الشَّافِعِيِّ او همدا د امام شافعي رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّهُ لَمْ يَقْدِرْ عَلَى الْأَصْلِ ځکه چې مالک [مُرسل] پر اصل قادر نه دی فَصَارَ كَمَا إِذَا رَأَى الْمَاءَ وَلَمْ يَقْدِرْ عَلَى الِاسْتِعْمَالِ نو داسي سو لکه تيمم کونکی چې اوبه ووينې او د هغه پر استعمالولو قادر نه سي وَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّهُ قَدَرَ اعْتِبَارًا او د ظاهر روايت دليل دا دی چې هغه په اعتباري لحاظ سره [پر ذبح] قادر سو [په دې اعتبار چې ښکار د هغه لاس ته راغلی دی] لِأَنَّهُ ثَبَتَتْ يَدُهُ عَلَى الْمَذْبَحِ ځکه چې د ذبح کولو پر ځای د هغه قبضه ثابته سوه وَهُوَ قَائِمٌ مَقَامَ التَّمَكُّنِ مِنَ الذَّبْحِ او دا قبضه پر ذبح د قادر کېدلو قائم مقام ده إِذْ لَا يُمْكِنُ اعْتِبَارُهُ ځکه د تمکّن [يعني پر اصل ذبح د قادر کېدلو] اعتبار ممکن نه دی لِأَنَّهُ لَا بُدَّ لَهُ مِنْ مُدَّةٍ ځکه چې د هغه لپاره څه مودت ضروري دی [چې انسان څاروی پکښې ذبح کړي] وَالنَّاسُ يَتَفَاوَتُونَ فِيهَا او خلک په دې مودت کې متفاوت وي [څوک ژر ذبح کوي او څوک وخت په کښېباسي] عَلَى حَسَبِ تَفَاوُتِهِمْ فِي الْكِيَاسَةِ وَالْهِدَايَةِ فِي أَمْرِ الذَّبْحِ د ذبح د کار په هکله په مهارت او هدايت [تجربه لرلو] کې د خلکو د متفاوت کېدلو په اعتبار سره [يعني ځکه چې بعضي د ذبح په کار کې مهارت او تجربه لري ... نه لري] فَأُدِيرَ الْحُكْمُ عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ نو ځکه د حکم مدار به پر هغه وي کوم چې موږ ذکر کړي دي.

**اللغات:** ﴿يذكيه﴾ د تفعيل د باب مضارع ده: حلالول، ذبح کول. ﴿التمكّن﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: قدرت او استطاعت، قدرت لرل (قادر کېدل). ﴿الكِيَاسَة﴾ ځراکت، مهارت. ﴿هدايت﴾ لار موندنه. ﴿أُدير﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: دائر کېدل، مدار کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که مالک خپل تعليم يافته سپی يا باز وغيره پر ښکار ور وايله وکړي او هغه ښکار ونيسي، اوس که ښکار (څاروی) مړ سي، نو د هغه خوړل حلال دي او که ژوندی

پاته سي او د مالک ( مُرْسِل) لاس ته ورسيږي، نو بيا له ذبح کولو څخه بغير د هغه خوړل حلال نه دي بلکي د حلال کېدو لپاره د هغه ذبح کول ضروري دي: ځکه چي دلته اصل او بدل دواړه شيان سره جمع دي يعني د ښکاروي د غوښو په حلت کي اصل دا دی چي هغه په ذبح اختياري (شرعي طريقه) سره ذبح کړی سي او بيا وخوړل سي، او بدل دا دی چي د سپي او باز د ايله کولو په وخت کي بسم الله وويل سي او د هغوی په زخمي کولو (ذبح اضطراري) سره ښکاروی حلال کړل سي. او ښکاره ده چي چيري پر اصل قدرت وي، هلته د بدل حکم ساقطيږي. او په دې مسئله کي مالک (مُرسِل) د ژوندي ښکاروي په نيولو سره پر اصل يعني پر ذبح اختياري قدرت حاصل کړی دی: ځکه چي د ښکار مقصد اباحت (روايښت) دی او د ښکاروي له مرګ څخه مخکي روايښت نه ثابتيږي او څرنګه چي دلته ښکاروی ژوندی دی، نو ځکه اوس د هغه د روا کېدو لپاره د هغه ذبح کول ضروري دي: ځکه اصل (قاعده) دا ده "أنّ من حصل على الأصل قبل حصول المقصود بالبدل يرجع الحكم إلى الأصل". يعني کوم څوک چي د بدل په ذريعه د مقصود ترحاصلولو مخکي بيرته پر اصل قادر سي، نو د هغه په حق کي حکم بيرته د اصل وطرف ته راګرځي، نو همداسي په دې مسئله کي هم حکم د اصل يعني د ذبحِ اختياري وطرف ته راګرځي او بدون الذبح دا ښکار حلال او روا نه ګرځي

وهذا إلخ: فرمايي دغه حکم يعني چي بدون الذبح دا ښکار حلال نه دی. دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي مالک (مُرسِل) د ښکار پر ذبح قادر وي او د هغه سره چاړه وغيره موجود وي او په ذبح کي هيڅ خنډ نه وي، لېکن که په څه وجه مالک پر ذبح قدرت پيدا نه کړي، نو په دې صورت کي د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د ذبح حکم ساقطيږي او بغير له ذبح هم دا ښکار حلاليږي، امام شافعي رَحِمَهُ الله هم د دې قائل دی، ځکه کله چي دا کس پر ذبح قادر نه سو، نو ګواکي هغه بالکل پر اصل قادر نه سو. او ښکاره خبره ده چي کله پر اصل قدرت ترلاسه نه سي، نو مقصود به د بدل او نائب په ذريعه حاصلول کيږي او په صرف ذبح اضطراري سره به د ښکار حلت ثابتيږي. لکه تيمم کونکی چي کله اوبه ووينې خو د هغوی پر استعمالولو قادر نه وي، نو د هغه په حق کي هم حکم د اصل يعني د اوداسه وطرف ته عود نه کوي، بلکي هغه پر خپل تيمم باقي پاتيږي، همداسي دلته هم حکم د اصل يعني د ذبح اختياري وطرف ته عود نه کوي بلکي د هغه نائب ذبح اضطراري (يعني د ښکار زخمي کېدل) کفايت کوي.

د دې په خلاف د ظاهر روايت فيصله دا ده چي که په ښکار کي له ذبح کړل سوي ښکاروي څخه زيات ژوند پاته وي (يا په بله وينا دا چي ښکار مړ نه ښکاريږي بلکي څه ژوند پکښي احساسيږي)، نو بدون الذبح د هغه خوړل حلال نه دي. برابره ده مالک پر ذبح قادر وي او که نه وي: ځکه چي په حکمي او

اعتباري لحاظ سره دغه مالک ته پر ذبح قدرت حاصل سو، ځکه کله چي ښکار د مالک لاس ته راغلی، نو د ذبح محل د هغه لاس ته راغلی. لهذ محل د ذبح د هغه په لاس او قبضه کي دی. او دا محل د ذبح په قبضه کي راتلل پر ذبح د قادر کېدلو قائم مقام دي، ځکه چي دلته د حقيقي تمکن اعتبار کول يعني پر اصل ذبح د حقيقي قدرت لرلو اعتبار کول خو مشکله معامله ده؛ ځکه چي د هغه لپاره بيا يو مودت پکار دی. بيا به هغه مودت څومره وي دا هم درنه مسئله ده؛ ځکه چي د ذبح په هکله د مهارت او تجربې لرلو په اعتبار سره په خلکو کي تفاوت وي (څوک ژر ذبح کوي او بعضي د مهارت نه لرلو په وجه ډېر وخت په کښېباسي). نو ځکه صرف د مالک په لاس کي د ښکار راتلل به د قدرت علی الذبح قائم مقام ګرځول کيږي (يعني د تمکن او قدرت مدار پر دې دی چي د مالک په لاس او قبضه کي ښکار راسي).

او څرنګه چي په دې مسئله کي ښکار د مالک لاس ته راغلی دی، نو ځکه هغه به حکماً پر ذبح قادر شمېرل کيږي او بغير له ذبح به د هغه لپاره د مذکوره ښکار خوړل حلال نه وي.

## كه په ښكار كي د مذبوح څاروي غوندي د ژوند رمق پاته وي نو د هغه حكم او تفصيل

بِخِلَافِ مَا إِذَا بَقِيَ فِيهِ مِنَ الْحَيَاةِ مِثْلُ مَا يَبْقَى فِي الْمَذْبُوحِ په خلاف د هغه صورت کله چي په ښکار کي دومره ژوند پاته وي څومره چي په ذبح کړل سوي څاروي کي پاته وي لِأَنَّهُ مَيِّتٌ حُكْمًا ځکه چي د حکم په اعتبار سره هغه مړ دی أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ وَقَعَ فِي الْمَاءِ وَهُوَ بِهَذِهِ الْحَالَةِ آيا ته نه ګورې! چي که ښکار په اوبو کي ولويږي او هغه په دغه حالت سره وي لَمْ يَحْرُمْ نو نه حراميږي كَمَا إِذَا وَقَعَ وَهُوَ مَيِّتٌ لکه کله چي ښکار په اوبو کي ولويږي او هغه [حقيقتاً] مړ وي وَالْمَيِّتُ لَيْسَ بِمَذْبَحٍ او مړ څاروی محل د ذبح نه دی [چي ذبح کړی سي] وَفَصَّلَ بَعْضُهُمْ فِيهِ تَفْصِيلًا او ځينو په دې باره کي څه تفصيل کړی دی وَهُوَ أَنَّهُ إِنْ لَمْ يَتَمَكَّنْ لِفَقْدِ الْآلَةِ او هغه دا چي که ښکاري کس د آلې [چاړې وغيره] د نشتوالي په وجه پر ذبح قادر نه وي لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه به نه خوړل کيږي وَإِنْ لَمْ يَتَمَكَّنْ بِضِيقِ الْوَقْتِ او که د وخت د تنګوالي په وجه پر ذبح قادر نه وي لَمْ يُؤْكَلْ عِنْدَنَا خِلَافًا لِلشَّافِعِيِّ نو زموږ په نېز به نه خوړل کيږي په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله لِأَنَّهُ إِذَا وَقَعَ فِي يَدِهِ ځکه کله چي ښکار د ښکاري کس [مالک] په لاس کي واقع سو لَمْ يَبْقَ صَيْدًا نو هغه ښکار پاته نه سو فَبَطَلَ حُكْمُ ذَكَاةِ الِاضْطِرَارِ نو ځکه د ذبح اضطراري حکم باطل سو وَهَذَا إِذَا كَانَ يُتَوَهَّمُ بَقَاؤُهُ او دا [حکم] په هغه

صورت کې دی کله چې د ښکار د پاته کېدلو توهم وي أَمَّا إِذَا شَقَّ بَطْنَهُ وَأَخْرَجَ مَا فِيهِ ثُمَّ وَقَعَ فِي يَدِ صَاحِبِهِ لېکن که سپی د هغه نس څیري کړي او په نس کې موجوده څه [کولمې، لړی وغیره] راوباسي بیا د مالک په لاس کې واقع سي حَلَّ نو هغه حلال دی لِأَنَّ مَا بَقِيَ اضْطِرَابُ الْمَذْبُوحِ ځکه اوس چې کوم [ژوند پکښې] پاته دی هغه د ذبح کړل سوي څاروي [په څېر] ښوربښت دی فَلَا يُعْتَبَرُ نو ځکه هغه معتبر نه دی كَمَا إِذَا وَقَعَتْ شَاةٌ فِي الْمَاءِ بَعْدَ مَا ذُبِحَتْ لکه کله چې پسه تر ذبح کولو وروسته اوبو ته ولوېږي وَقِيلَ: هٰذَا قَوْلُهُمَا او ویل سوي دي: چې دا د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله قول دی أَمَّا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ ❀ فَلَا يُؤْكَلُ أَيْضًا لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز به دا [مشقوق البطن] ښکار هم نه خوړل کېږي لِأَنَّهُ وَقَعَ فِي يَدِهِ حَيًّا ځکه چې دا ښکار د مالک په لاس کې ژوندی واقع سوی دی فَلَا يَحِلُّ إِلَّا بِذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ نو ځکه هغه نه حلالېږي مګر په ذبح اختیاري سره رَدًّا إِلَى الْمُتَرَدِّيَةِ متردّیه څاروي ته په واپس کولو سره [یعني پر هغه څاروي په قیاس کولو سره کوم چې د لوړ ځایه را ایله سوی وي] عَلَى مَا نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى لکه څرنګه چې هغه به موږ ان شاء الله تعالیٰ [څه وروسته] ذکر کړو.

**اللغات:** ﴿مذبح﴾ داسم ظرف صیغه ده: د ذبح ځای، د ذبح محل، کوم چې ذبح کېدلای سي، ﴿فقد﴾ د ضرب د باب مصدر دی: نېستېدل، ورکېدل، ﴿لم يتمكن﴾ د تفعل د باب جحد صیغه ده: قدرت نه لرل، نه قادر کېدل، ﴿متردية﴾ هغه څاروی کوم چې د لوړ ځای څخه په رالوېدلو مړ سوی وي، مثلاً له بام څخه را ایله سي یا له غره څخه راګېل سي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که په ښکار کړل سوي څاروي کې فقط دومره ژوند پاته وي څومره چې په ذبح کړل سوي (مذبوح) څاروي کې محض د ژوند رمق پاته وي، نو دې ته ژوند نه ویل کېږي، بلکي دا د ښورېدلو په وجه د غوښو حرکت او غور ځلاو دی، نو د هغه د ذبح کولو ضرورت نسته: ځکه چې هغه مړ سوی دی. همدا وجه ده که ښکار په دې حالت کې اوبو ته ولوېږي او په هغه کې د مذبوح څاروي غوندي رمق پاته وي، نو هغه نه حرامېږي، یا لکه څرنګه چې بالکل مړ سوی ښکار یا مذبوح څاروی په اوبو کې ولوېږي، نو هغه نه حرامېږي، نو همداسې مذکوره ښکار هم

❀ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:٢، ص:٣٢٢]

حلال دي او هغه حکماً مړ شمېرل کيږي، او مړ څاروی د ذبح محل نه پاتيږي. نو ځکه په هغه کي هم د بلي ذبح ضرورت نسته. بس هغه ذبح اضطراري (زخمي کېدل) د هغه د حلال کېدلو لپاره کافي دي.

وفصّل بعضهم إلخ: ځيني مشايخو دا تفصيل بيان کړی دی چي که په ښکار کي دومره ژوند وي چي هغه د مذبوح څاروي له ژوند څخه زيات وي. نو اوس به دې ته کتل کيږي، چي ښکاري کس (مالک) په څه وجه پر ذبح قدرت نه لري، که چيري د چاړې وغيره د نشتوالي په وجه قادر نه وي، نو د دې ښکار خوړل حلال نه دي؛ ځکه قصور د ښکاري کس له طرفه دی چي هغه ولي د ځان سره چاړه نه ساتي؟، او که د قدرت نه لرلو سبب د وخت تنګي وي چي د ښکار ذبح کولو فرصت پيدا نه کړی سي، نو هم زموږ په نيز د هغه خوړل حلال نه دي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز هغه حلال دی او همدا استحسان دی او همدا د حسن بن زياد او محمد بن مقاتل رَحِمَهُمَا الله قول دی؛ د دوی دليل دا دی چي کله د وخت د تنګی په وجه پر اصل (ذبح اختياري) قادر نه سو، نو ذبح اضطراري خو موجوده ده کوم چي د حلت سبب ده.

زموږ دليل: دا دی چي کله ښکار د ښکاري لاس ته راغلی، نو اوس هغه ښکار پاته نه سو. لهذا اوس د ذبح اضطراري حکم باطل سو، ځکه ذبح اضطراري په صَيد کي جاري کيږي، نه په غير صَيد کي، حال دا چي اوس هغه غيرِ صيد دی. خو دا تفصيل او بغير له ذبح نه حلال کېدل هغه وخت دي کله چي د دې بيري توهم وي چي هغه ښکار د دې زخم سره ژوندی پاتېدلای سي، لېکن که چيري کيفيت يې دا وي چي هغه د زخم سره ژوندی نه سي پاتېدلای، نو ذبح اضطراري کافي کيږي. (فتأمل)

أما إذا شقّ إلخ: اوس ذکر سوه چي بدون الذبح د ښکار نه حلال کېدل په هغه وخت کي دي، کله چي د هغه د ژوند توهّم وي او که چيري دا توهّم نه وي، نو هغه حلال دی. په همدې وجه فرمايي چي که تعليم يافتهِ سپی د ښکار نس څيري کړي او د هغه د نس مودا بهر راوباسي، نو څرنګه چي د هغه ژوند غيرِ متوهم دی لهذا که ښکاري کس (مالک) دا ښکار ژوندی ونيسي، بيا هم بغير له ذبح هغه حلال دی. ځکه په هغه کي چي کوم ژوند محسوسيږي، هغه حيات نه دی بلکي د مذبوح څاروي په څېر حرکت او غورځلاو دی چي هغه لره هيڅ اعتبار نسته، لکه تر ذبح وروسته چي پُسه اوبو ته ولوېږي، نو هيڅ حرج نسته، په دې هکله شيخ ابو بکر جصاص رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا د حلت حکم فقط د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله قول دی، لېکن د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا مشقوق البطن ښکار هم حلال نه دی: دليل يې دا دی چي کله هغه مالک ته ژوندی په لاس ورغلی، نو د هغه حلت له ذبح اختياري

ځخه بغير نه ثابتيږي. او هغه د متردیه ښاروي په څېر دی یعني هغه ښاروی کوم چي ځاه ته ولوېږي یا له غره یا بام ځخه را ایله سي،نو د هغه هم دغه حکم دی چي که ژوندی ترلاسه سي او ذبح کړی سي، نو حلال دی، کنې حلال نه دی، همدغه حال د مشقوق البطن دی.

## په ذبح کولو سره په هر حالت کي ښاروی حلالیږي او په دې باره کي د صاحبینو اختلاف

هٰذَا الَّذِي ذَكَرْنَا إِذَا تَرَكَ التَّذْكِيَةَ دا کوم ځه چي موږ ذکر کړه په هغه صورت کي دي کله چي ښکاري کس [مالک] ذبح پرې ایښې وي فَلَوْ أَنَّهُ ذَكَّاهُ خو که هغه ښکار ذبح کړي حَلَّ أَكْلُهُ عِنْدَ أَبِي حَنِيْفَةَ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز د هغه خوړل حلال دي وَكَذَا الْمُتَرَدِّيَةُ وَالنَّطِيْحَةُ وَالْمَوْقُوْذَةُ او همدارنګه هغه ښاروی کوم چي [له لوړ ځایه] رالوېدلي وي او هغه چي بل ښاروي په ښکر وهلی وي او هغه چي په لکړي وهل سوی وي [او دا ټوله مرګ ته رسېدلي وي] وَالَّذِي يَبْقُرُ الذِّئْبُ بَطْنَهُ او هغه ښاروی چي لېوه يې نس ور څیرلی وي وَفِيْهِ حَيَاةٌ خَفِيَّةٌ أَوْ بَيِّنَةٌ او په هغه کي پټ یا ښکاره ژوند پاته وي وَعَلَيْهِ الْفَتْوٰى او پر همدې فتوىٰ ده لِقَوْلِهِ تَعَالٰى: ﴿إِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ﴾ [المائدة: ۳] د الله تعالیٰ د دې فرمان په وجه: مګر هغه ښاروی [حرام نه دي] چي تاسي ذبح کړي وي اِسْتَثْنَاهُ مُطْلَقًا مِنْ غَيْرِ فَصْلٍ [په دې آیت کي] الله بغیر له ځه تفصیله مطلقاً د هغه [ذبح کړل سوي ښاروي] استثنا کړې ده وَعِنْدَ أَبِي يُوْسُفَ إِذَا كَانَ بِحَالٍ لَا يَعِيْشُ مِثْلُهُ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نیز حکم دا دی چي که ښکار په داسي حالت کي وي چي د هغه په شان ښاروی ژوندی نه سي پاتېدلای لَا يَحِلُّ نو حلال نه دی لِأَنَّهُ لَمْ يَكُنْ مَوْتُهُ بِالذَّبْحِ ځکه چي د هغه مرګ د ذبح په وجه نه دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ: إِنْ كَانَ يَعِيْشُ فَوْقَ مَا يَعِيْشُ الْمَذْبُوْحُ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمایي: چي که هغه ښکار داسي وي چي له ذبح کړل سوي ښاروي ځخه زیات ژوندی پاتېدلای سي يَحِلُّ نو حلال دی وَإِلَّا فَلَا کنې حلال نه دی لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِهٰذِهِ الْحَيَاةِ ځکه چي داسي ژوند لره اعتبار نه سته [چي تر مذبوح زیات وخت نه سي پاتېدلای] عَلٰى مَا قَرَّرْنَاهُ لکه ځرنګه چي موږ دا [مخکي] بیان کړه.

**اللغات:** ﴿التزكية﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: حلالول، ذبح کول. ﴿متردية﴾ د دې تعریف د مخکیني عبارت په لغاتو کي ذکر سو. ﴿نطيحة﴾ هغه ښاروی چي د ښکر وهلو په وجه مړ سي، مثلاً

د جنګ وغيره په حالت کي يې بل څاروی په شکر ووهي او ختم سي. ﴿موقوذه﴾ هغه څاروی کوم چي د لکړي، لرګي وغيره په وهلو سره مړ سي. ﴿حياة بيّنة﴾ څرګند ژوندون. کوم چي د ذبح کړل سوي څاروي له ژوند څخه زيات وي، يعني په مذبوح کي چي د ژوند څومره رمق پاته وي تر هغه زيات ته حيات ظاهره وايي. ﴿حياة خفيه﴾ پټ ژوندون. يعني دومره ژوند چي فقط د ژوند د رک يې معلوم سي چي ژوندی دی. ﴿بَقَر﴾ د ماضي صيغه ده: څيرل. چاکول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي کله ښکاري کس (مالک) ښکار ذبح کړي، نو که څه هم هغه مشقوق البطن وي، په ذبح سره هغه بالاتفاق حلاليږي: د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز ځکه چي پر ذبح اختياري عمل وسو، او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز خو ذبح اضطراري هم کافي وه.

وکذا المتردية إلخ: د دې حاصل دا دی چي متردیه. نطيحه او موقوذه يا هغه څاروی چي لېوه يې نس څيرلی وي او تر اوسه په دوی کي حيات (ژوند) پاته وي برابره ده حيات خفيه وي او که حيات ظاهره وي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز که په دغه حالت کي دا څارويان ذبح کړل سي، نو حلال دي. کنې حرام دي (يعني د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د دې هر څاروي د حلال کېدو لپاره ذبح ضروري ده). او فتوىٰ هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله پر قول ده.

امام صاحب په دې آيت سره دليل نيولی دی ﴿إِلَّا مَا ذَكَّيتم﴾ (مګر هغه کوم چي تاسو ذبح کړي وي)، په دې آيت کي الله تعالىٰ له محرماتو څخه وروسته د ذبح کړل سوي څاروي (مُذکّیٰ) استثناء مطلقاً کړې ده چي د حياتِ ظاهره او خفيه هيڅ قيد او تفصيل پکښې نسته.

د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز که حياتِ ظاهره پکښې وي، نو د هغه ذبح کول معتبر دي. کنې حرام دی. بيا د صاحبينو تر مينځ اختلاف دی چي حياتِ ظاهره څه ته وايي. نو امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي که دومره حيات (ژوند) وي چي د هغه په وجه ژوندی پاتېدلای سي نو دا حيات ظاهره دی. کنې خفيه دی، لهذا که د حياتِ خفيه په صورت کي څاروی ذبح کړل سي، نو دا ذبح معتبره نه ده: ځکه چي د هغه د مرګ د ذبح په وجه نه دی واقع سوی.

او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي چي که دومره حيات وي څومره چي په مذبوح کي وي، نو دا حيات خفيه دی کوم چي نا معتبره دی او که د مذبوح له حيات څخه زيات وي، نو دا حيات ظاهره دی کوم چي معتبر دی يعني د حياتِ ظاهره په صورت کي ذبح معتبره ده او په دې ذبح سره څاروی حلاليږي.

## که دومره وخت وي چې ښکار ذبح کړی سي نو ذبح ضروري ده

وَلَوْأَدْرَكَهُ وَلَمْ يَأْخُذْهُ او که ښکاري کس [مالک] ښکار ومونډي لېکن هغه نه ونیسي [او مر سي] فَإِنْ كَانَ فِي وَقْتٍ لَوْ أَخَذَهُ أَمْكَنَهُ ذَبْحُهُ نو که هغه په داسي وخت کي وي [یعني د ښکار مرګ ته دومره وخت وي] چي که مالک دا ښکار نیولي وای نو ذبح کول به یې ورته ممکن وای لَمْ يُؤْكَلْ نو دا ښکار به نه خوړل کیږي لِأَنَّهُ صَارَ فِي حُكْمِ الْمَقْدُورِ عَلَيْهِ ځکه چي دا د هغه څاروي په حکم کي سو چي پر [ذبح کولو د] هغه قدرت حاصل وي وَإِنْ كَانَ لَا يُمْكِنُهُ ذَبْحُهُ او که د هغه ذبح ورته ممکن نه وای أُكِلَ نو خوړل کیږي به لِأَنَّ الْيَدَ لَمْ تَثْبُتْ بِهِ ځکه چي په داسي مونډلو سره قبضه ثابته نه سوه وَالتَّمَكُّنُ مِنَ الذَّبْحِ لَمْ يُوجَدْ او پر ذبح کولو قدرت لرل [قادر کېدل] موجود نه سوه وَإِنْ أَدْرَكَهُ فَذَكَّاهُ او که ښکاري کس ښکار ونیسي او هغه ذبح کړي حَلَّ لَهُ نو هغه د ده لپاره حلالیږي لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ فِيهِ حَيَاةٌ مُسْتَقِرَّةٌ ځکه که په ښکار کي ژوند موجود وي فَالذَّكَاةُ وَقَعَتْ مَوْقِعَهَا بِالْإِجْمَاعِ نو [په دې صورت کي] خو بالاجماع دا ذکاة [ذبح] پر ځای [او پر وقت] واقع سوه وَإِنْ لَمْ يَكُنْ فِيهِ حَيَاةٌ مُسْتَقِرَّةٌ او که په هغه کي ژوند موجود نه وي فَعِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ رَحِمَهُ اللهُ ذَكَاتُهُ الذَّبْحُ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د هغه ذکاة ذبح ده [ذبح اختیاري] عَلَى مَا ذَكَرْنَاهُ لکه څرنګه چي موږ ذکر کړه وَقَدْ وُجِدَ او دا ذبح [دلته] موجوده سوه وَعِنْدَهُمَا لَا يُحْتَاجُ إِلَى الذَّبْحِ او د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز [په دې صورت کي] ذبح ته ضرورت نسته [بلکي ذبح اضطراري کافي ده].

**اللغات:** ﴿أدرک﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه ځیني د دي: مونډل، رسېدل. ﴿مقدور علیه﴾ پر څه چي انسان ته قدرت حاصل وي. ﴿الید﴾ لاس، قبضه

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښکاري کس (مالک) ښکار ومونډي خو هغه نه ونیسي، نو که تر مونډلو وروسته د ښکار مرګ ته دومره وخت پاته وي چي ښکاري کس هغه نیولای او ذبح کولای سي، لېکن داسي نه وکړي، نو د هغه خوړل حلال نه دي او د حلت لپاره د هغه ذکاة اضطراري (زخمي کېدل) کافي نه دي، ځکه چي ده ته پر ذکاة اختیاري قدرت حاصل وو (یعني پر ذبح کولو یې قادر وو).

او که دومره وخت نه وي چي ښکار ونیول سي او هغه ذبح کړی سي، نو په دې صورت کي صرف په ذکاة اضطراري سره حلت ثابتیږي او د هغه ښکار خوړل حلال دي، ځکه له نیولو څخه بغیر

محض په مونډلو سره پر ښکار قبضه نه ثابتیږي. لهذا پر ذبح یې قدرت حاصل نه سو، نو ځکه خوړل یې حلال دي.

وإن أدركه إلخ: یعني که ښکاري کس ښکار ونیسي او ذبح یې کړي، نو د امام صاحب او صاحبینو رَحِمَهُمَا الله ټولو په نېز هغه حلالیږي؛ ځکه د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز خو له ذبح (ذکاة اختیاري) څخه بغیر فقط په ذکاة اضطراري سره حلت پکښې راغلی دی، لهذا تر ذبح وروسته خو به په درجه اولیٰ حلت پکښې ثابتیږي، او د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د حلت شرط پوره سو، ځکه د هغه په نېز ذبح کول شرط دی که څه هم حیات خفیه پکښې وي، نو دا ښکار بالاجماع حلال سو؛ ځکه هغه د ذبح محل وو، او ذبح کړل سو.

## د ښکاري ښاروي د هدف غلطولو حکم

| |
|---|
| وَإِذَا أَرْسَلَ كَلْبَهُ الْمُعَلَّمَ عَلَىٰ صَيْدٍ وَأَخَذَ غَيْرَهُ او کله چې ښکاري کس [مالک] خپل تعلیم یافته سپی پر یو ښکار ور ایله کړي او سپی بل ښکار ونیسي حَلَّ نو هغه بل ښکار حلال دی وَقَالَ مَالِكٌ: لَا يَحِلُّ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي: چې حلال نه دی لِأَنَّهُ أَخَذَهُ بِغَيْرِ إِرْسَالٍ ځکه چې سپي هغه بل ښکار [د مالک] له إرسال څخه بغیر نیولی دی إِذِ الْإِرْسَالُ مُخْتَصٌّ بِالْمُشَارِ إِلَيْهِ ځکه إرسال د هغه ښکار سره خاص دی کوم ته چې اشاره سوې ده [یعني کوم چې مالک ور ښوولی او متعیّن کړی دی] وَلَنَا: أَنَّهُ شَرْطٌ غَيْرُ مُفِيدٍ او زموږ دلیل دا دی: چې دا یو بې فایدې شرط دی لِأَنَّ مَقْصُودَهُ حُصُولُ الصَّيْدِ ځکه د ښکاري کس مقصد ښکار حاصلول دي إِذْ لَا يَقْدِرُ عَلَى الْوَفَاءِ بِهِ ځکه سپی د دې شرط په پوره کولو باندي قادر نه دی إِذْ لَا يُمْكِنُهُ تَعْلِيمُهُ عَلَىٰ وَجْهٍ يَأْخُذُ مَا عَيَّنَهُ ځکه چې مالک ته دا ممکنه نه ده چې سپي ته داسي تعلیم ورکړي چې خاص هغه ښکار به نیسي کوم چې یې مالک متعیّن کړي فَسَقَطَ اعْتِبَارُهُ نو ځکه د دې شرط [تعیین] اعتبار ساقط سو. |

**اللغات:** ﴿أرسل﴾ د افعال د باب ماضي ده: سپی وغیره پر ښکار ورایله کول، ښکار ته استول. ﴿وفاء﴾ د ضرب د باب مصدر دی: پوره کول، پوره اداء کول. ﴿عیّنه﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: متعیّنول، معلومول.

**تشريح** : **صورت د مسئلې** : دا دی که مالک خپل تعليم يافته سپی وغيره پر يو ښکار ور ايله کړي او سپی له هغه ښکار څخه بغير بل ښکار ونيسي، نو زموږ په نيز دا بل ښکار حلال او روا دی. همدا د امام شافعي او امام احمد رَحِمَهُمَا الله قول دی، لېکن د امام مالک رَحِمَهُ الله په نيز له هغه متعيّن ښکار څخه بغير د سپي بل ښکار حلال نه دی؛ د امام مالک رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې إرسال (ور ايله کول) د مشار إليه ښکار سره مختص دی. او دلته سپي له مشارإليه (متعيّن) ښکار څخه بغير بل ښکار نيولی دی کوم چې إرسال والا نه دی، نو ځکه به حلال نه وي.

زموږ د دليل حاصل دا دی چې په إرسال کي د متعيّن ښکار د نيولو شرط لګول بې ځايه دي. نه خو دا شرط د مالک په حق کي مفيد دي او نه د سپي په حق کي؛ ځکه د مالک مقصد ښکار دی، برابره ده متعيّن وي او که غير متعين، همدارنګه سپي ته داسي تعليم ورکول ممکن نه دي چې ته فقط د هوسۍ ښکار کوه! او بل ښاروی مه نيسه!، لهذا کله چې دا د هيڅ يوه په حق کي مفيد نه دي نو دا د متعيّن ښکار نيولو شرط به لغو او بې ځايه وي او هغه لره به اعتبار نه وي، لهذا ښکاري سپی چې کوم ښکار هم ونيسي، هغه به حلال وي په دې شرط چې مأکولُ اللحم وي. (احسن الهدايه)

## په يوه بسم الله سره د ډېرو ښکارونو د حلالېدلو حکم او تفصيل

وَلَوْ أَرْسَلَهُ عَلَى صَيْدٍ كَثِيْرٍ او که ښکاري کس پر ډېرو ښکارونو سپی ور ايله کړي وَسَمَّى مَرَّةً وَاحِدَةً حَالَةَ الْإِرْسَالِ او د ور ايله کولو په وخت کي صرف يو ځل بسم الله ووايي فَلَوْ قَتَلَ الْكُلَّ نو که سپی هغوی ټوله ووژني يَحِلُّ بِهٰذِهِ التَّسْمِيَةِ الْوَاحِدَةِ نو ټوله په همدې يو ځل بسم الله ويلو سره حلاليږي لِأَنَّ الذَّبْحَ يَقَعُ بِالْإِرْسَالِ ځکه چې [په ښکار کي] ذبح په إرسال سره واقع کيږي [ځکه لکه څرنګه چې د چاړې استعمال د ښاروي پر غاړه د چاړې په تېرولو سره راځي، همداسي د ښکاري سپي وغيره استعمال پر ښکار د هغه په ور ايله کولو سره راځي، نو دا ور ايله کول د چاړې تېرلو په څېر سو] عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چې دا [مخکي] موږ بيان کړه وَلِهٰذَا تُشْتَرَطُ التَّسْمِيَةُ عِنْدَهُ په همدې وجه د إرسال [ايله کولو] په وخت کي بسم الله ويل شرط دي وَالْفِعْلُ وَاحِدٌ او فعل [إرسال] يو دی فَتَكْفِيْهِ تَسْمِيَةٌ وَاحِدَةٌ نو ځکه د هغه لپاره يوه بسم الله ويل کافي دي بِخِلَافِ ذَبْحِ الشَّاتَيْنِ بِتَسْمِيَةٍ وَاحِدَةٍ په خلاف په يوه بسم الله ويلو سره د دوو پسونو د ذبح کولو لِأَنَّ الثَّانِيَةَ تَصِيْرُ مَذْبُوْحَةً بِفِعْلٍ غَيْرِ الْأَوَّلِ ځکه چې دويم پسه د اول پسه له فعل [ذبح] څخه بغير په بل فعل سره ذبح کړی سوی ګرځي فَلَا

بُدَّ مِنْ تَسْمِيَةٍ أُخْرٰى نو ځکه بله بسم الله ویل ضروري دي.

وَذَبَحَهُمَا بِمَرَّةٍ وَاحِدَةٍ تر دې چې که دوه پسونه یو پر بل سر ...

کړي تَحِلَّانِ بِتَسْمِيَةٍ وَاحِدَةٍ نو دواړه صرف په یوه بسم الله ویلو ... حلال ...

**اللغات:** ﴿تسمية﴾ د تفعیل د باب مصدر دی. د دې باب یوه معنی ده: بسم ... ﴿...﴾ ...

سېرلی، بزه وغیره. پر دې ټولو یې اطلاق کیږي. ﴿أضجع﴾ د افعال د باب ماضي ده: ...

**تشریح:** د عبارت حاصل او غورچاڼ دا دی چې پر یوه "فعل ذبح" یوه بسم الله ویل کافي دي ...

که دا فعل څو ځله واقع کیږي نو بسم الله به هم څو ځله ویل کیږي. مثلاً که دوه پسونه ...

وروسته ذبح کول کیږي، نو دلته فعل ذبح دوه ځله واقع کیږي نو بسم الله به هم دوه ځله ویل کیږي.

او که دوه پسونه یو پر بل سربېره کړل سي چې په یوه دم ذبح کړل سي. نو څرنګه چې د ... فعل

شمېرل کیږي، لهذا یو ځل بسم الله ویل کافي کیږي.

همدغسي إرسال (یعني سپی وغیره پر ښکار ور ایله کول) فقط یو فعل دی. نو په دغه یوه فعل کي به

بسم الله یو ځل ویل کیږي، لهذا که یو ځل بسم الله ووایي او سپی پر څو ښکارونو ور ایله کړي او

هغه ټوله ښکارونه ونیسي او قتل یې کړي، نو په هغه یوه تسمیه سره ټوله حلالیږي: ځکه چې فعلِ

إرسال یو دی، نو تسمیه هم یوه کافي ده.

## په ښکار نیولو کي د تأخیر کولو حکم

وَمَنْ أَرْسَلَ فَهْدًا فَكَمَنَ حَتّٰى يَسْتَمْكِنَ او که څوک پړانګ اپر ښکار ور ایله کړي او هغه کمین

ونیسي [ښکار ته پټ او غلی سي] ثُمَّ أَخَذَ الصَّيْدَ فَقَتَلَهُ بیا ښکار ونیسي او هغه قتل کړي، نو هغه

خوړل کیږي به لِأَنَّ مَكْثَهُ ذٰلِكَ حِيلَةٌ مِنْهُ لِلصَّيْدِ ځکه د پړانګ دا درېدل [کمین نیول ... د ښکار

نیولو] لپاره د هغه یو حیله ده لَا اِسْتِرَاحَةٌ استراحت نه دی لهٰذا ... الإرسال، نو ځکه ...

مالک] إرسال نه ختموي وَكَذَا الْكَلْبُ إِذَا اعْتَادَ عَادَتَهُ او همدارنګه سپی، ... هغه ...

کمین نیولو] عادت اختیار کړی وي.

**اللغات:** ﴿فهد﴾ پړانګ. ﴿كَمَنَ﴾ د نصر د باب ماضي ده: ...

داسي ځای کي پټېدل او درنګ کول چې د جانب مقابل ور ته ...

کي حمله پر کول. دې ته کمین نیول وايي. ﴿مكث﴾ د نصر د باب ...

مصدر دی: پاتېدل، درنګ او توقف کول، وخت تېرول. ﴿حيلة﴾ حيله، چل، تدبير، ﴿اعتاد﴾ د افتعال د باب ماضي ده: عادت نيول، عادت إختيارول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښوک خپل تعليم يافته پړانګ پر ښکار ورايله کړي او پړانګ د خپل عادت مطابق ښکار ته کمين ونيسي (يا په بله وينا دا چې د ښکار لپاره څه وخت پټ توقف وکړي) او بيا د ښکار په رانژدې کېدو سره پر هغه حمله وکړي او قتل يې کړي، نو د مالک لپاره هغه ښکار حلال او روا دی: ځکه دلته پړانګ چې کوم توقف کړی دی، هغه د ښکار نيولو لپاره يوه حيله او تدبير کوي (چې ښکار يې خطا نه سي او په آسانه هغه ونيسي)، د آرام کولو لپاره هغه توقف نه دی کړی، نو ځکه د هغه په دغه توقف سره إرسال نه منقطع کيږي، لهذا تر کمين نيولو وروسته چې هغه ښکار وکړي، نو ښکار يې حلال او روا دی.

همدارنګه که يو تعليم يافته سپی په کمين نيولو عادت وي او له هغه څخه بغير ښکار نه کوي، نو د دې هم هاغه حکم دی، لېکن که فقط يو ځل داسې حرکت وکړي يعني کمين نيول ذ هغه عادت نه وي، نو په دې صورت کې د سپي په کمين نيولو سره إرسال منقطع کيږي او د هغه ښکار کړی سوی ښکاروی حلال نه پاتيږي.

**له ځنډ او توقف څخه بغير د دوو ښکارونو د نيولو حکم**

> وَلَوْأَخَذَ الْكَلْبُ صَيْدًا فَقَتَلَهُ او که سپي يو ښکار ونيسي او هغه قتل کړي ثُمَّ أَخَذَ آخَرَ فَقَتَلَهُ بيا يو بل ښکار ونيسي او هغه هم قتل کړي وَقَدْ أَرْسَلَهُ صَاحِبُهُ او دا سپی خپل مالک [پر هغه ښکار] ايله کړی وي أُكِلَا جَمِيْعًا نو دواړه ښکارونه به خوړل کيږي لِأَنَّ الْإِرْسَالَ قَائِمٌ لَمْ يَنْقَطِعْ ځکه چې إرسال موجود پاته دی او قطع سوی نه دی وَهُوَ بِمَنْزِلَةِ مَا لَوْ رَمٰى سَهْمًا إِلٰى صَيْدٍ او دا داسې دي لکه ښوک چې د ښکار طرف ته غشی وغورځوي [پر ښکار غشی ور ايله کړي] فَأَصَابَهُ وَأَصَابَ آخَرَ نو دا غشی پر هغه ښکار هم ولګيږي او پر بل ښکار هم ولګيږي.

**اللغات:** ﴿رمی﴾ د ضرب د باب ماضي ده: غشی غورځول، ويشتل. ﴿أصاب﴾ د افعال د باب ماضي ده: رسېدل، لګېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښوک سپی پر ښکار ور ايله کړي او سپی چې يو ښکار ونيسي او قتل يې کړي نو بيا سمدستي بل ښکار ونيسي او هغه هم قتل کړي، نو دواړه ښکارونه حلال دي. خوړل کيږي به: ځکه چې دلته سپي دواړه ښکارونه بغير له توقفه کړي دي، نو د مالک إرسال باقي دی او دا فعلِ واحد دی چې د هغه لپاره يوه بسم الله کافي ده (لکه مخکې چې ذکر سوه). او د

دې مثال داسې دی لکه څوک چې پر ښکار غشی ور ایله وکړي او غشی پر هغه ښکار تر لګېدلو وروسته پر بل ښکار هم ولګیږي، نو دواړه ښکارونه حلال دي، همداسې به دلته هم حلال وي.

## د دوو ښکارونو تر مینځ د توقف کولو د صورت حکم

وَلَوْقَتَلَ الْأَوَّلَ فَجَثَمَ عَلَيْهِ طَوِيْلًا مِنَ النَّهَارِ او که سپی اول ښکار قتل کړي بیا پر هغه پرېوځي د ورځې ډېره حصه ثُمَّ مَرَّبِهٖ صَيْدٌ آخَرُ فَقَتَلَهٗ بیا د دې سپي سره بل ښکار تېر سي نو سپی هغه هم قتل کړی لَايُؤْكَلُ الثَّانِيْ نو هغه دویم ښکار به نه خوړل کیږي لِانْقِطَاعِ الْإِرْسَالِ بِمَكْثِهٖ ځکه چې د سپې د درېدلو [توقف کولو] په وجه إرسال منقطع سو إِذْلَمْ يَكُنْ ذٰلِكَ حِيْلَةً مِنْهُ لِلْأَخْذِ ځکه دا درېدل د هغه له طرفه د ښکار نیولو لپاره حیله نه وه وَإِنَّمَا كَانَ اسْتِرَاحَةً بلکې دا خو آرام کول وه بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کوم چې مخکې تېر سو.

**اللغات:** ﴿جثم﴾ د ماضي صیغه ده: پرېوتل او پروت اوسېدل، پر ځمکه موښتی پاتېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک خپل یو تعلیم یافته سپی پر ښکار ور ایله کړي او سپی چې هغه ښکار ونیسي او قتل یې کړي نو پر هغه ځان واچوي او پروت اووسي تر دې چې د ورځې اکثره حصه تېره سي، بیا وروسته د هغه سره بل ښکار تېر سي او سپی هغه هم قتل کړي. نو په دې صورت کې به دا بل ښکار نه خوړل کیږي؛ ځکه د سپي ځان اچول او پرېوتل د آرام لپاره دي. او د ښکار لپاره حیله او تدبیر کول (کمین نیول) نه دي، نو د دې استراحت په وجه إرسال منقطع سو. لېکن په مخکېني صورت کې د پړانګ یا سپي پرېوتل (کمین نیول) د آرام لپاره نه وه، بلکې د هغه د نیولو لپاره تدبیر او حیله وه.

## د ښکاري باز د څه توقف کولو حکم او د داسې باز د ښکار حکم چې مالک یې معلوم نه وي

وَلَوْأَرْسَلَ بَازِيَهُ الْمُعَلَّمَ عَلٰى صَيْدٍ او که ښکاري کس خپل تعلیم یافته باز پر ښکار ور ایله کړي فَوَقَعَ عَلٰى شَيْءٍ ثُمَّ اتَّبَعَ الصَّيْدَ او باز پر یو شي کښېني بیا په ښکار پسې سي فَأَخَذَهٗ وَقَتَلَهٗ بیا هغه ښکار ونیسي او قتل یې کړي فَإِنَّهٗ يُؤْكَلُ نو هغه ښکار به خوړل کیږي وَهٰذَا إِذَا لَمْ يَمْكُثْ زَمَانًا طَوِيْلًا لِلِاسْتِرَاحَةِ او دا [حکم] په هغه صورت کې دی کله چې باز زیات وخت [یعني] د آرام کولو لپاره درنګ نه وکړي وَإِنَّمَا مَكَثَ سَاعَةً لِلتَّمْكِيْنِ بلکې لږ ګړی د کمین نیولو لپاره درنګ وکړي لِمَا

بَيَّنَّاهُ فِي الْكَلْبِ د هغه دليل په وجه کوم چې موږ د سپي په هکله بيان کړی وَلَوْ أَنَّ بَازِيًا مُعَلَّمًا أَخَذَ صَيْدًا فَقَتَلَهُ او که يو تعليم يافته باز يو ښکار ونيسي او هغه قتل کړي وَلَا يُدْرٰى أَرْسَلَهُ إِنْسَانٌ أَمْ لَا او دا معلومه نه وي چې يو انسان هغه را ايله کړی دی، که نه لَا يُؤْكَلُ نو هغه ښکار به نه خوړل کيږي لِوُقُوْعِ الشَّكِّ فِي الْإِرْسَالِ ځکه چې په إرسال کي شک واقع سو وَلَا تَثْبُتُ الْإِبَاحَةُ بِدُوْنِهِ او روايښت له إرسال څخه بغير نه ثابتيږي.

**اللغات**: ﴿معلّم﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: هغه چې د ښکار طريقې ور ښوول سوي وي، يعني د ښکار نيولو تعليم ورکول سوی وي، تعليم يافته. ﴿لا يُدرٰی﴾ د ضرب له بابه د نفي مجهول صيغه ده: خبريدل، معلوميدل. ﴿إباحة﴾ د افعال د باب مصدر دی: روا کول، روايښت.

**تشريح**: صورت د مسئلې خو بالکل ښکار دی چې که څوک خپل تعليم يافته باز پر ښکار ور ايله کړي او دا باز ولاړ سي پر درخته يا پر بل شي د څه وخت لپاره کښېني او بيا په ښکار پسې سي او کار يې تمام کړي، نو دا ښکار حلال او روا دی؛ ځکه د باز فطرت او عادت همدا دی چې اول د څه وخت لپاره ښکار ته کمين نيسي يعني له يو ځای څخه ښکار ته ګوري او د هغه د نيولو تدبير کوي چې نښانه يې غلطه نيسي بيا غوټه پر وهي، نو د باز په دغه طريقه سره إرسال نه منقطع کيږي. لکه د پړانګ او سپي په صورت کي چې همدا حکم دی، نو ځکه د دې باز ښکار حلال دی.

ولو أن بازيًا إلخ: فرمايي او که نادر که يو تعليم يافته باز راسي ښکار ونيسي او قتل يې کړي خو دا معلومه نه سي چې دا باز يو چا پر ښکار را ايله کړی دی، که نه؟، نو د هغه دا ښکار روا نه دی او نه به خوړل کيږي؛ ځکه چې دلته د باز په إرسال کي شک واقع سو چې په قطعي او يقيني معلومه نه ده چې دا باز د يو چا له طرفه پر دې ښکار ګومارل سوی دی، حال دا چې له إرسال څخه بغير روايښت نه ثابتيږي، بلکي د ښکار د روايښت لپاره د معلوم کس له طرفه إرسال شرط دی.

## د هغه ښکار حکم چې بغير له زخمي کولو صرف په خپه کولو سره ووژل سي

قَالَ: وَإِنْ خَنَقَهُ الْكَلْبُ وَلَمْ يَجْرَحْهُ فرمايي: او که سپی ښکار خپه کړي او زخمي يې نه کړي لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه ښکار به نه خوړل کيږي لِأَنَّ الْجَرْحَ شَرْطٌ عَلٰى ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ ځکه زخمي کول شرط دي د ظاهر روايت مطابق عَلٰى مَا ذَكَرْنَاهُ لکه څرنګه چې [مخکي] دا موږ ذکر کړه وَهٰذَا يَدُلُّكَ عَلٰى أَنَّهُ لَا يَحِلُّ بِالْكَسْرِ او دا په دې هکله ستا لارښوونه کوي چې [ديو اندام] په ماتولو سره ښکار نه

حلالیږي وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ أَنَّهُ إِذَا كَسَرَ عُضْوًا فَقَتَلَهُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې که سپی د ښکار يو اندام مات کړي او [په دې توګه] هغه قتل کړي لَا بَأْسَ بِأَكْلِهِ نو د هغه په خوړلو کې څه پروا نسته لِأَنَّهُ جِرَاحَةٌ بَاطِنَةٌ ځکه چې دا باطني زخم دی فَهِيَ كَالْجِرَاحَةِ الظَّاهِرَةِ نو دا د ظاهري زخم په څېر دی وَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّ الْمُعْتَبَرَ جُرْحٌ يَنْتَهِضُ سَبَبًا لِإِنْهَارِ الدَّمِ داول قول دليل دا دی چې [د ښکار د حلت لپاره] داسي زخم معتبر دی کوم چې د وينې بهېدلو سبب ودرېږي وَلَا يَحْصُلُ ذٰلِكَ بِالْكَسْرِ او [داندام] په ماتولو سره دا نه حاصلیږي فَأَشْبَهَ التَّخْنِيْقَ نو [داندام] ماتول د خپه کولو سره مشابه سوه.

**اللغات:** ﴿خنق﴾ د نصر د باب ماضي ده: غاړه خپه کول، تر ستوني نيول. ﴿جِرَاحَة﴾ زخم. ﴿ينتهض﴾ د افتعال د باب مضارع ده: درېدل، قايمېدل. ﴿إنهار الدم﴾ د افعال د باب مصدر دی: وينه بهول (بيول)، په تېزي سره بهېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که سپی نيول سوی ښکار فقط خپه کړي او تر غاړه يې ونيسي تر دې چې ووژل سي، نور يې زخمي نه کړي، نو هغه حلال نه دی؛ ځکه د ظاهر روايت مطابق زخمي کول (زخم جوړول) شرط دي.

او له دې څخه دا خبره هم معلومه سوه چې که سپی فقط د ښکار پښه يا بل اندام ور مات کړي چې د هغه په وجه ښکار مړ سي، نو هم دا ښکار حلال نه دی، خو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چې که سپی د يو اندام په ماتولو سره ښکار ووژني، نو هغه حلال دی؛ ځکه دلته که څه هم ظاهري زخم خو نسته، لېکن باطني زخم سته او شرط زخمي کول دي او هغه دلته موجود دي.

او د قول اول دليل دا دی چې شرط داسي زخمي کول دي چې له هغه څخه وينه وبهيږي او دا مقصد د اندام په ماتولو سره نه حاصليږي، لهذا دا خو داسي سوه لکه ښکار چې په خپه کولو سره ووژني.

## که د ښکاري سپي سره بل سپی يو ځای سي نو د ښکار حکم

قَالَ: وَإِنْ شَارَكَهُ كَلْبٌ غَيْرُ مُعَلَّمٍ فرمايي: او که د معلم سپي سره نا تعليم يافته سپی شريک سي أَوْ كَلْبُ مَجُوْسِيٍّ يا د مجوسی سپی [ور سره شريک سي] أَوْ كَلْبٌ لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللهِ عَلَيْهِ يا داسي سپی [ور سره شريک سي] چې پر هغه د الله نوم نه وي اخيستل سوی يُرِيْدُ بِهِ عَمَدًا په دې سره د امام قدوري رَحِمَهُ الله قصداً مراد دي [يعني چې قصداً د الله نوم نه وي اخيستل سوی] لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه ښکار

به نه خوړل کیږي لِمَا رَوَيْنَا فِي حَدِيثِ عَدِيٍّ ﷺ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ د حضرت عدي ﷺ په حدیث کي روایت کړی دی وَلِأَنَّهُ اِجْتَمَعَ الْمُبِيحُ وَالْمُحَرِّمُ او ځکه چي [دلته] روا کونکی علت او حرامونکی علت سره جمع سوي دي فَيَغْلِبُ جِهَةُ الْحُرْمَةِ نَصًّا أَوْ اِحْتِيَاطًا نو ځکه د نص یا د احتیاط پر بناء به د حرمت اړخ غالب وي.

**تشریح : صورت د مسئلي** : دا دی که یو مسلمان ښکاري خپل تعلیم یافته سپی په بسم الله سره پر ښکار ور ایله کړي، بیا یو بل سپی هم د هغه سره په ښکار کي یو ځای سي کوم چي تعلیم یافته نه وي، یا هغه د مجوسي سپی وي، یا داسي سپی وي چي د ایله کولو په وخت کي یې بسم الله نه وي ویل سوې، نو اوس حکم دا دی چي که دواړه سپیان په ګډه ښکار ونیسي او قتل یې کړي، نو دا ښکار به نه خوړل کیږي؛ ځکه د حضرت عدی ﷺ په حدیث کي د همدې صراحت موجود دی (کوم چي مخکي ذکر سو). او بله وجه دا ده چي کله د حلال او حرام اجتماع راسي، نو ترجیح او غلبه حرام لره وي؛ او ترجیح ځکه حرام لره وي چي په دې باره کي نصّ (حدیث) موجود دی کوم چي په مسند عبد الرزاق کي پر ابن مسعود رَحِمَهُ الله موقوف دی، یا د دې وجه احتیاط دی؛ ځکه چي حرام واجبُ الترک دی او حلال جائزُ الترک دی، نو په هر صورت کي احتیاط په ترک (پرېښوولو) کي دی.

## که دویم سپی ښکار زخمي نه کړي نو ښکار حلال دی خو مکروه دی

وَلَوْ رَدَّهُ عَلَيْهِ الْكَلْبُ الثَّانِيْ او که دویم سپی پر اول سپي هغه ښکار راوګرځوي [مثلاً د ښکار مخته ودریږي چي په دې سره هغه راوګرځي او د رک ځني ورک سي، نو اول سپی هغه ونیسي] وَلَمْ يَجْرَحْهُ مَعَهُ او د اول سپي سره هغه ښکار زخمي نه کړي وَمَاتَ بِجَرْحِ الْأَوَّلِ او ښکار د اول سپي په زخمي کولو سره مړ سي يُكْرَهُ أَكْلُهُ نو دا ښکار خوړل مکروه دي لِوُجُودِ الْمُشَارَكَةِ فِي الْأَخْذِ ځکه چي نیولو کي مشارکت موجود دی وَفَقْدِهَا فِي الْجَرْحِ او په زخمي کولو کي مشارکت نیستي دی وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا رَدَّهُ الْمَجُوسِيُّ بِنَفْسِهِ او دا د هغه صورت په خلاف دي کله چي خپله مجوسي ښکار راوګرځوي حَيْثُ لَا يُكْرَهُ نو په دې صورت کي هغه ښکار خوړل مکروه نه دي لِأَنَّ فِعْلَ الْمَجُوسِيِّ لَيْسَ مِنْ جِنْسِ فِعْلِ الْكَلْبِ ځکه چي د مجوسي فعل د سپي د فعل له جنس څخه نه دی فَلَا تَتَحَقَّقُ الْمُشَارَكَةُ لهذا مشارکت نه ثابتیږي وَتَتَحَقَّقُ بَيْنَ فِعْلَيِ الْكَلْبَيْنِ خو د دوو سپیانو د

فعلونو تر مینځ مشارکت ثابتیږي لِوُجُوْدِ الْمُجَانَسَةِ ځکه چي همجنس والی موجود دی.

**اللغات:** ﴿ردّه﴾ د نصر د باب ماضي ده: د دې باب په صله کي چي "علیٰ" راسي نو معنیٰ یې راځي: راګرځول، را واپس کول. ﴿مشارکة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: یو د بل سره شریکېدل. (اشتراک). ﴿فقد﴾ د ضرب د باب مصدر دی: نیستېدل، ورکېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کوم سپی د تعلیم یافته سپي سره شریک سوی وو، که هغه فقط د ښکار په راګرځولو کي شرکت وکړي، نه د ښکار په زخمي کولو کي، بلکي د زخمي کولو او وژلو کار اول سپي تر سره کړي، نو په دې صورت کي د ښکار خوړل مکروه دي؛ ځکه دلته من وجه مشارکت موجود دی او من وجه معدوم دی، نو ځکه دغه ښکار خو نه حلال دی او نه حرام، بلکي مکروه دی. د دې په خلاف که یو مجوسي د یو تعلیم یافته سپي لپاره ښکار راوګرځوي او سپی یې زخمي کړي، نو هغه ښکار حلال دی؛ د دې دواړو صورتونو په مینځ کي فرق دا دی چي د مجوسي فعل د سپي د فعل له جنس څخه نه دی؛ لهذا په دواړو فعلونو کي مشارکت معدوم دی، نو ځکه په دې صورت کي ښکار حلال دی، او څرنګه چي د سپي فعل د سپي د فعل له جنس څخه دی. لهذا په هغوی کي من وجه مشارکت موجود او ثابت دی، او د من وجه مشارکت په اعتبار کولو سره په دې صورت کي ښکار مکروه ګرځول سوی دی.

## که د دویم سپي په وجه اول سپی صرف د ښکار په نیولو کي تېزي وکړي نو څه حکم دی؟

وَلَوْلَمْ يَرُدَّهُ الْكَلْبُ الثَّانِيْ عَلَى الْأَوَّلِ او که دویم سپی پر اول سپي ښکار نه راوګرځوي لٰكِنَّهُ اِشْتَدَّ عَلَى الْأَوَّلِ حَتّٰى اِشْتَدَّ عَلَى الصَّيْدِ لیکن هغه پر اول سپي تېزي وکړي تر دې چي اول سپی پر ښکار تېزي وکړي فَأَخَذَهُ وَقَتَلَهُ نو هغه ونیسي او قتل یې کړي لَا بَأْسَ بِأَكْلِهِ نو د هغه ښکار په خوړلو کي څه پروا نسته لِأَنَّ فِعْلَ الثَّانِيْ أَثَّرَ فِي الْكَلْبِ الْمُرْسَلِ دُوْنَ الصَّيْدِ ځکه چي د دویم سپي فعل په رالیله کړل سوي [اول] سپي کي اثر کړی دی، نه په ښکار کي حَيْثُ اِزْدَادَ بِهِ طَلَبًا ځکه چي د دویم سپي د فعل په وجه د اول سپي طلب زیات سوی دی فَكَانَ تَبَعًا لِفِعْلِهِ نو ځکه د هغه فعل به د اول سپي د فعل تابع وي لِأَنَّهُ بِنَاءٌ عَلَيْهِ ځکه چي هغه د دې اول سپي پر فعل مبني دی فَلَا يُضَافُ الْأَخْذُ إِلَى التَّبَعِ نو ځکه [د ښکار] نیول به تابع ته نه منسوب کیږي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ رَدَّهُ عَلَيْهِ په

خلاف د هغه صورت کله چي دويم سپی ښکار پر اول سپي راګرځولی وي لِأَنَّهُ لَمْ يَصِرْ تَبَعًا ځکه چي هغه تابع نه سو فَيُضَافُ إِلَيْهِمَا نو ځکه نيول به دواړو ته منسوب کيږي.

**اللغات**: ﴿مجانسة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: هَمْ جنس کېدل (همجنس کېدل). ﴿إشتد﴾ د افتعال د باب ماضي ده، د دې باب په صله کي چي "علیٰ" ذکر سي نو معنیٰ يې راځي: تېزي کول. په تګ کي تېزي کول. ﴿التَّبَع﴾ تابع، جمع: أَتْبَاع. (مصباح اللغات)

**تشريح**: په مخکيني صورت کي دواړه سپيان په نيولو کي شريکان وه، که څه هم په زخمي کولو کي د دواړو شرکت نه وو، او په دې صورت کي خو په نيولو کي هم شريکان نه دي، بلکي ښکار فقط اول سپي نيولی دی نو ځکه هغه حلال دی.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي که يو څوک خپل مُعلّم (تعليم‌يافته) سپی پر ښکار ور ايله کړي خو په دې دواران کي يو جاهل (نا تعليم‌يافته) سپی هم پر هغه ښکار ور وځغلي چي په دې وجه د هغه مُعلّم سپې رفتار تېز سي او په ډېر تېزي سره پر ښکار ور وځغلي او ښکار ونيسي، نو دا ښکار حلال دی: ځکه د دې بل جاهل سپي فعل په مُعلّم سپي کي تېزي پيدا کړې ده او په ښکار کي د هغه د فعل هيڅ دخل نسته، بلکي په دې باره کي د هغه فعل د مُعلم سپي د فعل تابع دی: ځکه چي د مُعلّم سپي فعل مقدم دی، او تاسي ته معلومه ده چي د حکم اضافت او نسبت تابع ته نه کيږي، بلکي اصل ته کيږي، تابع په دې هکله هيڅ حيثيت نه لري. او په مخکنی مسئله يعني کله چي دا بل سپي د مُعلّم سپي لپاره ښکار راوګرځوي، نو هلته د دې بل سپي د فعل دخل او اثر په ښکار کي راغلی دی لهذا د هغه فعل تابع نه سو، نو ځکه هلته د نيولو اضافت دواړو ته سوی دی.

## که مجوسي کس د مسلمان ښکاري سپی پر ښکار وپاروي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَإِذَا أَرْسَلَ الْمُسْلِمُ كَلْبَهُ فرمايي: او کله چي مسلمان کس خپل سپی ايله کړي فَزَجَرَهُ مَجُوسِيٌّ نو يو مجوسي کس هغه [پر ښکار] وپاروي فَانْزَجَرَ بِزَجْرِهِ نو د هغه په پارولو سره سپی وپاريږي [پر ښکار ور وځغلي] فَلَا بَأْسَ بِصَيْدِهِ نو د هغه په ښکار کي څه پروا نسته وَالْمُرَادُ بِالزَّجْرِ الْإِغْرَاءُ بِالصِّيَاحِ عَلَيْهِ او له زجر څخه [دلته] مراد په چيغه وهلو سره د سپي پارول دي وَبِالِانْزِجَارِ إِظْهَارُ زِيَادَةِ الطَّلَبِ او له انزجار څخه مراد [پر ښکار نيولو] د سپي زيات طلب ښکاره کول دي وَوَجْهُهُ أَنَّ الْفِعْلَ يُرْفَعُ بِمَا هُوَ فَوْقَهُ أَوْ مِثْلُهُ او د دې دليل دا دی چي فعل په داسي فعل سره ختميږي [منسوخه

کيږي] کوم چي تر هغه لوړ يا د هغه په څېر وي كَمَا فِيْ نَسْخِ الْآيِ لکه د آيتونو په منسوخه کېدلو کي وَالزَّجْرُ دُوْنَ الْإِرْسَالِ او زجر له إرسال څخه کمتر دی لِكَوْنِهِ بِنَاءً عَلَيْهِ ځکه چي هغه پر إرسال مبني دی.

**اللغات**: ﴿زَجْر﴾ د نصر د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوې دي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: رټل او غندل، پارول او هڅول، لمسول، يو شي ته تيارول. ﴿إنزجر﴾ د انفعال د باب ماضي ده: غاړه اېښودل (فرمان منل)، ديو چا په پارولو او تيارولو سره پارېدل او تيارېدل. ﴿إغراء﴾ د افعال د باب مصدر دی: پارول. ﴿صياح﴾ چيغه او نعره.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که مسلمان په بسم الله سره خپل تعليم يافته ښکاري سپی پر ښکار ور ايله کړي او په لاره کي يو مجوسي پر سپي نعره او چيغه وکړي چي هغه پر ښکار نيولو ښه وپاروي او سپی د هغه دغه زجر ومني او پر ښکار ور وځغلي تر دې چي ښکار ونيسي او قتل يې کړي، نو دا ښکار حلال دی؛ ځکه د مجوسي کس د زجر په وجه د مسلمان إرسال نه ختميږي؛ ځکه أصول او قاعده دا ده چي يو فعل په داسي فعل سره منسوخه کيږي (ختميږي) کوم چي تر هغه قوي يا ور سره برابر وي، او د مجوسي فعل کمتر (د کمي درجې) دی، نو په دې سره د مسلمان فعل نه منسوخه کيږي؛ او د مجوسي د فعل د کمتر والي دليل دا دی چي د هغه فعل زجر دی او د مسلمان فعل إرسال دی، او دا ښکاره خبره ده چي إرسال اصل دی او زجر تابع دی (ځکه چي إرسال تر هغه مخکي واقع سوی دی)، او تابع له متبوع څخه کمتر او ادنیٰ وي او متبوع (اصل) اعلیٰ وي، لهذا إرسال له زجر څخه اعلیٰ او اقویٰ دی؛ نو ځکه د مسلمان إرسال به د مجوسي په زجر سره نه باطليږي او په ښکار نيولو کي به د مجوسي د زجر هيڅ دخل نه وي، نو ځکه دا ښکار به حلال او روا وي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په آخر کي د مذکوره قاعدې مثال پېش کړی دی چي لکه څرنګه د قرن د آيت نسخ په کمتر سره نه کيږي، مثلاً محکم آيت په مجمل سره نه باطليږي؛ ځکه محکم اعلیٰ دی او مجمل ادنیٰ دی. نو همداسي هر اعلیٰ فعل پر ادنیٰ فعل غالب وي او په هغه سره نه منسوخه کيږي.

## او که مسلمان د مجوسي سپی وپاروي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَلَوْ أَرْسَلَهُ مَجُوْسِيٌّ فرمايي: او که يو مجوسي کس سپی ايله کړي فَزَجَرَهُ مُسْلِمٌ بيا يو مسلمان کس هغه وپاروي فَانْزَجَرَ بِزَجْرِهِ او د مسلمان په زجر [پارولو] سره هغه وپارېږي لَمْ يُؤْكَلْ نو ښکار به يې نه خوړل کيږي لِأَنَّ الزَّجْرَ دُوْنَ الْإِرْسَالِ ځکه چي زجر له إرسال څخه کمتر دی وَلِهٰذَا لَمْ

تَثْبُتُ بِهِ شُبْهَةُ الْحُرْمَةِ په همدې وجه په زجر سره د حرمت شبهه نه ثابتيږي فَأَوْلَىٰ أَنْ لَا يَثْبُتَ بِهِ الْحِلُّ نو ځکه حلت خو به په درجه اولیٰ نه په ثابتيږي وَكُلُّ مَنْ لَا تَجُوزُ ذَكَاتُهُ او هر هغه کس چي ذبح کول يې جائز نه وي كَالْمُرْتَدِّ وَالْمُحْرِمِ وَتَارِكِ التَّسْمِيَةِ عَامِدًا لکه مرتد کس، احرام تړونکی کس او قصداً بسم الله پرېښوونکی کس فِي هٰذَا بِمَنْزِلَةِ الْمَجُوسِيِّ هغه په دې هکله د مجوسي په درجه کي دی.

**اللغات**: ﴿إرسال﴾ د افعال د باب مصدر دی: سپی وغيره پر ښکار ور ايله کول. ﴿مُحْرِم﴾ احرام تړونکی (هغه کس چي إحرام يې تړلی وي). ﴿ذکاة﴾ پاکول، حلالول، ذبح کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي څرنګه په مخکنی مسئله کي د مسلمان إرسال د مجوسي په زجر سره نه منسوخه کېدی او ښکار حلال وو، همداسي که صورت د هغه برعکس وي يعني إرسال د مجوسي له طرفه وي او زجر د مسلمان له طرفه وي، نو دلته هم اعلیٰ يعني إرسال غالب پاتيږي او هغه په ادنیٰ يعني په زجر سره نه منسوخه کيږي، او څرنګه چي د مجوسي إرسال معتبر نه دی، نو ځکه د دې سپي ښکار حلال نه دی.

**وكل إلخ**: فرمايي: هر هغه کس چي د هغه ذبح جائز نه وي لکه مرتد يا محرم يا قصداً بسم الله پرېښوونکی کس، هغه په دې حکم کي د مجوسي په څېر دی. يعني څرنګه چي د مجوسي تر إرسال وروسته د مسلمان په زجر سره ښکار نه حلاليږي، نو همداسي له دغه مذکور کسانو څخه د هر يوه تر إرسال وروسته د مسلمان په زجر سره ښکار نه حلاليږي، او که د دې برعکس وي، يعني إرسال د مسلمان له طرفه وي او زجر له دې کسانو څخه د يوه له طرفه وي، نو ښکار حلال پاتيږي.

### كه يو غير مُرسَل سپی د مسلمان له طرفه وپارول سي نو د هغه حكم

وَإِنْ لَمْ يُرْسِلْهُ أَحَدٌ او که سپی هيچا [پر ښکار] نه وي را ايله کړی فَزَجَرَهُ مُسْلِمٌ بيا مسلمان هغه [پر ښکار] وپاروي فَانْزَجَرَ فَأَخَذَ الصَّيْدَ نو هغه وپاريږي او ښکار ونيسي فَلَا بَأْسَ بِأَكْلِهِ نو د ښکار په خوړلو کي څه پروا نسته لِأَنَّ الزَّجْرَ مِثْلُ الِانْفِلَاتِ ځکه چي زجر د خپله ايله کېدلو په څېر دي [يعني داسي دی لکه سپی چي خپله پر ښکار ور ايله سي] لِأَنَّهُ إِنْ كَانَ دُونَهُ مِنْ حَيْثُ أَنَّهُ بِنَاءٌ عَلَيْهِ ځکه زجر که څه هم په دې حيثيت سره تر انفلات کم دی چي هغه پر انفلات مبني دی فَهُوَ فَوْقَهُ مِنْ

حَيْثُ إِنَّهُ فِعْلُ الْمُكَلَّفِ خو په دې حيثيت سره بيا تر هغه بالا دى چې زجر د مكلف [انسان فعل دى فَاسْتَوَيَا نو دواړه [په درجه كې] برابر سوه فَصَلُحَ نَاسِخًا نو ځكه زجر به د منسوخه كونكي صلاحيت لري [چې په دې سره به انفلات منسوخه كيږي].

**اللغات**: ﴿وقذ﴾ د ضرب د باب ماضي ده: دومره وهل چې له توان او حركته ووځي او مرګ ته نژدې سي، نا توانه كول. ﴿انفلات﴾ د انفعال د باب مصدر دى: د حيوان خلاصېدل، ايله كېدل. ﴿ناسخ﴾ د فتح د باب فاعل دى: منسوخه كونكى، ختمونكى او ليرې كونكى.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى كه يو تعليم يافته سپى خپله پر ښكار ور وځغلي يعني هغه د يو چا له طرفه پر ښكار نه وي را ايله سوى بلكې خپله يې ښكار ته سودا سي او د ښكار پر طرف روان سي او په دې دوران كې يو مسلمان كس په بسم الله سره د هغه زجر وكړي يعني هغه سپى پر ښكار وپاروي، نو د هغه ښكار حلال دى؛ ځكه اُصول او قاعده دا ده چې فعل په خپل هَمْمِثل او برابر والا فعل سره هم منسوخه كيږي (لكه مخكې چې ذكر سوه)، نو دلته د سپي خپله پر ښكار ورايله كېدل (انفلات) او د مسلمان زجر كول سره برابر دي، نو د مسلمان په زجر سره د سپي انفلات منسوخه كيږي او اوس به هغه داسې ګڼل كيږي چې ګواكې مسلمان هغه را ايله كړى دى؛ او سره برابر ځكه دي چې په يوه حيثيت سره انفلات اعلىٰ دى او په يوه حيثيت سره زجر اعلىٰ دى؛ انفلات ځكه اعلىٰ دى چې هغه اصل او متبوع دى او د مسلمان زجر تابع او پر هغه مبني دى. او زجر ځكه اعلىٰ دى چې هغه د مكلف (انسان) فعل دى او انفلات د غير مكلف (سپي) فعل دى، لهذا په دې اعتبار سره زجر اعلىٰ سو. نو دوى دواړه په درجه كې برابر دي او په برابر شي سره نسخ جائز ده، لهذا انفلات منسوخ سو او فقط زجر باقي پاته سو. نو دا داسې سو لكه خپله مسلمان چې هغه سپى پر ښكار ور ايله كړى وي.

## كه سپى يو وار ښكار ناتوانه كړي او بيا يې قتل كړي نو څه حكم دى؟

وَلَوْ أَرْسَلَ الْمُسْلِمُ كَلْبَهُ عَلَى صَيْدٍ وَسَمَّى او كه مسلمان كس خپل سپى پر ښكار ور ايله كړي او بسم الله ووايي فَأَدْرَكَهُ او هغه ښكار ونيسي فَضَرَبَهُ وَوَقَذَهُ نو هغه ووهي او ناتوانه يې كړي ثُمَّ ضَرَبَهُ فَقَتَلَهُ بيا هغه ووهي او قتل يې كړي أُكِلَ نو هغه ښكار به خوړل كيږي وَكَذَا إِذَا أَرْسَلَ كَلْبَيْنِ او همدارنګه كله چې دوه سپيان [پر ښكار] ور ايله كړي فَوَقَذَهُ أَحَدُهُمَا ثُمَّ قَتَلَهُ الْآخَرُ نو

له دوی څخه يو هغه ښکار ناتوانه کړي او بل يو يې قتل کړي أُكِلَ نو هغه به خوړل کيږي لِأَنَّ الِامْتِنَاعَ عَنِ الْجَرْحِ بَعْدَ الْجَرْحِ لَا يَدْخُلُ تَحْتَ التَّعْلِيمِ ځکه چي تر زخمي کولو وروسته له زخمي کولو څخه منع کېدل [د سپي وغيره] په تعليم کي نه داخليږي فَجُعِلَ عَفْوًا نو ځکه دا به معاف ګرځول کيږي.

**اللغات**: ﴿عَفْو﴾ د نصدر د باب مصدر دی: معاف کول، بخښل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که يو مسلمان کس خپل سپی په بسم الله سره پر ښکار ور ايله کړي او سپی چي ښکار ونيسي نو اول وار هغه ښه سره ومروړي زخمي يې کړي او ناتوانه يې کړي چي له ځغاستي ولوېږي، بيا دويم وار هغه قتل کړي، نو دا ښکار حلال دی. همدارنګه که مسلمان کس دوه سپيان په بسم الله سره پر ښکار ور ايله کړي او له دوی څخه يو سپی ښکار ناتوانه کړي او بل سپی هغه قتل کړي، نو په دې صورت کي هم هغه ښکار حلال دی.

وجه يې دا ده چي سپي ته داسي تعليم ورکول ممکن نه دي چي کله ته ښکار زخمي کړې نو هغه مه وژنه! بلکي د خپل مالک انتظار کوه! چي هغه بې غمه راسي او دا ذبح کړي، نو کله چي دا (د ښکار تر زخمي کولو وروسته د هغه بيا نه زخمي کول او نه وژل غيره) د سپي په تعليم کي نه سيء داخلېدلای. نو ځکه دا به عذر شمېرل کيږي او معاف کول کيږي به.

## که دوه کسان خپل سپيان پر ښکار ور ايله کړي (حکم او تفصيل)

وَلَوْ أَرْسَلَ رَجُلَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا كَلْبًا او که له دوو کسانو څخه هر يو خپل سپی [پر ښکار] ور ايله کړي فَوَقَذَهُ أَحَدُهُمَا وَقَتَلَهُ الْآخَرُ نو له هغوی څخه يو سپي ښکار ناتوانه کړي او بل يو يې قتل کړي أُكِلَ نو ښکار به خوړل کيږي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی دی وَالْمِلْكُ لِلْأَوَّلِ او ملکيت اول کس لره دی لِأَنَّ الْأَوَّلَ أَخْرَجَهُ عَنْ حَدِّ الصَّيْدِيَّةِ ځکه چي اول سپي دغه ښکار د صيديّت [ښکار والي] له حدّ څخه ايستلی دی إِلَّا أَنَّ الْإِرْسَالَ مِنَ الثَّانِي حَصَلَ عَلَى الصَّيْدِ خو څرنګه چي د دويم کس له طرفه د سپي إرسال پر صَيد [ښکار] واقع سوی دی وَالْمُعْتَبَرُ فِي الْإِبَاحَةِ وَالْحُرْمَةِ حَالَةُ الْإِرْسَالِ او د روا کېدلو او حرامېدلو په هکله د إرسال [ايله کولو] حالت معتبر

دی فَلَمْ يَحْرُمْ نو ځکه هغه ښکار به حرام نه وي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ الْإِرْسَالُ مِنَ الثَّانِيْ بَعْدَ الْخُرُوْجِ عَنِ الصَّيْدِيَّةِ بِجُرْحِ الْكَلْبِ الْأَوَّلِ په خلاف د هغه صورت کله چې د دويم کس له طرفه د سپي إرسال له صيديت څخه تر وتلو وروسته وي د اول سپي د زخمي کولو په وجه [يعني کله چې اول سپی ښکار زخمي کړي او د صيديت له حد څخه يې وباسي. تر دې وروسته دويم کس خپل سپی پر هغه ښکار ور ايله کړي. نو هغه ښکار حلال نه دی].

**اللغات**: ﴿صيديّة﴾ ښکار کېدل، ښکار والی.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دي که دوه کسان پر يوه ښکار خپل تعليم يافته سپيان ور ايله کړي. بيا له هغوی څخه يو سپی ښکار ونيسي او ناتوانه يې کړي خو قتل يې نه کړي او دويم سپی راسي هغه قتل کړي، نو په دې صورت کې هم هغه ښکار حلال او جائز دی؛ ځکه تر زخمي کولو وروسته د اول سپي درېدل او ښکار نه قتلول په تعليم کې داخل نه دي، نو د مخکې په څېر به دا هم معاف ګرځول کيږي او ښکار به حلال وي.

والملك إلخ: فرمايي چې په صورت مسئله کې ښکار د اول سپي والا حق کيږي؛ ځکه همدې اول سپي هغه زخمي کړی دی او د صيديت له حد څخه يې ايستلی دی، نو ځکه ښکار د هغه د مالک په ملکيت کې داخليږي. پاتې سوه د دې ښکار د حلال کېدلو مسئله، نو د دويم سپي په قتلولو سره ښکار ځکه حلاليږي؛ ځکه چې د دې دويم سپي إرسال هم په هغه وخت کې سوی وو، کله چې د ښکار صيديّت باقي وو، او دا جلا خبره ده چې د ښکار تر زخمي کېدلو وروسته هغه ته رسېدلی وو، او څرنګه چې د حلت او حُرمت په هکله د إرسال حالت معتبر دی او د دويم سپي د إرسال په وخت کې ښکار باقي وو يعني د صيديت له حد څخه وتلی نه وو، نو ځکه د دويم سپي په قتلولو سره ښکار حلاليږي او په هغه کې د حُرمت شبهه نه پاتيږي.

ها! که هغه دويم کس د اول سپي د ايله کېدلو په وخت کې خپل سپی نه وي ايله کړی، بلکې اول سپي چې ښکار زخمي کړي او د صيديت له حد څخه يې خارج کړي، بيا يې پر ښکار ور ايله کړي، نو په دې صورت کې د دويم سپي په وار سره قتل سوی ښکار نه حلاليږي؛ ځکه په دې صورت کې د دويم سپي إرسال پر ښکار (صَيد) نه دی سوی بلکې پر زخمي ښاروي سوی دی، او د حلت لپاره إرسال على الصّيد معتبر دی، إرسال على المجروح معتبر نه دی. فقط والله أعلم وعلمه أتم

❀❀❀

# فَصْلٌ فِي الرَّمْيِ

## دا فصل (په غشي سره) د ویشتلو په بیان کي دی

**تشریح:** مخکي ذکر سوه چي کتابُ الصید پر دوو فصلونو مشتمل دی چي له هغوی څخه اول فصل په حیواناتو سره د ښکار کولو په بیان کي دی او دویم فصل په جماداتو (غشي وغیره) سره د ښکار کولو په بیان کي دی، ځرنګه چي د روح او ژوندون په وجه حیواناتو لره پر جماداتو فوقیت حاصل دی او د دوی فعل اختیاري وي، نو ځکه اول د دوی احکام بیان کړل سوي دي. اوس تر هغه وروسته په جماداتو سره د ښکار کولو احکام بیانوي. (عنایه)

**که څوک د یو شي کنبهاري واوري او د ښکار په ګومان هغه وویشي (حکم او تفصیل)**

وَمَنْ سَمِعَ حِسًّا ظَنَّهُ حِسَّ صَيْدٍ او څوک چي یو کنبهاری واوري او پر هغه د ښکار د کنبهاري ګومان وکړي فَرَمَاهُ نو هغه په غشي سره وویشي أَوْ أَرْسَلَ كَلْبًا أَوْ بَازِيًا عَلَيْهِ یا سپی یا باز پر هغه ور ایله کړي فَأَصَابَ صَيْدًا نو هغه پر ښکار ولګیږي ثُمَّ تَبَيَّنَ أَنَّهُ حِسُّ صَيْدٍ بیا څرګنده سي چي هغه [ربښتیا هم] د ښکار کنبهاری وو [نه د سړي او غیر صید] حَلَّ الْمُصَابُ نو پر کوم ښکار چي لګېدلی وي هغه حلال دی أَيَّ صَيْدٍ كَانَ هغه که هر ښکار وي [یعني که مأکول اللحم وي او که غیر مأکول اللحم وي. ځکه مأکول اللحم ټوله حلالیږي او د غیر مأکول اللحم څرمن وغیره پاکیږي] لِأَنَّهُ قَصَدَ الِاصْطِيَادَ ځکه چي هغه کس د ښکار کولو اراده کړې ده [دا ظاهر روایت دی] وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ ۞ أَنَّهُ خَصَّ مِنْ ذَٰلِكَ الْخِنْزِيرَ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي هغه له دې څخه خنزیر خاص کړی دی لِتَغْلِيظِ التَّحْرِيمِ ځکه چي د هغه حراموالی سخت دی أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُ لَا تَثْبُتُ الْإِبَاحَةُ فِي شَيْءٍ مِنْهُ

---

۞ القول الراجح، هو ظاهر الرواية، قال العلامة الحصكفي رَحِمَهُ الله: وحل اصطياد ما يؤكل لحمه وما لا يؤكل لحمه لمنفعة جلده أو شعره أو ريشه إلى أن قال: وبه يطهر لحم غير نجس العين كخنزير فلا يطهر أصلاً وجلده، وقيل: يطهر جلده لا لحمه وهو أصح ما يفتى به، انظر للتفصيل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۲۳]

آیا ته نه ګورې! چې د خنزیر په هیڅ حصه کې هم روایښت نه ثابتیږي بِخِلَافِ السِّبَاعِ په خلاف د درندګانو لِأَنَّهُ يُؤَثِّرُ فِيْ جِلْدِهَا ځکه چې اصطیاد [ښکارول] د هغوی په څرمن کې اثر کوي وَزُفَرُ خَصَّ مِنْهَا مَا لَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ او امام زفر رَحِمَهُ الله له دې څخه هغه حیوانان خاص کړي دي چې غوښې یې نه خوړل کیږي لِأَنَّ الْإِرْسَالَ فِيْهِ لَيْسَ لِلْإِبَاحَةِ ځکه چې په هغوی کې إرسال د روایښت لپاره نه وي [یعني پر غیرِ مأکولُ اللحم حیواناتو چې سپی وغیره ور ایله کول کیږي. هغه د دې لپاره نه کیږي چې غوښې یې روا کړل سي او وخوړل سي].

**اللغات**: ﴿حِسّ﴾ د دې لفظ څو معناوي دي: ① کرار آواز، د هغه شي د تېرېدلو ږغ او آواز چې چا ته نژدې تېرېږي لیکن هغه یې نه ویني یعني کنبهاری. ② په حواسِ خمسه وو نسره یو شی محسوسول. ③ د حواسو فعل (یعني کوم فعل چې له یوه حس څخه صادر سي)، دلته اوله معنیٰ مراد ده. ﴿رمْی﴾ د ضرب د باب ماضي ده: ویشتل، غشی غورځول. ﴿مُصاب﴾ د افعال د باب مفعول دی: لګېدلی شی. هغه څه چې نښانه پر لګېدلې وي، مبتلا. ﴿تغلّظ﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: سختېدل، سنګین کېدل. ﴿اصطیاد﴾ د افتعال د باب مصدر دی: ښکار کول، ښکارول. ﴿سباع﴾ جمع د سُبُعٌ ده: درنده. داړونکی او څیرونکی حیوان.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که ښکاري کس په کښت یا داسي بل ځای کي د یو شي کنبهاری او ږغ واوري او د ده ګومان سي چې دا د ښکار د څاروي کنبهاری دی نو غشی پر ورایله کړي. یا خپل تعلیم یافته سپی یا باز پر ورایله کړي او هغه ښکار ده ته په لاس ورسي، نو د هغه د حلت په هکله څه حکم دی؟، فرمایي په دې باره کي د ظاهر روایت حکم دا دی چې که غشی پر هاغه څاروي لګېدلی وي چې ښکاري کس یې کنبهاری اورېدلی وي، نو هغه څاروی که مأکولُ اللحم وي (یعني داسي څاروی وي چې په شریعت کي د هغه غوښې خوړل جائز وي مثلاً هوسی وغیره)، نو هغه حلال دی او خوړل یې روا دي. او که هغه غیرِ مأکولُ اللحم وي، نو د هغه په څرمن وغیره کي حِلت ثابتیږي.

امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله فرمایي چې که ښکاري کس د خنزیر کنبهاری واوري او غشی ور ایله کړي بیا هغه غشی پر یو مأکول اللحم ښکار ولګیږي، نو هغه ښکار حلال نه دي: ځکه خنزیر نجس العین دی او د هغه له یو جزء څخه هم نفع اخیستل صحیح نه دي: نو ځکه د خنزیر د کنبهاري د اورېدلو پربناء ویشتل سوی ښکار به حلال نه وي.

د دې په خلاف که ښکاري دیو درنده وي (مثلاً دلېوه ښکاري وي) او غشی پریو مأکول اللحم ښکار ولګېږي. نو د هغه خوړل حلال او مباح دي؛ ځکه د درنده په ښکارولو سره د درنده په څرمن کي طهارت او پاکي پیدا کیږي، لهذا که د درنده د ښکاري پر اوږېدلو غشی ایله کړی سی او هغه پر مأکولُ اللحم ښکار ولګېږي، نو په هغه کي به حلت او روایښت پیدا کیږي.

وزفر إلخ: فرمايي چي د امام زفر رَحِمَهُ الله په نيز که ښکاري کس دیو غیر مأکول اللحم ځناوري ښکاري واوري او غشی ور ایله کړي او بیا غشی پر مأکولُ اللحم ځناوري ولګيږي. نو د هغه خوړل حلال نه دي؛ ځکه چي په غیر مأکولُ اللحم ځناوري کي رمی او إرسال د هغوی د حلت او اباحت لپاره نه کیږي. نو ځکه د هغوی د ښکاري د اوریدلو پر بناء ویشتل سوی ښکار به حلال نه وي، که څه هم هغه مأکولُ اللحم وي.

## د ظاهر روایت دلیل

وَوَجْهُ الظَّاهِرِ أَنَّ اسْمَ الِاصْطِيَادِ لَا يَخْتَصُّ بِالْمَأْكُولِ او د ظاهر روایت دلیل دا دی چي د اصطیاد لفظ د مأکول اللحم سره خاص نه دی فَوَقَعَ الْفِعْلُ اصْطِيَادًا لهذا فعل اصطیاد واقع سو وَهُوَ فِعْلٌ مُبَاحٌ فِي نَفْسِهِ او دا فعل بذات خود روا فعل دی وَإِبَاحَةُ التَّنَاوُلِ تَرْجِعُ إِلَى الْمَحَلِّ او د خوړلو روایښت د محل وطرف ته راجع کیږي فَتَثْبُتُ بِقَدْرِ مَا يَقْبَلُهُ لهذا په هغه مقدار کي اباحت ثابتیږي په څومره مقدار کي چي یې محل قبول کړي لَحْمًا وَجِلْدًا په غوښه کي او په څرمن کي وَقَدْ لَا تَثْبُتُ إِذَا لَمْ يَقْبَلْهُ او کله روایښت نه ثابتیږي کله چي محل هغه قبول نه کړي وَإِذَا وَقَعَ اصْطِيَادًا او کله چي فعل اصطیاد واقع سو صَارَ كَأَنَّهُ رَمَى إِلَى صَيْدٍ نو داسي سو لکه هغه چي د ښکار پر طرف غشی وغورځوي فَأَصَابَ غَيْرَهُ او هغه پر بل ښکار ولګیږي.

**اللغات:** ﴿المأكول﴾ د نصر د باب مفعول دی: خوړل کېدونکی. هغه ځناوری چي شریعت د هغه د خوړلو اجازت ورکړی وي. ﴿التناول﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: یو څه خوړل، حاصلول او اخیستل.

**تشریح:** په دې عبارت کي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د ظاهر روایت دلیل بیان کړی دی. حاصل یې دا دی چي په ظاهر روایت کي چي کوم مطلق ښکار حلال ګرځول سوی دی. له هغه څخه مراد د غوښي حلت نه دی؛ ځکه هر ښکار مباح اللحم او مأکول اللحم نه وي. بلکي مراد یې دا دی چي په کوم ښکار کي څومره حلت ثابتېدلای سي، هغه به ثابتیږي، لکه څرنګه په مأکول اللحم ښکار کي د

حلت په غوښه او څرمن ټولو کي اثر کوي او ټوله حلالوي. او د غير مأكول اللحم څرمن حلالوي. او په خنزير کي هيڅ شی نه حلاليږي خو د هغه له ضرر څخه د بچ کېدلو مقصود ضرور حاصليږي.

د دغه تفصيل وجه دا ده چي لفظ د اصطياد يعني ښکار کول فقط د مأكول اللحم سره خاص نه دی چي که مأكول اللحم شاروی ښکار کړل سي نو بس دې ته اصطياد وايي. بلکي دا يو عام لفظ دی کوم چي پر هر ښکار صادقيږي. يعني پر کوم ښکار چي هم غشی. باز. سپی وغيره ورايله کړل سي. پر هغه د اصطياد اطلاق کيږي. برابره ده هغه ښکار مأكول اللحم وي او که غير مأكول اللحم وي. او څرنګه چي اصطياد يو روا فعل دی. نو ځکه هغه به په هر حال کي روا پاتيږي.

پاته سوه د دې ښکار د روايښت مسئله کوم چي په غشي وغيره سره ووژل سي. نو د هغه تفصيل خو موږ بيان کړی دی چي که مأكول اللحم وي نو د هغه غوښي څرمن ټوله حلاليږي. او که له خنزير څخه بغير نور غير مأكول اللحم ښکار وي مثلاً زمری. لېوه وغيره نو د هغه په څرمن کي روايښت او طهارت ثابتيږي. او که خنزير وي نو په هيڅ شي کي يې هم طهارت نه ثابتيږي؛ ځکه چي خنزير نجس العين دي او د هغه محل په هيڅ شي کي هم حلت او طهارت نه قبلوي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په "وقد لا تثبت" سره هم دا بيان کړی دی.

**وإذا وقع اصطيادًا إلخ:** خلاصه د کلام دا چي دلته فعل اصطياد واقع کيږي يعني په غشي وغيره سره ويشتل له فايدې څخه خالي نه دي بلکي هغه اصطياد شمېرل کيږي. او بيا د محل د استعداد مطابق په هغه کي احکام جاري کيږي. د دې مثال داسي دی چي که څوک يو ښکار په غشی وويلي لېکن دا غشی له هغه څخه بغير پر بل ښکار ولګيږي. نو اوس د هغه بل ښکار د حال مطابق احکام پکښي جاري کيږي. نو همداسي په صورت مسئله کي به هم د مُصاب ښکار د حالت مطابق احکام پکښي جاري کيږي او نافذيږي. (احسن الهدايه)

## که کنبهاري له ښکار څخه د بل شي وي

وَإِنْ تَبَيَّنَ أَنَّهُ حِسُّ آدَمِيٍّ أَوْ حَيَوَانٍ أَهْلِيٍّ او که څرګنده سي چي هغه [کنبهاری] د يو انسان يا کورني شاروي کنبهاري وو لَا يَحِلُّ الْمُصَابُ نو لګېدلی [ويشتل سوی] ښکار نه حلاليږي لِأَنَّ الْفِعْلَ لَيْسَ بِاصْطِيَادٍ ځکه چي دا فعل اصطياد نه دی وَالطَّيْرُ الدَّاجِنُ الَّذِي يَأْوِي الْبُيُوتَ أَهْلِيٌّ او هغه اموخته مارغه کوم چي کورو ته پناه راوړي هغه کورنی مارغه دی وَالظَّبْيُ الْمُوَثَّقُ بِمَنْزِلَتِهِ او تړل سوې [کورنۍ] هوسۍ د کورني مارغه په څېر ده لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات:** ﴿الداجن﴾ هر هغه حيوان او مارغه چي په کورو کي اموخته وي او نه ځني تښتي.

﴿يأوي﴾ د ضرب د باب مضارع ده: پناه راوړل. راتلل. ﴿أهلي﴾ کورنی. د ځنګلي ضد. ﴿الموثق﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: تړل سوی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې ښکاري کس کوم کښبهارئ اورېدلی او بيا يې غشی وغيره پر ورایله کړی وي، که هغه د ښکار څاروی نه ويَ، بلکې د يو سړي يا د بل کورني څاروي (مثلاً د پُسه) کښبهارئ يې اورېدلی او په غشي يې ويشتلی وي چې د هغه په وجه څاروی مړ سي، نو هغه نه حلالیږي؛ ځکه اوس دا فعل (غشي ويشتل) اصطیاد نه دی، حالانکي د ښکار د حلت لپاره تر ټولو مخکې د فعل اصطیاد کېدل ضروري دي، لېکن څرنګه چې دا فعل اصطیاد نه دی، نو ځکه سر له شروع څخه حلت او اباحت پاته نه سو.

### ﴿د هغه مارغه حکم چې په کورو کې ځاله جوړوي او د اموخته هوسۍ حکم﴾

والطیرالخ: فرمايي کوم مارغه چې په کورونو کې ځاله جوړي، نو د هغه حکم د کورني مارغه د حکم په څېر دی، همدارنګه اموخته کړل سوې هوسۍ هم د کورني څاروي په درجه کې ده، يعني دا دواړه صَید نه دي، لهذا که ښکاري کس د دوی کښبهارئ واوري او غشی باندی ور ایله کړي او هغه پر بل ښکار ولګیږي، نو هغه ښکار نه حلالیږي؛ ځکه چې اصل فعل اصطیاد واقع نه سو، همدې ته مصنف رَحِمَهُ الله په "لِمَا بَيَّنَّا" سره اشاره کړې ده يعني دا فعل اصطیاد نه سو.

### که اصل هدف مارغه يا اوښ وي او غشی پر بل ښکار ولګيږي، نو د هغه حکم

وَلَوْ رَمٰى إِلٰى طَائِرٍ او که ښکاري کس د يو مارغه پر طرف غشی وغورځوي فَأَصَابَ صَيْدًا او هغه پر يو ښکار ولګیږي وَمَرَّ الطَّائِرُ او مارغه ولاړ سي وَلَا يُدْرٰى وَحْشِيٌّ هُوَ أَوْ غَيْرُ وَحْشِيٍّ او معلومه نه سي چې هغه مارغه وحشی وو، او که غیر وحشي حَلَّ الصَّيْدُ نو ښکار حلالیږي لِأَنَّ الظَّاهِرَ فِيْهِ التَّوَحُّشُ ځکه ښکاره په هغه مارغه کې وحشي کېدل دي وَلَوْ رَمٰى إِلٰى بَعِيْرٍ فَأَصَابَ صَيْدًا او که د اوښ پر طرف ته غشی وغورځوي او هغه پر يو ښکار ولګیږي وَلَا يُدْرٰى نَادٌّ هُوَ أَمْ لَا او دا معلومه نه سي چې هغه ترهېدلی [وحشي] اوښ دی، که نه لَا يَحِلُّ الصَّيْدُ نو ښکار نه حلالیږي لِأَنَّ الْأَصْلَ فِيْهِ الْاِسْتِئْنَاسُ ځکه په اوښ کې اموخت والی [نه ترهېدل] اصل دي.

**اللغات:** ﴿وحشي﴾ ځنګلي، ترهېدونکی (چې د انسان په ليدلو سره ترهيږي او ځغلي)، ﴿توحّش﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: وحشي کېدل، ځنګلي کېدل، ﴿نـادّ﴾ د ضرب د باب فاعل دی: ترهېدونکی (ټرېدونکی)، بېرېدونکی او تښتېدونکی، ﴿استئناس﴾ او استيناس: اموخته کېدل، اموخت والی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د يو مارغه پر طرف غشی وغورځوي خو هغه وتښتي نو غشی خطا سي پر بل ښکار ولګيږي، اوس که هغه تښتېدونکی د ښکار (صَيد) مارغه وي، نو هغه لګېدلی (مُصاب) ښکار حلال دی، کنې حلال نه دی (لکه مخکي چي تېرسوه)، لېکن که دا معلومه نه سي چي تښتېدونکی ښکار دی، که نه؟ يا په بله وينا دا چي وحشي دی که غيرِ وحشي (ځکه وحشي ښکار دی او غيرِ وحشي ښکار نه دی)، نو اوس به څه کيږي؟، فرمايي چي په دې صورت کي ښکار حلال دی: ځکه په مارغانو کي اصل وحشي کېدل دي، لهذا تښتېدونکي مارغه به ښکار (صَيد) شمېرل کيږي.

ولو رمى إلى بعيرإلخ: او که د اوښ پر طرف غشی وغورځوي خو هغه پر بل ښکار ولګيږي، نو که اوښ پر خپل اصل حالت وي (يعني ترهېدلی نه وي)، نو هغه لګېدلی ښکار حلال نه دی، او که اوښ ترهېدلی وي کوم چي د وحشي په درجه کي دی، نو بيا هغه ښکار حلال دی. لېکن که دا معلومه نه سي چي دا ترهېدلی اوښ دی، که نه؟، نو فرمايي چي په دې صورت کي هم هغه ښکار حلال نه دی: ځکه په اوښ کي اصل همدا ده چي هغه وحشي نه وي، بلکي اموخته وي.

## که اصل هدف ماهي يا ملخ وي...، نو د هغه حکم

| |
|---|
| وَلَوْ رَمٰى إِلٰى سَمَكَةٍ أَوْ جَرَادَةٍ او که د ماهي يا ملخ پر طرف غشی وغورځوي فَأَصَابَ صَيْدًا او هغه پر يو ښکار ولګيږي يَحِلُّ فِيْ رِوَايَةٍ عَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ نو هغه ښکار حلال دی له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه په نقل سوي يوه روايت کي لِأَنَّهُ صَيْدٌ ځکه چي هغه يو ښکار دی وَفِيْ أُخْرٰى عَنْهُ لَا يَحِلُّ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه په نقل سوي بل روايت کي هغه نه حلاليږي لِأَنَّهُ لَا ذَكَاةَ فِيْهِمَا ځکه چي په دې دواړو کي ذبح نسته [يعني ماهي او ملخ نه ذبح کول کيږي]. |

**اللغات:** ﴿ذكاة﴾ ذبح، حلالول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د ماهي يا ملخ پر طرف غشی وغورځوي خو هغه پر بل ښکار ولګيږي، نو اوس د هغه ښکار څه حکم دی؟، فرمايي چي په دې کي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دوه روايتونه نقل سوي دي:

①... هغه ښکار حلال دی: ځکه د کوم څه پر طرف چي يې غشی غورځولی دی يعني ماهي او ملخ، هغه هم ښکار دي. ②... هغه ښکار حلال نه دی: ځکه چي ماهي او ملخ نه ذبح کول کيږي، او د کوم څه پر طرف چي غشی وغورځول سي په هغه کي چي څرنګه دا شرط دي چي ښکار به وي، همداسي دا هم شرط دي چي د هغه حلت مشروط بالذبح وي، او دلته دا شرط مفقود دی، نو ځکه ښکار نه حلاليږي.

**يادونه:** صحيح او مختار قول دا دی چي په مذکوره صورت کي ښکار حلال دی که هم څه د غشي ويشتلو په وخت کي يې په هېره بسم الله هم پرې ايښې وي. (شامي ج: ۵. ص: ۳۰)

## که ښکاري کس د کښهاري په اور ېدلو سره د انسان ګومان پرې کړی وي خو هغه ښکار وخيږي؟

وَلَوْ أَصَابَ الْمَسْمُوعَ حِسُّهُ او که غشی پر هغه څه لګېدلی وي چي کښهاري يې اورېدلې وي وَقَدْ ظَنَّهُ آدَمِيًّا او ده پر هغه ديو انسان ګومان کړی وي فَإِذَا هُوَ صَيْدٌ لېکن هغه ښکار وي يَحِلُّ نو هغه حلال دی لِأَنَّهُ لَا مُعْتَبَرَ بِظَنِّهِ مَعَ تَعَيُّنِهِ ځکه د ښکار د متعين کېدلو سره د ده ګومان لره اعتبار نسته.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښکاري کس ديو څه کښهاري واوري او هغه دا د انسان کښهاري وګڼي خو بيا هم غشي پر ورايله کړي لېکن غشي خطاسي پر يو ښکار ولګيږي او هغه مړ سي، نو په دې صورت کي ښکار حلال او جائز دي؛ ځکه دلته د دې کس په ګومان او فعل کي تعارض دی. او څرنګه چي د ده فعل• خاص پر صَيد واقع سوی دی. نو ځکه د فعل اعتبار به يې کيږي او د فعل د اصطياد کېدلو په وجه به ښکار حلال او مباح وي. (احسن الهدايه)

## د غشي ويشتلو په وخت کي د بسم الله ويلو حکم

وَإِذَا سَمَّى الرَّجُلُ عِنْدَ الرَّمْيِ او کله چي سړی د ويشتلو په وخت کي بسم الله ووايي أُكِلَ مَا أَصَابَ نو پر کوم ښکار چي غشی لګېدلی وي هغه به خوړل کيږي إِذَا جَرَحَ السَّهْمُ فَمَاتَ [په دې شرط] کله چي غشی ښکار زخمي کړي او [له همدې زخم څخه] ښکار مړ سي لِأَنَّهُ ذَابِحٌ بِالرَّمْيِ ځکه چي هغه د غشي ويشتلو په ذريعه ذبح کونکی دی لِكَوْنِ السَّهْمِ آلَةً لَهُ ځکه چي غشی د ذبح آله ده فَتُشْتَرَطُ التَّسْمِيَةُ عِنْدَهُ نو ځکه د غشي ويشتلو په وخت کي به بسم الله ويل شرط وي وَجَمِيعُ الْبَدَنِ مَحَلٌّ لِهَذَا النَّوْعِ مِنَ الذَّكَاةِ او د ښکار ټوله بدن د دغه ډول ذبح [غشي ويشتلو] محل دی وَلَا بُدَّ مِنَ الْجُرْحِ لِيَتَحَقَّقَ مَعْنَى الذَّكَاةِ او زخمي کول ضروري دي چي د ذبح معنیٰ موجوده سي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصيل مطابق کوم چي موږ [مخکي] بيان کړی دی.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي څرنګه د ښکاري سپي وغيره د إرسال (ايله کولو) په وخت کي بسم الله ويل ضروري دي. همداسي د رمی (ويشتلو) په وخت کي هم بسم الله ويل ضروري دي؛ لکه څرنګه چي إرسال د ذبح آله ده. همداسي غشی ويشتل هم د ذبح آله ده. او إرسال او رمی په ذبح

اضطراري کي داخل دي. او د ذبح اضطراري لپاره د بدن هيڅ حصه متعينه نه ده. بلکي د بدن پر هره حصه چي ولګيږي که څه هم پر ستر ګه يا کوناټو ولګيږي. ټوله سره برابر دي. خو زخمي کول شرط دي چي د هغه تفصيل د ارسال په بيان کي تېر سو.

## که ښکار ژوندی تر لاسه سي نو ذبح ضروري ده

قَالَ: فَإِنْ أَدْرَكَهُ حَيًّا فرمايي: او که ويشتونکی کس ښکار ژوندی ونيسي ذَكَّاهُ نو هغه به ذبح کوي وَقَدْ بَيَّنَّاهَا بِوُجُوهِهَا وَالِاخْتِلَافَ فِيهَا فِي الْفَصْلِ الْأَوَّلِ او دا مسئله موږ د خپلو صور تونو سره او په هغې کي اختلاف په اول [مخکني] فصل کي بيان کړی دی فَلَا نُعِيدُهُ نو هغه بيا نه راګرځوو.

**تشريح : صورت د مسئلې:** دا دی که غشي ويشتونکي کس ښکار ژوندی تر لاسه کړي. نو اوس د هغه ذبح کول پر لازم دي، کنې نه حلاليږي؛ ځکه چي دغه کس د بدل يعني د ذبح اضطراري په ذريعه له مقصود حاصلولو څخه مخکي پر اصل يعني پر ذبح اختياري قادر سو. نو ځکه د قاعدې مطابق اوس د هغه په حق کي ذبح اختياري يعني په چاړه سره ذبح کول متعين سوه او بغير له ذبح کولو دا ښکار نه حلاليږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي موږ مخکي په پوره تفصيل سره دا مسئله بيان کړې ده (کوم چي په مخکيني فصل کې غالباً پر ۴۸۰ صفحه بيان سوې ده). لهذا د هغه د راګرځولو ضرورت نسته.

## که ويشتل سوی ښکار له سترګو نيام سي او بيا مړ وموندل سي نو د هغه حکم

قَالَ: وَإِذَا وَقَعَ السَّهْمُ بِالصَّيْدِ فرمايي: او کله چي غشی پر ښکار ولګيږي فَتَحَامَلَ حَتَّى غَابَ عَنْهُ خو هغه يې وزغمي [او وتښتي] تر دې چي له ښکاري کس څخه غائب سي وَلَمْ يَزَلْ فِي طَلَبِهِ او ښکاري کس مسلسل د هغه په طلب [تلاش] کي وي حَتَّى أَصَابَهُ مَيِّتًا تر دې چي ده ته هغه مړ په لاس ورسي أُكِلَ نو هغه به خوړل کيږي وَإِنْ قَعَدَ عَنْ طَلَبِهِ ثُمَّ أَصَابَهُ مَيِّتًا او که دئ يې له طلب څخه کښېني بيا هغه مړ په لاس ورسي لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه به نه خوړل کيږي لِمَا رُوِيَ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ [1] أَنَّهُ كَرِهَ أَكْلَ الصَّيْدِ إِذَا غَابَ عَنِ الرَّامِي ځکه له نبي ﷺ څخه روايت دی چي دوی ﷺ د داسي ښکار خوړل مکروه ګڼلي دي کله چي هغه له ويشتونکي څخه غائب سي وَقَالَ: لَعَلَّ هَوَامَّ الْأَرْضِ قَتَلَتْهُ او

---

[1] تخريج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه في كتاب الصيد، باب الرجل يرمي الصيد ويغيب عنه حديث رقم: ۲۰۷۱

فرمایلي يې دي: چې کېداى سي هغه د ځمکې خزندو وژلی وي وَلِأَنَّ احْتِمَالَ الْمَوْتِ بِسَبَبٍ آخَرَ قَائِمٌ او ځکه چې په يو بل سبب سره د مړ کېدلو احتمال [دلته] موجود دى فَمَا يَنْبَغِيْ أَنْ يَحِلَّ أَكْلُهُ نو مناسب نه ده چې د هغه خوړل حلال سي لِأَنَّ الْمَوْهُوْمَ فِي هٰذَا كَالْمُتَحَقِّقِ ځکه د کوم څه چې صرف وهم وي هغه په دې [د ښکار په] باب کي داسي دى لکه ثابت شده څه لِمَا رَوَيْنَا د هغه دليل په وجه کوم چې موږ روايت کړى دى.

**اللغات**: ﴿تحامل﴾ د تفاعل د باب ماضي ده: د دې باب څو معناوي دى چې له هغوى څخه ځيني دا دي: ① د تکليف باوجود يو شى زغمل او برداشت کول. ② په تکليف سره تګ کول، په تګ کي درنېدل. ③ د تکليف او مشقت باوجود يو شى په خپله ذمه اخيستل (مصباح اللغات). ﴿الهوام﴾ جمع د هَامَّةٌ ده (په تشديد د ميم سره): صاحب د معجم د دې لفظ دا معناوي ذکر کړي دي: حشرات (خزندې)، او زهر لرونکي حيوانات، هر زهر لرونکى پر ځمکه تلونکى کوچنى ساکښ (معجم لغة الفقهاء).

صاحب د حاشيې مخکي د دې لفظ معنیٰ په دَابَّةٌ سره کړې وي، يعني پر ځمکه تلونکي څه.

﴿موهوم﴾ د ضرب د باب مفعول دى: هغه څه چې د واقع کېدلو وهم يې وي، د کوم شي چې وهم او احتمال وي، ﴿متحقق﴾ د تفعّل د باب مفعول دى: هغه څه کوم چې موجود او ثابت وي، ثابت شده.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دى چې که غشى پر ښکار ولګيږي خو په اول ځل په هغه کي پوره اثر نه وکړي بلکي هغه د غشي وارى وزغمي او وتښتي او د ښکاري کس له ستر ګو نيام سي، بيا څه وخت وروسته ښکاري کس هغه مړ وموندي، نو اوس به دې ته کتل کيږي چې ښکاري کښ مسلسل د هغه په طلب او تلاش کي وو چې پيدا يې کړي، يا د هغه تر غائبېدلو وروسته ښکاري کس کښېنستى او د هغه طلب يې پرېښودى او بيا ناڅاپه يې هغه ښکار مړ وليدى، نو په اول صورت کي حلال دى او په دويم صورت کي حرام دى چې د هغه په هکله مصنف رَحِمَهُ الله دوه دليلونه ذکر کړي دي:

①... نقلي دليل دا دى چې نبي کريم ﷺ د داسي ښکار خوړل ناخوښه ګڼلي دي او فرمايلي يې دي چې کېداى سي د ځمکي خزنډو به هغه وژلی وي.

②... عقلي دليل دا دى چې دا احتمال هم سته چې دغه ښکار به د ښکاري له غشي څخه بغير په يو بل سبب سره مړ سوى وي، نو ځکه د هغه خوړل مناسب نه دي.

او که سوال وسي چي دلته یو موهومه خبره بنیلد ولي ګرځول سوي دم(چي دابنکار به په یو بل سبب سره مړ سوی وي)؟، حال دا چي د هغه په مقابله کي متحقق او ثابت شده امر موجود دی یعني په غشي سره ویشتل.

نو جواب دا دی چي د ښکار په باب کي موهوم امر د متحقق امر په څېر دی او کله چي دواړه سره برابر دي، نو تعارض پکښي راغلی او د تعارض په وخت کي د حرمت جانب ته ترجیح ورکول کیږي (کما هو الأصل).

## یو اشکال او د هغه جواب

إِلَّا أَنَّا أَسْقَطْنَا اِعْتِبَارَهُ مَا دَامَ فِيْ طَلَبِهٖ خو موږ د موهوم امر اعتبار ساقط کړی دی تر څو چي ښکاري کس د ښکار په طلب کي وي ضَرُوْرَةً أَنْ لَا يَعْرَى الِاصْطِيَادُ عَنْهُ د دې ضرورت په وجه چي ښکار کول له دې څخه نه خالي کیږي [بلکي عموماً د ښکار حیوان پټیږي او غائبیږي] وَلَا ضَرُوْرَةَ فِيْمَا إِذَا قَعَدَ عَنْ طَلَبِهٖ او په هغه صورت کي ضرورت نسته کله چي ښکاري کس د ښکار له طلب څخه کښېني [طلب یې پرېږدي] لِإِمْكَانِ التَّحَرُّزِ عَنْ تَوَارٍ يَكُوْنُ بِسَبَبِ عَمَلِهٖ. ځکه له داسي پټېدلو څخه بچ کېدل ممکن دي کوم چي د ښکاري کس د عمل په سبب سره وي [ځکه ښکاري کس چي د ښکار طلب پرېږدي نو ظاهره خبره ده چي د ښکار پټېدل او نه پیدا کېدل د هغه د دې عمل په وجه دي، او له دې څخه بچ کېدل ممکن هم دي چي هغه ولاړ سي طلب پسي وکړي] وَالَّذِيْ رَوَيْنَاهُ حُجَّةٌ عَلٰى مَالِكٍ فِيْ قَوْلِهٖ او کوم حدیث چي موږ روایت کړی دی دا د امام مالک رَحِمَهُ الله په خلاف د هغه په دې قول کي حجت دی إِنَّ مَا تَوَارٰى عَنْهُ إِذَا لَمْ يَبِتْ چي کوم شکار له ښکاري څخه پټ سوی وي که هغه شپه تېره نه کړي يَحِلُّ نو حلال دی فَإِذَا بَاتَ لَيْلَةً خو کله چي یوه شپه تېره کړي لَا يَحِلُّ نو حلال نه دی.

**اللغات**: ﴿یعرٰی﴾ د سمع د باب مضارع ده: خالي کېدل، فارغېدل. ﴿التحرّز﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: بچ کېدل (بچاوېدل). ﴿توَارِی﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: له سترګو نهامېدل (نیامېدل)، پټېدل.

**تشریح**: پر مخکښني عبارت یو اعتراض واردیږي چي کله موهوم د متحقق په څېر دی، نو ښکاري کس که څه هم د ښکار په طلب کي وي او بیا هغه مړ ترلاسه کړي، نو بیا هم په هغه کي دا وهم سته چي د ځمکو خزندو به وژلی وي او موهوم د متحقق په څېر دی، لهذا پکار دا ده چي تاسي هغه هم حرام وګرځوئ!، حال دا چي تاسي هغه ته حلال ویلي دي.

مصنف رَحِمَهُ الله په "إلا أنا أسقطنا إلخ" سره د دې اعتراض جواب ور کوي. د جواب حاصل دا دی چي په ښكار كولو كي عموماً دا پېښيږي چي ښكار پټيږي او له ستر ګو نياميږي. نو که محض د ښكار په پټېدلو سره د حرمت حكم صادر كړی سي. نو د ښكار دروازه به بنده سي.

او پاته سو دويم صورت كله چي ښكاري كس د ښكار طلب پرېږدي او كښېني. نو له دې ځخه ځان ساتل ممكن دي چي هغه نه كښېني او مسلسل په ښكار پسي ګرځي. نو ګواكي دلته د ښكار غائبېدل د داسي فعل په وجه دي كوم چي د ښكاري كس خپل فعل دی يعني د هغه كښېنستل.

مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي مخكي مو‌ږ كوم حديث بيان كړی دی يعني "لَعَلَّ هَوَامَّ الْأَرْضِ قَتَلَتْهُ" دا حديث د امام مالک په خلاف حجت دی: ځكه امام مالک رَحِمَهُ الله د داسي ښكار په باره كي فرمايلي دي چي كه پر هغه شپه تېره سي. نو بيا يې خوړل حلال نه دي، او كه شپه پر تېره سوې نه وي. نو حلال دي.

**يادونه**: په صحيح حديث كي دي "إِذَا رَمَيْتَ سَهْمَكَ فَغَابَ ثَلَاثَةَ أَيَّامٍ وَأَدْرَكْتَهُ فَكُلْهُ..." (رواه مسلم و ابو داؤد). لهذا پر امام مالک رَحِمَهُ الله د حجت كېدلو خبره نامناسبه ده. نو دلته به دا تأويل كيږي چي د دې حديث "إِذَا رَمَيْتَ...إلخ" محمل دا دی چي ښكاري كس طلب نه پرېږدي بلكي مسلسل يې په طلب او تلاش كي وي، او كوم حديث چي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ذكر كړی دی. دا دې پر هغه حالت حمل كړی سي كله چي هغه طلب پرېږدي، وفيه تفصيل مذكور في الشامي.(ج: ۵. ص: ۳۰۲)

## كه په ښكار كي له غشي ځخه بغير د بل شي زخم وي نو څه حكم دی؟

وَلَوْ وُجِدَ بِهِ جِرَاحَةٌ سِوَى جِرَاحَةِ سَهْمِهِ او كه په ښكار كي يو داسي زخم وموندل سي كوم چي د ښكاري د غشي له زخم ځخه بغير وي لَا يَحِلُّ نو هغه حلال نه دی لِأَنَّهُ مَوْهُومٌ يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ ځكه چي دا [د بل زخم موندل] يو موهوم امر دی چي له هغه ځخه بچ كېدل ممكن دي فَاعْتُبِرَ مُحَرِّمًا نو ځكه هغه به حراموونكی شمېرل كيږي بِخِلَافِ وَهْمِ الْهَوَامِّ په خلاف د خزندو د وهم وَالْجَوَابُ فِي إِرْسَالِ الْكَلْبِ فِي هٰذَا كَالْجَوَابِ فِي الرَّمْيِ او د سپي د ايله كولو حكم په دې هكله داسي دی لكه د غشي ويشتلو حكم فِي جَمِيعِ مَا ذَكَرْنَاهُ په هغه ټولو صورتونو كي كوم چي مو‌ږ ذكر كړي دي.

**اللغات**: ﴿جراحة﴾ زخم.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې کله ښکاري کس خپل ويشتل سوی ښکار مړ وموندي. نو په هغه کې د خپل غشي له زخم څخه بغير بل زخم هم ووينې. نو داسې ښکار حرام دی. برابره ده هغه يې په مسلسل طلب کې وي يا يې طلب پرې ايښی وي: ځکه همېشه داسې نه کيږي چې د غشي له زخم څخه بغير يو بل زخم هم پر ښکار ولګيږي. نو دا يو داسې موهوم امر دی چې له هغه څخه بچ کېدل ممکن دي. او د ښکار په باب کې موهوم د متحقق په څېر دی او بچ کېدل هم ممکن دي. نو دلته به موهوم مُحرِم ګرځول کيږي لکه څرنګه چې متحقق مُحرِم وي.

پاتې سو د خزندو د وهم مسئله (چې کېدای سي خزندو به وژلی وي). نو له هغه څخه بچ کېدل ناممکن دي. ځکه ښکار خو پر ځمکه خامخا لوېږي او ځمکه له خزندو څخه خالي نه پاتيږي. او تر څو چې ښکاري کس يې طلب پرې ايښی نه وي. تر هغه وخته دغه وهم لره اعتبار نسته نو ښکار به حلال ګرځول کيږي.

بيا که چا ښکار په غشي ويشتلی وي يا يې سپی ور ايله کړی وي. په مذکوره ټولو صورتونو کې حکم برابر دی يعني که سپی پر ښکار ور ايله کړي او سپی هغه زخمي کړی او تر زخمي کېدو وروسته ښکار وتښتي او له سترګو نيام سي. بيا يې مړ وموندي. نو په دې کې هم هاغه حکم دی چې که مسلسل د ښکار په طلب کې وي نو حلال دی او که يې له طلب څخه کښېني نو حرام دی او که د سپي له زخم څخه بغير بل زخم هم پکښې ووينې نو بيا په دواړو صورتونو کې حلال نه دی.

## ذ متردیه خاروي تفصيلي حکم

قَالَ: وَإِذَا رَمٰى صَيْدًا فَوَقَعَ فِي الْمَاءِ فرمايي: او کله چې ښکار وويلي نو هغه په اوبو کې ولوېږي أَوْ وَقَعَ عَلٰى سَطْحٍ أَوْ جَبَلٍ يا پر بام يا غره باندې ولوېږي ثُمَّ تَرَدّٰى مِنْهُ إِلَى الْأَرْضِ بيا له هغه څخه ځمکې ته راکېوز سي لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه به نه خوړل کيږي لِأَنَّهُ الْمُتَرَدِّيَةُ وَهِيَ حَرَامٌ بِالنَّصِّ ځکه چې دا متردیه دی کوم چې په نص [آيت] سره حرام دی وَلِأَنَّهُ اِحْتَمَلَ الْمَوْتَ بِغَيْرِ الرَّمْيِ او ځکه چې هغه له ويشتلو څخه بغير په بل شي سره د مړ کېدلو احتمال لري إِذِ الْمَاءُ مُهْلِكٌ وَكَذَا السُّقُوطُ مِنْ عَالٍ ځکه چې اوبه هم هلاکونکي دي او همدارنګه د لوړ ځايه را لوېدل [هم هلاکونکي دي] يُؤَيِّدُ ذٰلِكَ قَوْلُهُ ﷺ لِعَدِيٍّ رضي الله عنه[1] د دې تائيد کوي د نبي کريم ﷺ دا فرمان و حضرت عدي رضي الله عنه ته وَإِنْ وَقَعَتْ رَمِيَّتُكَ فِي الْمَاءِ که چېرې ستا ويشتل سوی ښکار په اوبو کې ولوېږي فَلَا تَأْكُلْ نو ته هغه مه خوره! فَإِنَّكَ لَا تَدْرِي أَنَّ الْمَاءَ قَتَلَهُ أَوْ سَهْمُكَ ځکه تا ته نه ده معلومه چې هغه اوبو مړ کړی دی او که ستا غشي.

---

[1] تخريج: أخرجه مسلم في كتاب الصيد، باب الصيد بالكلاب المعلمة والرمي ص: [illegible] حديث رقم: [illegible]

**اللغات**: ﴿تردّى﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: راګېلېدل، را لوېدل. ﴿رمية﴾ د ضرب له بابه د فَعيلة پر وزن په معنیٰ سره د مفعول ده: په غشي وغيره سره ويشتل سوی حيوان.

**تشريح**: د "متردّيه" حکم مخکي تېر سوی دی، په نص قرآني سره د هغه حرمت ثابت دی، لهذا که څوک ښکار په غشي وويلي او هغه زخمي سي په اوبو کي ولوېږي يا هغه پر بام يا غره ولوېږي بيا له هغه ځخه را ګېل سي او پر ځمکه مړ ولوېږي، نو دا متردّيه دی کوم چي حرام دی.

همدارنګه په هغه کي دا احتمال هم سته چي په غشي سره مړ سوی وي او دا احتمال هم پکښي سته چي د اوبو يا د راګېلېدلو په وجه مړ سوی وي، نو کله چي دوه سببونه سره جمع سول، نو د لانديني اصل (قاعدهٔ کليه) مطابق به د حرمت سبب لره ترجيح وي. همدارنګه حضرت عدي بن حاتم طائي رضي الله عنه ته چي نبي ﷺ کومه خبره کړې وه، په هغه کي هم دغه حکم مذکور دی چي کله ستا ويشتل سوی ښکار اوبو ته ولوېږي، نو هغه مه خوره، ځکه دا معلومه نه ده چي د هغه مرګ په اوبو کي د لوېدلو په وجه واقع سوی دی او که ستا د غشي په وجه.

**که ښکار فوراً پر ځمکه ولوېږي نو څه حکم دی؟ او د حلت او حرمت قاعدهٔ کليه**

وَإِنْ وَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ ابْتِدَاءً او که له شروع څخه ښکار پر ځمکه ولوېږي أُكِلَ نو هغه به خوړل کيږي لِأَنَّهُ لَا يُمْكِنُ الِاحْتِرَازُ عَنْهُ ځکه چي له دې څخه بچ کېدل ممکن نه دي وَفِي اعْتِبَارِهِ سَدُّ بَابِ الِاصْطِيَادِ او د بچ کېدلو په اعتبار کولو کي د ښکار د دروازې بندول سته بِخِلَافِ مَا تَقَدَّمَ په خلاف د هغه صورت کوم چي مخکي تېر سو لِأَنَّهُ يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ ځکه چي له هغه څخه بچ کېدل ممکن دي فَصَارَ الْأَصْلُ أَنَّ سَبَبَ الْحُرْمَةِ وَالْحِلِّ إِذَا اجْتَمَعَا نو اُصول [قاعده] دا سوه چي کله د حلت او حرمت [حلالېدلو او حرامېدلو] دواړو سببونه سره جمع سي وَأَمْكَنَ التَّحَرُّزُ عَمَّا هُوَ سَبَبُ الْحُرْمَةِ او د حرمت له سبب څخه بچ کېدل ممکن وي تُرَجَّحُ جِهَةُ الْحُرْمَةِ احْتِيَاطًا نو د احتياط په خاطر د حرمت اړخ لره به ترجيح ورکول کيږي وَإِنْ كَانَ مِمَّا لَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ ليکن که سبب داسي وي چي له هغه څخه بچ کېدل ممکن نه وي جَرَى وُجُودُهُ مَجْرَى عَدَمِهِ نو د هغه سبب وجود به د عدم سبب په درجه کي وي [يعني معدوم به ګرځول کيږي] لِأَنَّ التَّكْلِيفَ بِحَسَبِ الْوُسْعِ ځکه مکلف کېدل د وس په اندازه دي.

**اللغات:** ﴿سدّ﴾ د نصر د باب مصدر دی: بندول. ختمول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که ښکاري کس ښکار وویشي او هغه پر ځمکه ولوېږي او مړ سي، نو جائز او حلال دی؛ ځکه پر ځمکه د ښکار لوېدل داسي شَه دي چي له هغه څخه بچ کېدل ناممکن دي، ځکه له زخم خوړلو څخه وروسته عموماً ښکار پر ځمکه لوېږي. لهذا که موږ پر ځمکه لوېدلی ښکار حرام وګرځوو. نو بیا به د ښکار د دروازې بندول لازم سي حال دا چي ښکار حلال او مباح کار دی او په هغه کي دا ډول پابندي لګول مناسب نه دي.

د دې په خلاف که ښکار له غره یا بام وغیره څخه را ګېر سي، نو څرنګه چي دا شاذ دي او کله نا کله پېښېږي، لهذا له هغه څخه بچ کېدل ممکن دي، نو ځکه هلته حلت نه ثابتېږي.

فصار الأصل إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي له دغه تفصیل او بیان څخه دا قاعدهٔ کلیه راوځي چي په کومه مسئله کي د حلت او حرمت دواړه سببونه سره جمع سي او د حرمت سبب له هغه شیانو څخه وي چي له هغوی څخه بچ کېدل ممکن وي، نو په داسي مسئله کي احتیاطاً د حرمت جانب لره ترجیح ورکول کیږي، خو که د حرمت سبب له هغه شیانو څخه وي چي له هغوی څخه احتراز (بچ کېدل) ممکن نه وي، نو په دې صورت کي د حرمت سبب کالعدم شمېرل کیږي، او د هغه بالمقابل څرنګه چي د حلت سبب موجود دی، نو ځکه د حلت فیصله به کیږي؛ ځکه د حرمت له سبب څخه د احتراز د ناممکن کېدلو باوجود که د حرمت فیصله وسي، نو دا د مکلفینو (انسانانو) سره تعدی او زیاتوب دی، حال دا چي قرآن کریم په صریحو الفاظو سره دا اعلان کړی دی ﴿لَا يُكَلِّفُ اللهُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا﴾ .

## هغه اسباب چي بچ کېدل ځني ممکن وي (د پورتنۍ قاعدې نور وضاحت)

فِيمَا يُمْكِنُ التَّحَرُّزُ عَنْهُ نو له هغه اسبابو څخه چي بچ کېدل ځني ممکن دي [دا دي] إِذَا وَقَعَ عَلَى شَجَرٍ أَوْ حَائِطٍ أَوْ آجُرَّةٍ کله چي ښکار پر درخته یا پر دېوال یا پر پخه خښته ولوېږي ثُمَّ وَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ بیا پر ځمکه ولوېږي أَوْ رَمَاهُ وَهُوَ عَلَى جَبَلٍ یا ښکاري کس ښکار وویشي حال دا چي ښکار پر غره وي فَتَرَدَّى مِنْ مَوْضِعٍ إِلَى مَوْضِعٍ حَتَّى تَرَدَّى إِلَى الْأَرْضِ نو هغه له یوه ځایه بل ځای ته راګېلیږي تر دې چي ځمکي ته راګېل سي أَوْ رَمَاهُ فَوَقَعَ عَلَى رُمْحٍ مَنْصُوبٍ یا هغه ښکار وویشي نو ښکار پر درول سوي نېزې را ولوېږي أَوْ عَلَى قَصَبَةٍ قَائِمَةٍ یا پر ولاړ بانس را ولوېږي أَوْ عَلَى حَرْفِ

آجُرَّةٍ یا د پخې خښتې پر ځوکه راولوېږي لِاِحْتِمَالِ أَنَّ حَدَّ هٰذِهِ الْأَشْيَاءِ قَتَلَهُ ځکه | په دې صورتونو کې | دا احتمال سي چې د دغو شیانو تېره والي به هغه وژلی وي.

**اللغات:** ﴿آجرة﴾ پخه خښته. ﴿قصبة﴾ بانس. ﴿رمح﴾ نېزه.

**تشریح:** کله چې مصنف رَحِمَهُ الله قاعدهٔ کلیه بیان کړه. نو اوس دې ته ضرورت سو چې هغه کوم اسباب چې احترازُ او بچ کېدل ځني ممکن دي او هغه کوم اسباب دي چې بچ کېدل ځني ممکن دي. نو له دې ځایه مصنف رَحِمَهُ الله د هغوی تفصیل بیانوي. اول هغه اسباب بیانوي چې بچ کېد ځني ممکن وي. هغه دا دي: ① ښکار (تر ویشتل کېدو وروسته) پر درخته لوېدل. ② پر دېو لوېدل. ③ پر پخه خښته لوېدل. ④ پر غره لوېدل او بیا له هغه ځخه ځمکې ته راکېلېدل. ⑤ درول سوي نیزې رالوېدل. ⑥ پر ولاړ تېره بانس رالوېدل. ⑦ د پخې خښتې پر تېره ځوکې رالوېدل.

نو په دې اووه صورتونو کې دا احتمال سته چې کېدای سي د دغو شیانو تېره والی ښکار وژلی وي. لهذا کله چې بل احتمال هم پیدا سو او له هغه ځخه بچ کېدل او ځان ساتل ممکن دي. نو مذکوره قاعدې پر بناء به د حرمت اړخ ته ترجیح ورکول کیږي او ښکار به حرامیږي. او له دې تو مذکوره سببونو ځخه بچ کېدل ځکه ممکن دي چې ښکار همېشه پر دې شیانو نه لوېږي بلکې د عارض په وجه کله نا کله داسي کیږي. نو ځکه دوی ته ممکن الاحتراز ویل سوي دي.

## هغه اسباب چې بچ کېدل ځني ممکن نه وي

وَمِمَّا لَا يُمْكِنُ الْاِحْتِرَازُ عَنْهُ او له هغه اسبابو ځخه چې بچ کېدل ځني ممکن نه دي | دا دي | إِذَا وَقَعَ عَلَى الْأَرْضِ كَمَا ذَكَرْنَاهُ کله چې ښکار پر ځمکه ولوېږي لکه ځرنګه چې موږ ذکر کړه أَوْ عَلَى مَا هُوَ فِي مَعْنَاهُ یا پر داسي شي ولوېږي کوم چې د ځمکې په معنیٰ سره وي كَجَبَلٍ أَوْ ظَهْرِ بَيْتٍ أَوْ لَبِنَةٍ مَوْضُوعَةٍ أَوْ صَخْرَةٍ لکه غر یا د کور بام یا ایښوول سوې کچه خښته یا تیږه فَاسْتَقَرَّ عَلَيْهَا نو ښکار پر هغه قرار ونیسي لِأَنَّ وُقُوعَهُ عَلَيْهِ وَعَلَى الْأَرْضِ سَوَاءٌ ځکه پر هغه او پر ځمکې د ښکار لوېدل | دواړه | سره برابر دي.

**اللغات:** ﴿لبنة﴾ کچه خښته. ﴿الصخرة﴾ لوَیه کلکه تیږه (ډبره). پرښه.

**تشریح:** په دې عبارت کې هغه اسباب بیانوي چې له هغوی ځخه بچ کېدل ممکن نه دي. نو ځکه هغوی به معدوم شمېرل کیږي او ښکار به حلال ګرځول کیږي. هغه دا دي: ① ښکار پر ځمکه لوېدل. ② پر غره لوېدل. ③ د یو کور پر بام لوېدل. ④ پر کچه خښته لوېدل. ⑤ پر یوه لویه ډبرې لوېدل. او له را لوېدلو ځخه وروسته قرار نیول (ځای پر ځای پاتېدل) او بیا هلته مړ کېدل.

ځرنګه چې په عامه توګه ښکار پر همدې شيانو لوېږي. لهذا له دې څخه بچ کېدل ممکن نه دي. نو پر همدې بناء په دغو صورتونو کې د ښکار د حلال والي فيصله سوې ده: ځکه پر دې شيانو ښکار لوېدل او بيا ځاى پر ځاى پاتېدل داسې دي لکه پر ځمکه لوېدل. دواړه سره برابر دي. او پر ځمکه را لوېدلى ښکار حلال وي. لهذا پر غره. بام وغيره باندې را لوېدلى ښکار به هم حلال وي.

## که ښکار پر ډبره ولوېږي او نس يې څيري سي (وچاودي)، نو څه حکم دى؟

وَذُكِرَ فِي الْمُنْتَقَى او په منتقى کې ذکر سوي دي لَوْ وَقَعَ عَلَى صَخْرَةٍ که ښکار پر تيره ولوېږي فَانْشَقَّ بَطْنُهُ او د هغه نس څيري سي لَمْ يُؤْكَلْ نو هغه به نه خوړل کيږي لِاحْتِمَالِ الْمَوْتِ بِسَبَبٍ آخَرَ په بل سبب سره د مړ کېدلو داحتمال په وجه وَصَحَّحَهُ الْحَاكِمُ الشَّهِيدُ او حاکم شهيد رَحِمَهُ الله دا صحيح ګرځولي دي وَحَمَلَ مُطْلَقَ الْمَرْوِيِّ فِي الْأَصْلِ عَلَى غَيْرِ حَالَةِ الْإِنْشِقَاقِ او حاکم شهيد هغه مطلق روايت کوم چې په مبسوط کې نقل سوى دى د نس نه څيرلو پر حالت حمل کړى دى وَحَمَلَهُ شَمْسُ الْأَئِمَّةِ السَّرَخْسِيُّ عَلَى مَا أَصَابَهُ حَدُّ الصَّخْرَةِ فَانْشَقَّ بَطْنُهُ بِذٰلِكَ او شمس الائمه سرخسي رَحِمَهُ الله دا پر هغه صورت حمل کړى دى چې د ښکار سره د ډبرې تيره والى [تېره خوا] لګېدلې وي او د هغه په وجه يې نس څيري سوى وي وَحَمَلَ الْمَرْوِيَّ فِي الْأَصْلِ عَلَى او په مبسوط کې نقل سوى روايت يې پر هغه حالت حمل کړى دى أَنَّهُ لَمْ يُصِبْهُ مِنَ الْآجُرَّةِ إِلَّا مَا يُصِيبُهُ مِنَ الْأَرْضِ لَوْ وَقَعَ عَلَيْهَا چې په پخه خښته سره ښکار ته خوږ [او تاوان] نه وي رسېدلى مګر دومره چې په ځمکه سره ور رسيږي که چيري هغه پر ځمکه لوېدلي واى [يعني پر هغه حالت يې حمل کړى دى چې په پخه خښته سره ښکار ته دومره خوږ رسېدلى وي څومره چې هغه ته په ځمکه سر رسيږي کله چې هغه پر ځمکه ولوېږي] وَذٰلِكَ عَفْوٌ او دا مقدار معاف دى وَهٰذَا أَصَحُّ او همدا زيات صحيح دي.

**اللغات:** ﴿المنتقى﴾ د حاکم شهيد رَحِمَهُ الله کتاب دى. ﴿مبسوط﴾ د امام محمد رَحِمَهُ الله تصنيف دى چې امام سرخسي رَحِمَهُ الله د هغه ډېره غټه شرح ليکلې ده. ﴿انشق﴾ د انفعال د باب ماضي ده: دوه ځايه کېدل. چاودېدل. څيرېدل. ﴿لبنة﴾ کچه خښته. ﴿صخرة﴾ لويه کلکه تيره او ډبره. ﴿استقرار﴾ د استفعال د باب مصدر دى: قرار نيول. ثابت پاتېدل.

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چي امام محمد رَحِمَهُ الله په مبسوط کي فرمایلي دي چي که ښکار پ
ډېره را ولوېږي او ځای پر ځای پاته سي، نو حلال دی، یعني برابره ده نس یې څیري سوی وي. ک
نه؟. په دې باره کي د هغه قول مطلق دی. خو حاکم شهید رَحِمَهُ الله په خپل کتاب منتقی کي ذکر
کړي دي چي که ښکار پر ډېره ولوېږي او نس یې څیري سي، نو حرام دی. نه به خوړل کیږي؛ ځک
دلته له ویشتلو څخه بغیر د بل سبب (یعني د نس چاودېدلو) په وجه د مړ کېدلو احتمال سته. او حاکم
شهید رَحِمَهُ الله دا قول صحیح ګرځولی دی او بیا یې ویلي دي چي د مبسوط مطلق روایت چي
ښکار حلال دی د هغه محمل دا دی چي د هغه نس څیري سوی نه وي. کنې بیا حرام دی.

خلاصه د کلام دا چي حاکم شهید رَحِمَهُ الله په منتقی کي دا مسئله بیان کړې ده (کوم چي د
سوه) او د مبسوط په روایت کي یې تاویل کړی دی. بیا د مبسوط شارح امام سرخسي رَحِمَهُ الله راغ
د منتقی او مبسوط پر دواړو روایتونو یې غور وکړی او په آخر کي یې وویل چي د منتقی د روای
محمل دا دی چي که ښکار پر ډېره ولوېږي او د ډېري د تېره والي په وجه د ښکار نس څیري سي،
هغه ښکار حرام دی. او د مبسوط د روایت محمل دا دی چي که ښکار پر ډېره ولوېږي او په دې سره هـ
فقط دومره خوږ سي څومره چي عموماً پر ځمکه په رالوېدلو سره خوږېږي، نو دومره خوږ معاف د
لهذا که ښکار پر ځمکه ولوېږي او نس یې څیري سي نو دا معاف دی او حلال دی. نو همداسي که
ډېره ولوېږي او نس یې څیري سي، نو دا به هم حلال وي؛ ځکه دلته ته هغومره خوږ رسېدلی دی ک
چي پر ځمکه په لوېدلو سره ورته رسیږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي د امام سرخسي رَحِمَهُ الله تأویل أصح دی. کنې د منتقی
روایت مطابق که پر ډېره ولوېږي او نس یې څیري سي نو حرامیږي. (اشرف الهدایه)

## که د اوبو پر مارغه غشي ولګیږي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ كَانَ الطَّيْرُ مَائِيًّا او که چیري مارغه اوبو والا وي فَإِنْ كَانَتِ الْجِرَاحَةُ لَا تَنْغَمِسُ فِي الْمَاءِ نو که
چیري زخم یې په اوبو کي نه ډوبیږي أُكِلَ نو مارغه به خوړل کیږي وَإِنِ انْغَمَسَتْ او که زخم یې
په اوبو کي ډوب سي لَا يُؤْكَلُ نو هغه به نه خوړل کیږي كَمَا إِذَا وَقَعَ فِي الْمَاءِ لکه کله چي ښکار
اوبو کي ولوېږي.

**اللغات**: ﴿مائي﴾ د اوبو والا، په اوبو کي اوسېدونکی. ﴿جِرَاحة﴾ زخم. ﴿انغمس﴾ د انفعال د باب
ماضي ده؛ ډوبېدل، په اوبو ننوتل.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې کله د اوبو حیوان په غشي ووېشتل سي او هغه په اوبو کې وي، نو که هغه مړ سي او زخم یې اوبو ته دننه نه سي، نو حلال دی: ځکه دا د دې خبرې دلیل دی چې هغه د غشي په زخم سره مړ سو. او که زخم یې اوبو ته دننه سي او حیوان مړ سي، نو بیا به نه خوړل کیږي، ځکه اوس ښکاره ده چې په زخم کې د اوبو د سرایت کولو په وجه هغه مړ سوی دی. که څه هم هغه د اوبو حیوان دی لېکن د زخم باوجود په اوبو کې اوسېدل او پاتېدل د هغه شان نه دي. لکه کله چې د وچې حیوان ووېشتل سي او هغه اوبو ته ولوېږي او مړ سي، نو حرام دی: ځکه ښکاره همدا ده چې هغه د اوبو په وجه مړ سوی دی.

## که د غشي د مینځ پڅه حصه پر ښکار ولګیږي؟

قَالَ: وَمَا أَصَابَهُ الْمِعْرَاضُ بِعَرْضِهِ فرمایي: او پر کوم ښکار چې بې بڼو غشی په خپل پلنه [مینځ والا] حصه سره ولګیږي لَمْ يُؤْكَلْ هغه به نه خوړل کیږي وَإِنْ جَرَحَهُ او که چیري زخمي یې کړي يُؤْكَلْ نو خوړل کیږي به لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ فِيهِ[1]: «مَا أَصَابَ بِحَدِّهِ ځکه د داسي غشي په هکله نبي ﷺ فرمایلي دي: پر کوم ښکار چې غشی په خپل تېره [د سر والا] حصه لګېدلی وي فَكُلْ نو هغه خوره! وَمَا أَصَابَ بِعَرْضِهِ او پر کوم ښکار چې غشی په خپل پلنه [مینځ والا] حصه سره لګېدلی وي فَلَا تَأْكُلْ» نو هغه مه خوره وَلِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْجَرْحِ او ځکه چې زخمي کول ضروري دي لِيَتَحَقَّقَ مَعْنَى الذَّكَاةِ د دې لپاره چې د ذبح [ذبح اضطراري] معنیٰ موجوده سي عَلَى مَا قَدَّمْنَاهُ لکه مخکې چې موږ د دې بیان کړی دی.

**اللغات:** ﴿مِعْرَاض﴾ (پر وزن د مِفْعَال) د دې لفظ څو معناوي دي چې له هغوی څخه دوې دا دي:

① سَهْمٌ بِلَا رِيْش، بې بڼو غشی. د غشي دوه طرفونه دي، یو خوا یې هغه د سر تېره طرف دی چې ښکار په ووېشتل کیږي هغه ته په عربي کې نَصْل وایي، او بل یې د شا طرف پڅ سر دی هغه ته رِيْش وایي چې پر هغه د یو شي ښکې چاپېره تړل سوي وي مثلاً ځینو به د پیل مرغ بڼې پکښې نصب کولې، او د دې بڼو فایده دا وي چې په دې سره د غشي په رفتار کې تېزي راځي، نو د کوم غشي د شا پر سر چې دغه بڼې نه وي ورکول سوي، هغه ته معراض وایي، ② همدارنګه معراض هر هغه شي ته

---

[1] تخریج: أخرجه البخاري بمعناه، باب إذا وجد مع الصيد كلباً آخر، ص:۸۲۴، حديث رقم:۵۴۸۶، ومسلم بـاب الصيد بالكلاب المعلّمة والرمي ص:۱۴۵، حديث رقم: ۴۹۷۴.

وايي چي تېره والی نه لري (كُلُّ مَا لَا حَدَّ لَهُ). او صَيْدُ الْمِعْرَاضِ د فقهاؤ په اصطلاح كي هغه ښكار او هغه حيوان ته وايي چي د هسي يوې آلې (غشي وغيره) په بوج او فشار سره مړ سي نور زخمي يې نه كړي (معجم الوسيط. معجم لغة الفقهاء). ﴿عرض﴾ بر. پلنوالی. د بر طرف. مراد ځني د غشي د مينځ حصه. يا په بله وينا د غشي د تېره سر (څوكي) څخه را لاندي د غشي نور حصه. ﴿يتحقق﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: ثابتېدل. موجودېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي پر كوم ښكار د غشي د مينځ حصه ولګيږي يعني غشی سم روان نه سي او د تېره څوكي پر ځای يې پلنه د مينځ حصه پر ښكار ولګيږي او هغه مړ سي. نو داسي ښكار به نه خوړل كيږي؛ ځكه چي د ښكار د حلت لپاره ذبح اضطراري (زخمي كول) شرط دي او د زخمي كولو تحقق د غشي په تېره طرف سره راځي چي غشی مخامخ پر ښكار ولګيږي. او دلته د غشي د مينځ حصه لګېدلې ده چي په هغه سره زخمي كول او څيرل نه ثابتيږي. بلكي په دې سره فقط د ښكار هډونه وغيره ملتېدلای او پرسېدلای سي. لهذا كله چي په دې سره ذبح اضطراري نه ثابتيږي. نو بيا ښكار هم نه حلاليږي. په همدې وجه د عبارت په دويمه جمله كي فرمايي چي كه غشی ښكار زخمي كړي (يعني د غشي په وجه زخم پكښي جوړ سي. وينه ځني وبهيږي. او دا د غشي د تېره سر په ذريعه كېدلای سي). نو دا ښكار به خوړل كيږي؛ ځكه په دې صورت كي د ذبح معنیٰ ثابته سوه. او په دې هكله نقلي دليل هغه حديث دی كوم چي په عبارت كي مذكور دی چي په هغه كي صراحتاً همدا مضمون بيان سوی دی.

## كه په مچلوغزه او ډبره ښكار وويشتل سي نو څه حكم دی؟

قَالَ: وَلَا يُؤْكَلُ مَا أَصَابَتْهُ الْبُنْدُقَةُ فَمَاتَ بِهَا فرمايي: او هغه ښكار به نه خوړل كيږي چي د مچلوغزي مردك پر لګېدلی وي او د هغه په وجه مړ سوی وي لِأَنَّهَا تَدُقُّ وَتَكْسِرُ وَلَا تَجْرَحُ ځكه چي دا مردك صرف كوټل او ماتول كوي او زخمي كول نه كوي فَصَارَ كَالْمِعْرَاضِ نو داسي سو لكه بې بڼو غشی [چي هغه په خپل پلنه حصه سره پر ښكار لګېدلی وي] إِذَا لَمْ يَخْزِقْ كله چي هغه په دننه نه سي وَكَذَلِكَ إِنْ رَمَاهُ بِحَجَرٍ او همدارنګه كه ښكار په ډبره وويلي وَكَذَا إِنْ جَرَحَهُ او همدارنګه كه ډبره هغه زخمي كړي قَالُوا: تَأْوِيلُهُ إِذَا كَانَ ثَقِيلًا وَبِهِ حِدَّةٌ فقهاؤ ويلي دي: د دې تأويل دا دی چي كله هغه ډبره درنه وي او په هغې كي تېره والی وي [يعني تيره څوكي او تېره سر ونه لري] لِاحْتِمَالِ أَنَّهُ قَتَلَهُ بِثِقْلِهِ د دې احتمال په وجه چي ډبري به هغه په خپل بوج [درند والي] سره وژلی وي [نه په تېره والي سره]

وَإِنْ كَانَ الْحَجَرُ خَفِيْفًا وَبِهِ حِدَّةٌ او كه ډبره سپكه وي او په هغې كي تېره والى وي يَحِلُّ نو ښكار حلال دى لِتَعَيُّنِ الْمَوْتِ بِالْجَرْحِ ځكه چي په خمي كولو سره [د ښكار] مړ كېدل متعين دي وَلَوْكَانَ الْحَجَرُ خَفِيْفًا وَجَعَلَهُ طَوِيْلًا كَالسَّهْمِ وَبِهِ حِدَّةٌ او كه ډبره سپكه وي او هغه يې د غشي په څېر اوږده جوړه كړې وي او تېروالى پكښې وي فَإِنَّهُ يَحِلُّ نو [هم] هغه ښكار حلال دى لِأَنَّهُ يَقْتُلُهُ بِجَرْحِهِ ځكه چي داسي ډبره په خپل زخمي كولو سره هغه وژني.

**اللغات**: ﴿البندقة﴾ له خټو څخه جوړ مردک كوم چي د مچلوغزي (چي مچغنه او مچغونه هم ورته وايي) په ذريعه يا د غلول په ذريعه ويشتل كيږي، او مچلوغزه له تار يا مزري او رسۍ څخه جوړه هغه آله ده چي د لاس په زور پكښې ډبري ليري غورځول كيږي. ﴿لم يخزق﴾ د ضرب له بابه د جحد صيغه ده: له يوې خوا څخه بلي خوا ته وتل، ننوتل او بلي خوا ته وتل. ﴿تدق﴾ د نصر د باب مضارع ده: كوټل. ﴿حِدة﴾ تېره والى، تېره كېدل (چي ژر پرېكول كوي).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دي چي پر كوم ښكار د مچلوغزي وغيره كاڼى او مردک ولګيږي چي د هغه په نتيجه كي ښكار مړ سي، نو د هغه خوړل هم حلال نه دي؛ ځكه د ښكار د حلت لپاره زخمي كول شرط دى، حال دا چي په مچلوغزه او غلول كي چي كوم كاڼى او مردک ويشتل كيږي هغه عموماً ښكار نه زخمي كوي (چي وينه يې وبهيږي) بلكي د ښكار يو اندام ماتوي او كوټي، نو دا ټوله د معراض غشي په درجه كي دي (يعني لكه د غشي د مينځ حصه چي پر ښكار ولګېدلې وي)، او په معراض سره وژل سوى ښكار حلال نه دى، لهذا په مچلوغزه وغيره وژل ښكار به هم حلال نه وي.

**وكذلك إلخ**: فرمايي كه ښكار په ډبره وويشتل سي چي د هغه په وجه ښكار مړ سي يا په ډبره سره ښكار زخمي او مړ كړي، نو په دې دواړو صورتونو كي هم ښكار حلال نه دى. لېكن فقهاؤ د دې تأويل دا كړى دى چي دغه حكم په هغه وخت كي دى كله چي ډبره درنه او سنګينه وي كه څه هم تېره والى پكښې وي؛ ځكه په داسي ډبره كي احتمال سته چي د هغې د بوج او فشار په وجه به ښكار مړ سوى وي. او ظاهره خبره ده چي كله په بل سبب سره د مړ كېدلو احتمال موجود وي، نو بيا ښكار حلال نه سي ګرځول كېداى.

د دې په خلاف كه ډبره سپكه وي او په هغې كي تېره والى وي، نو ښكار حلال دى؛ ځكه په دې صورت كي په بل سبب سره د مړ كېدلو احتمال نسته. همدارنګه كه ډبره سپكه وي او د غشي په څېر اوږده او تېره جوړه وي، نو هم ښكار حلال او روا دى؛ ځكه په دې صورت كي هم دا خبره متعينه ده چي دغه ښكار د ډبري د زخمي كولو په سبب مړ سوى دى او په بل سبب سره د هغه د مړ كېدلو احتمال پكښې نسته.

## په تېره ډبره سره د ښکار کولو حکم

وَلَوْ رَمَاهُ بِمَرْوَةٍ حَدِيدَةٍ او که څوک ښکار په مروه نامي تېره ډبره سره وویشي وَلَمْ تَبْضَعْ بَضْعًا خو هغه هيڅ توته پرې نه کړي لَا يَحِلُّ نو ښکار حلال نه دی لِأَنَّهُ قَتَلَهُ دَقًّا ځکه چي هغه په کوټلو سره ښکار وژلی دی [يعني د دغه ډبري په وجه فقط د ښکار هډونه وغيره کوټل سوي او مات سوي دي چي په همدې وجه مړ سوی دی. زخم يې نه دی پکښي جوړ کړی] وَكَذَا إِذَا رَمَاهُ بِهَا فَأَبَانَ رَأْسَهُ أَوْ قَطَعَ أَوْدَاجَهُ او همدارنګه کله چي په مروه نامي ډبره سره ښکار وويشي او د هغه سر را جلا کړي يا يې رګونه ور پرې کړي لِأَنَّ الْعُرُوقَ تَنْقَطِعُ بِثِقَلِ الْحَجَرِ ځکه چي رګونه د ډبري په درونډ والي [فشار] سره هم پرېکيږي كَمَا تَنْقَطِعُ بِالْقَطْعِ لکه څرنګه چي په پرېکولو سره پرېکيږي فَوَقَعَ الشَّكُّ نو شک واقع سو أَوْ لَعَلَّهُ مَاتَ قَبْلَ قَطْعِ الْأَوْدَاجِ او کېدا سي هغه د ذبح د رګونو تر پرېکېدلو مخکي مړ سوی وي.

**اللغات:** ﴿مروة﴾ يو ډول کلکه سپينه ډبره ده کوم چي د چاړې په شېر تېره وي چي په هغې سر شاروی ذبح کول کيږي او هغې ته صَفْوَان هم وايي، ﴿لم تَبْضَعْ﴾ د فتح له بابه د جحد صيغه ده ( تفعيل له بابه هم ويل کېدای سي): د دې باب يوه معنىٰ ده: غوښه پرېکول، ﴿بَضْعٌ﴾ د فتح د باب مصد دی، او د بِضْعَةٌ جمع هم راځي چي د هغه معنىٰ ده: د غوښو ټوټه چي د هغه بله جمع بِضَع ده ﴿أبَان﴾ د افعال د باب ماضي ده، د دې باب يوه معنىٰ ده: را جلا کول، ليري کول، ﴿الأوداج﴾ جمع وَدَجٌ (ښه رګ) ده: د ذبح رګونه يعني دوه ښه رګونه او نور رګونه چي د هغوی په پرېکولو سره ذبح پوره کيږي

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک په تېره ډبره سره ښکار وويشي کوم چي د چاړې په څې تېره وي، لېکن هغه ډبره د ښکار په بدن کي زخم جوړ نه کړي او ښکار مړ سي، نو دا سي ښکار حلال ن دی؛ ځکه د ښکار د حلت لپاره زخمي کول (زخم پکښي جوړول) شرط دي او دلته دا شرط معدوم دی ځکه چي ښکار په زخم سره نه، بلکي په کوټل کېدلو سره مړ سوی دی. همدارنګه که څوک ډبر وغورځوي او په هغه سره د ښکار رګونه پرې سي، نو هم ښکار نه حلاليږي؛ ځکه د هغه په مرګ کې شک دی يعني په يقيني توګه دا معلومه نه ده چي د ښکار رګونه د ډبري په زخم سره پرې سوي دي يا د هغې د بوج او درونډ والي په وجه؛ ځکه څرنګه چي په پرېکولو سره رګونه پرېکيږي، همداسې ډبري په بوج او فشار سره هم پرېکيږي، لهذا د ښکار د مرګ سبب متعيّن نه دی، نو ځکه د هغه د حلت فيصله به نه کيږي.

## په لکړه وغيره سره د ښکار کولو حکم او د مذکور مسئلو په هکله يوه قاعده

وَلَوْ رَمَاهُ بِعَصًا أَوْ بِعُوْدٍ حَتّٰى قَتَلَهُ او که ښکار په لکړه يا لرگي سره وويلي تر دې چي هغه قتل کړي لَا يَحِلُّ نو هغه ښکار حلال نه دی لِأَنَّهُ يَقْتُلُهُ ثِقْلًا لَا جُرْحًا ځکه چي لکړه وغيره ښکار په دروندوالي [او فشار] سره قتل کوي، نه په زخمي کولو سره اَللّٰهُمَّ إِلَّا إِذَا كَانَ لَهُ حِدَّةٌ يُبْضِعُ بِضْعًا مګر دا چي کله د هغه لپاره تېره والی وي چي د ښکار څڅه ټوټه را پرېکوي فَحِيْنَئِذٍ لَا بَأْسَ بِهِ نو په دې وخت کي په [خوړلو د] ښکار کي څه حرج نسته لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ السَّيْفِ وَالرُّمْحِ ځکه چي داسي لکړه د توري او نېزې په درجه کي ده. وَالْأَصْلُ فِيْ هٰذِهِ الْمَسَائِلِ أَنَّ الْمَوْتَ إِذَا كَانَ مُضَافًا إِلَى الْجُرْحِ بِيَقِيْنٍ كَانَ الصَّيْدُ حَلَالًا او په دغه مسئلو کي قاعده دا ده چي کله په يقيني توګه مرګ د زخم طرف ته منسوب وي نو ښکار به حلال وي وَإِذَا كَانَ مُضَافًا إِلَى الثِّقْلِ بِيَقِيْنٍ كَانَ حَرَامًا او کله چي په يقيني توګه د دروند والي طرف ته منسوب وي نو ښکار به حرام وي وَإِنْ وَقَعَ الشَّكُّ وَلَا يَدْرِيْ مَاتَ بِالْجُرْحِ أَوْ بِالثِّقْلِ او که [د مرګ په هکله يې] شک واقع سي او دا معلومه نه سي چي ښکار د زخم په وجه مړ سوی دی يا د دروند والي په وجه كَانَ حَرَامًا احْتِيَاطًا نو [هم] به احتياطاً حرام وي.

**اللغات:** ﴿عصا﴾ لکړه، ﴿العُوْد﴾ لرګی، ﴿ثقل﴾ دروند والی، بوج.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک په لکړه، ډنډه وغيره ښکار وويلي او ښکار مړ سي، نو د هغه خوړل حلال نه دي؛ ځکه په لکړه وغيره سره چي کوم مرګ واقع کيږي هغه عموماً د لکړي د بوج او فشار په وجه وي او زخمي کول نه کوي؛ حال دا چي د ښکار د حلت لپاره زخمي کول شرط او ضروري دي، ها که لکړه تېره وي چي تېره او سپنه وغيره پکښې نصب وي او بيا په هغه سره ښکار ووژل سي، نو دا ښکار حلال او مباح دی؛ ځکه په داسي لکړه سره ښکار وژل او په غشي او نېزې سره وژل دواړه سره برابر دي او ظاهره خبره ده چي په غشي او نېزه سره وژل سوی ښکار حلال وي، لهذا په مذکوره لکړه سره وژل سوی ښکار به هم حلال او جائز وي.

**والأصل إلخ:** د دې حاصل دا دی چي په داسي مسئلو کي د حلت او حرمت د فيصله کولو لپاره غوره او آسانه قاعده داه ده چي کوم ښکار په يقيني توګه په زخم سره مړ سي، هغه حلال دی او کوم ښکار چي په يقيني توګه (د لکړي، ډبري وغيره) په ثقل او بوج سره مړ سي، هغه حرام دی، او د کوم ښکار د مرګ په هکله چي دا شک وي چي هغه په زخم سره مړ سوی دی که په ثقل او بوج سره، هغه هم حرام

دي؛ ځکه د فقهي دا قاعده خو بيخي مشهوره ده چي "إذا اجتمع الحلال والحرام غلب الحرام" يعني کله چي په يوه مسئله کي حلال او حرام سره جمع سي، نو ترجيح بيا حرام لره وي. (احسن الهدايه)

## په چاړه يا توره سره د ښکار کولو حکم

| |
|---|
| وَإِنْ رَمَاهُ بِسَيْفٍ أَوْ بِسِكِّيْنٍ او که ښکار په توره يا په چاړه سره وويلي فَأَصَابَهُ بِحَدِّهِ نو هغه په خپل تېره طرف سره پر ښکار ولګيږي فَجَرَحَهُ او ښکار زخمي کړي حَلَّ نو هغه حلال دی وَإِنْ أَصَابَهُ بِقَفَا السِّكِّيْنِ أَوْ بِمِقْبَضِ السَّيْفِ او که پر ښکار د چاړې د شا طرف يا د توري موټ ولګيږي لَايَحِلُّ نو ښکار حلال نه دی لِأَنَّهُ قَتَلَهُ دَقًّا ځکه هغه دا ښکار په کوټلو سره وژلی دی وَالْحَدِيْدُ وَغَيْرُهُ فِيْهِ سَوَاءٌ او اُوسپنه او نا اُوسپنه په دې کي سره برابر دي. |

**اللغات:** ﴿قفا﴾ شټ د شا طرف، ﴿مقبض﴾ موټ، د نيولو ځای، ﴿دقًا﴾ د نصر د باب مصدر دی: کوټل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک په توره يا چاړه سره ښکار وويلي او هغه پر ښکار ولګيږي او زخمي يې کړي، نو که د توري يا چاړې هغه تېره طرف پر ښکار لګېدلی وي، نو ښکار حلال دی، او که د توري يا چاړې د شا پڅ طرف يا د موټ طرف پر لګېدلی وي، نو ښکار حلال نه دی؛ ځکه د شا يا د موټ د طرف په لګېدلو کي دا احتمال سته چي ښکار به د هغې په بوج او فشار سره مړ سوی وي، نه په زخم سره، او ظاهره خبره ده چي د داسي احتمال په صورت کي ښکار نه حلاليږي، ځکه د ښکار د حلت لپاره په زخم سره د هغه مړ کېدل ضروري دي.

والحديد إلخ: د دې حاصل دا دی چي په قتل بالجرح او قتل بالدّق کي د حلت او حرمت په هکله اُوسپنه او غير اُوسپنه دواړه سره برابر دي، يعني که په اوسپني سره پر ښکار واري وکړي، نو که د زخمي کېدو په وجه مړ سي، نو ښکار حلال دی، او که د هغه په بوج او کوټلو سره مړ سي، نو حلال نه دی.

## آيا د ښکار او د ذبح له زخم څخه وينه بهېدل ضروري دي؟

| |
|---|
| وَلَوْ رَمَاهُ فَجَرَحَهُ وَمَاتَ بِالْجُرْحِ او که ښکار وويلي نو هغه زخمي کړي او د زخم په وجه ښکار مړ سي إِنْ كَانَ الْجُرْحُ مُدْمِيًا نو که چيري زخم په وينو لړلی وي [وينه پکښي راوتلې وي] يَحِلُّ بِالْإِتِّفَاقِ نو بالاتفاق ښکار حلال دی وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مُدْمِيًا او که زخم په وينو لړلی نه وي فَكَذٰلِكَ عِنْدَ بَعْضٍ |

الْمُتَأَخِّرِيْنَ نو هم د بعضي متأخرينو په نېز دغه حكم دى سَوَاءٌ كَانَتِ الْجِرَاحَةُ صَغِيْرَةً أَوْ كَبِيْرَةً برابره ده زخم كوچنى وي او كه غټ وي لِأَنَّ الدَّمَ قَدْ يَحْتَبِسُ بِضِيْقِ الْمَنْفَذِ أَوْ غِلَظِ الدَّمِ ځكه وينه كله د لارې د تنګوالي يا د وينو د ګاټه والي په وجه بنديږي وَعِنْدَ بَعْضِهِمْ يُشْتَرَطُ الْإِدْمَاءُ او د بعضو په نېز وينه راوتل شرط دي لِقَوْلِهِ الطَّيْلاً[1]: «مَا أَنْهَرَ الدَّمَ وَأَفْرَى الْأَوْدَاجَ فَكُلْ» د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه: کوم څه چي وينه وبهوي او رګونه پرېکړي نو هغه خوره! شَرَطَ الْإِنْهَارَ نبي كريم ﷺ [په دې فرمان سره] وينه بهول شرط کړي دي وَعِنْدَ بَعْضِهِمْ إِنْ كَانَتْ كَبِيْرَةً او د بعضي متأخرينو په نېز که زخم غټ وي حَلَّ بِدُوْنِ الْإِدْمَاءِ نو له ويني راوتلو څخه بغير حلال دى.

وَلَوْ ذَبَحَ شَاةً وَلَمْ يَسِلْ مِنْهُ الدَّمُ او که پسه ذبح کړي او له هغه څخه وينه نه وبهيږي قِيْلَ: لَا تَحِلُّ نو ويل سوي دي: چي حلال نه دى وَقِيْلَ: تَحِلُّ او ويل سوي دي: چي حلال دى وَوَجْهُ الْقَوْلَيْنِ دَخَلَ فِيْمَا ذَكَرْنَاهُ او د دواړو قولونو وجه زموږ په ذكر سوي تفصيل کي داخله ده وَإِذَا أَصَابَ السَّهْمُ ظِلْفَ الصَّيْدِ أَوْ قَرْنَهُ او كله چي غشى د ښكار پر ښونګرو يا پر ښكرو ولګيږي فَإِنْ أَدْمَاهُ نو که له هغه څخه وينه راوباسي حَلَّ نو ښكار حلال دى وَإِلَّا فَلَا كنې حلال نه دى وَهٰذَا يُؤَيِّدُ بَعْضَ مَا ذَكَرْنَاهُ او دا د هغه بعضي خبرو تائيد كوي كوم چي موږ ذكر کړي.

**اللغات:** ﴿مُدمِي﴾ د افعال د باب فاعل دى: هغه زخم چي وينه پکښي راوتلې وي، په بهېدونو لړلى (ککړ) زخم. ﴿المنفذ﴾ د راوتلو لاره، سورى. ﴿غِلَظ﴾ ګاټه والى، خند والى. ﴿إدماء﴾ د افعال د باب مصدر دى: وينه را ايستل، وينه راوتل. دَمْـي په اصل کي دې ته وايي چي له زخم څخه وينه راوځي خو ونه بهيږي، يا په بله وينا دا چي زخم په وينو ککړ سي (معجم الوسيط). ﴿أنهر﴾ د افعال د باب ماضي ده: بهول، بيول. ﴿أفرى﴾ مخکنى صيغه ده: پرېکول، غوڅول. ﴿شاة﴾ مخکي ذكر سوه چي د دې لفظ اطلاق پر پسه، سېرلي، بزه وغيره ټولو باندي كيږي. ﴿ظلف﴾ ښونګري، دغوا، پسه، هوسى او داسي نورو (چاودلي) نوکان.

[1] تخريج: : أخرجه البخاري بمعناه، باب ما أهر الدم من القصب والمروة والحديد، ص: ۹۸۰، حديث رقم: ۵۵۰۳.

**شريح**: د عبارت حاصل دا دی چي کله ښکار په غشي وويشلي او هغه زخمي سي او مړ سي. نو اوس به دې ته کتل کيږي چي له زخم څخه وينه راوتلې ده. که نه؟. که چيري وينه يې راوتلې وي او زخم په وينو لړلی وي. نو ښکار بالاتفاق حلال دی.

او که زخم په وينو لړلی نه وي، نو په دې باره کي د متأخرينو دوې ډولې دي: يوه ډولې داسي ښکار ته هم حلال وايي، او دويمه ډولې هغه ته حرام وايي. بيا اوله ډولې وايي چي زخم برابره ده کوچنی وي او که غټ وي په هر صورت کي ښکار حلال دی؛ دوی وايي چي ځکه د لاري د تنګوالي يا د ويني د ګاټه توب په وجه کله وينه ودريږي. او د متأخرينو دويمه ډولې وايي هغه ته حرام وايي: د هغو دليل دا حديث دی چي کوم څه وينه وبهوي او رګونه پرېکړي، نو ته هغه خوره!. دلته په حديث کي صراحتاً د ويني بهول شرط دي.

وعندبعضهم إلخ: په دې مسئله کي د ځينو متأخرينو رايه دا ده چي که زخم غټ وی، نو بغير له ويني راوتلو حلال دی (يعني که څه هم په غټ زخم کي وينه راوتلې نه وي. بيا هم ښکار حلال دی)، او که زخم کوچنی وي، نو وينه راوتل شرط دي.....، لنډه دا چي دلته د ويني نه راوتل د ويني د نشتوالي په وجه دی، نو دا مُضر نه دي.

ولوذبح شاة إلخ: فرمايي که څوک پسه وغيره ذبح کړي او له هغه څخه وينه نه راوځي، نو د هغه په هکله د متأخرينو دوه قوله دي: ① د ابو القاسم صفار رَحِمَهُ الله په نيز داسي پسه حلال نه دی؛ ځکه چي وينه بهول او را ايستل شرط دی، او دلته دا شرط معدوم دی، ② د ابو بکر الاسکاف رَحِمَهُ الله په نيز حلال دی؛ ځکه د هغه ټوله رګونه پرېکړل سوي دي، که په هغه کي څه وينه وای، نو د رګونو په پرېکېدلو سره به راوتلې وای، لېکن د رګونو د پرېکېدلو باوجود وينه نه راوتل د دې خبري دليل دی چي په دغه پَسه کي وينه نسته، لهذا د ويني نه راوتلو په وجه به پسه نه حراميږي بلکي د رګونو (أوداج) په پرېکېدلو سره به سمدستي هغه حلاليږي. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دې دوو قولونو وجه مخکي ذکر سوه يعني زخم په وينو لړل کېدل او نه کېدل.

وإذا أصاب إلخ: د دې حاصل دا دی چي که غشی د ښکار پر ښونګري يا د هغه پر ښکر ولګيږي، نو که د هغه په وجه ښونګری يا ښکر په وينو ککړ سي (يعني څه وينه يې راوځي)، نو ښکار حلال دی، کنې حلال دی، او په دغه تفصيل د ابو القاسم صفار رَحِمَهُ الله د قول تائيد کيږي؛ ځکه چي هغه هم د ويني راوتل شرط کړي دي.

## له ښکار څخه د را جلاسوي اندام او ټوټې حکم او تفصيل

قَالَ: وَإِذَا رَمَى صَيْدًا فَقَطَعَ عُضْوًا مِنْهُ فرمايي: او كله چي ښكار وويلي او له ښكار څخه يو اندام پرې كړي أُكِلَ الصَّيْدُ نو ښكار به خوړل كيږي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړى وَلَا يُؤْكَلُ الْعُضْوُ او اندام به نه خوړل كيږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: أُكِلَا إِنْ مَاتَ الصَّيْدُ مِنْهُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دواړه به خوړل كيږي كه چيري ښكار له دې پرېكېدلو څخه مړ سي لِأَنَّهُ مُبَانٌ بِذَكَاةِ الِاضْطِرَارِ ځكه چي هغه اندام په ذبح اضطراري سره را جلا سوى دى فَيَحِلُّ الْمُبَانُ وَالْمُبَانُ مِنْهُ نو ځكه راجلا سوى اندام او هغه ښكار چي اندام ځني را جلا سوى دى [دواړه] به حلال وي كَمَا إِذَا أُبِينَ الرَّأْسُ بِذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ لكه كله چي د ذبح اختياري په ذريعه [له څاروي څخه] سر جلا كړى سي بِخِلَافِ مَا إِذَا لَمْ يَمُتْ په خلاف د هغه صورت كله چي ښكار مړ نه سي لِأَنَّهُ مَا أُبِينَ بِالذَّكَاةِ ځكه [په دې صورت كي] هغه اندام د ذبح په ذريعه جلا نه كړى سو وَلَنَا قَوْلُهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ [1] : «مَا أُبِينَ مِنَ الْحَيِّ او زموږ دليل د نبي ﷺ دا فرمان دى: كوم څه چي له ژوندي حيوان څخه را جلا كړل سي فَهُوَ مَيِّتٌ» هغه مړه [مردار] دى ذُكِرَ الْحَيُّ مُطْلَقًا [په دې حديث كي لفظ د] "حَيّ" مطلق ذكر سوى دى فَيَنْصَرِفُ إِلَى الْحَيِّ حَقِيقَةً وَحُكْمًا نو دا مطلق به ګرځي د داسي ښكار وطرف ته كوم چي حقيقتاً او حكماً [دواړه بوله] ژوندى وي [يعني هم د حقيقت په اعتبار سره ژوندى وي او هم د حكم] وَالْعُضْوُ الْمُبَانُ بِهَذِهِ الصِّفَةِ او كوم اندام چي را جلا سوى دى هغه په همدغه صفت سره دى لِأَنَّ الْمُبَانَ مِنْهُ حَيٌّ حَقِيقَةً ځكه ښكار چي اندام ځني را جلا سوى دى حقيقتاً ژوندى دى لِقِيَامِ الْحَيَاةِ فِيهِ ځكه په هغه كي ژوند پاته دى وَكَذَا حُكْمًا او همدارنګه حكماً هم هغه ژوندى دى لِأَنَّهُ تُتَوَهَّمُ سَلَامَتُهُ بَعْدَ هَذِهِ الْجِرَاحَةِ ځكه له دغه زخم څخه وروسته هم د دغه ښكار د سلامتيا [او ژوندي پاتېدلو] وهم [توقع] سته وَلِهَذَا اعْتَبَرَهُ الشَّرْعُ حَيًّا په همدې وجه شريعت هغه ژوندى ګڼلى دى [د هغه د ژوند

---

[1] تخريج: أخرجه الترمذي بمعناه، باب ما جاء ما قطع من الحي فهو ميت ص:۳۶۰، حديث رقم:۱۴۸۰. وابو داؤد، باب إذا قطع من الصيد قطعة، ص:۴۱۵، حديث رقم:۲۸۵۸.

اعتبار یې کړی دی] حَتّٰى لَوْ وَقَعَ فِي الْمَاءِ وَفِيْهِ حَيَاةٌ بِهٰذِهِ الصِّفَةِ تر دې چې که هغه په اوبو کې ولوېږي او همدا ډول ژوند پکښې وي يَحْرُمُ نو هغه حراميږي وَقَوْلُهٗ أُبِيْنَ بِالذَّكَاةِ او د امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ دا وينا چې دا اندام د ذبح په ذريعه را جلا سوی دی قُلْنَا حَالَ وُقُوْعِهٖ لَمْ يَقَعْ ذَكَاةً موږ [په جواب کې ورته] وايو چې د هغه د راولېدلو په وخت کې ذبح نه ده واقع سوې لِبَقَاءِ الرُّوْحِ فِي الْبَاقِيْ ځکه په پاتې ښکار کې ژوند پاته وو وَعِنْدَ زَوَالِهٖ لَا يَظْهَرُ فِي الْمُبَانِ او د روح زايلېدلو په وخت کې په جلا سوي اندام کې ذبح نه ښکاره کيږي لِعَدَمِ الْحَيَاةِ فِيْهِ ځکه په هغه کې ژوند نسته وَلَا تَبَعِيَّةَ او تابع والی هم نسته [يعني هغه اندام د ښکار تابع کېدلای هم نه سي] لِزَوَالِهَا بِالْاِنْفِصَالِ ځکه د جلا کېدلو په وجه تبعيت زائل سو فَصَارَ هٰذَا الْحَرْفُ هُوَ الْأَصْلَ نو همدغه نکته اصل [قاعده] سوه لِأَنَّ الْمُبَانَ مِنَ الْحَيِّ حَقِيْقَةً وَحُكْمًا ځکه کوم اندام چې را جلا سوی وي له داسې ښکار [حيوان] څخه چې هغه د حقيقت او حکام دواړو په اعتبار سره ژوندی وي لَا يَحِلُّ [هغه اندام] حلال نه دی وَالْمُبَانُ مِنَ الْحَيِّ صُوْرَةً لَا حُكْمًا او کوم اندام چې له داسې ښکار څخه را جلا سوی وي چې هغه د صورت په اعتبار سره ژوندی وي، نه د حکم په اعتبار سره يَحِلُّ [هغه اندام] حلال دی.

**اللغات:** ﴿مُبَان﴾ د افعال د باب مفعول دی: را جلا کړل سوي حصه او اندام، ﴿مُبَان منهٗ﴾ هغه ښکار او څاروی چې يو حصه او اندام ځني را جلا کړل سوي وي، ﴿ذكاة الاضطرار﴾ ذبح اضطراري، د څاروي د بدن په هسې يو حصه کې زخم جوړولو (زخمي کولو) ته ذبح اضطراري وايي، ﴿تبعية﴾ تابع والی، تابع کېدل، ﴿حرف﴾ د دې لفظ يوه معنیٰ ده: نکته، طرز او طريقه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک ښکار په غشي وويلي او د هغه په وجه د ښکار يو اندام پرې سي او را جلا سي، نو ښکار خو بالاتفاق حلال دی؛ ځکه زخمي کول موجود سوه، او د حلت لپار همدا شرط دي، لهذا کله چې د حلت شرط موجود سو، نو ظاهره ده چې ښکار به حلال وي. پاته سو د هغه اندام مسئله کوم چې د ښکار له بدن سره څخه را جلا سوی دی، نو زموږ په نيز حکم دا دی چې هغه اندام او حصه به نه خوړل کيږي، او د امام شافعي رَحِمَهُ اللّٰهُ په نيز څه تفصيل دی او هغه دا دی چې که د اندام د پرېکېدلو په وجه ښکار هم مړ سي، نو ښکار او اندام به دواړه خوړل کيږي؛ ځکه دغه اندام د ذبح اضطراري په ذريعه د هغه له مجموعي څخه جلا کړل سوی دی، لهذا څرنګه چې د ذبح

اختياري په صورت کې کـه د ښکاروي سر لـه بدن څخـه جـلا سي، نـو مبان او مبان منـهٗ دواړه حـلال پاتيږي، نو همداسي د ذبح په صورت کي به هم مبان او مبان منهٗ دواړه حلال وي.

د دې په خلاف که ښکار مړ نه سي، نو په دې صورت کي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيـز هـم هغـه مقطوع اندام (مُبان) حلال نه دی؛ ځکه هغه اندام په ذبح سره نه دی را جلا سوی؛ نو ځکـه د حديث "مَا أُبِيْنَ مِنَ الْحَيِّ فَهُوَ مَيِّتٌ" پر بناءهغه اندام حرام او مردار دی.

ولنا إلخ: فرمايي د مقطوع اندام د حرامېدلو په هکله زموږ دليـل دا پـورتنی حـديث دی "مَـا أُبِيْنَ مِـنَ الْحَيِّ فَهُوَ مَيِّتٌ" او په دغه حديث سره دليـل پـه دې توګـه نيسـو چې نبي ﷺ مطلق "الحَيّ" فرمايلي دي، او د مطلق په هکله قاعده دا ده چي "المُطلق إذا أطلق يُراد بـه الفـرد الكامـل" يعني څه چي مطلق ذکر سي نو په هغه سره فرد کامل مرادول کيږي او د "حَيّ" فرد کامل دا دی چي پـه هغـه کـي حقيقتـا او حکماً ژوند وي (د حقيقتاً مطلب دا چي په ښکار کي في الحاله ژوند وي او د حکماً مطلب دا چي دآينده لپاره سالم پاتېدلای سي)، او د دغه حديث مطلب دا دی چي له ژوندي ښاروي څخه چي کوم اندام جلا کړل سي هغه حرام دی، او په صورت مسئله کي ښکار او له هغه څخه پرېکړل سوی اندام پر همدغه صفت دي؛ ځکه د ښکار (صَيد) له بدن څخه پرېکړل سوی اندام د ژوندي ښاروي اندام دی او بيا په ښکار کي ژوند پاته دی، نو هغه حقيقتاً حيّ دی، او څرنګه چي د هغه اندام تر پرېکېدلو وروسته د دې توقع هم سته چي ښکار به سالم او ژوندی پاته سي، نو ځکه حکماً هم په هغه کي ژوند پاتـه دی، او د دې غـټ دليـل دا دی چي شريعت د هغه د ژوند اعتبار کړی دی، مثلاً که د مذکوره اندام تر پرېکېدلو وروسته ښاروی پر همدې صفت ژوندی پاته سي او بيا اوبو ته ولوېږي، نو د هغه مرګ اوبو ته منسوب کيـږي (چي اوبو مړ کړی دی) نو هغه حرام ګرځي.

وقوله أُبِين إلخ: امام شافعي رَحِمَهُ الله په خپل دليل کي فرمايلي وه چي مقطوع انـدام د ذبح اضطراري په ذريعه را جلا سوی دی نو ځکه حلال به وي، دلته د هغه جواب ورکوي چي دا اندام د ذبح پـه را جـلا کېدلونکی ګرځول صحيح نه دي؛ ځکه کوم وخت چي دا اندام جلا سوی دی په هغه وخت کي ذبح نه ده متحقق سوې؛ ځکه تر دې زخم وروسته هم په پاته ښکار کي ژوند باقي دی او ظاهره خبره ده چي د ژوند د بقاء سره ذبح نه سي متحقق کېدلای، او کوم وخت چي د پاته ښکار ژوند ختم سي، نو هغه وخت فقط په پاته ښکار کي ذبح ثابتيږي او په مقطوع اندام کي ذبح نه ثابتيږي؛ ځکه هغه اندام

د پرېکېدلو په وجه له مخکې شخصه مر سوی دی او ژوند پکښې معدوم سوی دی، او کله چې ژوند پکښې معدوم دی، نو ذبح به یې څنګه ثابته سي!.

ولاتبعیة إلخ: فرمایي دا هم نه سي کېدلای چې دلته ښکار متبوع وګڼل سي او مقطوع اندام د هغه تابع وګرځول سي او په دې توګه ژوند پکښې ثابت کړی سي؛ ځکه د تبعت (تابع والي) لپاره اتصال ضروري دی. او په صورتِ مسئله کي اندام له ښکار شخصه راجلا سوی دی، نو اتصال ختم سو لهذا د تبعیت امکان ختم سو، نو په دې وجه هم په مقطوع اندام کي ژوند نه سي ثابتېدلای.

فصار إلخ: فرمایي زموږ له دې مخکېني بیان او تفصیل څخه دا خبره ښکاره سوه چې کوم ښکار او ښاروی حقیقتاً او حکماً ژوندی وي، که له هغه شخصه یو اندام پرېکړل سي نو هغه اندام حرام دی، او کوم ښکار چې صورتاً ژوندی وي لېکن حکماً ژوندی نه وي، نو د هغه له تن شخصه پرېکړل سوی اندام حلال دی.

د صورتاً ژوندي او حکماً مړه مثال ته ضرورت دی، نو په را روان عبارت کي د هغه مثال او وضاحت پېښوي.

## د پورتنی مسئلي مثال او قاعده او پر هغه متفرع جزئیات

وَذٰلِكَ بِأَنْ يَبْقَى فِي الْمُبَانِ مِنْهُ حَيَاةٌ بِقَدْرِ مَا يَكُونُ فِي الْمَذْبُوحِ او دا په دې توګه چې په هغه ښکار [ښاروي] کي چې اندام ځني جلا کړی سوی دی دومره ژوند وي څومره چې په ذبح کړی سوي ښاروي کي وي فَإِنَّهُ حَيَاةٌ صُورَةً لَا حُكْمًا نو دا صورتاً ژوند دی، نه حکماً وَلِهٰذَا لَوْ وَقَعَ فِي الْمَاءِ وَبِهِ هٰذَا الْقَدْرُ مِنَ الْحَيَاةِ همدا وجه ده که ښاروی اوبو ته ولوېږي او په هغه کي دومره ژوند وي أَوْ تَرَدَّى مِنْ جَبَلٍ أَوْ سَطْحٍ یا له غره یا بام څخه راګېل سي لَا يَحْرُمُ نو هغه نه حرامیږي فَتُخَرَّجُ عَلَيْهِ الْمَسَائِلُ او پر همدې اصل د مسائلو تخریج کیږي فَنَقُولُ: إِذَا قَطَعَ يَدًا أَوْ رِجْلًا أَوْ فَخِذًا نو موږ وایو: چې کله د ښکار لاس یا پښه یا ورون پرېکړي أَوْ ثُلُثَهُ مِمَّا يَلِي الْقَوَائِمَ أَوْ أَقَلَّ مِنْ نِصْفِ الرَّأْسِ یا د ښکار هغه ثلث [دریمه حصه] پرېکړي کوم چې یې د پښو سره متصله وي یا یې تر نیم سر کمه حصه پرېکړي يَحْرُمُ الْمُبَانُ نو را جلا سوې [پرېکړل سوې] حصه حرامه ده وَيَحِلُّ الْمُبَانُ مِنْهُ او پاته ښکار چې له هغه شخصه دا حصه را جلا سوې ده حلال دی لِأَنَّهُ يُتَوَهَّمُ بَقَاءُ الْحَيَاةِ فِي الْبَاقِي ځکه چې په پاته ښکار کي د ژوندي پاتېدلو وهم [توقع] سته وَلَوْ قَدَّهُ بِنِصْفَيْنِ او که ښکار

نیمه په نیمه دوې ټوټې کړي أَوْ قَطَّعَهُ أَثْلَاثًا یا یې درې ټوټې پرېکړي وَالْأَكْثَرُ مِمَّا يَلِي الْعَجُزَ او اکثره حصه یې د کوناټو [شاتني طرف] سره متصله وي أَوْ قَطَعَ نِصْفَ رَأْسِهِ أَوْ أَكْثَرَ مِنْهُ یا د ښکار نیمايي سر پرېکړي يَحِلُّ الْمُبَانُ وَالْمُبَانُ مِنْهُ نو را جلا سوې حصه او ښکار چي ځني را جلا سوې ده [دواړه] حلال دي لِأَنَّ الْمُبَانَ مِنْهُ حَيٌّ صُورَةً لَا حُكْمًا ځکه ښکار چي له هغه څخه دا حصه را جلا سوې ده صورتاً ژوندی دی، نه حکماً إِذْ لَا يُتَوَهَّمُ بَقَاءُ الْحَيَاةِ بَعْدَ هٰذَا الْجَرْحِ ځکه تر داسي زخم وروسته د هغه دژوندي پاتېدلو وهم [توقع] نسته وَالْحَدِيثُ وَإِنْ تَنَاوَلَ السَّمَكَ وَمَا أُبِينَ مِنْهُ او مذکوره حدیث که څه هم ماهي او د هغه څخه راجلا سوې ټوټې ته شامل دی فَهُوَ مَيِّتٌ [چي پر دې بناء] هغه ټوټه مرده [مرداره] ده إِلَّا أَنَّ مَيْتَتَهُ حَلَالٌ بِالْحَدِيثِ الَّذِي رَوَيْنَاهُ خو د ماهي مرده حلال دي په هغه حدیث سره کوم چي موږ [مخکي] روایت کړی دی.

**اللغات:** ﴿القوائم﴾ د څاروي پښې او لاسونه. ﴿قَدَّ﴾ قَدَّ يَقُدُّ قَدًّا: ټوټه کول، دوه ځایه کول. ﴿العجز﴾ د نصر د باب ماضي ده: دیو شي د شا آخرینی طرف، شاتنی طرف (مراد کوناټي او لم). ﴿میتة﴾ مړ سوی (مردار سوی) حیوان، مُرده حیوان.

**تشریح:** مخکي چي کوم صورتاً او حکماً د ښکار دژوند خبره وسوه، دلته د هغه مثال او نور وضاحت پېشوي، حاصل یې دا دی چي که د ښکار له بدن څخه تر اندام پرېکېدلو وروسته په ښکار کي دومره ژوند پاته سي څومره چي په ذبح کړل سوي څاروي کي پاتېږي، نو داسې ښکار او څاروي ته صورتاً ژوندی ویل کیږي، لېکن حکماً ژوندی نه شمېرل کیږي، بلکي پر هغه د مړه څاروي احکام جاري کیږي، همدا وجه ده که په دې حالت کي ښکار اوبو ته ولوېږي یا له غره یا بام څخه راګېل سي او مړ سي، نو حلال پاتیږي، حرام نه ګرځي؛ ځکه د هغه مرګ د زخم وطرف ته منسوب کیږي، نه د اوبو یا له غره یا بام څخه د راګېدلو و طرف ته. بیا مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا (دصُورتاً او حکماً تلسب) یو داسي قاعدهٔ کلیه ده چي پر هغه ډېر مسائل متفرّع کېدای سي، او له هغوی څخه څو مسئلې یې په عبارت کي ذکر کړي دي.

إذا قطع يدا إلخ: له همدې ځای څخه یې پر مذکوره قاعده متفرّع سوي مسئلې ذکر کړي دي چي په ټولو مسئلو کي د ښکار دژوندي پاتېدلو وهم (امید) سته، نو ځکه ښکار حلال ګرځول سوی دی او مع اندام حرام ګرځول سوی دی، او په نورو مسئلو (ولو قدّه بنصفين...إلخ) کي د دې وهم نسته چي

هغه ژوندی پاته سي، نو ځکه هلته دواړه حلال ګرځول سوي دي. نور تفصیل یې له ترجمې ښکاره دی.

والحدیث إلخ: فرمایي دا حدیث "مَا أُبِينَ مِنَ الحَيِّ فَهُوَ مَيِّتٌ" د ماهي لپاره هم عام دی، نو له ماهي چي کومه حصه جلا کړل سي، هغه به هم مُرده (مرداره) وي، خو د دې سربېره له ماهي څخه را سوې حصه حلاله ده؛ ځکه مخکي دا حدیث ذکر سو چي "أُحِلَّتْ لَنَا الْمَيْتَتَانِ... أَمَّا الْمَيْتَةُ فَالسَّمَكُ وَالْجَرَادُ" یعني زموږ لپاره دوه مُرده حلال دي چي هغه ماهی او ملخ دی. نو د دې حدیث بناء ماهی د "مَا أُبِينَ مِنَ الحَيِّ" له عموم څخه مستثنیٰ دی، لهذا دا حکم به په هغه کي نه جاري کیږي.

**که د پسه غاړه غوڅه پرېکړي نو څه حکم دی؟**

وَلَوْ ضَرَبَ عُنُقَ شَاةٍ او که څوک د پسه غاړه ووهي فَأَبَانَ رَأْسَهَا او د هغه سر را جلا کړي يَحِلُّ حلال دی لِقَطْعِ الْأَوْدَاجِ ځکه د ذبح رګونه یې پرې سول وَيُكْرَهُ هٰذَا الصَّنِيعُ او دغه فعل مکروه لِإِبْلَاغِهِ النُّخَاعَ ځکه قطع تر نخاع [حرام مغزه] پوري رسیږي وَإِنْ ضَرَبَهُ مِنْ قِبَلِ الْقَفَا او که هغه د شټ طرفه ووهي إِنْ مَاتَ قَبْلَ قَطْعِ الْأَوْدَاجِ نو که هغه د رګونو تر پرېکېدلو مخکي مړ سي لَا يَحِلُّ نو حلال دی وَإِنْ لَمْ يَمُتْ حَتّٰى قَطَعَ الْأَوْدَاجَ او که مړ نه سي تر دې چي د ذبح رګونه پرې سي حَلَّ نو حلال دی.

**اللغات:** ﴿أوداج﴾ جمع د وَدَجٌ (ښه رګ) ده: د ذبح رګونه یعني ښه رګ وغیره چي د هغه په پرېکولو سره پوره کیږي. ﴿نُخاع﴾ (د نون په ضمه، فتحه او کسره ټولو سره ویل کېدای سي): یو سپین رګ دی چي د شټ هډوکي (عمود فقري) کي تللی دی، کوم ته چي په اُردو ژبه کي حرام مغز ویل کیږي. ﴿قفا﴾ شټ، د غاړې طرف، ورمیږ.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک د پُسه غاړه په ساتول وغیره سره دومره په زوره ووهي چي سره یې غوڅ پرې سي او له تن څخه جلا سي، نو داسي پسه حلال دی او خوړل یې روا دي. حلت وجه یې د ذبح د رګونو پرېکېدل دي (یعني په سر پرېکولو کي د ذبح رګونه هم پرېکړل سوه)، خو داسي وحشي توګه ذبح کول مکروه دي؛ ځکه په دې صورت کي تر نخاع رګ هم ذبح تېرېږي داسي کول په شریعت کي ناخوښه ګڼل سوي دي، چي بیان یې په کتابُ الذبائح کي یې تېر سوی دی.

او که د شټ له طرفه پُسه ووهي، نو که د ذبح د رګونو تر پرېکېدلو مخکي هغه مړ سي، نو حلال نه دی، او که د رګونو د پرېکېدلو تر وخته هغه ژوندی پاته وي، نو حلال دی، د دې بیان او تفصیل هم په کتابُ الذبائح کي تېر سوی دی.

## د پرېکړل سوي حصې د جوړېدلو حکم

وَلَوْضَرَبَ صَيْدًا فَقَطَعَ يَدًا أَوْ رِجْلًا او که ښکار وويلي او د هغه لاس يا پښه پرېکړي وَلَمْ يُبِنْهُ خو هغه را جلا نه کړي إِنْ كَانَ يُتَوَهَّمُ الِالْتِئَامُ وَالِانْدِمَالُ فَإِذَا مَاتَ نو که د هغه د جوړېدلو او روغېدلو وهم [توقع] وي لېکن بيا ښکار مړ سي حَلَّ أَكْلُهُ نو د هغه [پرېکړل سوي لاس يا پښې] خوړل حلال دي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ سَائِرِ أَجْزَائِهِ ځکه چي دا د هغه د ټولو اجزاؤ په درجه کي دي وَإِنْ كَانَ لَا يُتَوَهَّمُ بِأَنْ بَقِيَ مُتَعَلِّقًا بِجِلْدِهِ او که د جوړېدلو وهم يې نه وي په دې توګه چي هغه د څرمني سره ځوړند پاته سي حَلَّ مَا سِوَاهُ نو له هغه څخه بغير نور ښکار حلال دی لِوُجُودِ الْإِبَانَةِ مَعْنًى ځکه چي د معنیٰ په اعتبار سره جلا کېدل موجود سوه [يعني داسي پښه يا لاس معناً جلا او منفصل دي] وَالْعِبْرَةُ لِلْمَعَانِي او اعتبار معناګانو لره دی.

**اللغات:** ﴿أبان﴾ د افعال د باب ماضي ده: جلا کول، بېلول. ﴿الالتيام﴾ د افتعال د باب مصدر دی: زخم منبلېدل او جوړېدل. ﴿الاندمال﴾ د انفعال د باب مصدر دی: زخم روغتيا او سمېدو ته نژدې کېدل، ډکېدل. ﴿العبرة﴾ اعتبار.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د ښکار له بدن څخه چي کوم اندام پرې سي لېکن را جلا نه سي، نو حکم دا دی چي که د دغه اندام د سمېدلو او جوړېدلو توقع وي، نو داسي اندام د ښکار د نورو اجزاء په حکم کي دی چي د ښکار تر مړ کېدلو وروسته دغه اندام او ښکار ټوله حلال دی (يعني څرنګه چي د ښکار خوړل حلال دي، همداسي د هغه دغه اندام خوړل هم حلال دي)، او که دا اندام هغسي ځوړند پاته سي او د جوړېدلو توقع يې نه وي، نو بيا هغه را جلا او منفصل شمېرل کېږي او خوړل يې حلال نه دي، او نور ښکار حلال دی.

او که سوال وسي چي کله اندام اوس متصل دی، نو تاسي هغه ولي منفصل شمېرئ!، نو جواب يې دا دی چي هغه معناً منفصل دی، يعني په داسي ځوړند او پرې سوي حالت کي د معنیٰ په اعتبار سره هغه د جلا سوي اندام په څېر دی، او په شريعت کي د معنیٰ اعتبار کېږي، نو ځکه دغه اندام له ښکار څخه بېل او منفصل شمېرل کېږي او د ښکار حلت په هغه کي اثر نه کوي.

## د مجوسي، مرتد او بُت پرست د ښکار حکم

قَالَ: وَلَا يُؤْكَلُ صَيْدُ الْمَجُوسِيِّ وَالْمُرْتَدِّ وَالْوَثَنِيِّ فرمايي: او د مجوسي، مرتد او بُت پرست ښکار به نه خوړل کيږي لِأَنَّهُمْ لَيْسُوا مِنْ أَهْلِ الذَّكَاةِ ځکه چي دوی د ذبح اهل نه دي عَلَىٰ مَا بَيَّنَّاهُ فِي الذَّبَائِحِ لکه څرنګه چي په کتابُ الذبائح دا مورد بيان کړه وَلَا بُدَّ مِنْهَا فِي إِبَاحَةِ الصَّيْدِ او چاره نسته له ذبح څخه د ښکار په روا کولو کي [يعني د ښکار د روا ينبت لپاره ذبح اضطراري ضروري ده] بِخِلَافِ النَّصْرَانِيِّ وَالْيَهُودِيِّ په خلاف د نصراني او يهودي لِأَنَّهُمَا مِنْ أَهْلِ الذَّكَاةِ اخْتِيَارًا ځکه چي دوی د ذبح اختياري اهل دي فَكَذَا اضْطِرَارًا نو همداسي به د ذبح اضطراري هم اهل وي.

**اللغات:** ﴿وثني﴾ بت پرست، ﴿ذكاة﴾ حلالول، ذبح کول.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي په ښکار کي ذبح اضطراري (زخمي کول) داسي دي لکه په غير ښکار کي ذبح اختياري (په چاړه وغيره سره ذبح کول)، نو کوم څوک چي د ذبح اختياري اهل نه وي، د ذبح اضطراري يعني د ښکار کولو هم اهل نه دی، او څوک چي د ذبح اختياري اهل وي، هغه د ښکار کولو هم اهل دی، او مخکي تاسي ته معلومه سوه چي مجوسي، مرتد او بت پرست د ذبح اختياري اهل نه دي او ذبيحه يې حلاله نه ده، او کتابي يعني نصراني او يهودي يې اهل دي، نو ځکه د مجوسي وغيره به ښکار به حلال نه وي او د کتابي ښکار به حلال وي.

## که دوه ښکاريان ښکار وويلي چي يو يې زخمي کړي او بل يې قتل کړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَمَنْ رَمَىٰ صَيْدًا فَأَصَابَهُ فرمايي: او که څوک ښکار وويلي او پر هغه ولګيږي وَلَمْ يُثْخِنْهُ ليکن هغه سخت زخمي نه کړي وَلَمْ يُخْرِجْهُ عَنْ حَيِّزِ الِامْتِنَاعِ او د خپل امتناع [دفاع] له ځای څخه هغه نه وباسي [يعني او س هم هغه د خپل ځان دفاع کولای سي او تښتېدلای سي] فَرَمَاهُ آخَرُ بيا يو بل کس هغه وويلي فَقَتَلَهُ نو قتل يې کړي فَهُوَ لِلثَّانِي نو هغه ښکار د دويم کس دی وَيُؤْكَلُ او خوړل کيږي [يعني حلال هم دی] لِأَنَّهُ هُوَ الْآخِذُ ځکه چي همدا دويم کس [د هغه] نيونکی دی وَقَدْ قَالَ عليه السلام «الصَّيْدُ لِمَنْ أَخَذَ» او نبي ﷺ فرمايلي دي: چي ښکار د هغه کس دی څوک چي يې ونيسي.[1]

[1] تخريج: لم أجده.

**اللغات:** ﴿لم يثخنه﴾ د افعال له بابه د جحد صيغه ده: په يو څه کي زياته مبالغه کول. مثلاً په وهلو، زخمي کولو، وژلو وغيره کي ډېره مبالغه کول. مراد: سخت زخمي کول. زښت ټپي کول.

﴿حَيِّز﴾ پر وزن د فَيْعِل دی او حَيْز هم ويل کېدای سي: مکان (ځای)، گوښه. څنگ (طرف)، يو شي ته څرمه ځای. ﴿امتناع﴾ د افتعال د باب مصدر دی: منع کېدل، له يو شي څخه د ځان دفاع کول.

﴿ينجو﴾ د نصر د باب مضارع ده: نجات موندل، خلاصېدل، بچ کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک په غشي سره ښکار وويلي او غشی پر ښکار ولگېږي لېکن هغه زيات زخمي نه کړي او نه هغه په خپل قوت او دفاع کي کمزوری کړيي بلکي په هغه کي ژوند او قوت پاته وي او وتښتي چي په دې دوران کي يو دويم کس هغه په غشي سره وويلي او قتل يې کړي، نو په داسي صورت کي د شريعت فيصله دا ده چي ښکار د دويم کس دی؛ ځکه چي هاغه د ښکار کار تمام کړی او وژلی يې دی، او په حديث کي دي "الصَّيْدُ لِمَنْ أَخَذَ" چي ښکار د هاغه کس دی څوک چي يې ونيسي او په قبضه کي يې راولي. او د دې ښکار خوړل هم حلال دي؛ ځکه دويم کس هغه په داسي حالت کي ويشتلی او وژلی دی چي تر اوسه هغه ښکار (صَيد) دی يَعني له ښکار والي (صيديّت) څخه نه دی وتلی، نو په دې سره ذبح اضطراري ثابته سوه، او د ښکار د حلت لپاره ذبح اضطراري کافي ده.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَإِنْ كَانَ الْأَوَّلُ أَثْخَنَهُ او که اول کس ښکار سخت زخمي کړي فَرَمَاهُ الثَّانِي فَقَتَلَهُ بيا دويم کس هغه وويلي او قتل يې کړي فَهُوَ لِلْأَوَّلِ وَلَمْ يُؤْكَلْ نو هغه د اول کس دی او نه به خوړل کيږي لِاحْتِمَالِ الْمَوْتِ بِالثَّانِي ځکه چي په دويمو ويشتلو سره د هغه د مړ کېدلو احتمال سته [يعني دا احتمال سته چي د دويم کس د غشي په وار سره هغه مړ سوی دی] وَهُوَ لَيْسَ بِذَكَاةٍ حال دا چي هغه [دويم ويشتل] ذبح [حلالول] نه دي لِلْقُدْرَةِ عَلَى ذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ ځکه پر ذبح اختياري قدرت سته بِخِلَافِ الْوَجْهِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت وَهَذَا إِذَا كَانَ الرَّمْيُ الْأَوَّلُ بِحَالٍ يَنْجُو مِنْهُ الصَّيْدُ او دا [حکم] هغه وخت دی کله چي اول ويشتل په دې ډول وي چي له هغه څخه ښکار بچ کېدلای سي [يعني تر هغه وروسته ښکار ژوندی پاتېدلای سي] لِأَنَّهُ حِينَئِذٍ يَكُونُ الْمَوْتُ مُضَافًا إِلَى الرَّمْيِ الثَّانِي ځکه چي په دې وخت کي د ښکار مړ کېدل دويمو ويشتلو [دويم وار] ته منسوب کيږي وَأَمَّا إِذَا كَانَ الْأَوَّلُ بِحَالٍ لَا يَسْلَمُ مِنْهُ

الصَّيْدُ لېکن که اول وار ويشتل داسي ډول [سخت] وي چي له هغه څخه ښکار سالم [او ژوندی] نه پاتيږي بِأَنْ لَا يَبْقَى فِيْهِ مِنَ الْحَيَاةِ إِلَّا بِقَدْرِ مَا يَبْقَى فِي الْمَذْبُوحِ په دې توګه چي په هغه کي ژوند نه پاتيږي مګر دومره اندازه کوم چي په ذبح کړی سوي ځاروي کي پاتيږي كَمَا إِذَا أَبَانَ رَأْسَهُ لکه کله چي د هغه سر جلا کړي يَحِلُّ نو ښکار حلال دی لِأَنَّ الْمَوْتَ لَا يُضَافُ إِلَى الرَّمْيِ الثَّانِي ځکه چي مرګ دويمو ويشتلو [دويم وار] ته نه منسوب کيږي لِأَنَّ وُجُوْدَهُ وَعَدَمَهُ بِمَنْزِلَةٍ ځکه چي اوس د هغه [دويم وار] شتون او نشتون سره برابر دي.

**اللغات**: ﴿لا يسلم﴾ د سمع له بابه د نفي صيغه ده: سالم او روغ رمټ پاتېدل، خوندي کېدل.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که د اول کس په غشي سره ښکار سخت زخمي سي چي خپل قوت او امتناع د لاسه ورکړي او نه سي تښتېدلای، خو څه ژوند پکښې پاته وي چي په دې دوران کي دويم کس هم پر هغه وار وکړي او مړ يې کړي، نو په دې صورت کي مذکوره ښکار د اول کس دی يعني اول چي کوم کس دا ښکار په غشي ويشتلی دی هغه يې مالک دی، لېکن دا ښکار به نه خوړل کيږي؛ ځکه په هغه کي دا احتمال سته چي د دويم کس په غشي سره به مړ سوی وي او په داسي حالت کي په دويم غشي سره مړ کېدل ذبح اضطراري نه ده؛ ځکه کله چي د اول غشي ويشتلو په وجه ښکار له صيديّت (ښکار والي) څخه ووتی، نو د هغه ذبح اختياري لازم سوه (چي په چاړه وغيره سره به ذبح کول کيږي) او پر دې ذبح قدرت موجود دی (ځکه چي ښکار نه سي تښتېدلای)، او په دې دوران کي دويم کس هغه په غشي وويشتی حال دا چي هغه ښکار نه دی، نو حرام سو، او په مخکيني صورت کي هغه له صيديّت څخه وتلی نه وو، نو ځکه د دويم غشي ويشتل ذبح اضطراري سوه، همدا په دواړو مسئله کي د فرق وجه ده.

لېکن د خوړلو حرمت هغه وخت دی کله چي اول غشی داسي لګېدلی وي چي د ښکار د ژوندي پاتېدلو توقع وي چي هغه بچ کېدلای سي، نو په دې وخت کي د هغه مرګ د دويم غشي وطرف ته منسوب کيږي. خو که اول غشی داسي لګېدلی وي چي ښکار نه سي بچ کېدلای او په هغه کي فقط دومره ژوند پاته سي څومره چي په مذبوح ځاروي کي وي مثلاً د اول غشي په وجه د هغه سر له تن څخه جلا سي او په همدې وخت کي دويم کس هغه وويلي، نو اوس هغه حلال دی؛ ځکه دلته د هغه مرګ د دويم غشي وطرف ته منسوب نه دی، بلکي دويم غشی خو دلته د عدم په درجه کي دی د هغه وجود او عدم سره برابر دي، يعني ګواکي دويم غشی ګردسره پر هغه لګېدلی نه دی.

## د امام محمد او امام ابو یوسف رَحِمَهُما الله اختلاف

وَإِنْ كَانَ الرَّمْيُ الْأَوَّلُ بِحَالٍ لَا يَعِيْشُ مِنْهُ الصَّيْدُ او که اول ویشتل په دې ډول وي چې له هغه څخه ښکار ژوند نه سي کولای إِلَّا أَنَّهُ بَقِيَ فِيْهِ مِنَ الْحَيَاةِ أَكْثَرُ مِمَّا يَكُوْنُ بَعْدَ الذَّبْحِ خو په هغه کې دومره ژوند پاته سي کوم چې له ذبح وروسته والا ژوند څخه زيات وي بِأَنْ كَانَ يَعِيْشُ يَوْمًا أَوْ دُوْنَهُ په دې توګه چې هغه یوه ورځ یا تر دې کم ژوندی کولای سي فَعَلَى قَوْلِ أَبِيْ يُوْسُفَ لَا يَحْرُمُ بِالرَّمْيِ الثَّانِيْ نو د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قول مطابق هغه په دویمو ویشتلو سره نه حرامیږي لِأَنَّ هٰذَا الْقَدْرَ مِنَ الْحَيَاةِ لَا عِبْرَةَ بِهَا عِنْدَهُ ځکه د هغه په نېز دومره ژوند لره اعتبار نسته وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ يَحْرُمُ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز حرامیږي لِأَنَّ هٰذَا الْقَدْرَ مِنَ الْحَيَاةِ مُعْتَبَرٌ عِنْدَهُ ځکه د هغه په نېز دومره ژوند معتبر دی عَلَى مَا عُرِفَ مِنْ مَذْهَبِهِ لکه څرنګه چې [مخکي] د هغه دا مذهب پېژندل سوی دی. فَصَارَ الْجَوَابُ فِيْهِ وَالْجَوَابُ فِيْمَا إِذَا كَانَ الْأَوَّلُ بِحَالٍ لَا يَسْلَمُ مِنْهُ الصَّيْدُ سَوَاءٌ نو د دې صورت حکم او د هغه صورت حکم کله چې اول ویشتل په دې ډول وي چې له هغه څخه ښکار سالم نه سي پاتېدلای سره برابر دي فَلَا يَحِلُّ نو ځکه ښکار به حلال نه وي.

**اللغات:** ﴿یعیش﴾ د ضرب د باب مضارع ده: ژوند کول، ژوندی پاتېدل. ﴿الرمی﴾ د ضرب د باب مصدر دی: (غشی) ویشتل، غورځول.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې که تر اول غشي وروسته د ښکار حالت داسي وي چې ژوندی نه سي پاتېدلای، لېکن په هغه کي د مذبوح څاروي له ژوند څخه زیادت ژوند پاته وي یعني یوه یا دوې ورځي ژوند کولای سي، نو امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د دومره ژوند اعتبار نه کوي او دویم غشی لغو ګرځوي او ښکار حلال دی چې دویم غشی هغه نه حراموي، لېکن مخکي د امام محمد رَحِمَهُ الله مذهب وپېژندل سو چې د هغه په نېز دومره ژوند هم معتبر دی. لهذا د هغه په نېز ښکار حرام دی.

نو د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز په دې مسئله او مخکنی مسئله کې چې هلته دا توقع وي چې ښکار ژوندی پاتېدلای سي او بیا دویم کس هغه وویلي او قتل یې کړي، یو حکم دی. یعني د هغه په نېز په دواړو مسئلو کي همدا یو جواب دی چې ښکار حرام دی.

## پر دويم ښکاري د ضمان لازمېدلو حکم

قَالَ: وَالثَّانِيْ ضَامِنٌ لِقِيْمَتِهِ لِلْأَوَّلِ فرمايي: او دويم کس د اول کس لپاره د ښکار د قيمت ذمه وار دی [چې د هغه ضمان (تاوان) به ورکوي] غَيْرَمَا نَقَصَتْهُ جِرَاحَتُهُ ماسوا د هغه حصې کوم چې د اول کس زخم ناقصه کړي وي لِأَنَّهُ بِالرَّمْيِ أَتْلَفَ صَيْدًا مَمْلُوْكًا لَهُ ځکه دويم کس په ويشتلو سره داسې ښکار هلاک کړی کوم چې د اول کس په ملکيت کې دی لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِالرَّمْيِ الْمُثْخِنِ ځکه اول کس په سخت ويشتلو سره د ښکار مالک سو وَهُوَ مَنْقُوْصٌ بِجِرَاحَتِهِ او هغه ښکار د اول کس په زخم سره ناقص [معيوب] سوی دی وَقِيْمَةُ الْمُتْلَفِ تُعْتَبَرُ يَوْمَ الْإِتْلَافِ او د هلاک سوي [ښکار] قيمت د هلاکولو د ورځې معتبر دی.

**اللغات:** ﴿نقصته﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: کمول. ناقص کول. نقص او نقصان پکښې راوستل. ﴿أتلف﴾ د افعال د باب ماضي ده: تلفول. ضايع کول. هلاکول. **مُتْلَف:** له همدې بابه د مفعول صيغه ده. ﴿مُثْخِن﴾ د افعال د باب فاعل دی: ډېر سخت (سخت زخمي کونکی).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې کله اول کس پر ښکار دومره سخت وار وکړي چې ښکار خپل د امتناع او دفاع قوت د لاسه ورکړي بيا دويم کس پر هغه وار وکړي او هلاک يې کړي. نو په دې صورت کې پر دويم کس د ښکار د قيمت ضمان (تاوان) واجبيږي چې اول کس ته به يې ورکوي. ځکه مخکې ذکر سوه چې په دې صورت کې اول کس د ښکار مالک سو (او پر هغه ذبح اختياري لازم سوه)، خو پر دويم کس د روغ رمټ ښکار قيمت نه دی واجب. بلکې د اول کس تر وار وروسته چې د ښکار څومره قيمت وي. هاغه پر دويم کس واجب دی. او بل دا خبره هم يادلرئ! چې د هغه ورځې قيمت پر واجب دی په کومه ورځ چې ښکار هلاک سوی دی. د ضمان اداء کولو د ورځې قيمت پر واجب نه دی، مثلاً که د ښکار هلاکېدلو په ورځ د هغه قيمت پنځه سوه (۵۰۰) درهمه وي. او د اداء کولو په ورځ شپږ سوه (۶۰۰) وي. نو پر دويم کس (۵۰۰) درهمه واجب دي.

## د ضمان نور تفصيل

قَالَ رضي الله عنه: تَأْوِيْلُهُ إِذَا عُلِمَ أَنَّ الْقَتْلَ حَصَلَ بِالثَّانِيْ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: د دې تأويل دا دی چې کله دا معلومه سي چې قتل په دويمو ويشتلو [دويم واري] سره واقع سوی دی بِأَنْ كَانَ الْأَوَّلُ بِحَالٍ يَجُوْزُ أَنْ يَسْلَمَ الصَّيْدُ مِنْهُ په دې توګه چې اول ويشتل په دې ډول وي چې ښکار له هغه څخه سالم [ژوندی] پاتېدلای سي وَالثَّانِيْ بِحَالٍ لَا يَسْلَمُ الصَّيْدُ مِنْهُ او دويم په دې ډول وي چې ښکار له هغه څخه سالم نه سي پاتېدلای لِيَكُوْنَ الْقَتْلُ كُلُّهُ مُضَافًا إِلَى الثَّانِيْ د دې لپاره چې قتل ټوله دويمو ويشتلو ته منسوب سي

وَقَدْ قَتَلَ حَيَوَانًا مَمْلُوكًا لِلْأَوَّلِ مَنْقُوصًا بِالْجِرَاحَةِ حال دا چي هغه داسي حیوان قتل کړی دی کوم چي د اول کس په ملکیت کي دی او په زخم سره ناقص سوی دی فَلَا يَضْمَنُهُ كَمَلًا نو ځکه دویم کس به د ټوله حیوان نه ضامن کیږي كَمَا إِذَا قَتَلَ عَبْدًا مَرِيضًا لکه په هغه صورت کي کله چي مریض غلام قتل کړي وَإِنْ عَلِمَ أَنَّ الْمَوْتَ حَصَلَ مِنَ الْجِرَاحَتَيْنِ أَوْ لَا يُدْرَى او که دا خبره معلومه سي چي مرګ په دواړو زخمونو [دواړو غشو] سره واقع سوی دی یا معلومه نه سي [چي د کوم یوه دغشي په وار سره مړ سوی دی] قَالَ فِي الزِّيَادَاتِ: يَضْمَنُ الثَّانِيْ مَا نَقَصَتْهُ جِرَاحَتُهُ نو امام محمد رَحِمَهُ الله په زیادات کي ویلي دي: چي دویم کس د هغه حصې ضامن کیږي چي د ده زخم ناقصه کړې وي ثُمَّ يَضْمَنُ نِصْفَ قِيْمَتِهِ مَجْرُوْحًا بِجِرَاحَتَيْنِ بیا د ښکار د هغه حالت د قیمت ضامن کیږي چي هغه په دواړو زخمونو سره زخمي وي ثُمَّ يَضْمَنُ نِصْفَ قِيْمَةِ لَحْمِهِ بیا د هغه د غوښو د نصف قیمت ضامن کیږي.

**اللغات**: ﴿یسلم﴾ د افعال د باب مضارع ده: سالم پاتېدل، خوندي او بچ کېدل. ﴿منقوص﴾ د نصر د باب مفعول دی: کم کړی سوی، ناقص، نقص پکښې راغلی. ﴿کملا﴾ د کرُم د باب مصدر دی: په پوره توګه.

**تشریح**: صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله فرمایي چي مخکي پر دویم کس د ضمان واجبېدلو کوم حکم بیان سوی دی هغه مطلق نه دی، بلکي په هغه کي څه تفصیل دی او تفصیل دا دی چي هلته د ضمان واجبېدلو په هکله درې صورتونه دي:

① ... یو دا چي معلومه سي چي ښکار د دویم غشي په وار سره مړ سوی دی.

② ... یا دا معلومه سي چي ښکار د دواړو په وار سره مړ سوی دی.

③ ... یا دا معلومه نه سي چي د کوم یوه په وار سره مړ سوی دی.

اوس که اول صورت وي یعني دا معلومه سي چي ښکار د دویم کس په وار سره مړ سوی دی. په دې توګه چي د اول کس له وار څخه وروسته د ښکار د ژوندي پاتېدلو امکان وي. نو په دې صورت کي دویم کس د ښکار د قیمت ضامن کیږي. لېکن د روغ رمټ ښکار د قیمت نه ضامن کیږي بلکي د زخمي او ناقص ښکار د قیمت ضامن کیږي؛ ځکه هغه همداسي ښکار هلاک کړی دی. لهذا څرنګه چي د مریض غلام په قتلولو سره د مریض غلام قیمت واجبیږي. همدغه ډول د معیوب او ناقص ښکار په وژلو سره د معیوب قیمت واجبیږي.

او که دویم یا درېیم صورت وي یعني دا معلومه سي چي ښکارو دواړو په وار سره مړ سوی دی. یا د چا په وار سره مړ سوی دی دا معلومه نه سي. نو په دې صورتونو کي له امام محمد رَحِمَهُ الله څخه په زیادات کي نقل سوي دي چي پر دویم کس درې ضمانه واجبیږي: ① ضمان نقصان. یعني د نقصان (ناقص کېدو)

ضمان. ② د نصف قیمت ضمان. ③ د غوښو د قیمت نصف ضمان. اوس تاسي په دې مثال سره په هغه ځان پوه کړئ! چي د روغ رمبه ښکار ټوله قیمت مثلاً شپږ سوه (۶۰۰) درهمه وو. بیا اول کس چي هغه زخمي کړي نو قیمت يې پنځه سوه (۵۰۰) درهمه سو. او کله چي دويم کس هغه زخمي کړی. نو قیمت يې ځلور سوه (۴۰۰) درهمه پاته سو. نو څرنګه چي د دويم کس په وار او زخمي کولو سره د ښکار قیمت سل (۱۰۰) درهمه ناقص او کم سوی دی. نو ځکه د ضمان نقصان په توګه پر هغه (۱۰۰) درهمه واجبیږي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په "یضمن الثانی ما نقصته جراحته" سره همدا خبره بیان کړې ده.

او څرنګه چي د دواړو زخمونو (وارونو) په وجه د ښکار له مجموعي قیمت یعني له شپږ سوه (۶۰۰) درهمو څخه دوه سوه (۲۰۰) درهمه کم سوي دي او د ښکار قیمت ځلور سوه (۴۰۰) درهمو ته رسېدلی دی. نو پر دويم کس د دغه قیمت (یعني د ۴۰۰) نصف دوه سوه (۲۰۰) درهمه هم واجبیږي. همدا خبره صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په "ثم یضمن نصف قیمت مجروحا بجراحتین" سره بیان کړې ده. بیا به کتل کیږي چي تر دې حالتونو وروسته د ښکار د غوښو قیمت څو دی؟ که چیري غوښې مثلاً دوه سوه (۲۰۰) درهمه قیمت لري. نو پر دويم کس د هغه هم نصف یعني سل (۱۰۰) درهمه واجبیږي. چي دا خبره صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په "ثم یضمن نصف قیمة لحمه" سره بیان کړې ده. او موږ ستاسي دآسانۍ لپاره په مثالو سره دا مسئله څرګنده کړه.

### د پورتنۍ مسئلې دلیل

أَمَّا الْأَوَّلُ فَلِأَنَّهُ جَرَحَ حَيَوَانًا مَمْلُوكًا لِلْغَيْرِ کوم چي اول ضمان دی نو ځکه چي دويم کس داسي ښکار زخمي کړی دی کوم چي د بل چا (اول کس) په ملکیت کي دی وَقَدْ نَقَصَهُ او هغه يې ناقص کړی دی [نقص او عیب يې پکښي پیدا کړی دی] فَيَضْمَنُ مَا نَقَصَهُ أَوَّلًا نو ځکه دويم کس به اول د هغه حصې ضمان ورکوي کوم چي ده ناقصه کړې وي وَأَمَّا الثَّانِي فَلِأَنَّ الْمَوْتَ حَصَلَ بِالْجِرَاحَتَيْنِ او کوم چي دويم ضمان دی نو ځکه چي مرګ په دواړو زخمونو سره واقع سوی دی فَيَكُونُ هُوَ مُتْلِفًا نِصْفَهُ وَهُوَ مَمْلُوكٌ لِغَيْرِهِ نو دويم کس به د هغه نیم ښکار هلاکونکی وي حال دا چي هغه د بل چا [اول کس] په ملکیت کي دی فَيَضْمَنُ نِصْفَ قِيمَتِهِ مَجْرُوحًا بِالْجِرَاحَتَيْنِ نو ځکه دويم کس به د ښکار د هغه حالت د قیمت ضامن وي چي هغه په دواړو زخمونو سره زخمي وي لِأَنَّ الْأُولَى مَا كَانَتْ بِصُنْعِهِ ځکه اول زخم د هغه د فعل په وجه نه دی وَالثَّانِيَةُ ضَمِنَهَا مَرَّةً او د دويم زخم هغه یو ار ضامن سوی دی فَلَا يَضْمَنُهَا ثَانِيًا نو ځکه دويم ځل به د هغه نه ضامن کیږي وَأَمَّا الثَّالِثُ او کوم چي دريیم ضمان دی فَلِأَنَّ بِالرَّمْيِ الْأَوَّلِ صَارَ بِحَالٍ يَحِلُّ بِذَكَاةِ الِاخْتِيَارِ لَوْلَا رَمْيُ الثَّانِي نو هغه ځکه چي په اولو ويشتلو سره ښکار په دې دول سو چي هغه په ذبح اختیاري سره حلال ګرځېدی

که چیري د دویم کس ویشتل نه وای فَهٰذَا بِالرَّمْيِ الثَّانِيْ أَفْسَدَ عَلَيْهِ نِصْفَ اللَّحْمِ نو هغه په دویمو ویشتلو سره پر اول کس د غوښو نیمه حصه فاسده کړه فَيَضْمَنُهُ نو ځکه هغه د یوه نصف [نیمايي غوښو] ضامن کیږي وَلَا يَضْمَنُ النِّصْفَ الْآخَرَ او دبل نصف یې نه ضامن کیږي لِأَنَّهُ ضَمِنَهُ مَرَّةً ځکه چي هغه یو وار د دې ضامن سوی دی فَدَخَلَ ضَمَانُ اللَّحْمِ فِيْهِ نو په هغه ضمان کي د غوښو ضمان [هم] داخل سوی دی.

**تشريح:** مخکي چي په دویم او درییم صورت کي پر دویم کس کوم دري ضمانونه واجب کړل سوي دي. دلته د هغه دلیل بیانوي. حاصل یې دا دی چي اول یعني ضمان نقصان ځکه پر واجب دی چي دویم کس د اول کس مملوک ښکار زخمي کړی دی او د هغه قیمت یې ناقص کړی دی. نو ځکه تر ټولو مخکي به هغه ضمان نقصان اداء کوي. او بیا څرنګه چي هغه ښکار د دواړو په وار او زخم سره مړ سوی دی او هغه د اول کس په ملکیت کي دی. نو ځکه پر دویم کس د "مجروح بالجراحتین" ښکار نیم قیمت هم واجب دي او د زخم وغیره هیڅ ضمان پر واجب نه دی؛ ځکه هغه ضمان نقصان اداء کړی دی او په ضمان نقصان کي د زخم تاوان هم داخل دی. نو ځکه جلا ضمان جرح پر هغه واجب نه دی.

او ضمان لحم ځکه پر واجب دی چي د اول کس له وار څخه وروسته هغه ښکار په داسي حالت کي وو چي هغه په ذبح اختیاري سره حلال کېدلای سو (نه په ذبح اضطراري سره)، خو دویم کس هغه د غشي په وار (ذبح اضطراري) سره قتل کړی او د هغه غوښي یې حرامي کړي، لهذا څرنګه چي د ښکار نصف قیمت پر هغه واجب دي، همداسي د هغه د غوښو هم نصف قیمت پر واجب دی. او د پاته نصف قیمت نه پر واجبیږي کنې پر هغه غریب به د ټوله غوښو قیمت واجب سي. حال دا چي د ښکار د نصف قیمت په اداء کولو سره هغه د غوښو هم قیمت اداء کړی دی. نو ځکه اوس پر هغه فقط د یوه نصف (نیمایي غوښو) قیمت واجب دی.

## تر اول غشي وروسته د دویم غشي د ویشتلو حکم

وَإِنْ كَانَ رَمَاهُ الْأَوَّلُ ثَانِيًا او که هغه ښکار همدا اول کس دویم وار ویشتلی وي فَالْجَوَابُ فِيْ حُكْمِ الْإِبَاحَةِ كَالْجَوَابِ فِيْمَا إِذَا كَانَ الرَّامِيْ غَيْرَهُ نو د هغه د روایښت د حکم په هکله جواب د هغه صورت د جواب په څېر دی کله چي ویشتونکی له اول کس څخه بغیر بل څوک وي وَيَصِيْرُ كَمَا إِذَا رَمٰى صَيْدًا عَلٰى قِنَّةِ جَبَلٍ فَأَثْخَنَهُ او داسي ګرځي لکه څوک چي د غره پر څوکه یو ښکار وویلي او هغه سخت زخمي کړي ثُمَّ رَمَاهُ ثَانِيًا فَأَنْزَلَهُ بیا یې دویم وار هم وویلي او هغه را شوه کړي لَا يَحِلُّ نو هغه حلال نه دی لِأَنَّ الثَّانِيْ مُحَرَّمٌ ځکه چي دویم وار ویشتل حرامونکی دی كَذَا هٰذَا نو همداسي دا هم دي [یعني همداسي په مذکوره صورت کي هم دویم وار ویشتل حرامونکي دي].

**اللغات**: ﴿قِمّة جبل﴾ دغره څوکه (دغره سر).

**تشریح**: د عبارت حاصل دا دی چې که په اول غشي سره ښکار دومره زخمي سي چې تر دې وروسته په ذبح اختیاري سره ذبح کېدلای سي، خو بیا هم ښکاري کس ذبح اختیاري پرېږدي او ښکار په بل غشي سره وویلي چې د هغه په وجه ښکار مړ سي، نو داسي ښکار حلال نه دی: ځکه چې د هغه لپاره ذبح اختیاري متعیّنه سه (چې په چاړه وغیره سره به یې ذبح کوي). لېکن هغه د ذبح اختیاري پر ځای ذبح اضطراري (په بل غشي ویشتل) اختیار کړه، نو په دې دویم بې ځایه غشي سره هغه ښکار حرام سو. د دې مثال داسي دی لکه یو ښکار چې د غره پر څوکه ولاړ وي او ښکاري کس هغه وویلي او سخت یې زخمي کړي چې ښکار خپل قوت د لاسه ور کړي (نو باید هغه یې ذبح کړي). خو هغه د ذبح پر ځای بل وار پر وکړي او لاندي یې را ایله کړي او هغه مړ سي، نو دا ښکار هم حلال نه دی: ځکه چې دلته هم تر اول غشي وروسته ذبح اختیاري لازمه سوه، لېکن هغه ذبح اضطراري اختیار کړه. لهذا څرنګه چې په دې صورت کي ښکار حرام دی، نو همداسي به په پورتني صورت کي هم ښکار حرام وي.

## ښکار صرف د مأکول اللحم خارویو سره خاص نه دی

قَالَ: وَيَجُوزُ اِصْطِيَادُ مَا يُؤْكَلُ لَحْمُهُ مِنَ الْحَيَوَانِ وَمَا لَا يُؤْكَلُ فرمایي: او جائز دي ښکار کول د هغه حیوان چې غوښي یې خوړل کیږي او د هغه چې غوښي یې نه خوړل کیږي لِإِطْلَاقِ مَا تَلَوْنَا د هغه آیت د مطلق والي په وجه کوم چې موږ ولوستی وَالصَّيْدُ لَا يَخْتَصُّ بِمَأْكُولِ اللَّحْمِ او ښکار صرف د هغه حیوان سره خاص نه دی چې غوښي یې خوړل کیږي قَالَ قَائِلُهُمْ: او د دوی [شاعرانو] یوه ویونکي ویلي دي:

صَيْدُ الْمُلُوْكِ أَرَانِبُ وَثَعَالِبُ

د باچاهانو ښکار سویان او ګیدړان دي

وَإِذَا رَكِبْتُ فَصَيْدِيَ الْأَبْطَالُ

او کله چې بیا زه سپور سم نو زما ښکار بهادران دي [یعني زه صرف زړور خلک ښکاروم]

وَلِأَنَّ صَيْدَهُ سَبَبٌ لِلِانْتِفَاعِ بِجِلْدِهِ او ځکه چې د هغه [غیر مأکول اللحم حیوان] ښکار د هغه له څرمني څخه د نفع اخیستلو سبب دي أَوْ شَعْرِهِ أَوْ رِيشِهِ یا د هغه له وریښتو یا بڼکو څخه [د نفع اخیستلو

سبب دي. کله چي د هغه وربښته پکار راځي يا چي هغه مارغه وي او بڼي يې پکار راځي] أَوْلِاسْتِدْفَاعِ شَرِّهٖ يا د هغه د شرّ ليري کولو سبب دي وَكُلُّ ذٰلِكَ مَشْرُوْعٌ او دا ټوله په شريعت کي روا دي.

**اللغات:** ﴿أرانب﴾ جمع د أرْنَب ده: سوی (سوی گی). ﴿ثعالب﴾ جمع د ثَعْلَب ده: چغال، گيدړه. ابن انباري رَحِمَهُ الله ويلي دي چي "يقع على الذكر والأنثى". ﴿أبطال﴾ جمع د بَطَلٌ ده: بهادر او زړور (مېړنی)، پر جنګ اقدام کونکی. ﴿رِيش﴾ د مارغانو بڼي، بڼکي. ﴿استدفاع﴾ د استفعال د باب مصدر دی؛ طلب د دفع کول، د يو شي د ليري کولو طلب کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي څرنګه د مأكولُ اللحم ښکارول ښکار جائز دی، همداسي د غير مأكولُ اللحم حيوانانو ښکار هم جائز دی؛ ځکه د قرآن کريم دا آيت ﴿وَإِذَا حَلَلْتُمْ فَاصْطَادُوْا﴾ مطلق دی، يعني په دې کي د مأكول اللحم او غيرِ مأكول اللحم هيڅ قيد او تخصيص نسته. لهذا على الاطلاق به د هر ډول ډول حيوان ښکار جائز وي.

په دې هکله دويم دليل دا دی چي لفظ د "صَيد" هم فقط د مأكول اللحم حيوانانو سره خاص نه دی، بلکي له هغوی څخه بغير پر انسانانو هم د هغه اطلاق کيږي، مثلاً په "وإذا ركبتُ فصيدى الأبطال" کي له أبطال څخه مراد زړور خلک دي او دلته پر هغو د صيد اطلاق سوی دی.

او د غيرِ مأكول اللحم حيوان د ښکار د جائز کېدلو عقلي دليل دا دی چي که څه هم د هغه له غوښو څخه نفع نه اخستيل کيږي او روا نه دي، خو که هغه ښکار کړل سي نو د هغه له څرمني، يا د هغه له وربښتو، بڼکو وغيره څخه نفع اخيستل کيږي يا د هغه شر او حمله دفع کول کيږي او دا ټوله روا دي، نو په دې حواله سره هم د غيرِ مأكول اللحم حيوانانو ښکار جائز او روا دی. فقط والله أعلم وعلمهٔ أتم

❀❀❀

**يادونه:** له کتابُ الرهن څخه بيا تر آخره پوري مورږ عموماً له احسن الهدايه څخه کار اخيستی دی، کوم چي په بعضو ځايو کي د حاشيو نا مطابقه تشريح کړې ده، نو که په يو ځای کي څه تېروتنه محسوسه کړل سي يا په يو ځای کي زيات وضاحت ته ضرورت وي، نو تاسي ضرور صداقت کتب خانې ته د هغه اطلاع ورکړئ! چي په دويم چاپ کي د هغه اصلاح او د هغه نور وضاحت وکړو. (مدني)

# كِتَابُ الرَّهْنِ

## (دا) کتاب د "ګرو" (په بیان کي) دی

**تشريح**: د كتابُ الصيد او كتابُ الرهن تر مينځ مناسبت دا دی چي د دواړو مقصود مال حاصلول دي او دواړه د مال حاصلولو مباح اسباب دي، خو څرنګه چي د رهن په مقابله کي د صَيد منفعت عام او تام دی، نو ځکه كتابُ الصيد يې له كتابُ الرهن څخه مخکي بيان کړی دی.

د رهن لغوي او اصطلاحي معنیٰ خپله صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله په تفصيل سره د شروع په عبارت کي ذکر کړې ده، خو په آسانه وينا به يې موږ هم ذکر کړو، د رَهْن معنیٰ ده په ګرو ورکول، په ګرو اينښول، په ګرو اخيستل، او ځيني وخت رهن د اسم مفعول يعني د مرهون په معنیٰ سره هم راځي چي د هغه معنیٰ ده: په ګرو اينښوول سوی شی، رَاهِن هغه محتاج کس ته وايي کوم چي له يو چا څخه قرض وغيره واخلي او هغه ته خپل يو شی په ګرو کښېږدي، او مُرْتَهِن هغه کس ته وايي کوم چي قرض ورکړي او د هغه په بدله کي يو شی په ګرو ځني واخلي، مثلاً زيد له خالد څخه قرض وغواړي او د قرض په بدله کي يو شی يا يو سامان خالد ته په ګرو (په رهن) کښېږدي، نو زيد ته رَاهِن وايي او خالد ته مُرتَهِن وايي او کوم شی او سامان چي په ګرو اينښول سوی دی هغه ته مَرْهُوْن وايي.

### د رهن لغوي او اصطلاحي معنی او شرعي حيثيت

اَلرَّهْنُ لُغَةً حَبْسُ الشَّيْءِ بِأَيِّ سَبَبٍ كَانَ رهن د لغت په اعتبار سره د شي راګرځول دي هغه که په هر سبب سره وي وَفِي الشَّرِيْعَةِ: جَعْلُ الشَّيْءِ مَحْبُوْسًا بِحَقٍّ يُمْكِنُ اِسْتِيْفَاؤُهُ مِنَ الرَّهْنِ او په شريعت کي: رهن يو شی د [خپل] داسي حق په سبب راګرځول دي چي د هغه ترلاسه کول له رهن [مرهون شي] څخه ممکن وي كَالدُّيُوْنِ لکه قرضونه [يعني د خپل قرض په سبب يو شی اخيستل او د ځان سره راګرځول چي بيا له هغه څخه د قرض ترلاسه کول ممکن وي] وَهُوَ مَشْرُوْعٌ او رهن په شريعت کي روا فعل دی لِقَوْلِهِ تَعَالىٰ: ﴿فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾ [البقرة: ۲۸۳] ځکه الله تعالیٰ فرمايلي دي: "فَرِهَانٌ مَّقْبُوْضَةٌ"

وَلِمَا رُوِيَ أَنَّهُ عَلَيْهِ السَّلَامُ اِشْتَرَىٰ [1] مِنْ يَهُودِيٍّ طَعَامًا وَرَهَنَهُ بِهِ دِرْعَهُ او ځکه روايت سوی دی چي نبي ﷺ له يوه يهودي څخه غله رانيوله او د هغه په بدله کي يې خپله زغره يهودي ته په رهن [په ګرو] کښېښوووله وَقَدِ انْعَقَدَ عَلىٰ ذٰلِكَ الْإِجْمَاعُ او د رهن پر جواز اجماع [هم] منعقد سوې ده وَلِأَنَّهُ عَقْدُ وَثِيْقَةٍ لِجَانِبِ الِاسْتِيْفَاءِ او ځکه چي رهن [د خپل حق] د ترلاسه کولو د اړخ مضبوطولو لپاره يو عقد دی فَيُعْتَبَرُ بِالْوَثِيْقَةِ فِيْ طَرَفِ الْوُجُوْبِ نو ابه د وجوب د اړخ پر مضبوطتيا قياسول کيږي وَهِيَ الْكَفَالَةُ او هغه کفاله ده.

**اللغات:** ﴿حبس﴾ د ضرب د باب مصدر دی: بندول، منع کول، راګرځول. ﴿مشروع﴾ په شريعت کي روا. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ترلاسه کول، اخيستل. ﴿طعام﴾ د دې لفظ له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: غله، يعني غنم، اوربشي او داسي نور. ﴿دِرْع﴾ زغره. ﴿وثيقة﴾ مضبوطتيا (مضبوطوالی). هغه شی چي د هغه په ذريعه معامله مضبوطه کړل سي. سند او دستاويز. (او رهن هم داسي دی، يعني يو سړی چي بل سړي ته قرض ورکړي او له هغه څخه يو شی په رهن کي واخلي نو په دې سره د هغه [مرتهن] لپاره خپل ثمن او قرض اخيستل يقيني او مضبوط وګرځي. همدارنګه په دې سره پر مقروض [راهن] د قرض ورکول مضبوط او لازم سي او قرض ورکونکي [مرتهن] ته اطمينان او اعتماد حاصل سي).

**تشريح:** په دې عبارت کي صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د رهن لغوي او شرعي معنیٰ ښوولې ده او بيا يې په شرعي دلائلو سره رهن ثابت کړی دی.

نو فرمايي چي د رهن لغوي معنیٰ ده: "حَبْسُ الشَّيْءِ" يو شی بندول، د ځان سره راګرځول. هغه که په هر سبب سره وي، په قرآن کريم کي دي: ﴿كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِيْنَةٌ﴾ يعني هر نفس به د خپل کړو ګناهونو په سبب محبوس وي.

او د شريعت په اصطلاح کي د رهن معنیٰ ده: "جَعْلُ الشَّيْءِ مَحْبُوْسًا بِحَقٍّ يُمْكِنُ اِسْتِيْفَاؤُهُ مِنَ الرَّهْنِ" د خپل يو حق يعني د قرض وغيره په سبب يو شی راګرځول د دې لپاره چي د ضرورت په وخت کي د هغه په ذريعه د خپل حق ترلاسه کول ممکن او آسانه وي.

---

تخريج: أخرجه البخاري في كتاب الاستقراض، باب من اشترى بالدين، حديث رقم: ۲۳۸۵.

وهو مشروع إلخ: فرمايي چي رهن يو مباح او روا عقد دی چي په کتاب الله، حديث، اجماع او قياس ټولو سره د هغه جواز ثابت دی.

①... **کتاب الله**: ﴿وَإِنْ كُنتُمْ عَلَىٰ سَفَرٍ وَلَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾. يعني که تاسي په سفر کي ياست او د قرض اخيستلو نوبت راسي حال دا چي د قرض د خط ليکلو لپاره هيڅ کاتب پيدا نه سي، نو بيا دي قرض اخيستونکی کس يو شی په رهن (په ګرو) ورته کښېږدي او قرض ورکونکی دي پر هغه قبضه وکړي، او څرنګه چي په سفر کي عموماً داسي حالت پېښيږي (خصوصاً په مخکيني دور کي) او د حَضَر په وخت کي کاتب او ګواه په آساني سره پيدا کيږي، نو ځکه د "عَلَىٰ سَفَرٍ" او "لَمْ تَجِدُوا كَاتِبًا" قيد لګول سوی دی او صرف په سفر کي د رهن حکم سوی دی، کنې نور د سفر او حضر دواړو رهن جائز دی يعني که څه هم سړی په سفر کي نه وي او کاتب هم موجود وي، نو هم رهن جائز دی (لکه څرنګه چي په حديث کي ذکر دي).

②... **حديث**: د بخاري او مسلم روايت دی چي نبي ﷺ له يوه يهودي څخه غله رانيوله او د ثمن په بدله کي يې خپله زغره هغه ته په رهن (په ګرو) کښېښووله، نو له دې حديث څخه معلومه سوه چي رهن جائز دی.

③... **اجماع**: او په اجماع سره د رهن ثبوت په دې توګه دی چي ټوله اُمت د هغه پر جواز متفق دی.

④... **قياس**: او په قياس سره د هغه ثبوت په دې توګه دی چي څرنګه د کفالت په وجه د خپل حق په ترلاسه کولو کي مضبوطي راځي، مثلاً که خالد زيد ته قرض ورکړي او عُمر د زيد له طرفه کفيل سي چي که هغه تا ته قرض نه درکړي نو زه يې درکوم، نو د دې کفالت په وجه د خپل حق په ترلاسه کولو کي يقين او مضبوطي راځي (يعني د کفيل په ذريعه خالد خپل حق بېله څه خنډ او ستونزي څخه ترلاسه کولای سي)، نو همداسي د رهن په وجه هم د خپل حق (قرض) ترلاسه کولو اړخ مضبوطيږي، او څرنګه چي کفاله په شريعت کي جائز او روا ده، نو پر هغه په قياس کولو سره به رهن هم جائز وي.

خلاصه د کلام دا چي په کتاب الله، سنت رسول، اجماع او قياس ټولو سره د عقد رهن جواز ثابت دی.

## رهن په ايجاب وقبول سره منعقد کيږي او په قبضه سره پوره کيږي (په دې هکله تفصيل او اختلاف)

قَالَ: الرَّهْنُ يَنْعَقِدُ بِالْإِيجَابِ وَالْقَبُولِ فرمايي: رهن په ايجاب او قبول سره منعقد کيږي وَيَتِمُّ بِالْقَبْضِ او په قبضه سره پوره کيږي قَالُوا: اَلرُّكْنُ الْإِيجَابُ بِمُجَرَّدِهِ مشايخو فرمايلي دي: چي د رهن رکن يوازي ايجاب دی لِأَنَّهُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ ځکه چي رهن د تبرّع عقد دی فَيَتِمُّ بِالْمُتَبَرِّعِ نو ځکه

هغه به [یوازي] په متبرع سره پوره کیږي كَالْهِبَةِ وَالصَّدَقَةِ لکه هبه او صدقه وَالْقَبْضُ شَرْطُ اللُّزُومِ او قبضه د لزوم شرط ده [یعني رهن هغه وخت لازمیږي کله چې قبضه وسي] عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى چې دا به موږ ان شاء الله بیان کړو وَقَالَ مَالِكٌ: يَلْزَمُ بِنَفْسِ الْعَقْدِ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي: چې رهن په نفسِ عقد سره لازمیږي لِأَنَّهُ يَخْتَصُّ بِالْمَالِ مِنَ الْجَانِبَيْنِ ځکه چې هغه له دواړو طرفونو څخه په مال سره مختص دی فَصَارَ كَالْبَيْعِ نو داسي سو لکه بیع وَلِأَنَّهُ عَقْدُ وَثِيقَةٍ او ځکه چې رهن د مضبوطتیا عقد دی فَأَشْبَهَ الْكَفَالَةَ نو د کفالې سره مشابه سو وَلَنَا مَا تَلَوْنَا او زموږ دلیل هغه آیت دی کوم چې موږ ولوستی [یعني "فَرِهَانٌ مَقْبُوضَةٌ"] وَالْمَصْدَرُ الْمَقْرُونُ بِحَرْفِ الْفَاءِ فِي مَحَلِّ الْجَزَاءِ يُرَادُ بِهِ الْأَمْرُ او هغه مصدر چې د فاء حرف ور سره متصل وي د جزاء په محل کي له هغه څخه امر مرادیږي وَلِأَنَّهُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ او ځکه چې رهن د تبرع عقد دی لِمَا أَنَّ الرَّاهِنَ لَا يَسْتَوْجِبُ بِمُقَابَلَتِهِ عَلَى الْمُرْتَهِنِ شَيْئًا ځکه راهن د رهن په مقابله کي پر مرتهن د هیڅ شي نه مستحق کیږي وَلِهَذَا لَا يُجْبَرُ عَلَيْهِ په همدې وجه پر راهن جبر نه کیږي فَلَا بُدَّ مِنْ إِمْضَائِهِ نو ځکه د رهن نافذول ضروري دي كَمَا فِي الْوَصِيَّةِ لکه څرنګه چې په وصیت کي دي وَذَلِكَ بِالْقَبْضِ او نافذول د قبضې په ذریعه کیږي ثُمَّ يُكْتَفَى فِيهِ بِالتَّخْلِيَةِ فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ بیا د ظاهر روایت مطابق [د رهن] په قبضه کي به صرف پر تخلیه [ورسپارلو] اکتفاء کیږي لِأَنَّهُ قَبْضٌ بِحُكْمِ عَقْدٍ مَشْرُوعٍ ځکه چې دا [درهن قبضه] د داسي عقد په حکم سره ده کوم چې مشروع دی فَأَشْبَهَ قَبْضَ الْمَبِيعِ نو د مبیع د قبضې سره مشابه سوه.

**اللغات:** ﴿مُجرّد﴾ یوازي، خالي، صرف. ﴿تبرّع﴾ تفعّل د باب مصدر دی: احسان کول، بلا عوضه (مفت) شی ورکول، داسي کار کول کوم چې د انسان پر ذمه واجب نه وي لکه وصیت، هبه او داسي نور. ﴿متبرّع﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: تبرّع کونکی. ﴿إمضاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: جاري کول، نافذول، باقي پرېښوول. ﴿التخلية﴾ د تفعیل د باب مصدر دی، د دې باب څو معناوي دي چې د صلې په بدلون سره یې معنیٰ هم بدلیږي. یوه معنیٰ یې ده: دوه شیان یا دوه کسان په خپل مینځ کي

سره پرېښوول او داسي نور. او کله چي د مبيع او داسي نورو سره ذکر سي. نو معنى يې ده: ورسپارل. حواله کول. يعني له شي څخه خپله قبضه ختمول او بل چا ته سپارل.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دى چي څرنګه نور عقدونه په ايجاب و قبول سره منعقد کيږي. همداسي رهن هم په ايجاب و قبول سره منعقد کيږي او په قبضه سره تاميږي (يعني کله چي مرتهن پر مرهون شي قبضه وکړي نو رهن پوره کيږي). همدا د جمهورو احنافو مسلک دى. په دې هکله شيخ الاسلام خواهر زاده رَحِمَهُ الله فرمايي چي محض ايجاب رکن دى بس، او قبول رکن نه دى بلکي شرط دى. خو زياته صحيح دا ده چي دواړه رکن دي.

امام خواهرزاده رَحِمَهُ الله په دليل کي فرمايي چي رهن عقدِ تبرع دى او کوم څه چي عقدِ تبرّع وي هغه فقط د متبرّع په کلام (ايجاب) سره پوره کيږي (يعني د پوره کېدو لپاره يې قبول ته ضرورت نه وي) لکه هبه او صدقه چي د تبرّع عقدونه دي کوم چي فقط د متبرع په کلام (ايجاب) سره پوره کيږي. او قبضه رکن نه دى، بلکي قبضه د عقدِ رهن د لزوم او وجوب لپاره شرط ده.

وقال مالك إلخ: د امام مالک رَحِمَهُ الله مذهب دا دى چي رهن محض په ايجاب و قبول سره لازميږي او قبضه په هغه کي شرط نه ده. او رهن داسي دى لکه بيع، چي په بيع کي ثمن او مبيع دواړه مالونه دي. همدغسي په رهن کي قرض او مرهون شي دواړه مالونه دي، او د بيع د لزوم لپاره قبضه شرط نه ده. نو د رهن د لزوم لپاره به هم قبضه شرط نه وي، او بل دا چي رهن د کفالې سره مشابه دى چي دواړه د مضبوطتيا عقدونه دي (يعني دغه دواړه عقدونه د دې لپاره کيږي چي د دوى په ذريعه د خپل حق ترلاسه کولو اړخ مضبوط سي). او په کفاله کي قبضه شرط نه ده بلکي هغه په قبلولو (قبول) سره لازميږي. نو همداسي به د رهن د لزوم لپاره هم قبضه شرط نه وي.

ولنا إلخ: زموږ په نېز له قبضې څخه بغير رهن نه تاميږي يعني د رهن د پوره کېدو لپاره قبضه شرط ده. په همدې هکله زموږ اول دليل د قرآن کريم دا آيت دى ﴿فَرِهَانٌ مَّقْبُوضَةٌ﴾. دلته رهن د مقبوض کېدلو (قبضه کولو) په صفت سره متصف دى. او کله چي نکره په يو وصف سره متصف ذکر سي. نو هغه عامه وي لکه په "أَلَا رَجُلًا كُوفِيًا" وغيره کي، نو له دې څخه دا خبره ثابته سوه چي هر رهن به په دغه وصف سره مشروع وي.

دويم دليل دا دى چي رِهَان مصدر دى او پر هغه فاء داخله ده او رِهَان دلته د جزاء په محل کي واقع دى. او کله چي ځاى داسي وي (يعني پر مصدر فاء داخله وي او هغه جزاء وي). نو هلته مصدر د امر په

معنیٰ سره وي. لکه د قرآن کريم په دې آيت "فَضَرۡبَ الرِّقَابِ" او "فَتَحۡرِيۡرُ رَقَبَةٍ مُّؤۡمِنَةٍ" کې. نو دلته مصدر د امر په معنیٰ سره دی او د آيت معنیٰ ده: چې تاسي د رهن معامله کوئ! په داسي حال کې چې پر هغه قبضه کوئ!.

او د قبضې د شرط کېدلو دليل دا هم دی چې رهن د تبرّع عقد دی: ځکه راهن په رهن باندي نه مجبوره کيږي او دا جائز نه دي. او بل دا چې راهن ته د رهن په بدله کي له مرتهن څخه هيڅ شی نه حاصليږي. لهذا د رهن نافذول ضروري دي. د دې لپاره چې د مرتهن استحقاق ثابت سي يعني د مرتهن د خپل حق ترلاسه کېدلو د مضبوطتيا لپاره د رهن نافذول ضروري دي. لکه څرنګه چې وصيت يو تبرّع ده او د موصیٰ لهٗ د حق ترلاسه کېدلو لپاره د هغه نافذول ضروري دي. او رهن د قبضې په ذريعه نافذيږي يعني کله چې مرتهن پر مرهون شي قبضه وکړي نو بيا هغه نافذيږي. نو ځکه په دې حواله سره هم د رهن د لزوم او پوره کېدلو لپاره قبضه شرط ده.

ثم يكتفى إلخ: د دې حاصل دا دی چې قبضه پر دوه قسمه ده: تحقيقي او حکمي. تحقيقي قبضه دا ده چې سړی شی واخلي او د خپل ځان سره يې يووسي او خوندي يې کړي. او حکمي قبضه دا ده چې سړی او شی سره پرېښوول سي چې هر وخت قبضه پر کوي يا په بله وينا دا چې محض شی ور وسپارل سي چې دې تخليه وايي. يعني راهن کس مرهون شی او مرتهن سره پريږدي يعني هغه ته يې وسپاري نور که مرتهن هر وخت پر هغه قبضه کوي او د قبضه کولو په هکله پر هغه هيڅ پابندي نه وي. نو دلته کومه قبضه شرط ده؟ فرمايي چې په ظاهر روايت کي حکمي قبضه يعني فقط تخليه کافي ده. لکه بائع چې هر کله مشتري ته مبيع وسپاري نو قبضه راغله. همداسي دلته هم دي: ځکه چې قبضه په رهن او بيع دواړو کي د مشروع عقد حکم دی. نو په دواړو کي به تخليه کافي وي. نو څرنګه چې د مبيع قبضه په تخليه سره تاميږي. همداسي به د مرهون شي قبضه هم په تخليه سره تاميږي.

## د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله رايه

وَعَنۡ أَبِيۡ يُوۡسُفَ أَنَّهٗ لَا يَثۡبُتُ فِي الۡمَنۡقُوۡلِ إِلَّا بِالنَّقۡلِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چې په منقول شي کي قبضه نه ثابتيږي مګر په منتقل کولو سره [يعني که چيري مرهون شی له منقولي شيانو څخه وي نو قبضه هغه وخت پوره کيږي کله چې هغه د ځان سره يووسي او خپل ځای ته يې منتقل کړي] لِأَنَّهٗ قَبۡضٌ مُوۡجِبٌ لِلضَّمَانِ ابۡتِدَاءً بِمَنۡزِلَةِ الۡغَصۡبِ ځکه چې [د رهن قبضه] داسي قبضه ده کوم چې ابتداءً د ضمان واجبونکې ده بِخِلَافِ الشِّرَاءِ په خلاف د رانيولو لِأَنَّهٗ نَاقِلٌ لِلضَّمَانِ مِنَ الۡبَائِعِ إِلَى الۡمُشۡتَرِيۡ

ځکه چي هغه له بائع څخه مشتري ته ضمان منتقل کوي وَلَيْسَ بِمُوْجِبِ ابْتِدَاءً او ابتداءً
واجبونکی نه دي وَالْأَوَّلُ أَصَحُّ او اول قول زيات صحيح دی.

**اللغات**: ﴿موجب﴾ دافعال د باب فاعل دی: واجبونکی، ثابتونکی.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي د ظاهر روايت مطابق صرف حکمي قبضي (تخليه) کافي ده. خول
امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه نقل سوي دي چي په منقولي شيانو کي حقيقي قبضه ضروري ده
ځکه چي په رهن کي قبضه ابتداءً ضمان واجبوي. لکه په غصب کي چي ابتداءً ضمان واجبيږي. نو
څرنګه چي په غصب کي د ضمان ثابتېدلو لپاره نقل ضروري دی، همداسي په رهن کي هم نقل
ضروري دی او تخليه کافي نه ده.

او پاته سوه د شراء مسئله، نو هلته ابتداءً ضمان نه واجبيږي، بلکي بعد الشراء او قبل القبض هغه
د بائع په ضمان کي دي او بعد القبض د مشتري په ضمان کي داخليږي. نو رهن پر شراء قياسول قياس مع
الفارق دی، مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي ظاهر روايت زيات صحيح دی چي په تخليه سره قبضه ثابتيږي.

## له قبضي څخه بغير رهن نه لازميږي

قَالَ: وَإِذَا قَبَضَهُ الْمُرْتَهِنُ مَحُوْزًا مُفَرَّغًا مُتَمَيِّزًا فرمايي: او کله چي مرتهن پر مرهون شي قبضه
قبضه وکړي په داسي حال کي چي هغه تقسيم سوی، فارغ سوی [خالي] او جلا [غير متصل] وي
تَمَّ الْعَقْدُ فِيْهِ نو په هغه [مرهون شي] کي عقد رهن پوره کيږي [لازميږي] لِوُجُوْدِ الْقَبْضِ بِكَمَالِهِ ځکه
چي په کامله توګه قبضه موجوده سوه فَلَزِمَ الْعَقْدُ نو ځکه عقد به لازميږي وَمَا لَمْ يَقْبِضْهُ او تر
څو چي مرتهن پر مرهون شي قبضه نه وکړي فَالرَّاهِنُ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ سَلَّمَهُ وَإِنْ شَاءَ رَجَعَ عَنِ الرَّهْنِ
نو راهن ته اختيار دی که وغواړي نو هغه [مرهون] دي ور وسپاري او که وغواړي نو له رهن څخه دي
رجوع وکړي لِمَا ذَكَرْنَا أَنَّ اللُّزُوْمَ بِالْقَبْضِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی چي [د رهن]
لازمېدل په قبضه سره کيږي إِذِ الْمَقْصُوْدُ لَا يَحْصُلُ قَبْلَهُ ځکه چي تر قبضي مخکي مقصود نه حاصليږي.

**اللغات**: ﴿مَحُوْزًا﴾ د نصر د باب مفعول دی، مراد: تقسيم کړی سوی، را جلا سوی، د مشاع ضد
دی ﴿مفرغ﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: فارغ کړی سوی. هغه کوم چي په بل څه مشغول نه وي
(يعني د راهن له ملکيت څخه فارغ وي)، ﴿متميز﴾ د تفعل د باب فاعل دی: جلا، هغه کوم چي د بل څه
سره متصل نه وي.

**تشریح : صورت د مسئلې :** دا دی چې کله مرتهن پر مرهون شي قبضه وکړي او مرهون شي تقسيم شده وي يعني د هيڅ شرکت پکښې نه وي او مفرغ وي مثلاً مرهون شی کور وي او په هغه کې د راهن هيڅ سامان نه وي او متميز هم وي يعني له شروع څخه د هغه سره يو شی متصل نه وي مثلاً هغه داسې درخته وي چې مېوه کوي (چې د هغې سره مېوه متصله ده)، لنډه دا چې کله دا درې سره شرطونه موجود سي، نو رهن کامل او مکمل ګرځي او د قبضې پوره کېدلو په وجه عقد رهن لازمېږي. خو تر څو چې مرتهن پر مرهون شي قبضه نه وکړي، تر هغه وخته راهن ته اختيار دی که وغواړي، نو له رهن څخه رجوع کولای سي او که خوښه يې وي نو رهن دې نافذ کړي او شی دې هغه ته وسپاري؛ ځکه مخکې ذکر سوه چې عقد رهن په قبضه سره لازمېږي او د رهن مقصود په قبضه سره حاصلېږي. نو ځکه تر قبضې مخکې له رهن څخه د رجوع کولو اختيار سته.

## د رهن ضايع کېدلو حکم او د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف

قَالَ: وَإِذَا سَلَّمَهُ إِلَيْهِ فَقَبَضَهُ فرمايي: او کله چې راهن مرهون شی مرتهن ته وسپاري دَخَلَ فِي ضَمَانِهِ نو هغه د مرتهن په ضمان کې داخلېږي وَقَالَ الشَّافِعِيُّ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي هُوَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ وَلَا يَسْقُطُ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ بِهَلَاكِهِ چې مرهون شی د مرتهن په قبضه کې امانت دی او د هغه په هلاکېدلو [ضايع کېدلو] سره له قرض څخه هيڅ هم نه ساقطېږي لِقَوْلِهِ عَلَيْهِ السَّلَامُ[1] : «لَا يُغْلَقُ الرَّهْنُ د نبي ﷺ د دې فرمان په وجه چې: رهن [مرهون شی] نه مُستَحَق کيږي قَالَهَا ثَلَاثَةً دا يې درې ځله وفرمايل لِصَاحِبِهِ غُنْمُهُ وَعَلَيْهِ غُرْمُهُ» [او ويې وفرمايل] د هغه [مرهون شي] منفعت د رهن والا لپاره دی او پر هاغه يې تاوان [هم] دی قَالَ: وَمَعْنَاهُ لَا يَصِيرُ مَضْمُونًا بِالدَّيْنِ فرمايي: د دې مطلب دا دی چې رهن د قرض په وجه مضمون [ضمان والا] نه ګرځي وَلِأَنَّ الرَّهْنَ وَثِيقَةٌ بِالدَّيْنِ او ځکه چې رهن د قرض مضبوطي ده فَبِهَلَاكِهِ لَا يَسْقُطُ الدَّيْنُ نو ځکه قرض به د رهن [مرهون شي] په هلاکېدلو سره نه ساقطېږي اِعْتِبَارًا بِهَلَاكِ الصَّكِّ د ثبوتي خط [دستاويز] پر هلاکېدو په قياس کولو سره وَهٰذَا لِأَنَّ بَعْدَ الْوَثِيقَةِ يَزْدَادُ مَعْنَى الصِّيَانَةِ او دا ځکه چې له مضبوطۍ څخه وروسته د حفاظت [خوندي کېدو] معنیٰ زياتيږي وَالسُّقُوطُ بِالْهَلَاكِ يُضَادُّ مَا اقْتَضَاهُ الْعَقْدُ او د هلاکېدو په وجه د قرض

---

[1] تخريج: أخرجه دار قطني في سننه في كتاب البيوع ... [illegible]

ساقطېدل د عقد د مقتضا منافي دي إِذِ الْحَقُّ بِهِ يَصِيرُ بِعَرَضِ الْهَلَاكِ ځکه حق [قرض] د ساقطېدلو په وجه د هلاکېدلو په ځای کي ګرځي [پر هلاکت پېشول کیږي] وَهُوَ ضِدُّ الصِّيَانَةِ او دا د حفاظت ضد دي.

**اللغات**: ﴿لا يغلق﴾ د سمع د باب نفي صيغه ده. د دې باب په صله کي چي رهن ذکر سي نو معنیٰ یې ده: د رهن (مرهون) مستحق کېدل، مالک کېدل. یعني چي مرتهن د هغه مستحق او مالک سي او راهن یې پرېږدي، د دې صورت دا وو چي قرض اخیستونکی یو شی په رهن (په ګرو) ورته کښېږدي او ووایي چي که ما ستا قرض اداء نه کړی نو د هغه په بدله کي دا شی ستا دی. نو نبي ﷺ له دې څخه منع وکړه چي "لا یغلق الرهن" یعني د قرض خاوند (مرتهن) د خپل قرض په وجه د هغه نه مالک کیږي بلکي هغه د رهن والا (راهن) دی (مصباح المنیر). ﴿غُنْم﴾ غنیمت، نفع، فایده. ﴿غُرْم﴾ تاوان، ذمه واري. ﴿وثیقة﴾ مضبوطي (مضبوطتیا)، هغه څه چي بل څه په مضبوط کړی سي. ﴿الصك﴾ (د صاد په فتحه سره): د دې لفظ دوې معناوي دي: ① د مال اقرارنامه چي هغه ته عموماً چک ویل کیږي، د مال رسید. ② ثبوتي خط یعني هغه خط کوم چي د یو معاملې د ثبوت لپاره لیکل سوی وي چي هغه ته دستاویز (لاسوند) وایي.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی چي کله مرتهن پر مرهون شي قبضه وکړي نو هغه شی د ده په ضمان کي داخلیږي یعني زموږ په نیز پر مرهون شي چي د مرتهن کومه قبضه ده هغه د ضمان قبضه ده مطلب دا چي که مرهون شی هلاک سي نو د مرتهن قرض د هغه په تاوان کي ساقطیږي. د دې په خلاف امام شافعي رَحِمَهُ الله د مرتهن قبضه د امانت قبضه شمېري، نو د هغه په نیز د مرهون شي د هلاکېدلو په وجه د مرتهن له قرض څخه یوه روپۍ هم نه ساقطیږي؛ او په دې هکله هغه په دې حدیث سره دلیل نیسي چي "لا یغلق الرهن، لصاحبه غنمه وعلیه غرمه" یعني رهن (د مرتهن) نه مستحق کیږي، د رهن منفعت هم د راهن دی او تاوان یې هم پر هغه دی، امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمایي چي په دې حدیث کي صراحتاً په "وعلیه غرمه" سره د رهن او مرهون نقصان او تاوان په راهن باندي لازم سوی دی، نو ښکاره ده چي د مرهون شي د هلاکېدلو په صورت کي د قرض ساقطېدل د دې حدیث په خلاف دي کوم چي صحیح نه دي.

په دې هکله عقلي دلیل دا دی چي رهن د قرض د مضبوطتیا سبب او ذریعه ده (چي وضاحت یې مخکي وسو)، او هر هغه شی کوم چي د قرض د مضبوطتیا ذریعه وي، د هغه په هلاکېدلو سره قرض نه

ساقطیږي، لکه د قرض په هکله لیکل سوی خط (دستاویز) هم د قرض د مضبوطتیا ذریعه وي، لېکن دهغه په هلاکېدلو سره قرض نه ساقطیږي. نو همداسي په صورتِ مسئله کي به هم د مرهون شي په هلاکېدلو سره قرض نه ساقطیږي.

په دې هکله دویم دلیل دا دی چي د عقدِ رهن په ذریعه د قرض په ادا کېدلو کي مضبوطي پیدا کیږي او په دې سره د قرض د حفاظت مقصد ته تقویه حاصلیږي، اوس که د مرهون شي د هلاکېدلو پر بناء قرض ساقط کړل سي، نو ښکاره ده چي دا به د رهن د مقتضا او منشاء خلاف وي او د قرض ساقطېدلو په صورت کي د مرتهن حق هلاکیږي او ضایع کیږي، نو په دې حواله سره هم پکار دا ده چي د مرهون شي په هلاکېدلو سره د مرتهن قرض ساقط نه سي. (احسن الهدایه)

## د احنافو دلائل او د امام شافعي رَحِمَهُ الله جواب

وَلَنَاقَوْلُهُ ﷺ لِلْمُرْتَهِنِ بَعْدَ مَانَفَقَ فَرَسُ الرَّهْنِ عِنْدَهُ او زموږ دلیل د نبي ﷺ دا فرمان دی مرتهن ته وروسته تر هغه چي د رهن آس د هغه سره هلاک سو [یعني زموږ دلیل دا دی چي دیو مرتهن کس سره مرهون آس هلاک او ضایع سو نو نبي ﷺ ورته وفرمایل] «ذَهَبَ حَقُّكَ» [1] چي ستا حق ختم سو

وَقَوْلُهُ ﷺ [2] : «إِذَا عَمِيَ الرَّهْنُ فَهُوَ بِمَا فِيْهِ» او د نبي ﷺ دا فرمان دی: کله چي رهن پټ [مشتبه] سي نو دا رهن به د هغه څه مقابل وي د کوم څه په بدله کي چي وو مَعْنَاهُ عَلَى مَا قَالُوا د دې معنیٰ دا ده لکه څرنګه چي مشایخو ویلي دي إِذَا اشْتَبَهَتْ قِيمَةُ الرَّهْنِ بَعْدَ مَا هَلَكَ چي کله د رهن قیمت مشتبه سي وروسته تر دې چي هغهٔ هلاک سي [یعني د مشایخو د وینا مطابق د "عمی الرهن" معنیٰ ده چي کله د رهن تر هلاکېدلو وروسته د هغه قیمت مشتبه سي] وَإِجْمَاعُ الصَّحَابَةِ وَالتَّابِعِينَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ عَلَى أَنَّ الرَّاهِنَ مَضْمُونٌ او د صحابه وو او تابعینو (رض) پر دې اجماع ده چي رهن مضمون کیږي [یعني د مرهون شي ضمان لازمیږي] مَعَ اخْتِلَافِهِمْ فِي كَيْفِيَّتِهِ سره د دوی له اختلافه د ضمان په کیفیت کي فَالْقَوْلُ بِالْأَمَانَةِ خَرْقٌ لَهُ نو د امانت وینا کول د اجماع مخالفت کول دي وَالْمُرَادُ بِقَوْلِهِ عَلَيْهِ ﷺ : «لَا يُغْلَقُ الرَّهْنُ» عَلَى مَا قَالُوا الِاحْتِبَاسُ الْكُلِّيُّ او د نبي کریم ﷺ په دې فرمان "لایغلق الرهن" سره

---

[1] تخریج: أخرجه ابن أبي شيبة في مصنفه في كتاب البيوع، باب في الرجل يرهن الرهن، حديث رقم:۲۳۲۳۳.

[2] تخریج: أخرجه دار قطني في سننه في كتاب البيوع، حديث رقم:۲۸۹۵.

مراد په پوره توګه بندېدل [راګرځېدل] دي لکه څرنګه چي مشايخو ويلي دي [يعني رهن (مرهون) په کامله توګه د مرتهن په ملکيت کي نه راګرځي (نه بنديږي)] بِأَنْ يَصِيرَ مَمْلُوكًا لَهُ په دې توګه چي رهن [مرهون] د مرتهن په ملکيت کي داخل وګرځي [دلته په ځيني نسخو کي تر "بأن يصير" مخکي د "والتمکن" لفظ هم سته خو شارحينو نه دی ذکر کړی والله أعلم] كَذَا ذَكَرَ الْكَرْخِيُّ عَنِ السَّلَفِ همداسي امام کرخي رَحِمَهُ الله له سلفو څخه ذکر کړي دي.

**اللغات**: ﴿نفق﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده. نَفَقَ يَنْفُقُ نُفُوْقًا: مړه کېدل. روح وتل. هلاکېدل. ﴿عمي﴾ د سمع د باب ماضي ده. د دې باب خپله معنیٰ ده: ړندېدل. لېکن کله چي د دې په صله يو کار، رهن وغيره ذکر سي. نو معنیٰ يې ده: مخفي کېدل، پټېدل. نا څرګندېدل. ﴿اشتبه﴾ د افتعال د باب ماضي ده: مشتبه کېدل. ﴿خرق﴾ د ضرب د باب مصدر دی: څيرل. توتې کول. مراد: مخالفت کول. (احسن الهدايه). ﴿احتباس﴾ د افتعال د باب مصدر دی: بندېدل. منع کېدل. راګرځېدل.

**تشريح**: د رهن د مضمون کېدلو (ضمان لازمېدلو) په هکله صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د احنافو له طرفه درې دليلونه پېش کړي دي:

①... په حديث کي دي چي يو سړي ته په رهن کي آس ورکول سوی وو. بيا هغه (مرهون آس) هلاک سو. نو نبي ﷺ ورته وفرمايل: "ذَهَبَ حَقُّكَ" ستا حق ختم سو. يعني کله چي تا مرهون شی هلاک کړی، نو د هغه په عوض کي چي ستا کوم قرض وو، هغه هم ختم او ساقط سو. په دې سره دا خبره څرګنده سوه چي رهن مضمون بالدين کيږي (يعني د مرهون شي د هلاکېدلو په وجه د هغه په ضمان [تاوان] کي قرض ساقطيږي).

②... دويم دليل دا حديث دی "إذا عمي الرهن فهو بما فيه" يعني کله چي د رهن قيمت مشتبه وي او معلومه نه وي چي هغه د قرض برابر دی يا تر قرض کم يا زيات دی. نو په دې صورت کي به رهن د قرض دواړه برابر شمېرل کيږي او که مرهون شی هلاک سي نو قرض به هم هلاکيږي او ساقطيږي. له دې څخه هم دا خبره معلومېږي چي رهن مضمون بالدين کيږي.

③.... درېيم دليل دا دی چي د رهن د مضمون کېدلو په هکله د صحابه وو او تابعينو اجماع ده. لهذا رهن قبضې ته د امانت قبضه ويل د اجماع مخالفت کول دي او د اجماع مخالفت جائز نه دی.

والمراد بقوله إلخ: په دې سره د امام شافعي رَحِمَهُ الله د ذکر سوي حديث "لايغلق إلخ" جواب ورکوي فرمايي چې د حديث هغه مطلب نه دی کوم چې امام شافعي رَحِمَهُ الله فهمولی دی. بلکې صحيح مطلب يې دا دی چې د مرتهن لپاره په کامله توګه د ټوله مرهون شي مالک کېدل صحيح نه دي (يعني دا نه سي کېدلای چې ټوله مرهون شی د هغه ملکيت وګرځي). ها! داسي کېدلای سي چې که مرهون شی خرڅ کړی سي او د مرتهن قرض په اداء کړی سي او بيا له هغه څخه چې کوم څه پاته سي فَهُوَلِصَاحِبِ الرَّهْنِ يعني هغه د صاحبُ الرهن (راهن) کيږي. او که څه کم سي فَعَلَيْهِ غُرْمُهُ يعني د هغه تاوان هم پر صاحبُ الرهن دی چې مرتهن ته به يې ورکوي. د دې حديث همدا صحيح مطلب دی. (احسن الهدايه)

## د رهن تصوّر او عملي فايده

وَلِأَنَّ الثَّابِتَ لِلْمُرْتَهِنِ يَدُ الِاسْتِيفَاءِ او ځکه چې مرتهن لره [د قرض] ترلاسه کولو قبضه ثابته ده وَهُوَ مِلْكُ الْيَدِ وَالْحَبْسِ او هغه د قبضې او راګرځولو مالک کېدل دي [يعني مرتهن د دې مالک دی چې پر مرهون شي قبضه وکړي او د هغه د ځان سره راوګرځوي] لِأَنَّ الرَّهْنَ يُنْبِئُ عَنِ الْحَبْسِ الدَّائِمِ ځکه رهن د همېشني حبس خبر ورکوي قَالَ اللهُ تَعَالَىٰ: ﴿كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِينَةٌ﴾ [المدثر: ۳۸] الله تعالىٰ فرمايلي دي: هر نفس به د خپلو کړو اعمالو په وجه محبوس وي وَقَالَ قَائِلُهُمْ او د دوی [شاعرانو] يوه ويونکي ويلي دي وَفَارَقَتْكَ بِرَهْنٍ لَا فِكَاكَ لَهُ يَوْمَ الْوَدَاعِ (اې زما نفسه!) ستا څخه محبوبه د رخصتۍ په ورځ په داسي رهن جلا سوه چې د هغه راخلاصېدل نسته فَأَمْسَى الرَّهْنُ قَدْ غَلِقَا نو رهن محبوس وګرځېدی [يعني په کومه ورځ چې زما او د معشوقې ترمينځ بېلتون او رخصتي راغله نو په هغه ورځ هغې زما زړه په داسي رهن (په ګرو) واخيستی او زما زړه يې داسي يووړی او د ځان سره يې محبوس کړی چې بيا له هغې څخه زما د مرهون زړه راخلاصېدل ممکن نه دي] وَالْأَحْكَامُ الشَّرْعِيَّةُ تَنْعَطِفُ عَلَى الْأَلْفَاظِ عَلَىٰ وَفْقِ الْإِنْبَاءِ او شرعي حکمونه د خبر ورکولو موافق پر الفاظو مايل کيږي وَلِأَنَّ الرَّهْنَ وَثِيقَةٌ لِجَانِبِ الِاسْتِيفَاءِ او ځکه چې رهن د ترلاسه کولو [قرض اخيستلو] اړخ لره وثيقه [مضبوطتيا] ده وَهُوَ أَنْ تَكُونَ مُوصِلَةً إِلَيْهِ په دې توګه چې دا وثيقه د [قرض] ترلاسه کولو ته رسونکې ده وَذٰلِكَ ثَابِتٌ بِمِلْكِ الْيَدِ وَالْحَبْسِ او دا [وثيقه استيفاء ته موصل کېدل] د قبضې او حبس په مالک کېدلو سره کيږي لِيَقَعَ

الْأَمْنُ مِنَ الْجُحُوْدِ د دې لپاره چي له انکار ځخه امن واقع سي مَخَافَةَ جُحُوْدِ الْمُرْتَهِنِ الرَّهْنَ له رهن ځخه د مرتهن د انکار کولو له بيري وَلِيَكُوْنَ عَاجِزًا عَنِ الْاِنْتِفَاعِ بِهِ او د دې لپاره چي راهن د مرهون شي له نفع ځخه عاجزه سي فَيَتَسَارَعُ إِلَى قَضَاءِ الدَّيْنِ لِحَاجَتِهِ أَوْ لِضَجَرِهِ نو د خپل ضرورت يا زړه تنګئ په وجه د قرض په اداء کولو کي تلوار وکړي.

**اللغات:** ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: ترلاسه کول. پوره اخيستل. ﴿يد﴾ لاس. قبضه. ﴿الحبس﴾ د ضرب د باب مصدر دی: بندي کول. منع کول. راګرځول. ﴿رهينة﴾ محبوس. راګرځول سوی. قيدي. ﴿فَارَقَتْكَ﴾ له حاشيې ځخه معلوميږي چي دا د واحد مؤنث غائب صيغه ده. نه د واحد متکلم (فَارَقْتُكِ) او د کاف ضمير د شاعر خپل نفس ته خطاب دی. چي ستا ځخه خپله محبوبه جلا سوه په داسي رهن سره. . . ﴿فكاك﴾ د سمع د باب مصدر دی: رهن راخلاصول. يعني خپل مرهون شی له مرتهن ځخه اخيستل. ﴿تنعطف﴾ د انفعال د باب مضارع ده: مائل کېدل. کږېدل. ﴿جحود﴾ د فتح د باب مصدر دی. جَحَدَ يَجْحَدُ جَحْدًا و جُحُوْدًا: انکار کول. ﴿يتسارع﴾ د تفاعل د باب مضارع ده: تېزي او تلوار کول. ﴿ضَجَر﴾ د سمع د باب مصدر دی. ضَجِرَ يَضْجَرُ ضَجْرًا: زړه تنګېدل (تنګدله کېدل). ناکراره کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د رهن په ذريعه د مرتهن حق او استحقاق مضبوطيږي او د رهن په وجه هغه په آسانه له راهن ځخه خپل قرض اخيستلای سيّ؛ ځکه د رهن په وجه مرتهن ته د قرض ترلاسه کولو قبضه (ملک اليد والحبس) ثابتيږي يعني هغه ته دا حق دی چي پر رهن (مرهون شي) باندي قبضه وکړي او د هغه د خپل ځان سره راوګرځوي يا بله وينا دا چي پر مرهون شي د مرتهن قبضه هم ده او هغه دا د خپل ځان سره راګرځولی هم دی: او دا ځکه چي د رهن معنیٰ ده: راګرځول. بندول. لکه په قرآن کريم چي په همدې معنیٰ سره استعمال سوی دی. الله تعالیٰ فرمايلي دي ﴿كُلُّ نَفْسٍ بِمَا كَسَبَتْ رَهِيْنَةٌ﴾ چي هر نفس به د خپلو بدو اعمالو په وجه محبوس او بندي وي. وګورئ! دلته هم رَهِيْنَة "مَرْهُوْنَة" په معنیٰ د "مَحْبُوْسَة" سره ی.

همدارنګه په کلامُ الناس کي هم رهن د حَبْس په معنیٰ سره مستعمل دی. لکه ځرنګه چي په دې شعر "وفارقتك برهن إلخ" کي رهن د حبس په معنیٰ سره دی. او د شعر مطلب دا دی چي په کومه ورځ زما او ستا تر مينځ بېلتون راغلی دی. له هاغه ورځي ځخه زما حالت دا دی چي زما زړه ستا سره

محبوس دی، او په شرعي احکامو کي د الفاظو لغوي معناګانو لره اعتبار وي. نو کله چي د لغت له رویه رهن د حبس په معنیٰ سره دی، نو د شریعت له رویه به هم هغه د حبس په معنیٰ سره وي.

ولأن الرهن إلخ: د دې حاصل دا دی چي رهن د قرض ترلاسه کولو (اخیستلو) غوره او مضبوطه ذریعه ده؛ ځکه چي د رهن په وجه راهن وروسته د مرتهن له قرض څخه انکار نه سي کولای. ځکه هغه ته دا خطره ده چي که زه د قرض انکار وکړم، نو مرتهن به د رهن انکار وکړي (چي تاما ته هیڅ شی په رهن او ګرو نه دی اینبی)، او ځیني وخت داسي وي چي د مرهون شي مالیت له قرض څخه زیات وي یا مرهون شی داسي وي چي له هغه څخه نفع او ګټه اخیستل کېدلای سي، خو د رهن په وجه راهن له هغه څخه ګټه نه سي اخیستلای؛ ځکه هغه د مرتهن په قبضه کي د هغه سره محبوس وي. نو ځکه راهن ژر تر ژره د قرض اداء کولو په فکر کي وي چي قرضه اداء کړي او مرهون شی ژر ترلاسه کړي او مرتهن ته خپل قرض ترلاسه سي، په همدې وجه ویل کیږي چي په رهن سره د ترلاسه کولو اړخ مضبوطیږي او د هغه وثیقه ده. (احسن الهدایه)

## پر پورتني تمهید مبني یوه مسئله

وَإِذَا كَانَ كَذٰلِكَ او کله چي داسي ده يَثْبُتُ الِاسْتِيفَاءُ مِنْ وَجْهٍ نو په یوه اعتبار سره [د حق] ترلاسه کول ثابت سوه وَقَدْ تَقَرَّرَ بِالْهَلَاكِ او د [حق] هلاکېدلو په وجه دا [د حق] ترلاسه کول نور مضبوط سوه فَلَوِ اسْتَوْفَاهُ ثَانِيًا نو که مرتهن دویم وار هغه [حق] ترلاسه کړي يُؤَدِّيْ إِلَى الرِّبٰوا نو دا به سود ته رسول وکړي [د ربوا سبب به وګرځي] بِخِلَافِ حَالَةِ الْقِيَامِ په خلاف د رهن د موجود والي د حالت لِأَنَّهُ يَنْتَقِضُ هٰذَا الِاسْتِيفَاءُ بِالرَّدِّ عَلَى الرَّاهِنِ ځکه چي پر راهن په واپس کولو سره دا ترلاسه کول ماتیږي فَلَا يَتَكَرَّرُ نو [په دې صورت کي] ترلاسه کول نه مکرر کیږي وَلَا وَجْهَ إِلَى اسْتِيفَاءِ الْبَاقِيْ بِدُوْنِهِ او له قبضې څخه بغیر د باقي ترلاسه کولو لره هیڅ صورت نسته لِأَنَّهُ لَا يُتَصَوَّرُ ځکه چي دا متصوّر [او ممکن] نه دي.

**اللغات**: ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: (حق) ترلاسه کول، پوره اخیستل. ﴿تقرّر﴾ د تفعل د باب ماضي ده: نور ثابتېدل، مضبوطېدل (پخېدل). ﴿لا يتصوّر﴾ د تفعّل د باب نفي صیغه ده: متصور کېدل (چي تصور یې کېدلای سي یعني امکان یې وي)، ممکن کېدل.

**تشريح**: مخکي وويل سوه چي مرهون شی د مرتهن سره محبوس دی او مرتهن لره ملک يد او ملک حبس ثابت دی چي پر مرهون شی د هغه قبضه هم ده او راګرځولی يې هم دی. نو له دې ټولو څخه دا معلوميږي چي مرتهن خپل حق (قرض) من وجه ترلاسه کړی دی، نو که مرهون شی هلاک سي. نو په دې سره د حق ترلاسه کول نور ثابت او پاخهٔ سوه (يعني ګواکي هغه خپل حق پوره ترلاسه کړی). لهذا اوس که مرتهن له راهن څخه بيا خپل حق (قرض) واخلي. نو ربوا (سود) به لازم سي. او ربوا حرامه ده.

او که سوال وسي چي که مرهون شی موجود وي او له راهن څخه حق (قرض) واخيستل سي. نو دلته خو هم ربوا لازميږي؟. جواب دا دی چي نه لازميږي؛ ځکه کله چي مرهون شی موجود وي. نو هغه خو راهن ته واپس کول کيږي. نو د حق په ترلاسه کولو (استيفاء) کي تکرار نه لازميږي.

ولا وجه إلخ: دا عبارت د يو مقدر اعتراض جواب دی. اعتراض دا دی چي تاسي د مرهون شي تر هلاکېدلو وروسته د قرض اخيستل ربوا ګرځولې ده، حال دا چي موږ تاسو ته داسي صورت ښوولای سو چي د مرهون تر هلاکېدلو وروسته له راهن څخه قرض واخيستل سي او ربوا لازم نه سي. او هغه صورت دا دی چي پر مرهون شي خو مرتهن ته صرف ملک يد (قبضه) حاصله وي. نه ملک رقبه (يعني پر مرهون شي خو فقط د هغه قبضه وي. مالک يې نه وي)، او کله چي مرهون هلاک سي. نو صرف د ملک يد (قبضې) ترلاسه کول ثابت او مضبوط سوه. او د قرض مقابل خو ملک يد او ملک رقبه دواړه دي. نو د مرهون شي په هلاکېدلو سره صرف ملک يد (قبضه) ترلاسه سوه. ملک رقبه پاته دی. نو اوس که مرتهن له راهن څخه ملک رقبه ترلاسه کړي او خپل قرض ځني واخلي. نو دا به ربوا نه وي.

د دې په جواب کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي له ملک يد (قبضې) څخه بغير د باقي يعنيٰ د ملک رقبه ترلاسه کول ناممکن او نامتصور دي، او که د مرهون تر هلاکېدلو وروسته د ملک رقبه (يعني د خودي قرض) ترلاسه کول جائز وګرځول سي، نو د ملک يد د ترلاسه کولو تکرار به لازم سي کوم چي د ربوا سبب ګرځي. لهذا د ملک رقبه ترلاسه کولو لره هيڅ صورت نسته. (احسن الهدايه)

## پر مذکوره نظريه يو اشکال او د هغه جواب

وَالِاسْتِيفَاءُ يَقَعُ بِالْمَالِيَّةِ او ترلاسه کول [اخيستل] پر ماليت واقع کيږي [نه د شي پر عين] أَمَّا الْعَيْنُ فَأَمَانَةٌ کوم چي عين دی نو [هغه] امانت دی حَتَّى كَانَتْ نَفَقَةُ الْمَرْهُونِ عَلَى الرَّاهِنِ فِي حَيَاتِهِ همدا وجه ده چي د مرهون نفقه د هغه په ژوند کي پر راهن ده وَكَفَنُهُ بَعْدَ مَمَاتِهِ او د هغه تر مرګ وروسته د هغه کفن [پر راهن دی] وَكَذَا قَبْضُ الرَّهْنِ لَا يَنُوبُ عَنْ قَبْضِ الشِّرَاءِ إِذَا اشْتَرَاهُ الْمُرْتَهِنُ او

همدارنګه د رهن قبضه د شراء [رانيولو] د قبضې نه قائم مقام کيږي کله چي مشتري رهن رانيسي لِأَنَّ الْعَيْنَ أَمَانَةٌ ځکه چي عين رهن امانت دی فَلَا يَنُوبُ عَنْ قَبْضِ ضَمَانٍ نو د امانت قبضه به د ضمان د قبضې نه قائم مقام کيږي.

**اللغات**: ﴿مالية﴾ مال کېدل، مال والی، قيمت.

**تشريح**: دا عبارت هم ديو مقدر سوال جواب دی، سوال دا دی چي حق (قرض) له خپل جنس ځخه اخيستل کيږي او دلته په عَين او دَين کي مجانست نسته. نو د مرهون شي د هلاکېدلو په صورت کي هم دَين نه ساقطېدل پکار دي؛ ځکه مرهون عين شی وي مثلاً غلام يا بل شی وي او دَين روپۍ او پيسې وي، او د دوی تر مينځ مجانست نسته او له مجانست ځخه بغير حق ترلاسه کول (اخيستل) ممکن نه دي، نو د مرهون ترهلاکېدلو وروسته ګواکي مرتهن خپل حق نه دی ترلاسه کړی. لهذا هغه ته خپل قرض حاصلېدل پکار دي.

د دې په جواب کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د مرهون شي تر هلاکېدلو وروسته مرتهن د مرهون شي له ماليت ځخه خپل حق ترلاسه کړی دی، او د ماليت (مال کېدلو) په حواله سره په دَين او رهن کي مجانست سته، لهذا په دې هکله اعتراض کول صحيح نه دي. (او مجانست ځکه پکښې سته چي دَين هم مال دی او مرهون شی هم مال دی، ځکه مال هر هغه شي ته وايي کوم چي د انسان په ملکيت کي داخل وي او هر هغه شی چي له هغه ځخه نفع اخيستل ممکن وي او هغه چي فطرت او طبيعت ميلان ورته کوي).

پاته سوه د مرهون د عَين مسئله، نو عينِ مرهون د مرتهن په قبضه کي امانت دی. همدا وجه ده که عينِ مرهون غلام وغيره وي، نو په ژوند کي د هغه نفقه پر راهن واجبه ده (نه پر مرتهن) او د غلام تر مرګ وروسته پر همدې راهن د هغه کفن دفن لازم دي. او د عين د امانت کېدلو بل دليل دا هم دی چي که مرتهن مرهون شی رانيسي نو د شراء لپاره به پر مرهون شي دوباره قبضه کوي، ځکه پر مرهون شي چي کومه قبضه وه. هغه د امانت قبضه وه او دا د شراء قبضه ده. (او د دواړو قبضو تر مينځ فرق ښکاره دی چي که د امانت شی هلاک سي نو ضمان يې نه لازميږي او که د شراء [يعني رانيول سوی] شی هلاک سي نو ضمان يې لازميږي. لهذا کله چي په دواړو کې [illegible] شراء لپاره به دويم ځل قبضه کوي). نو په دې سره (چي د شراء لپاره به دويم ځل قبضه پر کوي) هم دا خبره ثابته سوه چي عينِ مرهون د مرتهن سره امانت دی او هغه د دغه عين له ماليت ځخه خپل حق ترلاسه کوي.

## د امام شافعي رَحِمَهُ الله د مخکيني عقلي دليل جواب

وَمُوجَبُ الْعَقْدِ ثُبُوتُ يَدِ الِاسْتِيفَاءِ او د عقد رهن موجب د [خپل حق] ترلاسه کولو د قبضې ثابتېدل دي وَهٰذَا يُحَقِّقُ الصِّيَانَةَ او دا [د قرض] حفاظت ثابتوي وَإِنْ كَانَ فَرَاغُ الذِّمَّةِ مِنْ ضَرُورَاتِهِ که څه هم [د راهن] د ذمې فارغېدل د استيفاء له ضروریاتو ځخه دي كَمَا فِي الْحَوَالَةِ لکه ځرنګه چي په حواله کي دي.

**اللغات**: ﴿مُوجِب﴾ د افعال د باب مفعول دی: واجب کړی سوی. حکم. مقتضا. نتیجه. ﴿صیانة﴾ د نصر د باب مصدر دی: حفاظت کول. ساتل او ژغورل.

**تشريح**: په دې عبارت کې صاحب د هدایې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د عقلي دلیل جواب ورکوي کوم چې څو صفحې مخکې تېر سو چې د عقد رهن موجب وثیقه بالدین دی. عبارت یې داسې وو: "ولأن الرهن وثيقة بالدين... وهٰذا لأن بعد الوثيقة يزداد معنى الصيانة إلخ". نو دلته مصنف رَحِمَهُ الله د هغه په جواب کې فرمايي چې د عقد رهن موجب هغه نه دی کوم چې امام شافعي رَحِمَهُ الله فهمولی دی. بلکې د عقد رهن صحیح او اصل موجب دا دی چې مرتهن ته (د خپل قرض) پر اخیستلو قبضه حاصله سي. او د عقد رهن دغه موجب د قرض ساقطولو باعث نه دی بلکې د هغه د حفاظت باعث دی چې که راهن هر څومره حق خوره سي خو بیا هم د عقد رهن په وجه به هغه د مرتهن د قرض پر اداء کولو مجبوره وي او دا خو نا څاپېزه خبره ده چې مرهون شی هلاک سي، نو څرنګه چې د دې هلاکېدلو په ضمن کې د مرتهن قرض وصول او ترلاسه سو، نو ځکه د راهن ذمه فارغه سوه. یعنې دا قرض خو مفت (موت) نه دی ساقط سوی، بلکې د مرهون شي د هلاکېدلو په وجه ساقط سوی دی چې وجه یې مخکې تېره سوه. لنډه دا چې د مرهون شي د هلاکېدلو په ضمن کې مرتهن ته خپل قرض رسیږي او په لازمي توګه د راهن ذمه فارغیږي. د دې مثال داسې دی لکه په حواله کې چې کله پر محتال علیه دَین واجب سي، نو لازماً د مُحیل ذمه فارغیږي، همداسې دلته هم دي.

### د مرهون شي د محبوس کېدو په هکله زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله د اختلاف خلاصه

فَالْحَاصِلُ أَنَّ عِنْدَنَا نو خلاصه دا چې زموږ په نېز حُكْمَ الرَّهْنِ صَيْرُورَةُ الرَّهْنِ مُحْتَبِسًا بِدَيْنِهِ بِإِثْبَاتِ يَدِ الِاسْتِيفَاءِ عَلَيْهِ د رهن حکم د رهن محبوس کېدل دي د مرتهن د قرض په بدله کې د [حق] ترلاسه کولو د قبضې د ثابتولو سره [یعني زموږ په نېز د رهن حکم دا دی چې رهن (مرهون) د مرتهن د قرض په عوض کې د مرتهن سره محبوس دی او له رهن (مرهون) څخه د خپل قرض ترلاسه کولو قبضه مرتهن له ثابته ده] وَعِنْدَهُ تَعَلُّقُ الدَّيْنِ بِالْعَيْنِ اِسْتِيفَاءً مِنْهُ عَيْنًا بِالْبَيْعِ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د عین مرهون سره د دَین متعلق کېدل دي د [حق] ترلاسه کولو په غرض له هغه [عین مرهون] څخه د بیع په ذریعه [یعني د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د رهن حکم (د قرض) ترلاسه کولو په غرض دَین د عَین سره متعلق کېدل دي او دا (قرض) ترلاسه کول له عَین څخه د بیع په ذریعه دي (چې عین خرڅ کړل سي)] وَيُخَرَّجُ عَلَىٰ هٰذَيْنِ الْأَصْلَيْنِ عِدَّةٌ مِنَ الْمَسَائِلِ الْمُخْتَلَفِ فِيهَا بَيْنَنَا وَبَيْنَهُ او پر دغه دوو اصلونو د ډېرو مسئلو تخریج کېږي چې

په هغوى كي زموږ او د شوافعو تر مينځ اختلاف دى عَدَدْنَاهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِيْ جُمْلَةً چي هغوى ټوله موږ په كفاية المنتهي كي شمېرلي دي مِنْهَا أَنَّ الرَّاهِنَ مَمْنُوعٌ عَنِ الْاِسْتِرْدَادِ لِلْاِنْتِفَاعِ له هغوى څخه يوه دا ده چي راهن د نفع اخيستلو لپاره [د مرهون شي] له واپس اخيستلو څخه ممنوع دى [يعني زموږ په نېز راهن له دې څخه منع دى چي د نفع اخيستلو لپاره له مرتهن څخه خپل مرهون شى واپس واخلي] لِأَنَّهُ يُفَوِّتُ مُوْجَبَهُ ځكه چي دا د عقد رهن موجب فوتوي وَهُوَ الْاِحْتِبَاسُ عَلَى الدَّوَامِ او د عقد رهن موجب په دائمي توګه [د مرهون شي] محبوس كېدل دي [د مرتهن سره. تر دې چي هغه خپل حق ترلاسه كړي] وَعِنْدَهُ لَا يَمْنَعُ مِنْهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په راهن له دې كار څخه نه منع كول كيږي لِأَنَّهُ لَا يُنَافِي مُوْجَبَهُ ځكه دا [د هغه په نېز] د عقد رهن د موجب منافي نه دي وَهُوَ تَعَيُّنُهُ لِلْبَيْعِ او [د هغه په نېز] د عقد رهن موجب د بيع لپاره د مرهون شي متعين كېدل وَسَيَأْتِيْكَ الْبَوَاقِيْ فِيْ أَثْنَاءِ الْمَسَائِلِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او پاته جزئيات [او فروعات] به ان شاء الله د مسئلو په دوران كي تا ته راسي.

**اللغات:** ﴿صيرورة﴾ د ضرب مصدر دى: ګرځېدل. كېدل. ﴿استرداد﴾ د استفعال مصدر دى: واپس غوښتل او اخيستل. رجوع كول. ﴿يفوّت﴾ د تفعيل مضارع ده: فوتول. ضايع كول. ﴿مُوجب﴾ د افعال د باب مفعول دى: واجب كړى سوى. حكم. مقتضا. ﴿البواقي﴾ جمع د بَاقِيَةٌ ده: پاته. باقي مانده.

**تشريح:** مصنف رَحِمَهُ الله فرمايي چي زموږ د مخكيني بيان او خبرو خلاصه دا ده چي زموږ په نېز رهن (مرهون شى) د دَين په بدله كي محبوس دى چي مرتهن ته دا قبضه حاصله ده چي په هغه سره خپل حق (قرض) ترلاسه كړي (يعني مرتهن ته يد الاستيفاء حاصل دى). او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د دَين تعلق د عينِ رهن (عينِ مرهون) سره دى، نه د هغه د ماليت سره او د دې صورت فقط په بيع (خرڅلاو) سره دى چي مرتهن مرهون شى خرڅ كړي او خپل حق ترلاسه كړي. بيا زموږ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله پر دغه دوو اصلونو ډېر مسائل متفرع كيږي چي هغوى مصنف رَحِمَهُ الله په كفاية المنتهي كي ذكر كړي دي، او يوه جزئيه يې په دې عبارت كي هم ذكر كړې ده چي زموږ په نېز راهن ته دا حق نسته چي د قرض تر اداء كولو مخكي له مرتهن څخه خپل مرهون شى واپس واخلي او خرڅ يې كړي؛ ځكه زموږ د اصل مطابق د قرض اداء كولو تر وخته مرتهن ته د حبسِ دائم حق حاصل

دی یعني چي له راهن څخه مرهون شی راوګرځوي. لهذا که راهن د مرهون شي واپس اخیستل وغواړي. نو په دې سره به د رهن "موجب" یعني "حبسِ دائم" فوت او نیستي سي.

د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله د اصل مطابق راهن به له واپس اخیستلو (استرداد) څخه نه منع کول کیږي؛ ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د عقد رهن "موجب" مرهون شی د بیع لپاره متعین کېدل دي. او د راهن په استرداد سره په دې تعین کي هیڅ خلل نه راځي. نو ځکه هغه ته دا حق سته چي له مرتهن څخه خپل مرهون شی واپس واخلي. نور جزئیات او فروعات به هم ان شاء الله تعالیٰ وقتاً فوقتاً د آینده مسائلو په ترڅ کي ستاسي مخ ته راسي.

## رهن د کوم قرض په بدله کي صحیح دی؟

قَالَ: وَلَا يَصِحُّ الرَّهْنُ إِلَّا بِدَيْنٍ مَضْمُوْنٍ فرمایي: او رهن نه صحیح کیږي مګر د مضمون [ضمان والا] دَین په بدله کي لِأَنَّ حُكْمَهُ ثُبُوْتُ يَدِ الِاسْتِيْفَاءِ ځکه د رهن حکم د [حق] ترلاسه کولو د قبضې ثابتېدل دي وَالِاسْتِيْفَاءُ يَتْلُو الْوُجُوْبَ او [حق] ترلاسه کول تر وجوب وروسته راځي [یعني حق (دین) چي مخکي واجب او ثابت وي نو بیا هغه ترلاسه کول کېدای سي. نه تر وجوب او ثبوت مخکي. یا په بله وینا دا چي یو ځل حق ثابتیږي او بیا هغه اخیستل کیږي] قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي وَيَدْخُلُ عَلَى هٰذَا اللَّفْظِ الرَّهْنُ بِالْأَعْيَانِ الْمَضْمُوْنَةِ بِأَنْفُسِهَا او پر دغه لفظ [د حصر. یعني إلا بدين مضمون] باندي په هغه اعیانو سره اشکال واردیږي کوم چي بذات خود مضمون دي [یعني هغه شیان چي بذات خود یې ضمان واجبیږي لکه مغصوب شی] فَإِنَّهُ يَصِحُّ الرَّهْنُ بِهَا ځکه د هغوی په بدله کي هم رهن صحیح کیږي وَلَا دَيْنَ حال دا چي دَین نه دي وَيُمْكِنُ أَنْ يُقَالَ إِنَّ الْمُوْجَبَ الْأَصْلِيَّ فِيْهَا هُوَ الْقِيْمَةُ او ممکنه ده چي دا جواب ورکول سي چي په دې اعیانو کي موجب اصلي قیمت دی وَرَدُّ الْعَيْنِ مُخَلِّصٌ او د عین واپس کول خلاصون دی [چي که عین مغصوب واپس کړي نو غاړه یې خلاصیږي] عَلَى مَا عَلَيْهِ أَكْثَرُ الْمَشَايِخِ د هغه تفصیل مطابق چي پر هغه زیاتره مشایخ دي وَهُوَ دَيْنٌ او قیمت دین دی وَلِهٰذَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِهَا او په همدې وجه د دې اعیانو کفاله صحیح ده وَلَئِنْ كَانَ لَا يَجِبُ إِلَّا بَعْدَ الْهَلَاكِ او قیمت که څه هم [د مغصوب شي] تر هلاکېدلو وروسته واجبیږي وَلٰكِنَّهُ يَجِبُ عِنْدَ الْهَلَاكِ بِالْقَبْضِ السَّابِقِ خو هغه د هلاکېدلو په وخت کي د مخکني [غصبي] قبضې په وجه

واجبيږي [يعني د هغه قبضې په وجه دا قيمت واجبيږي کوم چې يې د غصب په وخت کې پر مغصوب شي کړې وه] وَلِهٰذَا تُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْقَبْضِ په همدې وجه د هغه [مغصوب شي] د قبضې د ورځې قيمت معتبر دی فَيَكُونُ رَهْنًا بَعْدَ وُجُودِ سَبَبِ وُجُوبِهِ نو ځکه دا رهن به د قيمت واجبېدلو د سبب [يعني د مخکنی غصبي قبضې] تر موجودېدلو وروسته رهن وي فَيَصِحُّ نو رهن به صحيح وي كَمَا فِي الْكَفَالَةِ لکه څرنګه چې په کفاله کې دي وَلِهٰذَا او په همدې وجه [يعني په دې وجه چې په اعيانو کې موجب اصلي قيمت دی] لَا تَبْطُلُ الْحَوَالَةُ الْمُقَيَّدَةُ بِهِ بِهَلَاكِهِ په هغه [عين مغصوب] سره مقيده حواله د هغه [عين مغصوب] په هلاکېدلو سره نه باطليږي بِخِلَافِ الْوَدِيعَةِ په خلاف د امانت.

**اللغات**: ﴿مضمون﴾ د سمع د باب مفعول دی: ضمان والا، يعني د کوم شي چې ضمان (تاوان) لازم وي، هغه شی چې ضمان يې ورکول کيږي، د کوم شي ضمان چې پر ذمه واجب وي (کوم شی چې د انسان پر غاړه لازم وي) جمع: مضمونات. ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: (حق) ترلاسه کول، بشپړ اخيستل. ﴿يتلو﴾ د نصر له بابه د مضارع صيغه ده: يو شی په بل شي پسې کېدل، يو تر بل وروسته راتلل، ورسره متصل کېدل. ﴿وديعة﴾ امانت، امانتاً ايښوول سوی شی (په امانت ورکول سوی شی).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې رهن فقط د دَين په بدله کې صحيح کيږي: ځکه د رهن حکم دا دی چې مرتهن ته پر رهن (مرهون) داسې قبضه حاصله سي چې له هغه څخه خپل قرض ترلاسه کولای سي، او دا هغه وخت کېدلای سي کله چې له مخکې څخه دَين ثابت سوی وي.

**يادونه**: دَين خو ګرد سره مضمون وي (يعني که هلاک سي، ضمان يې واجبيږي). نو دلته د مضمون په قيد سره مقيد کول د تأکيد لپاره دي، او ځيني حضراتو ويلي دي چې په دَين مضمون سره د امام قدوري رَحِمَهُ الله مراد هغه دَين دی کوم چې في الحاله واجب او ثابت وي، کنې د ضمان بالدرک په بدله کې رهن صحيح نه دی.

**قال ﷺ**: په متن کې چې امام قدوري رَحِمَهُ الله دا حصر کړی دی چې رهن فقط د دَين په بدله کې صحيح کيږي يعني "إلا بدين مضمون". په دغه باره کې د صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله رايه دا ده چې دا حصر صحيح نه دی ځکه عين شيان يعني کوم چې دَين نه وي بلکې عَين وي او مضمون وي يعني ضمان يې واجبيږي لکه مغصوب شی. د هغوی په بدله کې خو هم رهن صحيح کيږي. حالانکې هغوی دين نه دي، نو بغير له دَين څخه رهن صحيح سو. مثلاً زيد د عمر آس غصب کړي نو پر زيد د

هغه ضمان واجب دی همدارنګه هغه شی کوم چې د سوم شراء په توګه مقبوض وي د هغه ضمان هم واجب دي، او کله چې ضمان يې واجب دی. نو د هغه په بدله کې رهن صحيح دي، له دې څخه معلومه سوه چې د امام قدوري رَحِمَهُ الله حصر صحيح نه دی چې رهن فقط د دَين په بدله کې صحيح کيږي. دا يو اعتراض سو. په را روان عبارت سره صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د هغه جواب ورکوي.

ويمكن إلخ: فرمايي د مذکوره اعتراض او اشکال جواب داسې کېدلای سي (کوم چې د زياتره مشايخو تقرير مطابق دی) چې اصل په عين شيانو کې هم قيمت واجبيږي (خو که هغه عين مغصوب شی واپس کړي. نو غاړه يې خلاصيږي. لذه چې اصل په اعيانو کې قيمت واجبيږي)، او قيمت دين دی. نه عين. او کله چې د هغه دَين والي ثابت سو. نو معلومه سوه چې رهن د دَين په بدله کې دی. نه د عين. همدا وجه د چې د اعيان مضمونه وو کفاله بالاتفاق صحيح ده، او کفاله د دَين صحيح کيږي. نو له دې څخه هم معلومه سوه چې په اعيان مضمونه وو کې د دَين څرک سته. نو اعتراض دفع سو.

ولئن كان إلخ: په دې سره د يو مقدّر اعتراض جواب ورکوي، هغه دا دی چې د مغصوب شي قيمت خو د هغه تر هلاکېدلو وروسته واجبيږي او تر څو چې مغصوب شی باقي پاته وي نو د هغه واپس کول واجب وي، نه د هغه قيمت، لهذا قيمت موجب اصلي ګرځول او دَين ورته ويل به صحيح نه وي؟.

نو په جواب کې فرمايي چې که څه هم د مغصوب شي تر هلاکت مخکې قيمت نه واجبيږي لېکن د هلاکت په وخت کې چې کله قيمت واجبيږي، نو د ضمان سابق او قبضهٔ سابقه په وجه واجبيږي (يعني د هغه سببِ وجوب مخکني قبضه ده) لکه څرنګه چې همدا د فقهي قاعده ده چې "المضمونات تُمْلَكُ بالضمان السابق" چې ټوله مضمونات د ضمان سابق په وجه په ملکيت کې داخليږي، همدا وجه ده چې د هلاک سوي مغصوب شي هماغه قيمت معتبر دی په کومه ورځ چې يې قبضه پر کړې وي (غصب کړی يې وي)، لهذا کله چې خبره داسې ده، نو معلومه سوه چې د قيمت د وجوب سبب مخکينې قبضه ده يعني د غصب له وخته قيمت واجب او ثابت دی، نو رهن د مغصوب شي په بدله کې د قيمت د سببِ وجوب تر موجودېدلو وروسته سوی دی يا په بله وينا چې دغه قيمت کوم چې د رهن عوض دی هغه د خپل سببِ وجوب "غصب او قبضې" تر وجود وروسته سمدستي د رهن عوض سوی دی (نو داسې قيمت ته دَين ويل صحيح دي). لهذا سوال دفع سو د امام قدوري رَحِمَهُ الله دا دعوىٰ صحيح سوه چې "الرهن لا يصح إلا بدين مضمون". او څرنګه چې دغه نکتې (يعني لِوُجود سبب وجوبه) په وجه د اعيان مضمونه وو يعني د مغصوب شي او داسې نورو کفاله صحيح ده، نو همداسې به د هغه رهن هم صحيح او جائز وي.

ولهذا إلخ: كله چي دا معلومه سوه چي اصل په اعيان مضمونه وو كي قيمت واجبيږي. نو اوس واورئ! كه زيد د عُمر يو شی مثلاً پسه غصب كړي او پر عُمر د حامد قرض باندي وي او عُمر دغه قرض پر زيد (غاصب) حواله كړي يعني حامد ته ووايي چي زيد زما پُسه غصب كړی دی. لهذا ته! د خپل قرض په عوض كي له زيد څخه هغه پسه ترلاسه كړه!. اوس كه په دې دوران كي د زيد سره هغه پُسه هلاک او ضايع سي. نو دا حواله نه باطليږي بلكي زيد به د پُسه په قيمت سره د حامد قرض اداء كوي.

د دې په خلاف كه داغه پورتنی صورت وي خو عُمر خپل پُسه زيد ته امانتاً وركړی وي او هغه هلاک سي. نو حواله باطليږي: ځكه چي د امانت هلاكېدلو په وجه حواله باطليږي: ځكه په امانت كي حواله پر عين امانت وي، نه پر موجب اصلي (قيمت)، او د عين په هلاكت سره خو حواله باطليږي. او د غصب په مثال كي د عَين (پُسه) په هلاكېدلو سره حواله نه باطليږي. ځكه د هغه موجب اصلي يعني قيمت موجود دی.

**كه مرهون هلاک سي نو قرض به د هغه د قيمت سره څنګه موازنه كيږي؟ او د امام زفر مسلک**

قَالَ: وَهُوَ مَضْمُوْنٌ بِالْأَقَلِّ مِنْ قِيْمَتِهِ وَمِنَ الدَّيْنِ فرمايي: او مرهون شی [پر مرتهن] مضمون دی د هغه له قيمت او قرض څخه په كمتر يوه سره [يعني د رهن په قيمت او قرض كي چي هريو كم وي. په هغه مقدار سره يې پر مرتهن ضمان لازم دی] فَإِذَا هَلَكَ فِيْ يَدِ الْمُرْتَهِنِ وَقِيْمَتُهُ وَالدَّيْنُ سَوَاءٌ نو كله چي مرهون شی د مرتهن په قبضه كي هلاک سي او د هغه قيمت او قرض سره برابر وي صَارَ الْمُرْتَهِنُ مُسْتَوْفِيًا لِدَيْنِهِ نو مرتهن د خپل قرض ترلاسه كونكی [اخيستونكی] ګرځي وَإِنْ كَانَتْ قِيْمَةُ الرَّهْنِ أَكْثَرَ او كه د رهن [مرهون] قيمت زيات وي فَالْفَضْلُ أَمَانَةٌ نو زيات توب [زائد مقدار] امانت دی لِأَنَّ الْمَضْمُوْنَ بِقَدْرِ مَا يَقَعُ بِهِ الْاِسْتِيْفَاءُ ځكه [مرهون] په دومره مقدار سره مضمون دی په څومره مقدار سره چي استيفاء [د حق ترلاسه كول] واقع كيږي [يعني په څومره مقدار سره چي قرض ترلاسه كېدلای سي. نور پاته مقدار مضمون نه دی] وَذَاكَ بِقَدْرِ الدَّيْنِ او دا مقدار د قرض په اندازه دی فَإِنْ كَانَتْ أَقَلَّ بيا كه د رهن قيمت [له قرض څخه] كم وي سَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ بِقَدْرِهِ نو د هغه په مقدار له قرض څخه ساقطيږي وَرَجَعَ الْمُرْتَهِنُ بِالْفَضْلِ او په زيات توب [زائد مقدار] سره به مرتهن رجوع كوي [يعني د

ماليت په اندازه وي وَقَالَ زُفَرُ ۞ : الرَّهْنُ مَضْمُوْنٌ بِالْقِيْمَةِ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي چي ره [مرهون] په قيمت سره مضمون دی حَتّٰى لَوْهَلَكَ الرَّهْنُ وَقِيْمَتُهُ يَوْمَ الرَّهْنِ أَلْفٌ وَخَمْسُ مِائَةٍ وَالدَّ أَلْفٌ تر دې چې كه رهن هلاک سي او د هغه قيمت د رهن اينبوولو په ورځ پنځلس سوه [٠٠ وي او قرض زر [١٠٠٠] وي رَجَعَ الرَّاهِنُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ بِخَمْسِ مِائَةٍ نو راهن به پر مرتهن په پ سوو [٥٠٠] سره رجوع كوي [يعني ٥٠٠ به واپس ځني اخلي] لَهُ حَدِيْثُ عَلِيٍّ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ / قَالَ: "يَتَرَادَّا الْفَضْلَ فِي الرَّهْنِ" د امام زفر دليل د حضرت علي رَضِيَ اللهُ عَنْهُ حديث دی چې هغه وفرمايل: په رهن به دواړه عقد كونكي [راهن او مرتهن] زياتوب يو بل ته واپس كوي وَلِأَنَّ الزِّيَادَةَ عَلَى الدَّيْنِ مَرْهُوْنَ ځكه چې پر قرض زياتوب [هم] مرهون دی [يعني د مرهون شي كوم مقدار چې د قرض تر مقدار زائد هغه خو هم مرتهن ته په رهن اينبوول سوی دی] لِكَوْنِهَا مَحْبُوْسَةً بِهِ ځكه چې زياتوب [هم] د رهن عوض كي ا د مرتهن سره ا محبوس دی فَتَكُوْنُ مَضْمُوْنَةً نو ځكه د هغه ضمان به [هم] لازم وي اِعْتِ بِقَدْرِ الدَّيْنِ د قرض پر مقدار په قياس كولو سره وَمَذْهَبُنَا مَرْوِيٌّ عَنْ عُمَرَ وَعَبْدِ اللهِ ابْنِ مَسْ رَضِيَ اللهُ عَنْهُمْ او زمونږ مذهب له حضرت عمر او حضرت عبد الله بن مسعود (رض) ځخه نقل دی وَلِأَنَّ يَدَ الْمُرْتَهِنِ يَدُ الْاِسْتِيْفَاءِ او ځكه چې ا پر مرهون شي ا د مرتهن قبضه د استيفاء قبضه ده په دې سره هغه خپل قرض ترلاسه كوي] فَلَا يُوْجِبُ الضَّمَانَ إِلَّا بِالْقَدْرِ الْمُسْتَوْفٰى نو ځكه دا به ضم واجبوي مگر په ترلاسه كړی سوي [اخيستل سوي] مقدار كي كَمَا فِي حَقِيْقَةِ الْاِسْتِيْفَاءِ لَ حقيقي استيفاء په صورت كي وَالزِّيَادَةُ مَرْهُوْنَةٌ بِهِ ضَرُوْرَةَ امْتِنَاعِ حَبْسِ الْأَصْلِ بِدُوْنِهَا او زيا [زائد مقدار] د دې ضرورت په وجه مرهون دی چې له هغه ځخه بغير د اصل محبوس كېدل م دي وَلَا ضَرُوْرَةَ فِي حَقِّ الضَّمَانِ او د ضمان په حق كي ضرورت نسته وَالْمُرَادُ بِالتَّرَادِّ فِيْمَا رَوٰى الْبَيْعِ او مراد په "واپس كولو" سره د امام زفر رَحِمَهُ الله په روايت كړی سوي حديث كي.

---

۞ القول الراجح: قول ائمة الثلاثة؛ إذ هو أحر فإنه مع الدلائل فيرجح. وعلى [illegible] عن استدلال زفر. فدلك [illegible] وجوه الترجيح عنده كما هو دأبه في أسلوب الترجيح، انظر للتفصيل الكتاب المسمى بالقول الراجح [ج٢. ص: ٢٥-٣]

حالت دی فَإِنَّهُ رُوِيَ عَنْهُ أَنَّهُ قَالَ: الْمُرْتَهِنُ أَمِينٌ فِي الْفَضْلِ ځکه له حضرت علي ﷺ څخه [يل]
روايت سوی دی چي هغه وفرمايل: مرتهن د زياتوب [زائد مقدار] په هکله امين دی.

**اللغات**: ﴿مضمون﴾ د سمع د باب مفعول دی: د کوم شي چي ضمان (تاوان) لازم وي، هغه شی چي ضمان يې ورکول کيږي، د کوم شي ضمان چي پر ذمه واجبيږي. جمع: مضمونات. ﴿يـترادّان﴾ د تفعّل له بابه د تثنيه غائب صيغه ده: يو بل ته ردول. واپس کول. ﴿الفضل﴾ زياتوب. اضافي. زائد مقدار. ﴿أمين﴾ امانت ساتونکی (د امانت حفاظت کونکی). چي که بغير له تعدی له هغه څخه د امانت شی هلاک سي نو ضمان نه پر لازميږي.

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي مرهون شی د مرتهن په ضمان او ذمه واري کي داخل دی (يا په بله وينا دا چي پر هغه يې ضمان لازم دی). اوس پوښتنه دا ده چي مرهون شی په کوم مقدار سره مضمون دی (په کوم مقدار سره يې ضمان پر لازم دی)؟. نو دلته د هغه جواب ورکوي. حاصل يې دا دی چي د رهن په قيمت او قرض ته به کتل کيږي چي په دوی کي کوم يو لږ او کم وي، په هاغه مقدار سره مرهون شی مضمون کيږي. لهذا که د رهن (مرهون) قيمت پنځه سوه روپۍ وي او قرض څلور سوه روپۍ وي، نو قرض دوه سوه روپۍ کم دي او د رهن قيمت زيات دی. نو ضمان به د همدې څلور سوه روپو په اندازه وي. او که د دې برعکس وي (يعني د مرهون قيمت څلور سوه روپۍ وي او قرض پنځه سوه وي)، نو هم به ضمان د څلور سوه روپو په اندازه وي.

لهذا که د مرتهن سره مرهون شی هلاک سي او د قرض او رهن قيمت سره برابر وي، نو معامله سره برابره سوه او د مرتهن قرض اداء سو. نو راهن او مرتهن سره خلاص سول. او کله چي د رهن قيمت زيات وي او قرض کم وي (او رهن د مرتهن سره هلاک سي)، نو هم قرض اداء سو او هغه زياتوب يعني له قرض څخه زائد مقدار امانت دی: ځکه مرتهن چي له څومره مقدار څخه خپل قرض ترلاسه کولای سي. هغومره مقدار مضمون کيږي (يعني پر مرتهن د هغومره مقدار ضمان لازم دی) او هغه مقدار د قرض په اندازه دی.

او کله چي د رهن قيمت کم وي او قرض زيات وي (او رهن د مرتهن سره هلاک سي)، نو څومره مقدار چي د رهن قيمت وو. د رهن په هلاکېدلو سره هغومره قرض ساقط سو. او پاته قرض به مرتهن له راهن څخه اخلي: ځکه دلته د مرتهن هغومره قرض اداء سو څومره چي د رهن ماليت او قيمت دی.

وقال زفر إلخ: پورته چي کوم حکم ذکر سو دا زموږ مذهب دی. او د امام زفر رَحِمَهُ الله مذهب دا دی چي د رهن (مرهون) چي هر څومره قيمت وي. د هغه په اندازه پر مرتهن ضمان لازميږي. لهذا که د

رهن (مرهون) دا ینبوولو په ورځ د هغه قیمت پنځلس سوه روپۍ وي او قرض زر روپۍ وي او بیا رهن د مرتهن سره هلاک سي، نو د مرتهن قرض هم اداء سو او راهن به له مرتهن څخه پنځه سوه روپۍ نوري هم اخلي.

دامام زفر رَحِمَهُ الله نقلي دلیل د حضرت علي رضی الله عنه دا حدیث او فرمان دی چي راهن او مرتهن دواړه به زیاتوب (زائد مقدار) یو بل ته واپس کوي، یعني که قرض د رهن له قیمت څخه زیات وي، نو راهن به زیاتوب (زائد مقدار) و مرتهن واپس کوي، او که د رهن قیمت له قرض څخه زیات وي، نو مرتهن به زیاتوب و راهن ته واپس کوي، یعني د فضل (زیاتوب) په واپس کولو کي دواړه سره برابر دي.

او د امام زفر رَحِمَهُ الله د عقلي دلیل حاصل دا دی چي څرنګه د رهن هغه مقدار مرهون (په رهن اینبوول سوی) دی کوم چي د دَین په اندازه دی، همداسي له هغه څخه زائد مقدار هم مرهون دی؛ ځکه اصل او زیاتوب دواړه د قرض په بدله کي محبوس دي، لهذا څرنګه چي د رهن هغه مقدار مضمون دی (یعني پر مرتهن یې ضمان لازم دی) کوم چي د دَین په اندازه دی، همداسي هغه مقدار به یې هم مضمون وي کوم چي تر هغه زیات دی، مثلاً یو آس یې په رهن کي ورکړی دی چي د هغه قیمت پنځه سوه روپۍ دی او قرض دوه سوه روپۍ دی، نو ټوله آس د مرتهن سره مرهون او محبوس دی، نو ضمان هم د ټوله آس واجبېدل پکار دي.

ومذهبنا مروي إلخ: له دې ځایه زموږ دلیل بیان سوی دی، اول دلیل نقلي دی او دویم عقلي دلیل دی. نقلي دلیل دا دی چي له حضرت عمر رضی الله عنه او خضرت عبد الله بن مسعود رضی الله عنه څخه همداسي نقل سوي دي کوم چي زموږ مذهب دی. عقلي دلیل دا دی چي د مرتهن قبضه د (حق) ترلاسه کولو قبضه ده یعني پر مرهون شي د هغه قبضه د همدې لپاره ثابته ده چي په هغه سره خپل حق (قرض) ترلاسه کړي، نو په څومره مقدار سره چي حق ترلاسه کېدلای سي (یعني د مرتهن چي څومره حق کیږي). هغومره ضمان واجبېدل پکار دي.

ځکه د مرتهن دا (خپل حق) ترلاسه کول حقیقي ترلاسه کول نه دي بلکي ترلاسه کول شمېرل سوي دي او که حقیقي وي، نو هم داغه حکم دی کوم چي موږ ذکر کړی چي د دَین په اندازه هغه مضمون دی او پاته زائد مقدار امانت دی. په بله وینا دا چي که د رهن قیمت زیات وي نو په دې صورت کي د استیفاء (ترلاسه کولو) تعلق د زیاتوب (زائد مقدار) سره نه دی او زیاتوب امانت شمېرل کیږي او که د امام زفر رَحِمَهُ الله په وینا موږ دا زیاتوب مرهون ومنو، نو د هغه مرهون کېدل حقیقي نه دي (یعني دا زائد مقدار حقیقي مرهون نه دی). بلکي د یو ضرورت پر بناء دي او ضرورت دا دی چي کله هغه زیاتوب (زائد مقدار) د مرهون سره متصل او مبتنی دی، نو څرنګه چي د دَین مقدار مرهون دی.

همداسي به هغه (زائد مقدار) هم مرهون شمېرل کيږي: ځکه له هغه څخه بغير اصل يعني د دَين مقدار نه محبوس کيږي، او څرنګه چې دا ضرورت فقط د حبس او رهن په حق کې دی. نو د "الضرورة تتقدر بقدرها" والا قاعدې پر بناء به فقط د حبس او رهن په حق کې هغه ثابتيږي او د ضمان په حق کې به نه ثابتيږي: ځکه د ضمان په حق کې څه ضرورت نسته، لهذا د دَين مقدار خو به د ضمان موجب وي. لېکن زياتوب به د ضمان موجب نه وي.

والمراد إلخ: امام زفر رَحِمَهُ الله چې په کوم حديث علي ﷺ سره دليل نيولی وو، دا د هغه جواب دی.

حاصل يې دا دی چې د دې حديث هغه مطلب نه دی کوم چې امام زفر رَحِمَهُ الله فهمولی دی. بلکې مطلب يې دا دی چې که مرهون شی خرڅ کړل سي. نو زياتوب به يو بل ته واپس کوي يعني د مرهون شي د بيع په صورت کې چې څه کمي بيشي راسي هغه به راهن او مرتهن يو بل ته واپس کوي. او په بيع کې خو موږ هم د دې قائل يو. او پاته سو زموږ او د امام زفر خبره خو د مرهون شي د هلاکت په هکله ده (چې کله مرهون شی هلاک سي...)، کوم چې د حديث مراد نه دي.

او که سوال وسي چې ستاسي دليل څه دی چې په حديث کې د بيع حالت مراد دی (نه د هلاکت)؟، نو جواب دا دی چې زموږ دليل پر دې خبره د حضرت علي ﷺ بل روايت دی چې په هغه کې يې فرمايلي دي: د زياتوب (زائد مقدار) په هکله مرتهن امين دی. له دې څخه معلومه سوه چې د حضرت علي ﷺ اول حديث او روايت به پر بيع حمل کيږي، کنې د حضرت علي ﷺ په اقوالو کې به تعارض لازم سي. (همدارنګه د تعارض په وخت کې د رواي هغه روايت ته ترجيح ورکول کيږي چې د بل رواي په روايت سره د هغه تائيد کيږي. اودلته د حضرت عمر او حضرت ابن مسعود رَضِيَ اللهُ عَنْهُمَا په روايتونو سره د حضرت علي ﷺ د دويم روايت تائيد کيږي. نو ځکه هغه به معتبر وي).

## تر رهن وروسته د خپل قرض مطالبه کول او د قرض په وجه راهن بندي کول

قَالَ: وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يُطَالِبَ الرَّاهِنَ بِدَيْنِهِ وَيَحْبِسَهُ بِهِ فرمايي: او مرتهن ته دا حق سته چې له راهن څخه د خپل قرض مطالبه وکړي او د قرض په وجه هغه بندي کړي لِأَنَّ حَقَّهُ بَاقٍ بَعْدَ الرَّهْنِ ځکه تر رهن وروسته هم د مرتهن حق باقي دی وَالرَّهْنُ لِزِيَادَةِ الصِّيَانَةِ او رهن د زيات حفاظت لپاره وي [چې په رهن اېښوولو سره د مرتهن قرض بنه محفوظ پاته سي او راهن يې انکار نه وکړي] فَلَا تَمْتَنِعُ بِهِ الْمُطَالَبَةُ نو د رهن په وجه به مطالبه نه ممتنع کيږي وَالْحَبْسُ جَزَاءُ الظُّلْمِ او حبس [بندي کول] ظلم

سزا ده فَإِذَا ظَهَرَ مَطْلُهُ عِنْدَ الْقَاضِيْ نو کله چي د قاضي په نيز د راهن ټال مټول ښکاره سي يَحْبِسُهُ نو هغه به بندي کوي كَمَا بَيَّنَّاهُ عَلَى التَّفْصِيْلِ فِيْمَا تَقَدَّمَ لکه څرنګه چي دا موږ مخکي په تفصيل سره بيان کړي دي.

**اللغات**: ﴿صيانة﴾ د نصر د باب مصدر دی: حفاظت کول، ساتل. ﴿مطل﴾ مصدر دی: ټال متا کول (ټال متول)، چا ته په يو کار کي پلمه کول، مراد څني د قدرت باوجود قرض نه اداء کول.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي د رهن په وجه د مرتهن حق نه اداء کيږي، بلکي رهن خو صرف د دې لپاره وي چي د مرتهن حق او مال خوندي کړی سي، لهذا کله چي خبره داسي ده، نو د رهن باوجود هم مرتهن ته دا اختيار سته چي له راهن څخه د خپل قرض مطالبه وکړي، او د نه ورکولو په صورت کي د قاضي په ذريعه هغه بندي کړي؛ څرنګه چي راهن نه قرض اداء کوي او نه د قرض ادا کولو لپاره مرهون شی خرڅوي، نو د راهن ظلم ثابت سو او د ظلم سزا بندي کول دي. د هدايي په جلد ثالث کي په كتابُ القضاء، فصل في الحبس کي په تفصيل سره د دې بيان سوی دی.

## که مرتهن د خپل دَين مطالبه وکړي نو مرهون شی به حاضر وي (حکم او تفصيل)

وَإِذَا طَلَبَ الْمُرْتَهِنُ دَيْنَهُ او کله چي مرتهن د خپل قرض طلب وکړي يُؤْمَرُ بِإِحْضَارِ الرَّهْنِ نو هغه ته به د رهن [مرهون شي] د حاضرولو حکم کيږي لِأَنَّ قَبْضَ الرَّهْنِ قَبْضُ اسْتِيْفَاءٍ ځکه د رهن قبضه د [قرض] ترلاسه کولو قبضه ده [چي په دې سره مرتهن خپل قرض ترلاسه کړي] فَلَا يَجُوْزُ أَنْ يَقْبِضَ مَالَهُ مَعَ قِيَامِ يَدِ الْاِسْتِيْفَاءِ نو مرتهن ته پر خپل مال [قرض] قبضه کول جائز نه دي د [قرض] ترلاسه کولو د قبضې د موجودېدلو سره لِأَنَّهُ يَتَكَرَّرُ الْاِسْتِيْفَاءُ ځکه چي [په دې سره] د [قرض] ترلاسه کول مکرر کيږي عَلَى اعْتِبَارِ الْهَلَاكِ فِيْ يَدِ الْمُرْتَهِنِ د مرتهن په قبضه کي [د مرهون شي] د هلاکېدلو په اعتبار کولو سره وَهُوَ مُحْتَمَلٌ چي د هغه احتمال سته [يعني د مرهون شي د هلاکېدلو او ضايع کېدلو احتمال سته] وَإِذَا أَحْضَرَهُ او کله چي مرتهن مرهون شی حاضر کړي أُمِرَ الرَّاهِنُ بِتَسْلِيْمِ الدَّيْنِ أَوَّلًا نو اول به راهن ته د قرض ورسپارلو حکم کيږي [چي مرتهن ته يې وسپاره!] لِيَتَعَيَّنَ حَقُّهُ كَمَا تَعَيَّنَ حَقُّ الرَّاهِنِ د دې لپاره چي د مرتهن حق متعيّن سي لکه څرنګه چي د راهن حق متعيّن سوی دی تَحْقِيْقًا لِلتَّسْوِيَةِ د برابري [مساوات] ثابتولو لپاره كَمَا فِيْ تَسْلِيْمِ الْمَبِيْعِ وَالثَّمَنِ يُحْضِرُ الْمَبِيْعَ ثُمَّ يُسَلِّمُ

| الثَّمَنُ أَوَّلًا لکه څرنګه چې د مبیع او ثمن په ورسپارلو کې مبیع حاضرول کیږي بیا اول ثمن ورسپارل کیږي. |
|---|

**اللغات:** ﴿إحضار﴾ د افعال د باب مصدر دی: حاضرول، راوړل. ﴿استیفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: (حق) ترلاسه کول، پوره اخیستل، حاصلول. ﴿قیام﴾ د نصر مصدر دی: ولاړېدل او قایمېدل، موجودېدل. ﴿تسویة﴾ د تفعیل د باب مصدر دی: برابري کول، یو د بل سره برابرول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله مرتهن له راهن څخه د خپل قرض مطالبه وکړي او راهن د قرض اداء کولو ته تیار سي، نو قاضي به اول له مرتهن څخه د مرهون شي د راوړلو او حاضرولو مطالبه کوي؛ ځکه پر مرهون شي د مرتهن قبضه د استیفاء (خپل قرض ترلاسه کولو) قبضه ده. او د هغه سره د مرهون شي د هلاکېدلو احتمال هم سته. لهذا که د مرهون شي له حاضرولو څخه مخکې مرتهن ته د هغه حق یعني قرض ورکول سي، نو د هغه په حق کې به استیفاء مکرره سي او راهن غریب به محروم پاته سي، لهذا په استیفاء کې د راهن او مرتهن تر مینځ د مساوات ثابتولو لپاره به اول مرتهن د مرهون شي د حاضرولو حکم کیږي او کله چې هغه مرهون شی حاضر کړي، نو راهن ته به حکم کیږي چې د مرتهن قرض هغه ته وسپاره! ځکه چې مرهون شی موجود او متعین سو. او ستا حق په هغه کې ثابت دی، لهذا د مرتهن حق (قرض) هغه ته حواله کړه! او خپل حق یعني مرهون ځني واخله!. لکه د بائع او مشتري تر مینځ چې همدغه صورت دی چې اول بائع ته د مبیع د حاضرولو حکم کیږي او تر دې وروسته مشتري ته د ثمن ورکولو حکم کیږي چې بائع ته پیسې ورکړه!. همداسې به دلته هم د مرهون شي تر حاضرولو وروسته راهن ته حکم کیږي چې اوس نو مرتهن ته خپل قرض ورکړه.

## که مرتهن په بل ښار کې د قرض مطالبه وکړي نو څه حکم دی؟

| وَإِنْ طَالَبَهُ بِالدَّيْنِ فِي غَيْرِ الْمَلَدِ الَّذِيْ وَقَعَ الْعَقْدُ فِيْهِ او که مرتهن له راهن څخه د قرض مطالبه وکړي له هغه ښار څخه بغیر [بل ښار] کې چې عقد پکښې واقع سوی وي إِنْ كَانَ الرَّهْنُ مِمَّا لَا حَمْلَ لَهُ وَلَا مُؤْنَةَ نو که رهن [مرهون] له داسې شیانو څخه وي چې هغه لره بار او مشقت نه وي [یعني داسې ځت شی نه وي چې د هغه په وړلو کې مشقت او لګښت راځي] فَكَذٰلِكَ الْجَوَابُ نو همداسې حکم دی [یعني اول به مرتهن ته حکم کیږي چې مرهون شی حاضر کړه!] لِأَنَّ الْأَمَاكِنَ كُلَّهَا فِيْ حَقِّ التَّسْلِيْمِ كَمَكَانٍ وَاحِدٍ فِيْمَا لَيْسَ لَهُ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ ځکه د داسې شي د ورسپارلو په حق کې ټول ځایونه د یوه ځای په څېر دي |
|---|

چي هغه لره بار او مشقت نه وي وَلِهٰذَا لَا يُشْتَرَطُ بَيَانُ مَكَانِ الْإِيفَاءِ فِيهِ فِي بَابِ السَّلَمِ بِالْإِجْمَاعِ په همدې وجه د سلم په باب کې د داسې شي د ورکولو ځای بیانول بالاجماع شرط نه دي وَإِنْ كَانَ لَهُ حَمْلٌ وَمُؤْنَةٌ او که د رهن لپاره بار او مشقت وي يَسْتَوْفِي دَيْنَهُ وَلَا يُكَلَّفُ إِحْضَارَ الرَّهْنِ نو هغه به [له راهن شخصه] خپل قرض ترلاسه کوي او د رهن [مرهون] په حاضرولو سره به نه مکلف کول کیږي لِأَنَّ هٰذَا نَقْلٌ ځکه چي دا [بل ښار ته حاضرول] نقلول دی وَالْوَاجِبُ عَلَيْهِ التَّسْلِيمُ بِمَعْنَى التَّخْلِيَةِ لَا النَّقْلُ مِنْ مَكَانٍ إِلَى مَكَانٍ حال دا چي پر مرتهن [فقط] ورسپارل یعني تخلیه واجب ده. نه له یوه ځایه بل ځای ته نقلول لِأَنَّهُ يَتَضَرَّرُ بِهِ زِيَادَةَ الضَّرَرِ ځکه چي په دې سره مرتهن ته زائد [اضافي] ضرر رسیږي وَلَمْ يَلْتَزِمْ او مرتهن [د عقد رهن په وخت] ضرر پر ځان نه دی لازم کړی.

**اللغات**: ﴿حمل﴾ د ضرب مصدر دی: بار او بوج. پورته کول او بارول. وړل. ﴿مؤنة﴾ مشقت او زحمت. خرچ. لګښت. ﴿إيفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: (حق) اداء کول او ورکول. پوره کول. ﴿يستوفى﴾ د استفعال مضارع ده: ترلاسه کول. پوره اخیستل. ﴿تخلية﴾ د تفعیل مصدر دی. د دې باب څو معناوي دي چي له هغوی څخه څو دا دي: پرېښوول. ورسپارل. یعني شی بل چا ته سپارل او ور پرېښوول او خپله قبضه ځني ختمول.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي په کوم ځای کې عقد رهن سوی دی. که له هغه ځای څخه بغیر په یو بل ځای کې مرتهن له راهن څخه د خپل قرض مطالبه وکړي. مثلاً عقد رهن په هلمند کې سوی وي او مرتهن له راهن څخه په کندهار کې د خپل قرض مطالبه وکړي. نو آیا دلته به هم اول مرتهن ته حکم کیږي چي مرهون شی (هلمند ته) راوړه او حاضر یې کړه!. نو فرمایي چي دلته به اول دې ته کتل کیږي چي مرهون څنګه شی دی؟ آیا د هغه په وړلو کې تکلیف او مشقت پرېوځي. که نه؟. همدارنګه د هغه د وړلو لپاره یو سپارلې (او موټر وغیره) ته ضرورت پرېوځي یا له هغه څخه بغیر نقل کېدلای سي یا په بله وینا دا چي کوچنی شی دی لکه قلم. ګوتمې وغیره او که غټ شی دی لکه ډېر کتابونه او داسې نور. نو په اول صورت کې خو به مرتهن ته دا حکم کیږي چي اول مرهون شی حاضر کړه او بیا له راهن څخه قرض واخله!. ځکه کله چي مرهون کوچنی سپک شی دی. نو د هغه د ورسپارلو په حق کې ټوله ځایونه سره برابر دي. همدا وجه ده چي د سلم په باب کې بالاجماع په داسې شیانو کې د ورسپارلو ځای متعینول شرط نه دي.

او که مرهون شی له دویم قسم څخه وي، نو مرتهن ته به د هغه د حاضرولو تکلیف نه ورکول کیږي چې مرهون شی (هلمند ته) راوړه! بلکې هغه به له راهن څخه خپل قرض اخلي؛ ځکه د مرتهن فریضه تسلیم دی چې د هغه حقیقت تخلیه ده. نقل پر هغه ضروري نه دی (یعنې د هغه ذمه واري نقط دا ده چې مرهون شی راهن ته پریږدي او خپله قبضه ځنې ختمه کړي. نقلول او وړل پر هغه ضروري نه دي). همدارنګه په نقل سره مرتهن ته ضرر رسیږي حال دا چې هغه د عقد رهن په وخت کې ضرر پر ځان نه دی لازم کړی.

## د رهن (مرهون) د خرڅولو یو صورت

وَلَوْ سَلَّطَ الرَّاهِنُ الْعَدْلَ عَلٰى بَيْعِ الْمَرْهُوْنِ او که راهن یو عادل کس د مرهون شي پر خرڅولو وګوماري [د مرهون د خرڅولو حکم ورته وکړي] فَبَاعَهُ بِنَقْدٍ أَوْ نَسِيْئَةٍ او هغه یې په نغدو یا په پور خرڅ کړي جَازَ نو جائز دي لِإِطْلَاقِ الْأَمْرِ د حکم د مطلق والي په وجه فَلَوْ طَالَبَ الْمُرْتَهِنُ بِالدَّيْنِ بیا که مرتهن د قرض مطالبه وکړي لَا يُكَلَّفُ الْمُرْتَهِنُ إِحْضَارَ الرَّهْنِ نو مرتهن به د رهن [مرهون] پر حاضرولو نه مکلف کول کیږي لِأَنَّهُ لَا قُدْرَةَ لَهُ عَلَى الْإِحْضَارِ ځکه چې [اوس] پر حاضرولو د هغه قدرت نسته.

**اللغات:** ﴿سلّط﴾ د تفعیل ماضي ده: مسلط کول (ګومارل)، پر یو شي چا ته قدرت او قبضه ورکول. ﴿عادل﴾ مراد ځنې هغه کس دی چې راهن او مرتهن دواړو په اتفاق هغه ته شی په رهن اینبی وي(اشرف). ﴿نسیئة﴾ په تأخیر (ځنډ) سره یعنې په پور.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که راهن عادل کس ته حکم وکړي چې مرهون شی خرڅ کړه!. نو څرنګه چې د راهن دا حکم مطلق دی او د پور او نغدو څه قید پکښې نسته، لهذا دا به پور او نقد دواړو لره شامل وي، نو که عادل کس هغه په پور خرڅ کړي نو هم جائز دي، او که په همدې دوران کې مرتهن له راهن څخه د خپل قرض مطالبه وکړي، نو هغه ته د دې حق خو سته لېکن دلته به مرتهن ته دا حکم نه کیږي چې اول مرهون شی حاضر کړه!، ځکه د مرهون پر حاضرولو اوس د هغه قدرت او ختیار نسته، لکه څرنګه چې دا ښکاره خبره ده.

## که راهن مرتهن ته د مرهون شي د خرڅولو حکم وکړي؟

وَكَذَا إِذَا أَمَرَ الْمُرْتَهِنَ بِبَيْعِهِ او همدارنګه کله چې مرتهن ته د مرهون شي د خرڅولو حکم وکړي فَبَاعَهُ وَلَمْ يَقْبِضِ الثَّمَنَ او مرتهن هغه خرڅ کړي خو پر ثمن قبضه نه وکړي لِأَنَّهُ صَارَ دَيْنًا بِالْبَيْعِ بِأَمْرِ الرَّاهِنِ ځکه هغه [مرهون شی] د راهن په حکم سره د خرڅولو په وجه دَین وګرځېدی فَصَارَ

كَأَنَّ الرَّاهِنَ رَهَنَهُ وَهُوَ دَيْنٌ نو داسي سو لكه راهن چي مرهون په داسي حالت كي په رهن ورته ایښی وي چي هغه دَین وي وَلَوْقَبَضَهُ او كه مرتهن پر ثمن قبضه وكړي يُكَلَّفُ إِحْضَارَهُ نو [اوس] به د ثمن په حاضرولو سره مكلف كول كيږي لِقِيَامِ الْبَدَلِ مَقَامَ الْمُبْدَلِ ځكه چي بدل د مبدل قائم مقام وي [او دلته مرهون شی مبدل دی او دا ثمن د هغه بدل دی، نو ځكه اوس به د هغه پر ځای ثمن حاضر وي] إِلَّا أَنَّ الَّذِي يَتَوَلَّى قَبْضَ الثَّمَنِ هُوَ الْمُرْتَهِنُ خو پر ثمن د قبضې كولو متولي [او اختيار من] به يوازي همدا مرتهن وي لِأَنَّهُ هُوَ الْعَاقِدُ ځكه چي هم هاغه عقد كونكی دی فَتَرْجِعُ الْحُقُوقُ إِلَيْهِ نو د عقد حقوق به د هغه طرف ته راجع كيږي وَكَمَا يُكَلَّفُ إِحْضَارَ الرَّهْنِ لِاسْتِيفَاءِ كُلِّ الدَّيْنِ او څرنګه چي د ټوله قرض ترلاسه كولو لپاره مرتهن د رهن په حاضرولو مكلف كيږي يُكَلَّفُ لِاسْتِيفَاءِ نَجْمٍ قَدْ حَلَّ همداسي به د هغه يوه قسط [يوې حصې] ترلاسه كولو لپاره چي وخت يې راغلی وي مرتهن د رهن په حاضرولو مكلف كيږي لِاحْتِمَالِ الْهَلَاكِ ځكه د هلاكېدلو [ضايع كېدلو] احتمال يې سته ثُمَّ إِذَا قَبَضَ الثَّمَنَ بيا چي كله مرتهن پر ثمن قبضه وكړي يُؤْمَرُ بِإِحْضَارِهِ لِاسْتِيفَاءِ الدَّيْنِ نو د دَین ترلاسه كولو لپاره هغه ته به د ثمن حاضرولو حكم كيږي لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْعَيْنِ ځكه چي ثمن د عَين قائم مقام دی وَهٰذَا بِخِلَافِ مَا إِذَا قَتَلَ رَجُلٌ الْعَبْدَ الرَّهْنَ خَطَأً په خلاف د هغه صورت كله چي يو سړی مرهون غلام په خطاء سره قتل كړي حَتّٰى قُضِيَ بِهِ بِالْقِيمَةِ عَلٰى عَاقِلَتِهِ فِي ثَلَاثِ سِنِينَ تر دې چي [د قاضي له طرفه] د هغه سړي پر عاقله وو د قيمت فيصله وسي په دريو كالو كي [چي په دې موده كي به دا قيمت اداء كوي!] لَمْ يُجْبَرْ الرَّاهِنُ عَلٰى قَضَاءِ الدَّيْنِ نو راهن به د دَين پر اداء كولو نه مجبورول كيږي حَتّٰى يُحْضِرَ كُلَّ الْقِيمَةِ تر دې چي مرتهن ټوله قيمت حاضر كړي لِأَنَّ الْقِيمَةَ خَلَفٌ عَنِ الرَّهْنِ ځكه چي قيمت د رهن بدل دی فَلَا بُدَّ مِنْ إِحْضَارِ كُلِّهَا نو ځكه د ټوله قيمت حاضرول ضروري دي كَمَا لَا بُدَّ مِنْ إِحْضَارِ كُلِّ عَيْنِ الرَّهْنِ لكه څرنګه چي د ټوله عين مرهون حاضرول ضروري دي وَمَا صَارَتْ قِيمَةً بِفِعْلِهِ او دلته مرهون [غلام مقتول] د راهن په فعل سره قيمت نه دی ګرځېدلی وَفِيمَا تَقَدَّمَ صَارَ دَيْنًا بِفِعْلِ الرَّاهِنِ او په مخكيني مسئله كي د راهن فعل سره مرهون دَين

ګرځېدلی دی فَلِهٰذَا افۡتَرَقَا نو په همدې وجه دواړه مسئلې سره جلا سوې.

**اللغات:** ﴿يتولّى﴾ د تفعّل د باب مضارع ده: مشر او اختيار من كېدل، ذمه وار كېدل ﴿نجم﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه یوه معنیٰ ده: قسط، كښت، ټاكل سوې حصه، (قرض يا داسي بل حق چي پر څو حصو ووېشل سي او د هري حصې داداء كولو لپاره يې جلا وخت وټاكل سي (چي مثلاً په هره مياشت کي دومره دركوم)، نو د هغه هري حصې ته "قسط" ويل كيږي)، ﴿عاقلة﴾ د قاتل او جنايتكاره متعلّقين (اهل ديوان وغيره) او د هغه خاندان والا.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که راهن خپل مرتهن ته دا حکم وکړي چي مرهون شی خرڅ کړه او له هغه څخه خپل قرض وصول کړه! او مرتهن مرهون خرڅ کړي لېکن پر ثمن قبضه نه وکړي (يعني له مشتري څخه في الحاله پيسې نه واخلي) او بيا له راهن څخه د خپل قرض مطالبه وکړي، نو په دې صورت کي هم مرتهن ته د مطالبې حق او اختيار خو سته لېکن مرتهن ته به د مرهون شي د حاضرولو حکم نه کيږي؛ ځکه د خرڅولو په وجه مرهون عَين پاته نه سو بلکي دَين وګرځېدی، او څرنګه چي د مرهون دَين كېدل خپله د راهن په حکم سره سوي دي،لهذا دا داسي سوه لکه مرهون شی چي ديو چا دَين وي او راهن هغه په رهن ايښی وي، او ښکاره خبره ده چي کله مرهون دَين وي، نو مرتهن ته د مطالبې حق خو سته لېکن د مرهون حاضرول پر هغه ضروري نه وي، همداسي په صورت مسئله کي چي کله مرتهن له راهن څخه د خپل دَين مطالبه وکړي، نو هغه به د مرهون په حاضرولو نه مکلف کول کيږي.

لېکن کله چي مرتهن له مشتري څخه د مرهون شي ثمن ترلاسه کړي، نو څرنګه چي ثمن د مرهون قائم مقام دي، لهذا اوس به مرتهن د ثمن په حاضرولو مکلف کول کيږي.

إلا أن إلخ: د دې تعلق د ثمن نه ترلاسه کولو د صورت سره دی، يعني که مرتهن رهن خرڅ کړي او د هغه ثمن ترلاسه او قبضه نه کړي، نو وروسته د ثمن ترلاسه کولو حق فقط مرتهن لره دی، نه راهن لره؛ ځکه همدا مرتهن عاقد او مباشر دی، او دعقد حقوق دعاقد وطرف ته راجع کيږي.

وكما يكلّف إلخ: د دې حاصل دا دی چي ځيني وخت راهن ومرتهن ته قرض په يوه ځل ورکوي او کله يې په قسط (کښت) يعني په حصه، حصه سره اداء کوي، فرمايي چي څرنګه په يوه ځل د قرض اداء كېدلو په صورت کي ټوله مرهون شی يا د هغه ټوله ثمن حاضرول پر مرتهن لازم او ضروري دي، همداسي په قسط سره د اداء كېدلو په صورت کي هم داول قسط د پوره كېدلو او اداء كولو په وخت کي پر مرتهن د ټوله مرهون حاضرول لازم دي؛ ځکه د مرهون شي د هلاكېدلو او ضايع كېدلو احتمال

سته. او ښکاره خبره ده چي که مرهون هلاک او ضايع سي نو بيا پر راهن د قرض اداء کول لازم پاته نه سوه. نو ځکه په راهن او مرتهن کي د مساوات ثابتولو لپاره داول قسط پوره کېدلو او اداء کېدلو پر موقع هم پر مرتهن د ټوله مرهون حاضرول لازم او ضروري دي.

**وهٰذا بخلاف إلخ**: صاحب د عنايې رَحِمَهُ الله ليکلي دي چي په "وهٰذا" سره مصنف رَحِمَهُ الله پورتني متن "وكذا إذا أمر المرتهن إلخ" ته اشاره کړې ده. او په دې عبارت سره د هغه مقصد دا دی چي که مرتهن د راهن په حکم سره مرهون شی خرڅ کړي او بيا د خپل قرض مطالبه وکړي. نو که مرتهن پر ثمن قبضه نه وي کړي. نو هغه به د مرهون شي پر حاضرولو يا د ثمن پر حاضرولو نه مجبورول کيږي. بلکي بغير له حاضرولو هم پر راهن د هغه قرض اداء کول لازم دي؛ ځکه په دې صورت کي د عين يعني د مرهون دين کېدل د راهن په حکم سره واقع سوي دي. نو ځکه د مرهون له إحضار څخه بغير به راهن د مرتهن قرض اداء کوي.

لېکن که صورت داسي وي چي مرهون يو غلام وي يعني راهن خپل غلام مرتهن ته په رهن ورکړی وي او يو څوک هغه د مرتهن سره خطاءً قتل کړي. بيا قاضي د قاتل پر وارثانو د هغه غلام قيمت واجب کړي او هغوی د قسط په حساب سره په دريو کالو کي د قيمت په اداء کولو مکلف کړي (چي تاسي به د دريو کالو په موده کي د غلام قيمت مرتهن ته ورکوئ!) اوس که د دريو کالو تر پوره کېدلو او د غلام د ټوله قيمت تر اخيستلو مخکي مرتهن له راهن څخه د خپل دَين مطالبه وکړي. نو راهن به د هغه پر اداء کولو نه مجبورول کيږي. تر دې چي د دريو کالو په پوره کېدلو سره مرتهن د ټوله غلام قيمت حاضر کړي. نو که مرتهن ټوله قيمت حاضر کړي او راهن ته يې ورکړي، نو د مرتهن قرض به له هغه څخه ورکول کيږي. وَإلّا فلا: ځکه په صورت مسئله کي د غلام قيمت د غلام د عَين (ذات) بدل دی. لهذا د قرض ترلاسه کولو په وخت کي چي څرنګه د ټوله عَين حاضرول ضروري دي، همداسي د عَين ټوله قيمت حاضرول هم ضروري دي. او بيا څرنګه چي په دې صورت کي د عَين په ثمن کېدلو او دَين کېدلو کي د راهن هيڅ لاس نسته. نو ځکه په دې حواله سره هم د ټوله قيمت تر حاضرولو مخکي هغه د قرض پر اداء کولو نه سي مجبورول کېدلای. او په همدې حواله سره دغه مسئله له مخکنۍ مسئلې څخه جلا ده چي په مخکنۍ مسئله کي د عَين په دَين کېدلو کي د راهن لاس سته او دلته نسته. (احسن الهدايه)

## که مرتهن د راهن په حکم سره مرهون شی بل چا ته په امانت کښېږدي (حکم او تفصيل)

وَلَوْ وَضَعَ الرَّهْنَ عَلٰى يَدِ الْعَدْلِ او که راهن د عادل کس پر لاس [يعني د عادل سره] رهن کښېږدي وَأَمَرَ أَنْ يُوْدِعَهُ غَيْرَهُ او حکم ورته وکړي چي بل چا ته هغه په امانت کښېږده! فَفَعَلَ او عادل کس داسي وکړي ثُمَّ جَاءَ الْمُرْتَهِنُ يَطْلُبُ دَيْنَهُ بيا مرتهن راسي چي د خپل قرض طلب کوي لَا يُكَلَّفُ إِحْضَارَ الرَّهْنِ نو مرتهن به د رهن [مرهون] په حاضرولو نه مکلف کول کيږي لِأَنَّهُ لَمْ يُؤْتَمَنْ عَلَيْهِ حَيْثُ وَضَعَ

عَلٰى يَدِ غَيْرِهٖ ځکه [دراهن له طرفه] پر هغه اعتماد نه دی سوی په دې حیثیت سره چې راهن [مرهون شی] د بل چا سره ایښی دی فَلَمْ يَكُنْ تَسْلِيْمُهُ فِي قُدْرَتِهٖ نو د مرهون ورسپارل د مرتهن په قدرت کې نه دي.

**اللغات:** ﴿يُودع﴾ د افعال د باب مضارع ده: په امانت ایښوول. ﴿لم یو تمن﴾ د افتعال له بابه د مضارع مجهولي صیغه ده: پریو چا اعتماد او بروسه کول. یو څوک امین او قابل اعتماد ګڼل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که زید له خالد څخه قرض واخلي او خالد د رهن مطالبه ځنې وکړي (چې ما ته یو شی په رهن کښېږده!). لېکن زید له خالد څخه بغیر بل عادل کس مثلاً حامد تـه رهن کښېږدي او هغه تـه دا اجازه هـم ورکـړي چـې کـه تـه وغـواړې! نو دا مرهون شـی بـل چـا تـه پـه امانت ایښوولای سې. او دغه کس (حامد) همداسي وکړي. یعني مرهون شی بل چا ته کښېږدي. بیا تر دې وروسته مرتهن (یعني قرض ورکونکی خالد) له مدیون راهن (زید څخه کوم چې بل چا ته رهن ایښی دی) د خپل قرض مطالبه وکړي. نو راهن (زید) ته پکار دی چې مرتهن (قرض ورکونکي خالد) ته خپل قرض ورکړي او هغه به د مرهون په حاضرولو سره نه مکلف کول کیږي؛ ځکه کله چې راهن هغه تـه رهـن نـه دی ایښی او پر هغه یې اعتماد نه دی کړی بلکي بل چا ته یې رهن ایښی دی. نو ښکاره ده چې هغه تـه د دې هیڅ حق نسته چې له مرتهن څخه د مرهون حاضرولو مطالبه وکړي. او بل د مطالبې کولو څه فایده هم نسته، ځکه کله چې دلته مرتهن (خالد) پر مرهون قبضه نه ده کړي او لیدلی یې لا نـه دی. نو هغه به یې څنګه حاضر کړي!؟.

**یادونه:** ښکاره دي وي چې په دې مسئله او را روانو دوو مسئلو کې له "مرتهن" څخه مراد قرض ورکونکی کس (خالد) مراد دی. حالانکې په حقیقت کې هغه مرتهن نه دی. بلکي پـه دې مسئلو کـې مرتهن خو عادل کس دی.

## د پورتنی مسئلې نور وضاحت

وَلَوْ وَضَعَهُ الْعَدْلُ فِيْ يَدِ مَنْ فِيْ عِيَالِهٖ او که عادل کس رهن [مرهون] د داسي چا سره کښېږدي کوم چې د ده له کورنۍ والا څخه وي وَغَابَ او عادل غائب سي وَطَلَبَ الْمُرْتَهِنُ دَيْنَهُ او مرتهن د خپل قرض طلب وکړي وَالَّذِيْ فِيْ يَدِهٖ يَقُوْلُ او د چا په لاس کي چې رهن دی هغه وایي أَوْدَعَنِيْ فُلَانٌ وَلَا أَدْرِيْ لِمَنْ هُوَ چې دا ما ته فلانکي ایښی دی او زه خبره نه یم چې دا د چا دی؟ يُجْبَرُ الرَّاهِنُ عَلٰى قَضَاءِ الدَّيْنِ نو راهن به د قرض پر اداء کولو مجبورول کیږي لِأَنَّ إِحْضَارَ الرَّهْنِ لَيْسَ عَلَى الْمُرْتَهِنِ ځکه د رهن حاضرول د مرتهن پر ذمه نه دي لِأَنَّهُ لَمْ يَقْبِضْ شَيْئًا ځکه هغه پر هیڅ شي قبضه نه ده کړې

وَكَذٰلِكَ إِذَا غَابَ الْعَدْلُ بِالرَّهْنِ وَلَا يُدْرٰى أَيْنَ هُوَ او همدارنگه کله چي عادل کس د رهن سره غائب سي او دا معلومه نه وي چي هغه چيري دی؟ لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿عِيَال﴾ کورني والا، هغه کسان کوم ته چي سړی نفقه او خرچه ورکوي. د سياق تفصيله.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دی که عادل کس دا مرهون شی يو داسي چا ته په امانت کښېږدي کوم چي د ده نه عيال او کورني شخصه وي (مثلاً زبير ته). بيا مرتهن راسي د خپل قرض مطالبه وکړي او د عادل له طرفه امين کس (زبير) هغه ته ووايي چي د فلانکي (عادل) امانت خو زما سره موجود دی لېکن په دې نه يم خبر چي هغه د چا دی؟. نو په دې صورت کي به هم راهن (زيد) د مرتهن (قرض ورکونکي خالد) پر قرض اداء کولو مجبورول کيږي او له مرتهن شخصه به د مرهون شي د حاضرولو مطالبه نه کيږي؛ ځکه دلته د مرهون حاضرول د مرتهن پر ذمه نه دي. ځکه د مخکي په څېر دلته هم مرهون شی مرتهن ته نه دی اينبوول سی او مرتهن قبضه نه ده پر کړې، نو هغه به يې څنګه حاضر کړي!؟.

همدارنګه که عادل کس مرهون شی يووسي غائب سي او درک يې معلوم نه وي چي هغه چيري دی، نو هم به راهن د قرض پر اداء کول مجبورل کيږي او مرتهن به د مرهون په حاضرولو نه مکلف کول کيږي د همدې مخکيني دليل په وجه (چي دلته د مرهون حاضرول د مرتهن پر ذمه نه دي چي هغه قبضه نه ده پر کړې).

## که امين کس د رهن انکار وکړي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ أَنَّ الَّذِي أَوْدَعَهُ الْعَدْلُ جَحَدَ الرَّهْنَ او که هغه کس کوم ته چي عادل کس رهن په امانت اينبی دی [يعني مودَع] له رهن شخصه انکار وکړي وَقَالَ: هُوَ مَالِيْ او ووايي: چي دا زما مال دی لَمْ يَرْجِعِ الْمُرْتَهِنُ عَلَى الرَّاهِنِ بِشَيْءٍ نو مرتهن په هيڅ شي سره پر راهن رجوع نه سي کولای [يعني هيڅ قرض هم نه سي ځني اخيستلای] حَتّٰى يُثْبِتَ كَوْنَهُ رَهْنًا تر دې چي د هغه رهن کېدل ثابت کړي لِأَنَّهُ لَمَّا جَحَدَ ځکه کله چي مودَع انکار وکړی فَقَدْ تَوَى الْمَالُ نو مرهون مال ضايع سو وَالتَّوٰى عَلَى الْمُرْتَهِنِ او ضايع کېدل د مرتهن پر ذمه وي فَيَتَحَقَّقُ اسْتِيْفَاءُ الدَّيْنِ نو د قرض ترلاسه کول به متحقق کيږي [چي ګواکي مرتهن خپل قرض ترلاسه کړی] وَلَا يَمْلِكُ الْمُطَالَبَةَ بِهِ او مرتهن به د قرض مطالبې کولو ملکيت[اختيار] نه لري.

**اللغات**: ﴿تَوٰى﴾ د سمع د باب ماضي ده: هلاکېدل، ضايع کېدل او بربادېدل (داسي ضايع کېدل چي بيا يې هيڅ اُميد نه وي).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که عادل کس یو چا مثلاً حامد ته مرهون مال په امانت ایښی وي، لیکن حامد له هغه څخه منکر سي او وواییي چي زما سره د چا امانت نسته او دا خو زما خپل ذاتي مال دی، نو په دې صورت کي مرهون مال د مرتهن (قرض ورکونکي) په قبضه کي هلاک او ضایع شمېرل کیږي او هغه ته له راهن څخه د قرض د سطالبې حق نسته، ځکه د مودع (حامد) تر انکار وروسته مرهون مال ضایع سو، او د ضایع کېدلو ذمه واري مرتهن (قرض ورکونکي) ته راجع کیږي؛ ځکه راهن چي کله له مرتهن څخه بغیر بل چا ته رهن ایږدي، نو هغه د ده او د مرتهن په اتفاق سره وي، لهذا په صورت مسئله چي څرنګه د راهن مال ضایع سو، نو همداسي د مرتهن د استیفاء (قرض اخیستلو) حق هم ختمیږي او د قرض حق یې نه پاتیږي، ها! که په دعوه او ګواهانو سره مرتهن د دې مال رهن کېدل ثابت کړي او د امانت (ودیعت) اړخ معدوم او منقطع کړي، نو په دې صورت کي د هغه حق پاتیږي؛ ځکه مرهون مال مضمون دی. (احسن الهدایه)

## مرتهن تر کومه وخته مرهون شی راګرځولای سي؟

قَالَ: وَإِنْ كَانَ الرَّهْنُ فِي يَدِهِ فرمایي: او که رهن د مرتهن په قبضه کي وي لَيْسَ عَلَيْهِ أَنْ يُمَكِّنَهُ مِنَ الْبَيْعِ نو پر مرتهن دا لازمه نه ده چي راهن ته د هغه د خرڅولو قدرت [او اختیار] ورکړي حَتّٰى يَقْضِيَهُ الدَّيْنَ تر دې چي راهن د هغه قرض اداء کړي لِأَنَّ حُكْمَهُ الْحَبْسُ الدَّائِمُ إِلٰى أَنْ يُقْضَى الدَّيْنُ ځکه د رهن حکم [د مرهون] دائمي راګرځول دي تر دې چي قرض اداء کړی سی [یعني د رهن حکم دا دی چي مرتهن د قرض اداء کولو تر وخته مرهون شی راګرځولای سي] عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چي [د کتاب الرهن په اوله حصه کي] موږ دا بیان کړه.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چي تر څو مرتهن خپل قرض ترلاسه نه کړي، تر هغه وخته ده ته حق سته چي رهن (مرهون) د ځان سره راوګرځوي او راهن ته یې نه وسپاري، لهذا که راهن د رهن خرڅول غواړي، نو پر مرتهن دا ضروري نه ده چي راهن ته د هغه د خرڅولو اختیار او اجازه ورکړي او د خرڅولو لپاره رهن هغه ته وسپاري.

## د مرهون شي د واپس کولو لپاره د ټوله قرض واپس کول ضروري دي (په دې هکله دري مسئلې)

وَلَوْ قَضَاهُ الْبَعْضَ او که راهن مرتهن ته څه قرض وراداء کړي [نه ټوله] فَلَهُ أَنْ يَحْبِسَ كُلَّ الرَّهْنِ حَتّٰى يَسْتَوْفِيَ الْبَقِيَّةَ نو مرتهن ته دا حق سته چي ټوله رهن راوګرځوي تر دې چي پاته قرض ترلاسه کړي اِعْتِبَارًا بِحَبْسِ الْمَبِيعِ د مبیع پر راګرځولو په قیاس کولو سره فَإِذَا قَضَاهُ الدَّيْنَ بیا چي

کله راهن مرتهن ته ټوله قرض ور اداء کړي قِيْلَ لَهُ: سَلِّمِ الرَّهْنَ إِلَيْهِ نو مرتهن ته به ويل کيږي چي رهن [مرهون] راهن ته وسپاره! لِأَنَّهُ زَالَ الْمَانِعُ مِنَ التَّسْلِيمِ ځکه چي د ورسپارلو مانع زائل سو لِوُصُوْلِ الْحَقِّ إِلَى مُسْتَحِقِّهِ ځکه حق خپل مستحق ته ورسېدی فَلَوْهَلَكَ قَبْلَ التَّسْلِيمِ که له ورسپارلو څخه مخکي رهن هلاک سي اِسْتَرَدَّ الرَّاهِنُ مَاقَضَاهُ نو راهن به له مرتهن څخه قرض واپس اخلي کوم چي يې ورکړی دی لِأَنَّهُ صَارَ مُسْتَوْفِيًا عِنْدَ الْهَلَاكِ بِالْقَبْضِ السَّابِقِ ځکه هلاکېدلو په وخت کي د مخکني قبضې په وجه مرتهن [د خپل قرض] ترلاسه کونکی وګرځي فَكَانَ الثَّانِيْ اِسْتِيْفَاءً بَعْدَ اسْتِيْفَاءٍ نو دويم ترلاسه کول به [د قرض] له ترلاسه کولو څخه وروسته بيا ترلاسه کول وي فَيَجِبُ رَدُّهُ نو ځکه د هغه [ثاني] واپس کول به واجب وي.

**اللغات:** ﴿قضاه﴾ د ضرب د باب ماضي ده: اداء کول، چالانه خپل حق ورکول. ﴿استردّ﴾ د استفعال د باب ماضي ده: واپس اخيستل.

**تشريح:** په دې عبارت کي درې مسئلې ذکر سوي دي:

①... مخکي په بيع کي ذکر سوه چي بائع ته دا حق سته چي تر هغه وخته له مشتري څخه راوګرځوي تر څو چي مشتري ثمن اداء نه کړي، همدارنګه که مشتري څه ثمن اداء کړي، نه ټول بيا هم بائع ته دا حق سته چي د ټوله ثمن ترلاسه کولو پوري مبيع راوګرځوي. همدغسي د حِکم هم دی چي که راهن څه قرض اداء کړي او څه قرض پاته سي، نو مرتهن ته حق سته چي تر څو راهن ټوله قرض اداء نه کړي، تر هغه وخته مرهون راوګرځوي.

②... کله چي راهن ټوله قرض اداء کړي، نو بيا مرتهن ته دا حق نسته چي مرهون شی راوګرځوي ځکه چي مرتهن خپل حق ترلاسه کړی. نو پر کوم بنياد چي مرتهن ته د حبس حق حاصل وو. بنياد ختم سو.

③... که راهن ټوله قرض اداء کړي خو د قرض تر اداء کولو وروسته نابېره مرهون شی د مرتهن هلاک سي، نو راهن چي کوم قرض اداء کړی دی هغه به واپس ځني اخلي؛ ځکه د مرهون د هلاکېدو په وجه مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی وګرځېدی، نو دا به مکرر ترلاسه کول سي (چي يو ځل مرهون ترلاسه او ضايع کړي او اوس د هغه عوض قرض هم ترلاسه کوي) کوم چي صحيح نه دي، نو له څخه د بچ کېدلو لپاره پر مرتهن د راهن قرض واپس کول ضروري دي.

## د عقد رهن د فسخ کولو په صورت کې هم پورتني حکم دی (په دې هکله درې مسئلې)

وَكَذٰلِكَ لَوْ تَفَاسَخَا الرَّهْنَ او همدارنګه که راهن او مرتهن رهن سره فسخ کړي لَهُ حَبْسُهُ مَا لَمْ يَقْبِضِ الدَّيْنَ أَوْ يُبْرِئْهُ نو مرتهن ته د مرهون شي د راګرځولو حق سته تر دې چې پر خپل قرض قبضه وکړي يا راهن له قرض څخه بري کړي وَلَا يَبْطُلُ الرَّهْنُ إِلَّا بِالرَّدِّ عَلَى الرَّاهِنِ عَلىٰ وَجْهِ الْفَسْخِ او رهن نه باطليږي مګر پر راهن د فسخ په توګه په واپس کولو سره [يعني چې مرتهن د فسخ په غرض راهن ته مرهون واپس کړي] لِأَنَّهُ يَبْقَىٰ مَضْمُوْنًا مَا بَقِيَ الْقَبْضُ وَالدَّيْنُ ځکه چې رهن تر هغه وخته مضمون پاتيږي تر څو چې قبضه او قرض پاته وي وَلَوْ هَلَكَ فِيْ يَدِهِ او که رهن [مرهون] د مرتهن په قبضه کې هلاک سي سَقَطَ الدَّيْنُ إِذَا كَانَ بِهِ وَفَاءٌ بِالدَّيْنِ نو قرض ساقطيږي [په دې شرط] کله چې په هغه سره قرض پوره کيږي لِبَقَاءِ الرَّهْنِ د رهن پاتېدلو په وجه.

**تشريح:** په دې عبارت کې هم درې مسئلې ذکر سوي دي:

①... څرنګه چې مرتهن ته دا حق سته چې تر څو خپل قرض ترلاسه نه کړي. تر هغه وخته مرهون شی راو نه ګرځوي، همداسې که راهن او مرتهن دواړه په زباني توګه رهن فسخ کړي. خو تر اوسه مرهون شی د مرتهن په قبضه کې وي، نو رهن نه فسخ کيږي، لهذا دلته هم مرتهن ته د مرهون راګرځولو حق سته تر دې چې راهن د هغه قرض اداء کړي. يا تر دې چې مرتهن راهن له قرض څخه بري کړي. د قرض له اداء کولو يا بري کولو څخه وروسته د مرتهن د راګرځولو حق (حق الحبس) ختميږي.

②... رهن هغه وخت باطليږي کله چې مرتهن د فسخ په توګه راهن ته مرهون شی واپس کړي. کنې تر څو چې د قرض سره د مرتهن قبضه متصله او باقي پاته وي. پر هغه د رهن احکام جاري کيږي او د مخکې په څېر رهن مضمون کيږي.

③... رهن په زباني فسخ سره هغه وخت باطليږي کله چې مرهون شی راهن ته وسپارل سي. کنې نه باطليږي. لهذا که تر زباني فسخ وروسته مرهون شی راهن ته واپس نه کړی سي او د مرتهن په قبضه کې هغه هلاک سي، نو دا رهن مضمون دی (يعني پر مرتهن د هغه ضمان لازم دی). نو که د هغه قيمت د قرض په اندازه وي. نو د مرتهن قرض ساقطيږي او که قيمت يې تر قرض کم وي او قرض زيات وي، نو پاته قرض به له راهن څخه اخلي. او دلته د قرض ساقطېدلو وجه دا ده چې د مرهون شي له واپس کولو څخه مخکې رهن باقي دی. لهذا دلته به د رهن احکام جاري کيږي.

## له مرهون شي څخه د نفع اخيستلو حکم

وَلَيْسَ لِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يَنْتَفِعَ بِالرَّهْنِ او مرتهن لره دا حق نسته چي له رهن [مرهون] څخه نفع واخلي لَا بِاسْتِخْدَامٍ وَلَا بِسُكْنَى وَلَا لُبْسٍ نه د خدمت اخيستلو په توګه، نه د اوسېدلو په توګه او نه د اغوستلو په توګه إِلَّا أَنْ يَأْذَنَ لَهُ الْمَالِكُ مګر دا چي مالک [راهن] هغه ته اجازت ورکړي لِأَنَّ لَهُ حَقَّ الْحَبْسِ دُونَ الِانْتِفَاعِ ځکه چي مرتهن ته فقط [د مرهون شي] د راګرځولو حق سته، نه د نفع اخيستلو وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَبِيعَ إِلَّا بِتَسْلِيطٍ مِنَ الرَّاهِنِ او مرتهن ته دا حق نسته چي رهن خرڅ کړي مګر د راهن له طرفه په ګومارلو سره [يعني چي راهن هغه ته د خرڅولو قدرت او اختيار ورکړي] وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُؤَاجِرَ وَيُعِيرَ او هغه ته دا حق نسته چي رهن په اجاره او عاريت سره وکړي لِأَنَّهُ لَيْسَ لَهُ وِلَايَةُ الِانْتِفَاعِ بِنَفْسِهِ ځکه چي هغه ته خپله د نفع اخيستلو ولايت [او اختيار] نسته فَلَا يَمْلِكُ تَسْلِيطَ غَيْرِهِ عَلَيْهِ نو هغه به پر نفع اخيستلو د بل چا د ګومارلو اختيار هم نه لري فَإِنْ فَعَلَ او که داسي وکړي كَانَ مُتَعَدِّيًا نو هغه به تعدی کونکی وي وَلَا يَبْطُلُ عَقْدُ الرَّهْنِ بِالتَّعَدِّي او په دې تعدی سره عقد رهن نه باطلېږي.

**اللغات:** ﴿حبس﴾ د ضرب مصدر دی: بندول، راګرځول، منع کول. ﴿يؤاجر﴾ د افعال د باب مضارع ده: په أجرت او په کرايه ورکول. ﴿يعير﴾ مخکني صيغه ده: د افعال مصدر دی: په عاريت ورکول. عاريتاً ورکول. (اعاره: "تمليكُ المنافع بلا عوض على أن ترد العين" ته وايي. يعني چي يو سړی څ ته يو شی مفت (بلا عوضه) ورکړي او ورته ووايي چي ته خپل نفع څني واخله! او بيا يې بير ته ما ته راکړه!). ﴿مُتعدِّي﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: زياتوب او تجاوز کونکی دی، نا حقه تصرّف کونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د راهن له اجازې بغير له مرهون شي څخه نفع او فايده اخيستل د مرتهن لپاره جائز نه دي، مثلاً که مرهون غلام وي، نو مرتهن ته دا حق نسته چي له هغه څخه خدمت واخلي، او که مرهون کور وي، نو په هغه کي د اوسېدلو حق ورته نسته. او که مرهون کپړه وي، نو د هغه د اغوستلو حق ورته نسته، ځکه په مرهون شي کي مرتهن ته فقط د حبس حق سته چي هغه د ځان سره وساتي، د انتفاع هيڅ حق ورته نسته، او استخدام وغيره د انتفاع له قبيل څخه دي، نو ځکه دا ټوله ممنوع دي.

وليس له أن يبيع إلخ: فرمايي د راهن له اجازې او تسليط څخه بغير مرتهن ته د رهن خرڅولو حق هم نسته، او نه دا حق ورته سته چې يو چا ته رهن په اُجرت يا عاريتاً ورکړي؛ ځکه کله چې خپله مرتهن ته له رهن څخه د نفع اخيستلو ولايت او اختيار نسته، نو دغه ته به ددې اختيار څنګه وي چې بل چا ته له رهن څخه د نفع اخيستلو اجازه ورکړي! او که مرتهن داسې وکړي نو دا د هغه له طرفه تعدي او زياتوب دی. خو بيا هم د هغه په دغه فعل سره د عقد رهن پر صحت هيڅ اثر نه لوېږي او عقد د مخکې په څېر صحيح پاتېږي. (احسن الهدايه)

## مرتهن په کومو کسانو سره د مرهون شي حفاظت کولای سي؟

قَالَ: وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يَحْفَظَ الرَّهْنَ بِنَفْسِهِ وَزَوْجَتِهِ وَوَلَدِهِ وَخَادِمِهِ الَّذِي فِي عِيَالِهِ فرمايي: او مرتهن لره جائز دي چې د رهن حفاظت وکړي خپله او په خپلې ښځې او خپل بچي سره او په خپل هغه خادم سره کوم چې د ده په کورنۍ والا کې داخل وي قَالَ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ: مَعْنَاهُ أَنْ يَكُونَ الْوَلَدُ فِي عِيَالِهِ أَيْضًا صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: ددې مطلب دا دی چې بچی هم د ده په کورنۍ والا کې وي وَهَذَا لِأَنَّ عَيْنَهُ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ او دا حکم ځکه دی چې د رهن [مرهون] عين د مرتهن په قبضه کې امانت دی فَصَارَ كَالْوَدِيعَةِ نو هغه د امانتاً اېښوول سوي شي په څېر سو وَإِنْ حَفِظَهُ بِغَيْرِ مَنْ فِي عِيَالِهِ أَوْ أَوْدَعَهُ او که مرتهن په داسې کس سره د رهن حفاظت وکړي کوم چې د مرتهن له کورنۍ والا څخه نه وي يا مرتهن هغه ته رهن امانتاً کښېږدي ضَمِنَ نو مرتهن ضامن کېږي وَهَلْ يَضْمَنُ الثَّانِي او آيا هغه دويم کس هم ضامن کېږي فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ نو دا پر اختلاف دي وَقَدْ بَيَّنَّا جَمِيعَ ذَلِكَ بِدَلَائِلِهِ فِي الْوَدِيعَةِ او دا ټوله خبري مو د خپلو دلائلو سره په كتاب الوديعة کې بيان کړي دي.

**اللغات:** ﴿عِيَال﴾ کورنۍ والا، هغه کسان کوم ته چې سړی نفقه او خرچه ورکوي. ﴿أمانة﴾ امانت. ﴿وديعة﴾ په امانت اېښوول سوی مال، امانتاً اېښوول سوی شی. جمع: وَدَائِع. **فايده:** د امانت او وديعت تر مينځ فقط د عموم او خصوص فرق دی، يعني امانت عام دی او وديعت خاص دی. وديعت دې ته وايي چې انسان په خپل قصد او اراده سره بل چا ته د حفاظت لپاره خپل شی کښېږدي، او امانت هر هغه شي ته وايي چې پر انسان د هغه حفاظت کول ضروري وي. برابره ده دا شی هغه ته يو چا په قصد او د عقد په ذريعه اېښی وي. يا دي يو چا له قصد او عقد څخه بغير د هغه لاس ته راغلی وي.

**تشریح**: صورت د مسئلې خو بالکل څرګند او آسانه دی چې د رهن (مرهون شي) د حفاظت ذمه واري پر مرتهن ده. او دا هم جائز دي چې مرتهن د هغه حفاظت په خپلې ښځې یا بچي سره یا په خپل هغه خادم سره وکړي کوم چې د مرتهن په کورنۍ کي داخل وي. کنې که مرتهن د نورو کسانو په ذریعه د رهن حفاظت وکړي او بیا مرهون شی هلاک سي. نو د غصب په څېر پر هغه د ټوله قیمت ضمان واجبیږي (یعني څرنګه چې پر غاصب د غصب کړی سوي شي ټوله قیمت واجبیږي. همداسي پر مرتهن هم د ټوله رهن قیمت واجبیږي).

**یادونه**: د عیال کېدلو مدار د هغه په کور کي اوسېدل دي، برابره ده پر هغه یې نفقه واجب وي. که نه. لکه د هغه ښځه، بچیان، خادم او د هغه میاشتنانه مزدور دا ټوله د هغه عیال شمېرل کیږي. لېکن ورځنی مزدور په عیال کي داخل نه دی. (شامي ج:۵. ص:۳۱۳)

**یادونه**: عینِ مرهون ودیعت او امانت دی. او د امانت همدا احکام دي کوم چې ذکر سول. مصنف رَحِمَهُ الله د دې پوره تفصیل د هدایه جلد ثالث پر ص:۲۵۷ بیان کړی دی. د تفصیل او وضاحت لپاره هغه مطالعه کړئ!

## په رهن کي د تعدی او نا حقه تصرف کولو حکم

وَإِذَا تَعَدَّى الْمُرْتَهِنُ فِي الرَّهْنِ او کله چې مرتهن په رهن کي زیاتوب [نا حقه تصرف] وکړي ضَمِنَهُ ضَمَانَ الْغَصْبِ بِجَمِيعِ قِيمَتِهِ نو مرتهن د غصب د ضمان په څېر د رهن د ټوله قیمت ضامن کیږي لِأَنَّ الزِّيَادَةَ عَلَى مِقْدَارِ الدَّيْنِ أَمَانَةٌ ځکه د قرض تر مقدار زیاتوب [زائد مقدار] امانت دی وَالْأَمَانَاتُ تُضْمَنُ بِالتَّعَدِّي او د تعدی په وجه د امانتونو ضمان لازمیږي.

**اللغات**: ﴿تعدی﴾ د تفعل د باب ماضي ده: زیاتوب او تجاوز کول. نا حقه تصرف کول.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که د مرتهن له طرفه په رهن (مرهون) کي تعدی او زیاتوب وسي. نو څرنګه چې پر غاصب د غصب کړی سوي شي د ټوله قیمت ضمان واجبیږي. همداسي پر مرتهن هم د ټوله رهن د قیمت ضمان واجبیږي؛ ځکه که څه هم د رهن هغه مقدار په امانت کي داخل دی کوم چې له قرض څخه زائد وي او د امانت ضمان نسته. خو څرنګه چې دلته د مرتهن له طرفه تعدی واقع سوې ده. او د تعدی په صورت کي د امانتونو ضمان هم واجبیږي. نو ځکه دلته د تعدی په وجه پر مرتهن د ټوله رهن ضمان واجب دی.

## د رهن د ګوتمې (مرهونه ګوتمې) د استعمالولو حکم

فَلَوْ رَهَنَهُ خَاتَمًا او که راهن مرتهن ته ګوتمي په رهن [په ګروا کښېږدي فَجَعَلَهُ فِيْ خِنْصِرِهِ او مرتهن هغه په خنصر ګوته کي واچوي فَهُوَضَامِنٌ نو هغه ضامن دی لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ بِالْاِسْتِعْمَالِ ځکه په استعمالولو سره مرتهن زياتوب کونکی دی لِأَنَّهُ غَيْرُمَأْذُوْنٍ فِيْهِ ځکه د استعمال په هکله مرتهن ته اجازه نه ده ورکول سوي وَإِنَّمَا الْإِذْنُ بِالْحِفْظِ او اجازه خو صرف د حفاظت کولو [ورته] سته [چي مرهون شی د ځان سره وساتي او حفاظت يې وکړي] وَالْيُمْنٰى وَالْيُسْرٰى فِيْ ذٰلِكَ سَوَاءٌ او راسته او چپه لاس په دې باره کي سره برابر دي لِأَنَّ الْعَادَةَ فِيْهِ مُخْتَلِفَةٌ ځکه د ګوتمې په استعمالولو کي [د خلګو] عادت مختلف دی [ځوک يې د راسته لاس په خنصر ګوته اغوندي او ځوک يې...] وَلَوْجَعَلَهُ فِيْ بَقِيَّةِ الْأَصَابِعِ او که مرتهن دا ګوتمې [له خنصر څخه بغير] په نورو ګوتو کي واچوي كَانَ رَهْنًا بِمَا فِيْهِ نو دا رهن دی په هغه مقدار سره د کوم په عوض کي چي دا دی [نو هيڅ ضمان نه پر لازميږي] لِأَنَّهُ لَايُلْبَسُ كَذٰلِكَ عَادَةً ځکه عادتاً دا ډول ګوتمې نه اغوستل کيږي فَكَانَ مِنْ بَابِ الْحِفْظِ نو دا به د حفاظت کولو له باب څخه وي وَكَذَا الطَّيْلَسَانُ إِنْ لَبِسَهُ لُبْسًا مُعْتَادًا او همدارنګه [د رهن] څادر که په عادي طريقه سره يې واغوندي ضَمِنَ نو ضامن کيږي وَإِنْ وَضَعَهُ عَلٰى عَاتِقِهِ او که پر اوږه يې کښېږدي لَمْ يَضْمَنْ نو نه ضامن کيږي.

**اللغات**: ﴿خنصر﴾ د خچې (کوچنۍ) ګوتې ترڅنګ ګوته چي عموماً په هغې ګوتمې اغوستل کيږي. د ګوتمې ګوته. ﴿طيلسان﴾ يو ډول حاشيه داره څادر (پټو) وو. ﴿مُعتاد﴾ د افتعال د باب اسم مفعول دی: عادت کړی سوی (عادي). هغه څه کوم چي د خلګو په عُرف کي عادت وي. د عادت مطابق. په عُرف او عادت کي مُروَجه طريقه.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي د راهن له اجازې پرته مرتهن ته دا اختيار نسته چي مرهون شی استعمال کړي يا په هغه کي يو ډول تصرف وکړي. همدا وجه ده که راهن هغه ته ګوتمې په رهن ايښې وي او مرتهن د عادي طريقې مطابق هغه استعمال کړي يعني په خنصر ګوته يې واغوندي (کوم چي د ګوتمې ګوته ده). نو پر هغه د مرهون ضمان لازميږي: ځکه هغه په استعمالولو سره په مرهون کي

تعدی او ناحقه تصرّف وکړی. او مرتهن ته د استعمال او تعدی حق نسته. نو ځکه پر هغه ضمان واجب دی.

والیمنی إلخ: یعني برابره ده د راسته لاس په خنصر ګوته ګوتمۍ واغوندي یا د چپه لاس په خنصر ګوته. په دواړو صورتونو کي پر مرتهن ضمان واجبیږي؛ ځکه په خلکو کي دواړه معتاد دي. نو د ضمان د وجوب په هکله په راسته او چپه کي څه فرق نسته. ها! په معتاده طریقه د ګوتمۍ وغیره اغوستل شرط دي. همدا وجه ده که مرتهن له خنصر څخه بغیر په بله ګوته ګوتمۍ واغوندي. نو ځرنګه چي دا معتاد او عات نه دي. نو ځکه په دې صورت کي پر مرتهن ضمان نه واجبیږي. بلکي دا حفاظت او صیانت شمېرل کیږي (چي په دې توګه مرتهن د ګوتمۍ حفاظت کوي).

وکذا الطیلسان إلخ: فرمایي که څوک د عادي طریقې مطابق د رهن څادر پر ځان وپېچي. نو پر هغه ضمان سته. او که په غیر عادي طریقه سره یې هسي پر اوږه واچوي، نو ضمان نسته؛ ځکه په غیر معتاده طریقه سره مرهون شی استعمالول د ضمان موجب نه دي.

## د رهن د تورو د استعمالولو حکم

وَلَوْ رَهَنَهُ سَيْفَيْنِ أَوْ ثَلَاثَةً او که راهن دوې یا درې توري مرتهن ته په رهن ایښي وي فَتَقَلَّدَهَا او مرتهن هغوی په غاړه کړي لَمْ يَضْمَنْ فِي الثَّلَاثَةِ نو په دریو تورو کي نه ضامن کیږي وَضَمِنَ فِي السَّيْفَيْنِ او په دوو تورو کي ضامن کیږي لِأَنَّ الْعَادَةَ جَرَتْ بَيْنَ الشُّجْعَانِ بِتَقَلُّدِ السَّيْفَيْنِ فِي الْحَرْبِ ځکه په جنګ کي د بهادرو خلکو تر مینځ د دوو تورو په غاړه کولو سره عادت جاري دی وَلَمْ تَجْرِ بِتَقَلُّدِ الثَّلَاثَةِ او د دریو تورو په غاړه کولو سره عادت جاري نه دی.

**اللغات**: ﴿تقلّد﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: (توره) په غاړه کول. په غاړه ځړول (غاړي ته د توري تسمه اچول).

**تشریح**: فرمایي که راهن مرتهن ته دوې یا درې توري په رهن کي ورکړي وي او مرتهن په هغوی کي تصرّف وکړي او په غاړه یې کړي، نو دې ته به کتل کیږي چي د هغه تصرّف د کومي درجې دی؟ که هغه دوې توري په غاړه کړي، نو ضمان پر لازم دی؛ ځکه دوې تورې ځړول معتاد دی چي په جنګ کي بهادره کس دوې توري په غاړه کوي او مقابلې ته راوځي، او که مرتهن درې توري په غاړه کړي، نو پر هغه ضمان نسته؛ ځکه د دریو تورو په غاړه کول او ګرځول عادت نه دي. نه په جنګ کي او نه په غیر جنګ کي.

## د دوو ګوتميــو حكم

وَإِنْ لَبِسَ خَاتَمًا فَوْقَ خَاتَمٍ او كه مرتهن د ګوتمۍ د پاسه ګوتمۍ واغوندي إِنْ كَانَ هُوَ مِمَّنْ يَتَجَمَّلُ بِلُبْسِ خَاتَمَيْنِ نو كه مرتهن له هغو كسانو څخه وي كوم چي د دوو ګوتميو په اغوستلو ښكلا اختياروي [يعني دوې ګوتمۍ په يوه ګوته كول د هغه عادت وي] ضَمِنَ نو ضامن كيږي وَإِنْ كَانَ لَا يَتَجَمَّلُ بِذٰلِكَ او كه په دې سره ښكلا نه اختياروي فَهُوَ حَافِظٌ نو هغه حفاظت كونكى دى [نه استعمالونكى] فَلَا يَضْمَنُ نو ځكه نه ضامن كيږي.

**اللغات:** ﴿يتجمّل﴾ د تفعّل د باب مضارع ده. د دې باب په صله كي چي "باء" راسي لكه دلته چي راغلې ده، نو معنىٰ يې ده: په يو شي سره ښكلا حاصلول، ښكلا اختيارول. په يو شي سره ښل شى ښايسته كول.

**تشريح:** صورت د مسئلې خو بالكل ښكاره دى چي كه مرتهن په يوه ګوته د رهن دوې ګوتمۍ واغوندي، يا يوه خپله ګوتمۍ او بله د رهن ګوتمۍ په يوه ګوته واغوندي، نو د دې مدار هم پر عادت دى يعني كه دا د مرتهن عادت وي چي په يوه ګوته دوې ګوتمۍ اغوندي، نو دې ته استعمال ويل كيږي او ضمان پر لازميږي، او كه هغه په دې عادت نه وي، نو دا د حفاظت له قبيل څخه شمېرل كيږي او ضمان نه پر لازميږي.

## د مرهون شي د حفاظت د ځاى او داسي نورو أجرت پر چا دى؟ (تفصيلي حكم)

قَالَ: وَأُجْرَةُ الْبَيْتِ الَّذِيْ يُحْفَظُ فِيْهِ الرَّهْنُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ فرمايي: او د هغه ځاى أجرت چي رهن پكښي ساتل كيږي پر مرتهن دى وَكَذٰلِكَ أُجْرَةُ الْحَافِظِ او همدارنګه د حفاظت كونكي أجرت [هم پر مرتهن دى] وَأُجْرَةُ الرَّاعِيْ وَنَفَقَةُ الرَّهْنِ عَلَى الرَّاهِنِ او د شپانه أجرت او د رهن [مرهونه څارويو] نفقه پر راهن ده وَالْأَصْلُ أَنَّ مَا يُحْتَاجُ إِلَيْهِ لِمَصْلَحَةِ الرَّهْنِ وَتَبْقِيَتِهٖ او اصل [قاعده] دا ده چي د رهن د ښېګڼې [اصلاح] او باقي ساتلو لپاره چي كوم شي ته احتياج وي فَهُوَ عَلَى الرَّاهِنِ نو هغه پر راهن دى سَوَاءٌ كَانَ فِي الرَّهْنِ فَضْلٌ أَوْ لَمْ يَكُنْ برابره ده په رهن كي [پر قرض] زياتوب وي، كه نه [يعني د رهن قيمت له قرض څخه زيات وي او كه تر هغه كم يا ور سره برابر وي] لِأَنَّ الْعَيْنَ بَاقٍ عَلٰى مِلْكِهٖ ځكه چي [د رهن] عين د راهن په ملكيت كي پاته دى وَكَذٰلِكَ مَنَافِعُهٗ مَمْلُوْكَةٌ لَهٗ او همدارنګه د رهن منا...

هغه په ملکيت کي داخل دي فَيَكُونُ إِصْلَاحُهُ وَتَبْقِيَتُهُ عَلَيْهِ نو ځکه د رهن اصلاح کول او باقي ساتل به د راهن پر ذمه وي لِمَا أَنَّهُ مُؤْنَةُ مِلْكِهِ ځکه چي دا [اصلاح] د هغه د ملکيت مؤنت دی [يعني د هغه د ملکيت د بقاء او پاتېدلو سبب دی] كَمَا فِي الْوَدِيْعَةِ لکه څرنګه چي په وديعت کي دي [چي د وديعت نفقه او د اصلاح او ابقاء کار د مالک (مُودِع) پر ذمه دي] وَذٰلِكَ مِثْلُ النَّفَقَةِ فِيْ مَأْكَلِهِ وَمَشْرَبِهِ او دا لکه د هغه په خوړلو او چيښلو کي [مال] نفقه کول [يعني د رهن د نفقې مثال دا دی لکه د مرهونه څارويو د خوراک او څښاک نفقه] وَأُجْرَةُ الرَّاعِيْ فِيْ مَعْنَاهُ او د شپانه اُجرت د هغه په معنیٰ سره دی [أي في معنى الإنفاق في المأكل والمشرب] لِأَنَّهُ عَلَفُ الْحَيَوَانِ ځکه چي هغه د څاروي خوراکه ده [أي الراعي أجير سبب علف الحيوان، لأنه يوصل إليه به، فأطلق اسم السبب على المسبب].

**اللغات:** ﴿البيت﴾ د شپه تېر ځای. خونه او کمره. کوټګی. ﴿راعي﴾ شپانه (پوونکی. د رمې څارونکی او کتونکی). ﴿تبقية﴾ د تفعيل مصدر دی: باقي ساتل. ﴿مؤنة﴾ خرچ اولګښت. بار او مشقت. د يو شي د پاتېدلو او بقاء چي کوم خرچ او سبب وي هغه ته مؤنت ويل کيږي، لکه د ښځي نفقې ته چي هم ځکه مؤنت وايي چي هغه د ښځي د بقاء او ژوندون سبب دی. ﴿وديعة﴾ په امانت ايښوول سوی شی، امانتاً ورکول سوی شی. ﴿مأكل﴾ د نصر له بابه مصدرِ ميمي دی: خوړل. خوراک. ﴿عَلَف﴾ د څارويو خورکه يعني وابنه او داسي نور.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د کوم شي او ځای تعلق چي د مرهون شي د حفاظت سره وي. د هغه خرچ او اُجرت پر مرتهن واجب دي؛ ځکه د حفاظت ټوله ذمه واري پر مرتهن ده. نو په کوم ځای کي چي مرهون ساتل سوی وي. د هغه کرايه. او کوم کس چي د مرهون د حفاظت او چوکيداري لپاره ټاکل سوی وي د هغه اُجرت د مرتهن پر ذمه دي؛ ځکه دا دواړه کارونه د حفاظت له قبيل څخه دي او حفاظت د مرتهن کار دی. لهذا د مرهون شي د حفاظت اُجرت او خرچ به هم د مرتهن پر ذمه وي.

د دې په خلاف هر هغه شی چي د هغه تعلق د مرهون د اصلاح او ابقاء سره وي. د هغه خرچ د راهن پر ذمه دی. نو د مرهونه څارويو د شپانه اُجرت او د هغوی خوراکه او نفقه د راهن پر ذمه دي: ځکه پر عينِ رهن (مرهون) د راهن ملکيت باقي پاتېږي او د رهن منافع هم د راهن په ملکيت کي داخلېږي او راهن يې مالک دی. او د يو ملکيت د اصلاح او ابقاء لپاره چي کوم کار کيږي هغه پر مالک لازم وي. همدا وجه ده چي په خالص وديعت کي هم د اصلاح او ابقا کار د مالک (مودع) پر ذمه دی.

او که سوال وسي چي شپانه د څارويو د څرولو (پوولو) ترڅنګ د هغوی حفاظت هم کوي. لهذا پکار دا ده چي د شپانه اُجرت پر راهن او مرتهن دواړو راسي؟. نو جواب دا دی چي د شپانه مقصد اصلي څرول (پوول) دي کوم چي د اصلاح او ابقاء له باب څخه دي او حفاظت ضمني شی دی. نو ځکه د شپانه ټوله اُجرت به د راهن پر ذمه وي.

او که سوال وسي چي د دې څه دليل دی چي د راعي مقصد اصلي حفاظت نه دی؟. نو جواب دا دی چي که څوک له چراګاه (څر ځای) څخه يو څاروی غلا کړي (چيري چي شپانه رمه څروي). نو د هغه لاس نه پرېکول کيږي. ځکه لاس هغه وخت پرېکول کيږي کله چي له محفوظ مقام څخه غلا وسي. لهذا که شپانه محافظ وای نو چراګاه به هم محفوظ مقام وای چي له هغه څخه د غلا کولو په وجه به د غله لاس پرېکول کېدای.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

وَمِنْ هٰذَا الْجِنْسِ كِسْوَةُ الرَّقِيْقِ او له همدغه جنس څخه دي د غلام جامه وَأُجْرَةُ ظِئْرِ وَلَدِ الرَّهْنِ او د مرهون بچي د دايي [رضاعي مور] اُجرت وَسَقْيُ الْبُسْتَانِ او د باغ اُوبول [اوبه ورکول] وَكَرْيُ النَّهْرِ او نهر کيندل وَتَلْقِيْحُ نَخِيْلِهِ او د باغ د درختو پيوند کاري وَجِدَاذُهُ او د هغه مېوې شکول وَالْقِيَامُ بِمَصَالِحِهِ او د هغه نور مصلحتونه ترسره کول.

**اللغات**: ﴿كسوة﴾ جامه. کپړه. اَللِّبَاسُ الَّذِيْ يُسْتَتَرُ بِهِ وَيُتَجَمَّلُ بِهِ. ﴿ظئر﴾ دايي (رضاعي مور) يعني هغه ښځه چي د بل چا بچي ته تی او شيدې ورکوي. اَلْمُرْضِعَةُ لِغَيْرِ وَلَدِهَا. جمع: أَظْآر.

﴿كَرْي﴾ د ضرب مصدر دی. كَرٰى يَكْرِيْ كَرْيًا. کله چي د دې باب په صله کي "نهر" راسي. نو معنی يې ده: په واله کي نوې کنده کنېل او واله صفا کول. واله غوچول (ژورول). ﴿جِذاذ﴾ (بالكسر و بالفتح. وبالذال وبالدال يعني جداد هم ويل کېدای سي) د نصر مصدر دی: خرما او مېوه شکول. پرېکول.

﴿تلقيح﴾ د تفعيل مصدر دی: پيوندکاري. په درختو کي نر او ماده سره پيوندول. ﴿مصالح﴾ جمع د مَصْلَحَةٌ ده: مصلحتونه. ښېګني. منافع.

**تشريح**: په "مِنْ هٰذَا" کي د "هٰذَا" مشار إليه اصلاح او تبقيه ده. د عبارت حاصل دا دی چي د مرهون غلام جامې. او د هغه ښځي اُجرت چي مرهون بچي ته شيدې ورکوي. او د مرهون باغ داوبولو اُجرت. او باغ ته چي کوم نهر (واله) راغلې وي د هغه د کيندلو او صفا کولو خرچ. همدارنګه د مېوې

شکولو او د داسي نورو کارونو خرچ او اُجرت چي د هغوی تعلق د مرهون شي د اصلاح او ابقاء سره وي، هغه ټوله د راهن پر ذمه دي چي راهن به له يې له خپل جېبه ورکوي.

**د رهن د حفاظت هر کار د مرتهن پر ذمه دی، د امام ابو يوسف اختلاف او د غلام د جُعل حکم**

وَكُلُّ مَا كَانَ لِحِفْظِهِ او هر هغه کار کوم چي د مرهون د حفاظت لپاره وي أَوْ لِرَدِّهِ إِلَىٰ يَدِ الْمُرْتَهِنِ يا د مرتهن لاس ته د مرهون د واپس کولو لپاره وي أَوْ لِرَدِّ جُزْءٍ مِنْهُ يا د مرهون د يو جزء د واپس کولو لپاره وي فَهُوَ عَلَى الْمُرْتَهِنِ نو هغه د مرتهن پر ذمه دی مِثْلُ أُجْرَةِ الْحَافِظِ لکه د حفاظت کونکي اُجرت لِأَنَّ الْإِمْسَاكَ حَقٌّ لَهُ ځکه امساک [مرهون راګرځول] د مرتهن حق دی وَالْحِفْظُ وَاجِبٌ عَلَيْهِ او حفاظت کول پر مرتهن واجب دي فَيَكُونُ بَدَلُهُ عَلَيْهِ نو ځکه د حفاظت بدل [عوض] به هم پر هغه وي وَكَذٰلِكَ أُجْرَةُ الْبَيْتِ الَّذِي يُحْفَظُ الرَّهْنُ فِيهِ او همدارنګه د هغه کور اُجرت چي رهن [مرهون] پکښي ساتل کيږي وَهٰذَا فِي ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او دا [حکم] په ظاهر روايت کي دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ كِرَاءَ الْمَأْوَى عَلَى الرَّاهِنِ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي د حفاظتي ځای کرايه پر راهن ده بِمَنْزِلَةِ النَّفَقَةِ د نفقې په څېر لِأَنَّهُ سَعْيٌ فِي تَبْقِيَتِهِ ځکه دا د رهن [مرهون] په باقي ساتلو کي کوشش کول دي وَمِنْ هٰذَا الْقِسْمِ جُعْلُ الْآبِقِ او له همدې قسم څخه دي د تښتېدونکي غلام جُعل فَإِنَّهُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ نو هغه پر مرتهن دی لِأَنَّهُ مُحْتَاجٌ إِلَىٰ إِعَادَةِ يَدِ الْاِسْتِيفَاءِ الَّتِي كَانَتْ لَهُ ځکه مرتهن د [قرض] ترلاسه کولو قبضې ته محتاج دی کوم چي [مخکي] ورته حاصله وه لِيَرُدَّهُ د دې لپاره چي مرهون [راهن ته] واپس کړي فَكَانَتْ مِنْ مُؤْنَةِ الرَّدِّ نو دا به د واپس کولو له خرچ څخه وي فَيَلْزَمُهُ نو ځکه پر مرتهن به لازم وي وَهٰذَا إِذَا كَانَتْ قِيمَةُ الرَّهْنِ وَالدَّيْنِ سَوَاءً او دا [پر مرتهن د جُعل واجبېدل] په هغه صورت کي دي کله چي د رهن قيمت او قرض سره برابر وي.

**اللغات**: ﴿أُجرة﴾ مزدوري، کرايه او حق الزحمه. ﴿كِرَاء﴾ کرايه. ﴿مأوى﴾ د اسم ظرف صيغه ده: پناه ګاه. مراد: د مرهون شي د حفاظت ځای. ﴿سعى﴾ د فتح له بابه د واحد مذکر غائب ماضي صيغه ده: کوشش او هڅه کول. خواري کښل. ﴿جُعل﴾ د تښتېدلي غلام د واپس راوستلو اُجرت (مزدوري)، خرچ. ﴿مؤنة﴾ خرچ او لګښت، بار او مشقت.

**تشریح**: دعبارت حاصل دا دی چي کوم کار درهن د حفاظت او ساتنې له باب څخه وي. هغه د مرتهن پر ذمه دی. نو که مرهون وتښتېږي او غائب سي، نو د هغه واپس کول هم د حفاظت له باب څخه دي، لهذا د هغه واپس راوستل یا د دې کار اُجرت د مرتهن پر ذمه دي. همدارنګه که مرهون مریض سي، نو د هغه علاج او درملنه کول ګواکي د هغه جزء واپس کول دي، لهذا دا هم د مرتهن پر ذمه دي، همدارنګه د مرهون شي د ساتونکي او چوکیدار اُجرت هم د مرتهن پر ذمه دی؛ ځکه چي دا د حفاظت له باب څخه دي، ځکه مرتهن ته د مرهون شي د راګرځولو او محبوس کولو حق حاصل دی. نو د هغه حفاظت کول هم پر مرتهن واجب دی، لهذا د هغه پر حفاظت چي کوم اُجرت او کرایه راسي. هغه به هم د مرتهن پر ذمه وي، دا ظاهر روایت دی.

وعن أبي یوسف إلخ: له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي مرهون شی په کوم ځای کي ساتل کیږي (مکان حفاظت) د هغه کرایه د راهن پر ذمه ده، لکه څرنګه چي نفقه د راهن پر ذمه ده؛ ځکه څرنګه چي نفقه د مرهون شي د اصلاح او ابقاء له باب څخه ده، همدارنګه د حفاظت ځای هم د اصلاح او ابقاء له باب څخه دی.

ومن هذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که غلام وتښتېږي، نو د هغه د واپس راوستلو اُجرت چي د فقهاؤ په اصطلاح کي جُعل ورته وایي، دا پر مرتهن واجب دی. ځکه تښتېدونکی مرهون واپس راوستل د حفاظت له باب څخه دي، او مرتهن دې ته مجبوره هم دی، د دې لپاره چي د غلام په واپس راتللو سره د مرتهن د استیفاء (قرض ترلاسه کولو) قبضه بیرته فعاله سي او د راهن پر مطالبه غلام ورته واپس کړي او خپل قرض څني واخلي، نو ځکه جُعل به د "ردّ" مؤنت وي، او څرنګه چي "ردّ" (واپس راوستل) د مرتهن پر ذمه دی، نو ځکه دا خرچ او اُجرت به هم د هغه پر ذمه وي.

وهذا إلخ: صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي پر مرتهن د دې جُعل واجبېدل په هغه صورت کي دي کله چي قرض او د رهن قیمت سره برابر وي، خو که د رهن قیمت له قرض څخه زیات وي، نو د هغه حکم جلا دی چي په را روان عبارت کي به ذکر سي.

### که د رهن قیمت زیات وي نو د تښتېدلي غلام د واپس راوستلو د اُجرت (جُعل) حکم

وَإِنْ كَانَتْ قِيمَةُ الرَّهْنِ أَكْثَرَ او که د رهن قیمت [له قرض څخه] زیات وي فَعَلَيْهِ بِقَدْرِ الْمَضْمُوْنِ نو پر مرتهن د مضمون [قرض] په مقدار [جُعل] واجب دی [یعني صرف د قرض د مقدار جُعل پر مرتهن دی] وَعَلَى الرَّاهِنِ بِقَدْرِ الزِّيَادَةِ عَلَيْهِ او د زیاتوب په مقدار سره پر راهن واجب دی [یعني پر قرض چي کوم مقدار زیات وي د هغه جعل پر راهن دی] لِأَنَّهُ أَمَانَةٌ فِيْ يَدِهِ ځکه چي زیاتوب [زائد مقدار] د مرتهن په

قبضه کي امانت دی وَالرَّدُّ لِإِعَادَةِ الْيَدِ او [د غلام] واپس کول د قبضې د راګرځولو اوواپس کولو لپاره دي وَيَدُهُ فِي الزِّيَادَةِ يَدُ الْمَالِكِ او په زياتوب [زائد مقدار] کي د مرتهن قبضه د مالک [راهن] قبضه ده إِذْ هُوَ كَالْمُودَعِ فِيهَا ځکه په زياتوب کي مرتهن د مودَع په شان دی [چي زائد مقدار د هغه سره امانت دی] فَلِهَذَا يَكُونُ عَلَى الْمَالِكِ په همدې وجه د زياتوب جُعل به پر مالک [راهن] وي وَهَذَا بِخِلَافِ أُجْرَةِ الْبَيْتِ الَّذِي ذَكَرْنَاهُ او دا د هغه کور د اُجرت په خلاف دی کوم چي موږ ذکر کړی فَإِنَّ كُلَّهَا تَجِبُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ ځکه هغه ټوله اُجرت پر مرتهن واجبيږي وَإِنْ كَانَ فِي قِيمَةِ الرَّهْنِ فَضْلٌ که څه هم د رهن په قيمت کي زياتوب وي [يعني له قرض څخه زيات وي] لِأَنَّ وُجُوبَ ذَلِكَ بِسَبَبِ الْحَبْسِ ځکه د هغه وجوب د حبس [يعني د مرهون د راګرځولو] په سبب سره دی وَحَقُّ الْحَبْسِ فِي الْكُلِّ ثَابِتٌ لَهُ او د حبس حق مرتهن لره په ټوله مرهون کي ثابت دی فَأَمَّا الْجُعْلُ إِنَّمَا يَلْزَمُهُ لِأَجْلِ الضَّمَانِ او کوم چي جُعل دی نو هغه خو د ضمان په وجه پر مرتهن لازميږي فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الْمَضْمُونِ نو ځکه هغه به د مضمون په مقدار سره اندازه کيږي.

**اللغات:** ﴿مضمون﴾ د سمع د باب مفعول دی: د کوم څه چي ضمان (تاوان) لازم وي. هغه مقدار چي ضمان يې (پر مرتهن) واجب وي (چي هغه د قرض مقدار دی). ﴿مودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چي امانت ايښوول سوی وي (امانت ساتونکی).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که د رهن قيمت له قرض څخه زيات وي مثلاً قرض پنځه سوه (۵۰۰) درهمه وي او د مرهون غلام قيمت اووه سوه (۷۰۰) درهمه وي. نو په دې صورت کي پر مرتهن فقط د پنځو سوو (۵۰۰) جُعل واجب دی مثلاً که جُعل اويا (۷۰) درهمه وي. نو له دې څخه پنځوس (۵۰) درهمه پر مرتهن واجب دي او د مابقي دوو سوو (۲۰۰) جُعل يعني شل (۲۰) درهمه پر راهن واجب دي؛ ځکه کُله چي د رهن قيمت له قرض څخه زيات وي. نو پر مرتهن د مضمون مقدار جُعل واجب دی. او ښکاره ده چي مضمون د قرض مقدار دی ځکه پر مرتهن صرف د قرض په مقدار ضمان لازم دی (لکه مخکي چي تېر سوه). او د قرض مقدار دلته پنځه سوه (۵۰۰) درهمه دي. نو ځکه پر مرتهن به د همدې (۵۰۰) درهمو جُعل واجب وي. او د پاته (۲۰۰) درهمو په باره کي مرتهن امين او مودَع دی او که څه هم دا مقدار د هغه په قبضه کي دی. خو څرنګه چي شريعت د مودَع او مالک (مودِع) قبضه يوه شمېرلې ده، نو ځکه د دې مقدار جُعل به پر مالک يعني پر راهن واجب وي.

وهٰذا بخلاف إلخ: دا د يو مقدر سوال جواب دی. سوال دا دی چې څرنګه پر مرتهن د قرض په مقدار جُعل واجب کړی سوی دی. همداسې د قرض په مقدار پر هغه د حفاظتي ځای کرایه هم واجبېدل پکار دي (په کوم ځای کې چې مرهون ساتل کیږي). او د زیاتوب (زائد مقدار) کرایه پر راهن واجبېدل پکار دي. حالانکې تاسې ټوله کرایه پر مرتهن لازمه کړې ده. د دې څه وجه ده؟.

د جواب حاصل دا دی چې د کرایې او جُعل د وجوب په سبب کې فرق دی. ځکه د جُعل د وجوب سبب ضمان دی او د کرایې د وجوب سبب د مرتهن حبس دی. او حبس په ټوله مرهون کې د مرتهن لپاره ثابت دی یعنې هم د قرض په مقدار کې او هم په زیاتوب (زائد مقدار) کې. نو ځکه پر هغه به د ځای ټوله کرایه واجب وي. او څرنګه چې د جُعل سبب ضمان دی او ضمان د قرض په مقدار پر هغه واجب دی. نو ځکه جُعل به هم صرف د قرض په مقدار سره پر هغه واجب وي او کوم چې د قرض تر مقدار زائد وي، د هغه جُعل به پر راهن واجب وي. (احسن الهدايه)

## د مرهون د علاج او درملنې خرچ او د خراج بیان

وَمُدَاوَاةُ الْجِرَاحَةِ وَالْقُرُوْحِ او د زخم او دانو درملنه کول وَمُعَالَجَةُ الْأَمْرَاضِ او د مرضونو علاج کول وَالْفِدَاءُ مِنَ الْجِنَايَةِ او د جرم فدیه ورکول تَنْقَسِمُ عَلَى الْمَضْمُوْنِ وَالْأَمَانَةِ دا به پر مضمون [قرض] او امانت تقسیمیږي [په بله وینا دا چې دا به پر مرتهن او راهن دواړو تقسیمیږي] وَالْخَرَاجُ عَلَى الرَّاهِنِ خَاصَّةً او خراج خاص پر راهن دی لِأَنَّهُ مِنْ مُؤَنِ الْمِلْكِ ځکه خراج د ملکیت له خرچونو څخه دی [یعنې خراج د ملکیت د بقاء خرچ او سبب دی] وَالْعُشْرُ فِيْمَا يَخْرُجُ مُقَدَّمٌ عَلٰى حَقِّ الْمُرْتَهِنِ او د راوتونکي [پیداوار] عُشر د مرتهن پر حق مخکې دی لِتَعَلُّقِهِ بِالْعَيْنِ ځکه هغه د عین رهن سره متعلق دی وَلَا يَبْطُلُ الرَّهْنُ فِي الْبَاقِيْ او په پاته مقدار کې رهن نه باطلیږي لِأَنَّ وُجُوْبَهُ لَا يُنَافِيْ مِلْكَهُ ځکه د عشر وجوب د ملکیت منافي نه دی بِخِلَافِ الْاِسْتِحْقَاقِ په خلاف د مستحق کېدلو [یعنې چې کله د مرهونه ځمکې وغیره یوه حصه د یو چا مستحقه وختیږي].

**اللغات**: ﴿مداواة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: درملنه او دوا کول. ﴿جِراحة﴾ زخم. ﴿القروح﴾ جمع د قَرْحَةٌ ده: خرابه دانه (البثرة إذا دب فيها الفساد). او د قَرْحٌ او قُرْحٌ جمع هم قُرُوح راځي چې د هغه معنیٰ ده: زخم. ﴿فداء﴾ فديه. تاوان او جرمانه. هغه ټاکلی مقدار کوم چې (د غلام) د ځان ژغورنې لپاره ورکول کیږي. ﴿عُشر﴾ لسمه حصه. ﴿مؤن﴾ جمع د مُؤنَةٌ ده: خرچ او لګښت. بلې او مشقت. د يو شي د باقي پاتېدلو چې کوم خرچ او سبب وي هغه ته مؤنت ويل کيږي. لکه څرنګه چې نفقې ته هم مؤنت ويل کيږي چې هغه د ښځي د بقاء سبب او خرچه ده. همدارنګه خراج ورکول هم د مالک په قبضه کي د ځمکي د بقاء سبب دي (چې که خراج اداء کړی سي نو ځمکه د مالک په ملکيت کي باقي پاتيږي).

**تشريح**: په دې عبارت کي ټوله درې مسئلې ذکر سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده چې که مرهون غلام زخمي سي. يا پر بدن يې دانې وخېږي. يا په يوبل مرض مبتلا سي. يا مرهون غلام يو داسي جرم وکړي چې د هغه په وجه فديه اداء کولو ته ضرورت پېښ سي، نو له دې ټولو شيانو څخه د هر يوه خرچ او لګښت پر راهن او مرتهن دواړو د ضمان او امانت په مقدار سره واجبيږي، يعني د غلام څومره قيمت چې د قرض برابر وي، د هغه په اندازه د علاج او فديې خرچ پر مرتهن واجب دی، او کوم چې د قرض له مقدار څخه زائد وي. د هغه خرچ پر راهن پر ذمه دی. مثلاً د مرهون غلام قيمت دوه سوه درهمه دي او قرض يو نيم سل درهمه دی او په علاج يا فديه کي مثلاً شل درهمه خرچ سول، نو پنځلس درهمه د مرتهن پر ذمه دي او پنځه درهمه د راهن پر ذمه دي.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چې که راهن په رهن کي خراجي ځمکه مرتهن ته ورکړې وي، نو د هغې خراج ټوله پر راهن واجب دی او مرتهن به يوه روپۍ هم نه پکښې ورکوي؛ ځکه خراج د انسان خپل ملکيت خرچ او محصول دی. او خراجي ځمکه صرف د راهن ملکيت ده، نه د مرتهن. نو ځکه د هغې خراج به هم صرف پر راهن وي.

والعشر فيها إلخ: (۳)... اول په دې خبره ځان پوه کړئ! چي مرهون باغ او فصل چي کومه مېوه او پيداوار وکړي، نو هغه د راهن په ملکيت کي داخليږي، لېکن هغه د مرتهن سره محبوس کيږي او مرتهن ته به اېښوول کيږي تر هغه وخته چي راهن قرض اداء کړي. او کله چي هغه قرض اداء کړي نو ټوله به واپس ځني واخلي. او بله دا خبره په ياد لرئ! چي د رهن لپاره دا ضروري ده چي هغه به مشاع نه وي (يعني مرهون شی به د دوو يا څو کسانو تر مينځ داسي مشترک نه وي چي د هر يوه حصه معلومه او جلا نه وي)، کنې عقد رهن نه صحيح کيږي.

مسئله دا ده چې کــه مرهونـه ځمکـه عشري وي، نو د پيداوار عُشر (لسمه حصه) بـه اول ايستل کيږي او پاتـه نهه حصې بـه مرتهن تـه اينبوول کيږي. او د عُشر ايستل د مرتهن لـه حق څخه مقدم او مخکي دي: ځکه د عُشر تعلق د رهن (مرهون) د عـين سره دی او د مرتهن د حق تعلق د رهن د ماليت سره دی، او د عين سره تعلق د ماليت والا تعلق څخه بالا وي، نو ځکه د عين والا تعلق مقدم دی.

او د پورتنۍ مسئلې پـه ضمن کي بله مسئله دا ده چي کـه راهن چا تـه ځمکه پـه رهن ورکړي وي، بيا يو څوک د هغه ځمکي په لسمه حصه کي د استحقاق دعوىٰ وکړي او خپله دعوىٰ ثابته هم کړي، نو رهن باطليږي: ځکه چي د مستحق لسمه حصه د شيوع پـه توګـه ده، حالانکي مخکي ذکر سوه چي د رهن لپاره دا ضروري ده چي هغه به مشاع نه وي. لنډه دا چي په دې صورت کي رهن باطليږي.

او که سوال وسي چي کله د پيداوار عشر وېستل سي، نو دا خو هم د شيوع پـه توګـه دی (ځکه د عشر په وجه په پيداوار کي شيوع راځي)، لهذا د استحقاق د صورت پـه څېـر دلتـه هـم رهـن باطلېدل پکار دي؟، د جواب حاصل دا دی چي د استحقاق پـه صورت کي د هاغه مستحقي ځمکي لسمه حصه ورکول کيږي او د عشر په صورت کي مالک ته اختيار دی که د هاغه پيداوار لسمه حصه ورکوي يا د لسمي حصې په اندازه خپل نوره غله ورکوي، نو له دې تفصيل څخه معلومه سوه چي د استحقاق په صورت کي د راهن په ملکيت کي خلل واقع سو او هغه مشاع سو، نو ځکه د استحقاق پـه صورت کي رهن باطليږي، او د عشر په صورت کي د راهن پـه ملکيت کـي هـيڅ خلل واقع نـه سو او پيداوار مشاع نه سو، نو ځکه دلته رهن نه باطليږي.

## که راهن يا مرتهن يو د بل له طرفه يو شی اداء کړي نو دا د هغه له طرفه تطوّع او تبرّع ده

وَمَا أَدَّاهُ أَحَدُهُمَا مِمَّا وَجَبَ عَلَى صَاحِبِهِ او څه چي په دوی دوو کي يو اداء کړي له هغه خرچې څخه کوم چي د هغه [اداء کونکي] پر ملګري واجب وي [يعني کوم خرچ چي پر راهن يا مرتهن واجب وي په دوی کي يو د بل له طرفه هغه اداء کړي] فَهُوَ مُتَطَوِّعٌ نو هغه [اداء کونکی] متطوّع دی [نو پر خپل ملګري به رجوع نه کوي] وَمَا أَنْفَقَ أَحَدُهُمَا مِمَّا يَجِبُ عَلَى الْآخَرِ بِأَمْرِ الْقَاضِيْ او څه چي په دوی دوو کي يو خرچ کړي له هغه خرچې څخه کوم چي پر بل يوه [ملګري] واجب وي د قاضي په حکم سره [يعني د قاضي په حکم سره يې اداء کړي] رَجَعَ عَلَيْهِ نو پر هغه به رجوع کوي كَأَنَّ صَاحِبَهُ أَمَرَهُ بِهِ ګواکي خپل ملګري هغه ته د دې [خرچ اداء کولو] حکم کړی دی لِأَنَّ وِلَايَةَ الْقَاضِيْ عَامَّةٌ ځکه د قاضي ولايت

عام دی وَعَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ أَنَّهُ لَا يَرْجِعُ إِذَا كَانَ صَاحِبُهُ حَاضِرًا او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه [په نوادرو] کي روايت سوی دی چي هغه به رجوع نه کوي کله چي [د خرچ اداء کولو په وخت کي] د هغه ملګری حاضر وي وَإِنْ كَانَ بِأَمْرِ الْقَاضِيْ که څه هم د قاضي په حکم سره وي وَقَالَ أَبُوْيُوْسُفَ يَرْجِعُ فِي الْوَجْهَيْنِ او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي په دواړو صورتونو کي رجوع کولای سي وَهِيَ فَرْعُ مَسْأَلَةِ الْحَجْرِ او دا د حجر د مسئلې فرع ده.

**اللغات**: ﴿متطوع﴾ د تفعّل د باب فاعل دی: نفلي (غير لازم) کار کونکی، احسان کونکی. يا په بله وينا بلاعوضه مُفت ورکونکی. احساناً (د مرستي په توګه) ورکونکی. او داسي کس د رجوع حق نه لري. ﴿ولاية﴾ د ضرب اسم مصدر دی: مشري او سرپرستي. اختيار. ولي کېدل (مشر کېدل).

**تشريح**: مخکي ذکر سوه چي په کوم ځای او کور کي مرهون شی ساتل کيږي (يعني د مرهون د حفاظت ځای) د هغه کرايه پر مرتهن ده. لېکن که د مرتهن پر ځای يې راهن اداء کړي او خپل مال خرچ کړي. يا مثلاً د مرهون نفقه پر راهن ده. لېکن د راهن پر ځای يې مرتهن اداء کړي او خپل مال خرچ کړي. نو آيا په دې صورت کي هغه (اداء کونکي) ته حق سته چي له خپل ملګري څخه (چي د هغه له طرفه يې خرچ اداء کړی دی) دا خرچ کړی سوی مقدار واپس واخلي. نو فرمايي چي که دا خرچ اداء کول د قاضي په حکم سره وي، نو په دې صورت کي له هغه څخه خپل خرچ کړده مال اخيستلای سي. او که د قاضي له حکم څخه بغير وي، نو نه يې سي اخيستلای؛ ځکه په دې صورت کي خرچ اداء کونکی متبرّع او متطوع دی چي هغه ته د واپس اخيستلو حق نسته. او په اول صورت کي يې ځکه اخيستلای سي چي کله هغه د قاضي په حکم سره خرچ اداء کړی وي. نو داسي سو لکه ملګري چي د خرچ اداء کولو حکم ورته کړی وي؛ ځکه قاضي لره ولايت عامه حاصل دی. او په داسي صورت کي واپس اخيستل جائز دي چي ملګری حکم ورته کړی وي، نو ځکه دلته به هم واپس اخيستل جائز وي. دا حکم د ظاهر روايت دی چي په دې مسئله کي د چا اختلاف نسته.

وعن أبي حنيفة إلخ: خو په "نوادر" کي په دې مسئله کي د امام صاحب او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله اختلاف نقل سوی دی، حاصل يې دا دی چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز که هغه دويم ملګری چي د هغه له طرفه خرچ اداء سوی دی (د خرچ اداء کولو په وخت کي) غائب نه وي بلکي حاضر او موجود وي.

---

القول الراجح: قول أبي يوسف رَحِمَهُ الله، انظر للتفصيل الكتاب [القول الراجح ج:۲، ص:۳۲۷]

نو په دې صورت کې يې له هغه څخه نه سي اخيستلاى كه څه هم د قاضي په حكم سره يې خرچ اداء كړى وي.

او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي چي په هر صورت کې يې څني اخيستلاى سي برابره ده هغه دويم ملګرى حاضر وي او كه غائب وي. خلاصه دا چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز رجوع جائز نه ده او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز رجوع جائز ده. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا مسئله د حجر د مسئلې فرع ده چي په هغه کې د امام صاحب او صاحبينو اختلاف دى.

د حجر د مسئلې تفصيل دا دى چي د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز قاضي لره دا ولايت نسته چي آزاد. عاقل بالغ كس محجور كړي كوم چي حاضر او موجود وي (يعني بنديز پر ولګوي او له خرچ كولو څخه يې منع كړي). او كه بيا هم قاضي هغه محجور كړي. نو دا غير مُعتبر دى او داسي حجر لره اعتبار نسته. لېكن د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز قاضي ته د دې ولايت سته چي داسي كس محجور وګرځوي او د هغه حجر معتبر دى: ځكه د قاضي ولايت عام دى.

نو همدغسي په دې مسئله کې هم د دويم ملګري په موجوديت کې د هغه له طرفه د قاضي په حكم سره خرچ اداء كول داسي دي لكه قاضي چي هغه دويم ملګرى محجور وګرځوي چي دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز معتبر نه دي لكه اوس چي ذكر سوه چي د هغه په نېز د دويم ملګري په موجويت کې د قاضي د حجر حكم غير معتبر دى. نو ځكه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز خرچ اداء كونكي ملګري ته دا حق سته چي له خپل ملګري څخه خرچ كرده مال واپس واخلي. او څرنګه چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز د دويم ملګري موجوديت لره اعتبار نسته چي كه څه هم هغه حاضر او موجود وي نو هم د قاضي د حجر حكم معتبر دى. نو ځكه د هغه په نېز خرچ اداء كونكي ملګري ته د واپس اخيستلو حق نسته.

❀❀❀

# بَابُ مَا يَجُوْزُ اِرْتِهَانُهُ وَالْاِرْتِهَانُ بِهٖ وَمَا لَا يَجُوْزُ

دا باب د هغو شيانو په بيان کې دی چې د رهن په توګه د هغوی اخيستل او چې د هغوی په عوض کې رهن اخيستل جائز دي او هغه شيان چې دا يې جائز نه دي

**تشريح**: مخکې تر دې د رهن د مقدماتو اجمالي بيان وو. اوس له دې ځايه تفصيلي بيان شروع کوي چې کوم شيان مرهون او د رهن عوض کېدلای سي او کوم نه سي کېدلای. او ښکاره ده چې تفصيل تر اجمال وروسته راځي. نو ځکه مصنف رَحِمَهُ الله له مخکېني اجمالي بيان څخه وروسته دا باب بيان کړی دی کوم چې پر تفصيلي بيان مشتمل دی.

اِرتهان: د افتعال د باب مصدر دی، معنیٰ يې ده: د رهن په توګه اخيستل، په رهن کې اخيستل.

**د مُشاع شي د رهن حکم او د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف**

قَالَ: وَلَايَجُوْزُ رَهْنُ الْمُشَاعِ فرمايي: او د مشاع شي رهن جائز نه دی وَقَالَ الشَّافِعِيُّ: يَجُوْزُ او امام شافعي رَحِمَهُ الله فرمايي: چې جائز دی وَلَنَا فِيْهِ وَجْهَانِ او په دې باره کې زموږ دوه دليلونه دي أَحَدُهُمَا يَبْتَنِيْ عَلٰى حُكْمِ الرَّهْنِ له دوی څخه يو د رهن پر حکم مبني دی فَإِنَّهُ عِنْدَنَا ثُبُوْتُ يَدِ الْاِسْتِيْفَاءِ ځکه زموږ په نېز د رهن حکم د [قرض] تر لاسه کولو قبضه ثابتېدل دي وَهٰذَا لَا يُتَصَوَّرُ فِيْمَا يَتَنَاوَلُهُ الْعَقْدُ وَهُوَ الْمُشَاعُ او دا [يد استيفاء] په هغه شي کې متصوّر [او ممکن] نه دی چې هغه لره عقد شامل وي او هغه مشاع وي وَعِنْدَهُ الْمُشَاعُ يَقْبَلُ مَا هُوَ الْحُكْمُ عِنْدَهُ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز مُشاع شی هغه څه قبلوي کوم چې د امام شافعي په نېز د رهن حکم دی وَهُوَ تَعَيُّنُهُ لِلْبَيْعِ او هغه رهن د بيع لپاره متعيّن کېدل [يعني د امام شافعي په نېز د رهن حکم مرهون د بيع لپاره متعين کېدل دي] وَالثَّانِيْ أَنَّ مُوْجَبَ الرَّهْنِ هُوَ الْحَبْسُ الدَّائِمُ او دويم دليل دا دی چې د رهن موجب دائمي حبس دی [يعني د عقد له وخته څخه د قرض اداء کېدلو تر وخته مرهون شی را ګرځول چې مرتهن به په دې دوران کې مرهون شی دائمي د ځان سره محبوس ساتي] لِأَنَّهُ لَمْ يُشْرَعْ إِلَّا مَقْبُوْضًا ځکه رهن نه دی مشروع مګر په داسې حال کې چې هغه به مقبوض وي [يعني پر مرهون شي به قبضه کېږي] بِالنَّصِّ يا خو د نص [آيت]

په وجه أَوْ بِالنَّظَرِ إِلَى الْمَقْصُوْدِ مِنْهُ يا د رهن مقصود ته په کتلو سره وَهُوَ الْاِسْتِيْثَاقُ مِنَ الْوَجْهِ الَّذِيْ بَيَّنَّاهُ او د رهن مقصود مضبوطي حاصلول دي د هغه طريقې مطابق کوم چې موږ ذکر کړه [وهو صيانة حق المرتهن عن التوى بالجحود، واضجار الراهن ليسارع إلى قضاء الدين] وَكُلُّ ذٰلِكَ يَتَعَلَّقُ بِالدَّوَامِ او دا قوله [يعني رهن مقبوض کېدل بالنص إلخ] د دوام [دايمي حبس] سره متعلق دي وَلَا يُفْضِيْ إِلَيْهِ إِلَّا اسْتِحْقَاقُ الْحَبْسِ او دوام [دايمي حبس] ته رسول نه کوي مګر د حبس استحقاق وَلَوْ جَوَّزْنَاهُ فِي الْمُشَاعِ يَفُوْتُ الدَّوَامُ او که موږ په مُشاع شي کې رهن جائز وګرځوو نو دوام به فوت سي لِأَنَّهُ لَا بُدَّ مِنَ الْمُهَايَأَةِ ځکه [په مشاع شي] کې به نوبت تاکل ضروري وي [يا په بله وينا دا چې د مشاع د منافعو تقسيمول به ضروري وي] فَيَصِيْرُ كَمَا إِذَا قَالَ: رَهَنْتُكَ يَوْمًا وَيَوْمًا لَا نو داسي به وګرځي لکه راهن چې ووايي: زه دا شی يوه ورځ په رهن درته اږدم او يوه ورځ يې نه اږدم [يعني يوه ورځ زما دی او يوه ورځ د رهن په توګه ستا دی] وَلِهٰذَا لَا يَجُوْزُ فِيْمَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ وَمَا لَا يَحْتَمِلُهَا په همدې وجه [چې په مشاع کې دوام فوتيږي] رهن جائز نه دی په هغه [مشاع] شي کې هم چې د تقسيم احتمال لري او په هغه شي کې هم چې د تقسيم احتمال نه لري.

**لغات:** ﴿مُشاع﴾ د ضرب اسم مفعول دی: مشترک (کوم چې تر اوسه تقسيم سوی نه وي. يعني نا تقسيم شده مشترک)، شايع شده. ﴿يبتني﴾ د افتعال مضارع ده: مبني کېدل. مدار کېدل. ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: (حق) تر لاسه کول. اخيستل. ﴿مُوجَب﴾ د افعال د باب مفعول دی: واجب کړی سوی. حکم. مقتضا. ﴿تعيّن﴾ د تفعّل مصدر دی: متعين کېدل. ټاکل کېدل. ﴿دوام﴾ د نصر مصدر دی: دايمي کېدل. هميشه پاتېدل. ﴿مهايأة﴾ د مفاعلې مصدر دی: په نوبت، نوبت يو کار کول. د يو شي نفع په وار او نوبت سره تقسيمول چې يوه ورځ به دا سړی نفع ځني اخلي او بل ورځ به دا سړی نفع ځني اخلي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې زموږ په نېز د مُشاع (نا تقسيم سوي مُشترک) شي رهن جائز نه دی. بلکې دا ضروري ده چې هغه به تقسيم سوی وي (يعني د هر شريک حصه به پکښې متعينه او جلا کړل سوې وي. نو بيا يو شريک هغه په رهن اېښوولای سي)، د دې په خلاف د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د مشاع رهن جائز دی. په اصل کې د دغه اختلاف وجه د رهن په حکم کې اختلاف دی. زموږ په نېز د رهن

حکم دا دی چي په رهن سره د مرتهن لپاره "يدالاستيفاء" (د قرض ترلاسه کولو قبضه) ثابتيږي. او په مشاع يعني په نا تقسيم سوي مشترک شي کي دا حکم (ثبوت يدالاستيفاء) ثابتېدل ممکن نه دي. او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د رهن حکم دا دی چي په رهن سره مرهون شی د بيع لپاره متعين کيږي يعني د بيع قابل کيږي (چي تر عقد رهن وروسته مرتهن هغه خرڅولای سي). او دا حکم په مشاع شي کي ثابتېدلای سي ځکه د مشاع شي بيع جائز ده. او کله چي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز د رهن حکم په مشاع کي ثابتېدلای سي. نو ځکه د هغه په نېز د مشاع رهن هم جائز دی.

والثاني إلخ: د مشاع شي د رهن نه جائز کېدلو په هکله دا زموږ دويم دليل دی. حاصل يې دا دی چي د رهن مقبوض کېدل شرط دي (يعني دا شرط دي چي مرتهن به پر مرهون شي قبضه کوي) لکه څرنګه چي دا آيت ﴿فَرِهَانٌ مَقْبُوضَةٌ﴾ پر دې دلالت کوي (لکه مخکي چي هم ذکر سوه). همدارنګه د رهن له مقصود څخه هم دا ښکاريږي چي د رهن مقبوض کېدل شرط دي: ځکه د رهن مقصود دا دی چي (د قرض په هکله) مضبوطي او اعتماد حاصل سي چي راهن د قرض انکار نه وکړی سي.

لنډه دا چي د رهن شرط پر هغه قبضه کول او مقصود يې مضبوطي ده. او د قبضې او مضبوطي د حاصلولو لپاره دا ضروري ده چي مرهون شی د قرض اداء کېدلو تر وخته په دائمي توګه د مرتهن سره محبوس پاته سي يعني د مرتهن لپاره د دائمي حبس استحقاق پاته سي (يا په بله وينا دا چي د قرض اداء کېدلو تر وخته پوري مرهون شی فقط د مرتهن سره پرېښوول سي او مرتهن يې له بل هر چا څخه راوګرځوي). حال دا چي په مشاع شي کي دائمي حبس نه سي کېدلای: ځکه په هغه کي د بل شريک حق موجود دی. خو بيا هم که د مشاع شي رهن جائز وګرځول سي، نو په هغه کي به خامخا مهايات (نوبت تاکل) کيږي چي يوه ورځ به هغه د مرتهن سره وي او بله ورځ به د راهن د شريک سره وي. او دا همداسي ناجائز دي لکه راهن چي غيرِ مشاع شي مرتهن ته په رهن کښېږدي خو بيا داسي هم ورته ووايي چي دا شی به يوه ورځ ستا سره وي او يوه ورځ به زما سره وي (يعني يوه نه بله ورځ به ستا سره رهن وي) او دا ناجائز دي. نو اول صورت به هم ناجائز وي. ځکه کله چي مشاع شی يوه نه بله ورځ د مرتهن سره وي. نو په هغه کي به دائمي حبس فوت سي کوم چي په رهن کي ضروري دی. نو ځکه د مشاع رهن جائز نه دی. برابره هغه د تقسيم قابل وي او که نه وي (يعني برابره ده تقسيم قبلوي. که نه): ځکه دائمي حبس په دواړو صور تونو کي نه سي پکښې ثابتېدلای.

## د مشاع شي د هبې حکم او وجه

بِخِلَافِ الْهِبَةِ حَيْثُ تَجُوزُ فِيمَا لَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ په خلاف د هبې چې هبه په هغه شي کي جائز ده کوم چي د تقسيم احتمال نه لري لِأَنَّ الْمَانِعَ فِي الْهِبَةِ غَرَامَةُ الْقِسْمَةِ ځکه په هبه کي مانع شی د تقسيم تاوان دی وَهُوَ فِيمَا يُقْسَمُ او دا [د تقسيم تاوان] په همغه شي کي راتلای سي کوم چي تقسيمېدلای سي أَمَّا حُكْمُ الْهِبَةِ الْمِلْكُ او پاته سو د هبې حکم ملکيت دی وَالْمُشَاعُ يَقْبَلُهُ او مشاع شی ملکيت قبلوي وَهٰهُنَا الْحُكْمُ ثُبُوتُ يَدِ الِاسْتِيفَاءِ او دلته [په رهن کي] حکم د [قرض] تر لاسه کولو قبضه ثابتېدل دي وَالْمُشَاعُ لَا يَقْبَلُهُ وَإِنْ كَانَ لَا يَحْتَمِلُ الْقِسْمَةَ او مشاع شی دا حکم نه قبلوي که څه هم هغه د تقسيم احتمال نه لري.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي د مُشاع شي رهن خو مطلقاً ناجائز دی. برابره هغه د تقسيم قابل وي او که نه وي، لېکن د هبې حکم له رهن څخه جلا دی چي هغه په داسي مُشاع کي جائز ده کوم چي د تقسيم قابل نه وي (يعني داسي مشترک شی کوم چي نه سي تقسيمېدلای)؛ ځکه د مشاع شي په هبه کي د جواز مانع د تقسيمولو تاوان دی ځکه کله چي يو شريک خپله حصه هبه کړي نو اول به هغه شريک د قاسم کس په ذريعه مشاع شی تقسيموي او د هر شريک حصه به جلا کوي چي په دې سره به د تقسيم خرچ او تاوان پر هغه راسي، او ښکاره خبره ده چي د تقسيم تاوان هلته راځي چيري چي د تقسيم احتمال وي يعني شی د تقسيم قابل وي، لېکن چيري چي د تقسيم احتمال نه وي، هلته دا تاوان نه راځي لهذا هلته د هبې د جواز مانع نسته، نو ځکه مونږ وايو چي هغه مشاع کوم چي د تقسيم قابل نه وي د هغه هبه جائز ده؛ ځکه د هبې حکم د ملکيت ثابتېدل دي (چي په موهوب شي کي د موهوب لهٔ ملکيت ثابت سي)، او مشاع کېدل له دې څخه مانع نه دي بلکي مشاع شی ملکيت قبلوي او ملکيت پکښې ثابتېدلای سي. نو ځکه د هغه مشاع هبه جائز ده کوم چي د تقسيم قابل وي. د دې په خلاف د رهن حکم د "يد الاستيفاء" ثابتېدل دي (لکه مخکي چي ذکر سوه) او مشاع کېدل له دې څخه مانع دي. نو ځکه د مشاع شي رهن په هيڅ صورت کي هم جائز نه دی برابره ده هغه د تقسيم قابل وي او که نه وي. (احسن الهدايه)

## مشاع شی خپل شريک ته په رهن اېښوول

وَلَا يَجُوزُ مِنْ شَرِيكِهِ او د مشاع رهن د خپل شريک سره [هم] جائز نه دی لِأَنَّهُ لَا يَقْبَلُ حُكْمَهُ عَلَى الْوَجْهِ الْأَوَّلِ ځکه د اول دليل مطابق دا [د مشاع رهن] د رهن حکم نه قبلوي وَعَلَى الْوَجْهِ الثَّانِي يَسْكُنُ يَوْمًا بِحُكْمِ الْمِلْكِ وَيَوْمًا بِحُكْمِ الرَّهْنِ او د دويم دليل مطابق به مرتهن [په هغه کي] يوه ورځ د ملکيت

په حکم سره اوسيږي او يوه ورځ د رهن په حکم سره فَيَصِيرُ كَأَنَّهُ رَهَنَ يَوْمًا وَيَوْمًا لَا نو داسې سو لکه هغه چي يوه ورځ په رهن ورته اړدي او يوه ورځ يې نه ورته اړدي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي څرنګه له شريک څخه بغير بل چا ته مشاع شی په رهن (په ګرو) اېښوول جائز نه دي، همداسې خپل شريک (کوم چي په مشاع کي ور سره شريک وي. هغه) ته هم مشاع په رهن اېښوول جائز نه دي، مثلاً يو کور د زيد او خالد تر مينځ د شيوع په توګه مشترک دی (يعني تر اوسه يې سره تقسيم کړی نه دی)، نو دا جائز نه دي چي خالد دا کور زيد ته په رهن ورکړي.

څکه د مشاع د رهن نه جائز کېدلو په هکله مخکي دوه دليلونه بيان سول: ① د يد استيفاء نه ثابتېدل (چي په مشاع کي د مرتهن لپاره يد استيفاء نه ثابتيږي)، ② د حبس دائمي نه ثابتېدل. او دغه دواړه دليلونه چي څرنګه د غير شريک په صورت کي ثابتيږي همداسې دلته د خپل شريک په صورت کي هم ثابتيږي؛ څکه د اول دليل مطابق د رهن حکم د يد استيفاء ثابتېدل دي او هغه دلته هم نه سي کېدلای؛ څکه پر مشاع شي بالکل يد استيفاء نه سي ثابتېدلای.

او د دويم دليل مطابق هم دا رهن نه جائز کيږي، څکه دلته هم دائمي حبس نه سي ثابتېدلای، بلکي دلته خو به صورت داسې وي چي مرتهن (زيد) به په دې کور کي يوه ورځ د خپل ملکيت په لحاظ سره اووسي او دويمه ورځ به د رهن په اعتبار سره پکښې اووسي. نو ګواکي هغه يوه ورځ رهن دی او بل ورځ نه دی يا په بله وينا دا لکه راهن چي ووايي چي دا کور يوه نه بله ورځ په رهن درکوم او دا صورت ناجائز دی (لکه مخکي چي هم داسې صورت ذکر سو). نو څکه خپل شريک ته مشاع شی په رهن ورکول ناجائز دي.

## د عارضي شيوع حکم او د صاحبينو اختلاف

وَالشُّيُوعُ الطَّارِئُ يَمْنَعُ بَقَاءَ الرَّهْنِ فِي رِوَايَةِ الْأَصْلِ او طاري شيوع د مبسوط د روايت مطابق د رهن بقاء [باقي والی] منع کوي [او رهن فاسدوي] وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّهُ لَا يَمْنَعُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي نه يې منع کوي لِأَنَّ حُكْمَ الْبَقَاءِ أَسْهَلُ مِنْ حُكْمِ الِابْتِدَاءِ څکه چي د بقاء حکم د ابتداء له حکم څخه آسانه وي فَأَشْبَهَ الْهِبَةَ نو دا د هبې مشابه سو [او شيوع طاري د هبې بقاء نه منع کوي]

**اللغات:** ﴿طاري﴾ د فتح د باب فاعل دی: وروسته واقع کېدونکي (وروسته پېښېدونکی). عارضي.
﴿أسهل﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات آسانه.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي يو سړي بل چا ته خپله څمکه په رهن (په ګرو) ورکړه. بيا يو بل سړي مثلاً زيد په هغې کي د خپل استحقاق دعوی ثابته کړه چي په دې څمکه کي دومره حصه

زما ده خو د خپلې حصې طرف يې متعين نه کړی چې د دغه طرف ځمکه زما ده (چې داسې شرکت ته شيوع وايي)، نو اوس به څه کيږي؟ ځکه په دې مرهونه ځمکه کې شيوع راغلی او دا طاري او عارضي شيوع دی، ځکه دا مخکې نه وو. بلکې تر عقدِ رهن وروسته واقع سو. نو فرمايي چې په دې باره کې دوه روايتونه دي:

①... د مبسوط د روايت مطابق دا رهن فاسديږي؛ ځکه شيوعِ طاري د رهن بقاء او جواز منع کوي. يعني رهن که څه هم په ابتداء کې جائز منعقد سي. لېکن د وروسته واقع کېدونکي شيوع په وجه هم هغه فاسديږي. يا په بله وينا دا چې د مبسوط د روايت مطابق شيوع که ابتدائي وي او که طاري وي په هر صورت کې د رهن د جواز منافي دی او رهن فاسدوي.

②... او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د روايت مطابق دا رهن جائز دی؛ ځکه دا د رهن د بقاء حالت دی (چې شيوع پکښې واقع سوی دی)، د رهن د ابتداء حالت نه دی، او د بقاء حکم د ابتداء له حکم څخه آسانه وي او د بقاء په حالت کې آساني او تخفيف کيږي، نو ځکه دا رهن به جائز وي. او لکه څرنګه چې هبه په شيوعِ طاري سره نه فاسديږي (يعني که څوک بل چا ته ځمکه يا بل شی هبه کړي او بيا وروسته په هغه کې دا پورتنی صورت پېښ سي. نو هبه نه فاسديږي)، نو همداسې به پر رهن هم د هغه اثر نه لوېږي او رهن به صحيح پاتېږي.

## د مبسوط د روايت دليل او وضاحت

وَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّ الِامْتِنَاعَ لِعَدَمِ الْمَحَلِّيَّةِ د اول قول [رواية الأصل] دليل دا دی چې [د رهنِ مشاع] منع کېدل د محل والي د معدوم کېدو په وجه دی [يعني مُشاع شی د رهن محل نه دی] وَمَا يَرْجِعُ إِلَيْهِ او کوم څه چې د محل طرف ته راجع وي فَالِابْتِدَاءُ وَالْبَقَاءُ سَوَاءٌ نو ابتداء او بقاء [په هغه کې] برابر وي كَالْمَحْرَمِيَّةِ فِي بَابِ النِّكَاحِ لکه د نکاح په باب کې محرم والی دی بِخِلَافِ الْهِبَةِ په خلاف د هبې لِأَنَّ الْمُشَاعَ يَقْبَلُ حُكْمَهَا وَهُوَ الْمِلْكُ ځکه مشاع شی د هبې حکم قبلوي او هغه ملکيت دی وَاعْتِبَارُ الْقَبْضِ فِي الِابْتِدَاءِ لِنَفْيِ الْغَرَامَةِ او [د هبې] په ابتداء کې د قبضې اعتبار کول [د تقسيم] د تاوان ليرې کولو لپاره دي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه مخکې چې دا موږ [په کتاب الهبه] کې بيان کړه [چې د هغه الفاظ داسې وه: وفي إثبات الملك قبل القبض إلزام المتبرع شيئا لم يتبرع به وهو التسليم] وَلَا حَاجَةَ إِلَى اعْتِبَارِهِ فِي حَالَةِ الْبَقَاءِ او د بقاء په حالت کې د قبضې اعتبار کولو لره هيڅ ضرورت نسته وَلِهَذَا يَصِحُّ الرُّجُوعُ فِي بَعْضِ الْهِبَةِ

په همدې وجه د هبې په بعضې حصه کې رجوع کول صحيح دي ﴿وَلَا يَجُوزُ فَسْخُ الْعَقْدِ فِي بَعْضِ الرَّهْنِ﴾ خو د رهن په بعضې حصه کې عقد رهن فسخ کول جائز نه دي.

**اللغات**: ﴿امتناع﴾ د افتعال مصدر دی: منع کېدل، ممنوع کېدل. ﴿محلية﴾ محل والی (محل کېدل).
د يو شي لپاره ځای کېدل. ﴿محرمية﴾ محرم والی (محرم کېدل) چې نکاح ور سره حرامه وي.

**تشريح**: په تېر عبارت کې وويل سوه چې د مبسوط د روايت مطابق شيوعِ طاري رهن فاسدوي. په دې عبارت کې د هاغه دليل بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چې په مشاع شي کې ګرد سره دا صلاحيت نسته چې هغه دې د رهن محل وګرځي، او په کوم شي کې چې محليت معدوم سي. په هغه کې د ابتداء حالت او د بقاء حالت دواړه سره برابر وي يعني د دواړو يو حکم وي، لکه څرنګه چې د نکاح په باب کې محرميت دی چې کومه ښځه د سړي لپاره د نکاح محل نه وي او محرمه وي، نو هغه د ابتداء او بقاء په دواړو حالتونو کې حرامه وي. مثلاً که يو څوک د نا خبرۍ په وجه د خپلې رضاعي خور سره نکاح وکړي او بيا وروسته په خبر سي چې دا زما رضاعي خور ده، نو هم تفريق واجب دی؛ ځکه څرنګه چې ابتداءً د رضاعي خور سره نکاح حرامه ده همداسې بقاءً هم حرامه ده: ځکه په رضاعي خور کې د نکاح محليت معدوم دی، نو همداسې په مشاع شي کې هم د رهن محليت معدوم دی، لهذا د ابتداء او بقاء په يوه حالت کې به هم د مشاع رهن جائز نه وي.

بخلاف الهبة إلخ: يعني د هبې حکم د رهن له حکم څخه جلا دی چې شيوعِ طاري هبه نه فاسدوي؛ ځکه مشاع شی د هبې حکم يعني ملکيت قبلوي او ملکيت پکښې ثابتېدلای سي، او همدا د حکم قبلول او ملکيت پکښې ثابتېدل او موجودېدل د هبې د جواز دليل دی، لهذا په دې هکله اعتراض کول صحيح نه دي.

واعتبار القبض إلخ: د دې حاصل دا دی چې کله ستاسې په نېز په شيوعِ طاري سره هبه نه فاسدېږي او هبه صحيح پاتېږي، نو پکار دا ده چې کوم شی تقسيم قبلوي د هغه هبه دې ابتداءً هم ستاسې په نېز جائز سي ځکه په هغه کې هم ملکيت موجودېږي او ثابتېږي، حال دا چې تاسې هغه ته ناجائز واياست او د قبضې وغيره شرط لګوئ (چې کله موهوب لهٔ قبضه پر وکړي، نو بيا يې جائز ګرځوئ): د دې اعتراض په جواب کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د ابتداءً قبضې اعتبار موږ ځکه کړی دی چې پر واهب د تقسيم تاوان لازم نه سي او له دې څخه خوندي سي؛ ځکه واهب فقط د هبې اراده کړې ده او د تقسيم د تاوان اراده او التزام يې نه دی کړی، نو ځکه موږ په مذکوره صورت کې د ملکيت ثابتېدلو باجود هم ابتداءً هبه جائز نه ده ګرځولې بلکې په ابتداء کې مو قبضه شرط کړې ده.

او پاته سود بقاء په حالت کي قبضې لره هیڅ ضرورت نه پاتیږي؛ ځکه قبضه خو د عقد د تمامیت (بشپړتیا) لپاره لازمه وی (چي د قبضې په ذریعه عقد تام وګرځي)، او دلته عقد هبه له مخکي څخه تام سوی دی، نو ځکه په شیوعِ طاري سره هبه نه فاسدیږي، همدا وجه ده چي د هبې (موهوب شي) په بعضي حصه کي رجوع کول صحیح دي مثلاً که یو څوک بل چا ته خپل کښت (کېتی) هبه کړي او بیا د کښت څه حصه واپس ځني واخلي، نو په دې سره هبه نه فاسدیږي بلکي صحیح پاتیږي، ځکه دا شیوعِ طاري دی کوم چي هبه نه فاسدوي، د دې په خلاف که داغه صورت په رهن کي پېښ سي یعني که راهن مرتهن ته خپل کښت په رهن ورکړي او بیا راهن د کښت څه حصه واپس ځني واخلي، نو رهن فاسدیږي؛ ځکه رهن چي څرنګه په ابتدائي شیوع سره فاسدیږي، همداسي په طاري شیوع سره هم فاسدیږي.

## د داسي شیانو رهن (ګرو) چي بل شی ور سره متصل وي (حکم او اختلاف)

قَالَ: وَلَا رَهْنُ ثَمَرَةٍ عَلٰی رُءُوْسِ النَّخِیْلِ فرمایي: او جائز نه دي د مېوې رهن کوم چي د درختو پر سرونو [ښاخونو] وي وَلَا زَرْعِ الْأَرْضِ دُوْنَ الْأَرْضِ او نه د ځمکي د کښت رهن له ځمکي څخه بغیر وَلَا رَهْنُ النَّخِیْلِ فِي الْأَرْضِ دُوْنَهَا او نه د هغه درختو رهن چي په ځمکه کي [شنې] وي له ځمکي څخه بغیر لِأَنَّ الْمَرْهُوْنَ مُتَّصِلٌ بِمَا لَیْسَ بِمَرْهُوْنٍ خِلْقَةً ځکه [په دې صورتونو کي] مرهون شی د هغه شي سره په پیدایښي توګه متصل [لګېدلی] دی کوم چي مرهون نه دی فَکَانَ فِي مَعْنَی الشَّائِعِ نو دا به د شائع په درجه کي وي وَکَذَا إِذَا رَهَنَ الْأَرْضَ دُوْنَ النَّخِیْلِ أَوْ دُوْنَ الزَّرْعِ او همدارنګه کله چي هغه ځمکه په رهن ورکړي بغیر له درختو یا بغیر له کښت څخه أَوِ النَّخِیْلَ دُوْنَ الثَّمَرِ یا درختي [په رهن ورکړي] بغیر له مېوې څخه لِأَنَّ الِاتِّصَالَ یَقُوْمُ بِالطَّرَفَیْنِ ځکه اتصال له دواړو طرفونو څخه قائم [موجود] دی [مثلاً څرنګه چي مېوه د درختو سره متصله ده. همداسي درختي د مېوي سره متصله دي] فَصَارَ الْأَصْلُ أَنَّ الْمَرْهُوْنَ إِذَا کَانَ مُتَّصِلًا بِمَا لَیْسَ بِمَرْهُوْنٍ نو قاعده دا سوه چي کله مرهون شی د داسي شي سره متصل وي کوم چي مرهون نه وي لَمْ یَجُزْ نو دا جائز نه دي لِأَنَّهُ لَا یُمْکِنُ قَبْضُ الْمَرْهُوْنِ وَحْدَهُ ځکه [په دې صورت کي] یوازي پر مرهون شي قبضه کول ممکن نه دي وَعَنْ أَبِيْ حَنِیْفَةَ أَنَّ رَهْنَ الْأَرْضِ بِدُوْنِ الشَّجَرِ جَائِزٌ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چي له درختو څخه بغیر د

ځمکې رهن جائز دی [یعني که درختې مستثنیٰ کړي او یوازې ځمکه په رهن ورکړي نو جائز دي] لِأَنَّ الشَّجَرَ اِسْمٌ لِلنَّابِتِ ځکه درخته د راشنه کېدونکي شي نوم دی فَيَكُونُ اِسْتِثْنَاءُ الْأَشْجَارِ بِمَوَاضِعِهَا نو دا [د درختو استثناء] به د درختو د خپلو ځایو سره استثناء وي بِخِلَافِ مَا إِذَا رَهَنَ الدَّارَ دُوْنَ الْبِنَاءِ په خلاف د هغه صورت کله چې له بناء [ودانۍ] څخه بغیر کور په رهن ورکړي لِأَنَّ الْبِنَاءَ اِسْمٌ لِلْمَبْنٰى ځکه بناء د جوړ کړل سوي څه نوم دی فَيَصِيْرُ رَاهِنًا جَمِيْعَ الْأَرْضِ وَهِيَ مَشْغُوْلَةٌ بِمِلْكِ الرَّاهِنِ نو [په دې صورت کې راهن] به د ټوله ځمکې په رهن ورکونکی وګرځي حال دا چې ځمکه د راهن په ملکیت سره مشغوله ده وَلَوْ رَهَنَ النَّخِيْلَ بِمَوَاضِعِهَا او که درختې د خپلو ځایو سره په رهن ورکړي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ هٰذِهٖ مُجَاوَرَةٌ ځکه چې دا همجواري [هم ځنګي] ده وَهِيَ لَا تَمْنَعُ الصِّحَّةَ او هغه د رهن صحت نه منع کوي.

**اللغات:** ﴿النخيل﴾ واحد یې نَخْلَةٌ دی: په اصل کې د خرما درختې ته وایي. ﴿الشجر﴾ واحد یې شَجَرَةٌ دی: عامه درخته، پر واحد یې هم اطلاق کیږي، ﴿مجاورة﴾ د مفاعلې د باب اسم مصدر دی: همجواري او هم ځنګي، یو د بل څنګ ته کېدل یا په بله وینا یو بل ته نژدې کېدل. ګاونډیتوب او همسایه توب.

**تشریح:** د عبارت حاصل دا دی چې که مرهون شی د غیر مرهون شی سره داسې متصل او موښتی وي چې له اختلاط څخه بغیر یوازې پر مرهون شي قبضه کول ممکن نه وي، نو دا ډول شی د مُشاع شي په درجه کې دی چې د هغه رهن به ناجائز شمېرل کیږي، دا یو داسې قاعدهٔ کلیه ده چې ډېرې مسئلې پر متفرّع کیږي، مثلاً:

①... مېوه داره درختې چې مېوه ور سره متصله وي، نو له درختو څخه بغیر یوازې د هغه مېوې رهن جائز نه دی.

②... فصل داره ځمکه یعني چې کښت پکښې شین وي، نو بغیر له ځمکې د هغه کښت رهن جائز نه دی.

③... درختو والا ځمکه، نو بغیر له ځمکې د هغه درختو رهن جائز نه دی.

④... همدارنګه د ځمکې رهن له هغه درختو څخه بغیر جائز نه دي کوم چې په ځمکه کښې ولاړې وي.

⑤... همدارنګه د ځمکې رهن له هغه کښت څخه بغير جائز نه دی کوم چې په ځمکه کښې شين وي.

⑥... همدارنګه د درختو رهن له هغه مېوې څخه بغير جائز نه دی کوم چې د درختو سره متصله (لګېدلې) وي. ځکه څرنګه چې مېوه د درختو سره متصله ده، همداسې درختې د مېوې سره متصله دي، نو له دواړو طرفونو څخه اتصال سته، او دا اتصال د رهن له جواز څخه مانع دی.

په دې هر صورت کې مرهون د غير مرهون سره په خلقي او پيدايشي توګه متصل دی او له اختلاط څخه بغير يوازې پر مرهون قبضه کول ممکن نه دي، نو ځکه دا د مشاع شي د رهن په څېر سو، او د مشاع رهن جائز نه دی، نو ځکه له دې صورتونو څخه په هر يوه صورت کې رهن جائز نه دی.

وعن أبي حنيفة إلخ: حسن بن زياد له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دا قول نقل کړی دی چې له درختو څخه بغير د ځمکې رهن جائز دی؛ ځکه درخته راشنه کېدونکې شی ده، لهذا په دې صورت کې ګواکې راهن يوازې ځمکه په رهن ورکړې ده او درختې يې د ځپلو ځايو سره له رهن څخه مستثنیٰ کړې دي (يعني ګواکې درختې يې د هغه ځايو سره چې درختې پکښې شنې دي له رهن څخه جلا کړي دي)، او په داسې صورت کې يوازې پر ځمکه قبضه کول ممکن دي او د درختو په وجه څه نزاع او اختلاف نه راځي، نو ځکه دا صورت به جائز وي.

د دې په خلاف که څوک کور په رهن ورکړي او د هغه بناء (وداني) له رهن څخه مستثنیٰ کړي، نو دا جائز نه دي؛ ځکه بناء هغه څه دي کوم چې پر ځمکه جوړ کړل سوي وي. لهذا دلته صورت داسې سو چې راهن خپل ټوله ځمکه په رهن ورکړه په داسې حال کې چې ځمکه د راهن په خپل د ملکيت يعني په بناء سره مشغوله ده، نو ځکه دا د مُشاع د رهن په څېر سو، او تاسې ته معلومه ده چې د مُشاع رهن جائز نه دی.

ولو رهن النخيل إلخ: د دې حاصل دا دی چې که څوک درختې د خپلو ځايو سره په رهن ورکړي (يعني هغه ځايونه چې درختې پکښې شنې دي او په درختو سره نيول سوي دي)، څرنګه چې په دې صورت کې د درختو له ځايو څخه بغير نوره ځمکه د راهن په ملکيت کې پاته ده نو مرهون شی د راهن د ملکيت سره متصل دی لهذا دا وهم کيدې چې دا صورت به ناجائز وي، نو فرمايي چې دا صورت جائز دی: ځکه د نورې ځمکې اتصال د مرهون سره پيدايشې اتصال نه دی بلکې دا مجاورت او د څنګ والا اتصال دی، او مجاورت د شيوع په درجه کې نه دی (يا په بله وينا دا چې په دې کې شيوع نه ثابتيږي کوم چې د جواز مانع دی)، نو ځکه د رهن دا صورت جائز دی.

## د مشاع شي په بيع او رهن کي فرق

وَلَوْكَانَ فِيْهِ تَمَرٌ او که په درختو کي خرما [مېوه] وي يَدْخُلُ فِي الرَّهْنِ نو هغه به په رهن کي داخليږي لِأَنَّهُ تَابِعٌ ځکه هغه [مېوه] تابع ده لِاتِّصَالِهِ بِهِ ځکه چي د درختو سره متصله ده فَيَدْخُلُ تَبَعًا تَصْحِيْحًا لِلْعَقْدِ نو ځکه د عقد صحيح ګرځولو لپاره به هغه تبعاً [په رهن کي] داخليږي بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّ بَيْعَ النَّخِيْلِ بِدُوْنِ التَّمَرِ جَائِزٌ ځکه د درختو بيع له خرما [مېوې] څخه بغير جائز ده وَلَا ضَرُوْرَةَ إِلٰى إِدْخَالِهِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرِهٖ او د هغې له ذکر کېدلو څخه بغير [په بيع کي] د هغې داخلولو ته هيڅ ضرورت نسته وَبِخِلَافِ الْمَتَاعِ فِي الدَّارِ او په خلاف د سامان کوم چي په کور کي حَيْثُ لَا يَدْخُلُ فِي رَهْنِ الدَّارِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرِهٖ چي د هغه له ذکر کېدلو څخه بغير هغه د کور په رهن کي نه داخليږي لِأَنَّهُ لَيْسَ بِتَابِعٍ بِوَجْهٍ مَا ځکه چي سامان په هيڅ توګه هم تابع نه دی وَكَذَا يَدْخُلُ الزَّرْعُ وَالرَّطْبَةُ فِي رَهْنِ الْأَرْضِ او همدارنګه کښت او وابنه د ځمکي په رهن کي داخليږي وَلَا يَدْخُلُ فِي الْبَيْعِ او په بيع کي نه داخليږي لِمَا ذَكَرْنَا فِي الثَّمَرَةِ د هغه دليل په وجه کوم چي مونږ د مېوې په هکله بيان کړی.

**اللغات:** ﴿تمر﴾ واحد تَمرةٌ دی: خرما. ﴿الرطبة﴾ د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي: ① د حيوانو شنه وابنه. لکه شپېشتي، شوتل او داسي نور. او کله چي وچ کړل سي نو هغوی ته "قَت" وايي چي په پښتو کي ورته "بېده" وايي. ② همدارنګه هغه وابنه او سبزيجات کوم چي تر و تازه خوړل کيږي. لکه کاهو او داسي نور. ③ د شپېشتو او غاټې په څېر يو ډول بوټی دی کوم چي تر کلو. کلو پوري په ځمکه کي ولاړ وي او کله چي هم پرېکړل سي نو بيا راپورته سي، او شپېشتي هم دا خاصيت لري. ﴿الثمرة﴾ مېوه.

**تشريح:** د دې عبارت اصل مقصد د مُشاع شي د بيع او رهن تر مېنځ فرق ښکاره کول دي. مخکي ذکر سوه چي د مشاع شي رهن جائز نه دی. لهذا که څوک مېوه داره درختي مرتهن ته په رهن ورکړي او د مېوې هيڅ ذکر نه وکړي (چي هغه هم رهن دي. که نه)، نو څرنګه چي مېوه د درختي تابع ده. لهذا هغه به هم په رهن کي داخله شمېرل کيږي، د دې لپاره چي عقد صحيح وګرځي؛ ځکه که هغه په رهن کي داخله نه کړل سي نو د مرهون سره د غيرِ مرهون د اتصال په وجه به د مشاع شي رهن لازم سي او عقدِ رهن به باطل سي.

د دې په خلاف که څوک مېوه داره درختي خرڅي کړي نو له ذکر او صراحت څخه بغیر مېوه په بیع کي نه داخلیږي (بلکي کله چي مېوه صراحتاً ذکر کړي چي دغه درختي د مېوې سره خرڅوم او رانیسم. نو بیا هغه په بیع کي داخلیږي. او بغیر له صراحته نه پکښي داخلیږي)؛ ځکه له مېوې څخه بغیر هم عقد بیع صحیح ګرځي، لهذا بلا وجه له صراحت څخه بغیر به مېوه په بیع کي نه داخلول کیږي (د دې تفصيلي بيان د هدیې د جلد ثالث په اوله حصه کي تېر سوی دی).

**بخلاف المتاع إلخ:** همدارنګه که څوک کور په رهن ورکړي او په هغه کي د ده سامان پروت وي، نو دا سامان بغیر له صراحته په رهن کي نه داخلیږي؛ ځکه سامان د کور تابع نه دی. همدارنګه که ځمکه په رهن ورکړي او په هغې کي کښت شین وي، هغه که د هر شي کښت وي که څه هم د شپېشتو ېخونه وي، نو کښت بغیر له صراحته د ځمکي په رهن کي داخلیږي؛ ځکه کښت د ځمکي تابع دی. د دې په خلاف که ځمکه خرڅه کړي او په هغې کي کښت شین وي، نو کښت بغیر له صراحته په بیع کي نه داخلیږي؛ دلیل یې هغه دی کوم چي د مېوه داره درختي د بیع په هکله ذکر سو.

## د ځمکي، کور او جایداد په رهن کي درختي، نهالان او بناء هم داخلیږي

| |
|---|
| وَيَدْخُلُ الْبِنَاءُ وَالْغَرْسُ او داخلیږي ودانۍ او نهالان [او بوټي] فِي رَهْنِ الْأَرْضِ وَالدَّارِ وَالْقَرْيَةِ په رهن کي د ځمکي او کور او جایداد لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلَوْ رَهَنَ الدَّارَ بِمَا فِيهَا او که چیري کور په رهن ورکړي سره له هغه سامانه کوم چي په کور کښي وي جَازَ نو [هم] جائز دي. |

**اللغات:** ﴿البناء﴾ جوړ کړی سوی ځای، ودانۍ، عمارت. ﴿الغَرْس﴾ لګول سوی (اینبوول سوی) نهال او بوټي. اینبوول سوې (شنه کړل سوې) درخته. ﴿القرية﴾ د دې لفظ څو معناوي نقل سوي دي. یوه خو یې هغه مشهوره معنیٰ ده چي د صحرا کلي او علاقه. یا داسي ځای چي څو ودانۍ او کورونه پکښي جوړ سوي وي. او بله معنیٰ یې په "الضَّيْعَة" سره سوې ده. یعني جایداد. فصل داره او غله داره ځمکه. مراد به یې داسي جایداد وي چي بوټي، نهالان او ودانۍ پکښي وي. (مصباح المنير، معجم لغة الفقهاء)

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک خپله ځمکه یا خپل کور په رهن ورکړي یا یو زمیندار کس خپل جایداد په رهن ورکړي، نو بوټي او نهالان، او بناء (ودانۍ) وغیره کوم چي په هغه ځمکه، کور او جایداد کي وي ټول به دې رهن کي داخلیږي؛ ځکه دا شیان هم د ځمکي، کور او جایداد تابع دي او ور سره متصل دي، نو د عقد رهن د صحیح ګرځولو لپاره به هغوی هم په رهن کي داخلول کیږي.

او که څوک کور د سامان سره په رهن ورکړي چي کور د خپل سامان سره په رهن درکوم. نو هم رهن جائز دی؛ ځکه داسي څه نسته چي د رهن د جواز مانع سي.

## که د مرهون شي بعضي حصه د بل چا مستحقه وخېږي نو څه حکم دی؟

وَلَوِ اسْتُحِقَّ بَعْضُهُ او که د مرهون بعضي حصه مستحقه وخېږي إِنْ كَانَ الْبَاقِي يَجُوزُ ابْتِدَاءُ الرَّهْنِ عَلَيْهِ وَحْدَهُ نو که پاته حصه دومره وي چي يوازي پر هغې [هم] د رهن ابتداء جائز وي بَقِيَ رَهْنًا بِحِصَّتِهِ نو د هغه حصې په اندازه رهن باقي پاتېږي وَإِلَّا بَطَلَ كُلُّهُ کنې ټوله رهن باطلېږي لِأَنَّ الرَّهْنَ جُعِلَ كَأَنَّهُ مَا وَرَدَ إِلَّا عَلَى الْبَاقِي ځکه رهن به داسي گرځول کېږي گواکي هغه صرف پر دې پاته حصه وارد سوی دی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که څوک یو ځای یا ځمکه په رهن ورکړي او بیا د هغه ځای څه حصه د بل چا مستحقه وخېږي (یعني بل څوک دعویٰ وکړي چي دومره حصه پکښې زما ده او خپل استحقاق ثابت هم کړي)، نو که د ما بقي ځای مالیت دومره وي چي ابتداءً د هغه ځای رهن جائز وي او په رهن ایښوول کېدای سي، نو په دې استحقاق سره رهن نه باطلېږي او په ما بقي مقدار کې رهن پاتېږي، او د بل چا تر استحقاق وروسته به داسي گڼل کېږي چي دا راهن له ابتداء او شروع څخه پر همدې ما بقي ځای منعقد سوی وو، او که تر استحقاق وروسته د ما بقي ځای مالیت دومره وي چي هغه ابتداءً په رهن نه سي ایښوول کېدای، نو په دې صورت کې ټوله رهن باطلېږي. (احسن الهدایه)

## که مرهون شی د راهن په حق سره مشغول وي نو د رهن حکم

وَيَمْنَعُ التَّسْلِيمَ كَوْنُ الرَّاهِنِ أَوْ مَتَاعِهِ فِي الدَّارِ الْمَرْهُونَةِ او ورسپارل کېدل منع کوي په مرهون کور کې د راهن یا د هغه د سامان کېدل [یعني په مرهون کور کې راهن یا د هغه سامان موجود بېدل د هغه کور ورسپارل کېدل منع کوي چي مرتهن ته نه سپارل کېږي] وَكَذَا مَتَاعُهُ فِي الْوِعَاءِ الْمَرْهُونِ او همدارنګه په مرهون لوښي کې د راهن سامان کېدل وَيَمْنَعُ تَسْلِيمَ الدَّابَّةِ الْمَرْهُونَةِ الْحِمْلُ عَلَيْهَا او پر مرهون سپرلي بار [موجودېدل] د هغه ورسپارل کېدل منع کوي فَلَا يَتِمُّ حَتَّى يُلْقِيَ الْحِمْلَ نو ورسپارل نه پوره کېږي تر دې چي هغه بار کښته کړي لِأَنَّهُ شَاغِلٌ لَهَا ځکه دا بار د څاروي مشغولونکی دی بِخِلَافِ مَا إِذَا رَهَنَ الْحِمْلَ دُونَهَا په خلاف د هغه صورت کله چي [یوازي] بار په رهن ورکړي، نه څاروی حَيْثُ يَكُونُ رَهْنًا تَامًّا إِذَا دَفَعَهَا إِلَيْهِ نو دا رهن تام ګرځي کله چي مرتهن څاروی راهن ته ورکړي لِأَنَّ الدَّابَّةَ مَشْغُولَةٌ بِهِ ځکه څاروی په بار سره مشغوله دی فَصَارَ كَمَا إِذَا رَهَنَ مَتَاعًا فِي دَارٍ

أَوْفِيْ وِعَاءٍ دُوْنَ الدَّارِ وَالْوِعَاءِ نو داسې سو لکه هغه سامان چې په رهن کښېږدي کوم چې په کور يا لوښي کې وي، نه کور او لوښي بِخِلَافِ مَا إِذَا رَهَنَ سَرْجًا عَلَى دَابَّةٍ أَوْ لِجَامًا فِيْ رَأْسِهَا په خلاف د دې صورت کله چې هغه زين په رهن کښېږدي کوم چې پر څاروي وي يا هغه قيزه کوم چې د څاروي په سر کې وي وَدَفَعَ الدَّابَّةَ مَعَ السَّرْجِ وَاللِّجَامِ او څاروی د زين او قيزې سره ورکړي حَيْثُ لَا يَكُوْنُ رَهْنًا حَتّٰى يَنْزِعَهُ مِنْهَا ثُمَّ يُسَلِّمَهُ إِلَيْهِ نو دا رهن نه کيږي تر دې چې راهن هغه [زين او قيزه] له څاروي څخه جلا کړي بيا يې مرتهن ته وسپاري لِأَنَّهُ مِنْ تَوَابِعِ الدَّابَّةِ ځکه هغه د څاروي له توابعو څخه دي بِمَنْزِلَةِ الثَّمَرَةِ لِلنَّخِيْلِ د مېوې په درجه کې د درختو لپاره [يعني لکه څرنګه چې مېوه د درختو له توابعو څخه ده] حَتّٰى قَالُوْا يَدْخُلُ فِيْهِ مِنْ غَيْرِ ذِكْرٍ تر دې چې مشايخو فرمايلي دي چې دا تابع [زين او قيزه] له ذکر څخه بغير هم په متبوع [په (رهن د)آس] کې داخليږي.

**اللغات:** ﴿تسليم﴾ د تفعيل مصدر دی: ورسپارل (حواله کول). ورسپارل کېدل. ﴿وِعاء﴾ لوښی.
﴿الحِمْل﴾ (بکسر الحاء): بار، لوډ. ﴿ينزع﴾ د ضرب مضارع ده: کښل. ليري کول (جلا کول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې عقد رهن همغه وخت پوره کيږي او تام ګرځي. کله چې مرهون شی په کامله توګه مرتهن ته وسپارل سي يعني چې پر مرهون شي د مرتهن قبضه راسي او د مرهون شي سره په هيڅ ډول هم د راهن حق او تعلق پاته نه سي، همدا وجه ده که په مرهون کور کې د راهن سامان وي يا خپله راهن پکښې استوګن وي، نو په مرهون کې تسليم نه ثابتيږي، همدارنګه که مرهون شی لوښی يا خلته وغيره وي او په هغه کې د راهن سامان وي، نو هم تسليم نه ثابتيږي. همدارنګه که راهن خپل آس په رهن ورکړي او پر هغه د راهن سامان پروت وي، نو هم تسليم نه ثابتيږي؛ ځکه په دې ټولو صورتونو کې مرهون شی د راهن په حق سره مشغول دی. حال دا چې د رهن د صحت لپاره دا ضروري ده چې مرهون شی به د راهن له حق او تصرف څخه پاک او خالي وي. نو ځکه تر څو چې د راهن سامان ليري نه کړل سي، تر هغه وخته تسليم نه پوره کيږي او عقد رهن تام نه ګرځي.

د دې په خلاف که راهن يوازې د آس سامان په رهن ورکړي او آس نه ورکړي، نو کله چې هغه آس د سامان سره مرتهن ته ورسيږي، نو تسليم ثابتيږي؛ ځکه په دې کې صورت کې مرهون (سامان) د راهن په حق سره مشغول نه دی، بلکې خپله په مرهون (سامان) سره بل شی (يعني آس) مشغول دی کوم چې د تسليم د ثبوت مانع نه دي. او د دې مثال داسې دی لکه څوک چې په کور يا لوښي کې

موجود سامان په رهن ورکړي او کور يالوښی نه ورکړي، نو هم تسليم ثابتيږي. او په مرهون (سامان) سره د کور يا لوښي مشغولېدل د تسليم د صحت او ثبوت مانع نه دي.

بخلاف ما إذا رهن سرجاً: فرمايي که راهن داسي زين په رهن ورکړي کوم چي پر آس پروت وي يا داسي قيزه (لګام) په رهن ورکړي کوم چي دآس په سر کي اچول سوی وي او هغه له آس څخه جلا نه کړي، نو تسليم نه ثابتيږي تر دې چي راهن زين او قيزه له آس څخه جلا او ليري کړي او مرتهن يې وسپاري؛ ځکه زين او قيزه دآس تابع دي او دآس په رهن کي هغوی بغير له ذکر کولو څخه هم داخليږي (يعني که څه هم د هغوی يادونه او ذکر نه وکړي نو هم پکښي داخلي). لکه مېوه چي د درختي تابع ده او هغه بغير له ذکر څخه د درختي په رهن کي داخليږي (لکه مخکي چي ذکر سوه). نو ځکه د تسليم د ثبوت لپاره زين او قيزه له آس څخه جلا کول او يوازي مرتهن ته سپارل ضروري دي. (احسن الهدايه)

## د کومو شيانو رهن صحيح نه دی؟

قَالَ: وَلَا يَصِحُّ الرَّهْنُ بِالْأَمَانَاتِ فرمايي: او د امانتونو په عوض کي رهن صحيح نه دی كَالْوَدَائِعِ وَالْعَوَارِيِّ وَالْمُضَارَبَاتِ وَمَالِ الشَّرِكَةِ لکه وديعتونه، عاريتونه، مضاربتونه او د شرکت مال [چي د دې ټولو په عوض کي رهن صحيح نه دی] لِأَنَّ الْقَبْضَ فِيْ بَابِ الرَّهْنِ قَبْضٌ مَضْمُوْنٌ ځکه قبضه د رهن په باب کي ضمان والا قبضه وي [يعني د رهن په باب کي چي (پر مرهون) کومه قبضه کيږي هغه مضمونه وي چي که مرهون هلاک سي نو ضمان يې واجبيږي] فَلَا بُدَّ مِنْ ضَمَانٍ ثَابِتٍ لِيَقَعَ الْقَبْضُ مَضْمُوْنًا نو د ضمان ثابتېدل ضروري دي د دې لپاره چي قبضه مضمونه واقع سي وَيَتَحَقَّقَ إِسْتِيْفَاءُ الدَّيْنِ مِنْهُ او په هغه سره قرض ترلاسه کول متحقق سي وَكَذٰلِكَ لَا يَصِحُّ بِالْأَعْيَانِ الْمَضْمُوْنَةِ بِغَيْرِهَا او همدارنګه د هغه شيانو په عوض کي رهن صحيح نه دی کوم چي مضمون بغيره وي كَالْمَبِيْعِ فِيْ يَدِ الْبَائِعِ لکه هغه مبيع کوم چي د بائع په قبضه کي وي [او تر اوسه يې مشتري ته سپارلې نه وي نو دا مضمون بغيره ده] لِأَنَّ الضَّمَانَ لَيْسَ بِوَاجِبٍ ځکه چي ضمان واجب نه دی فَإِنَّهُ إِذَا هَلَكَ الْعَيْنُ ځکه کله چي عين [مبيع] هلاک سي لَمْ يَضْمَنِ الْبَائِعُ شَيْئًا نو بايع د هيڅ شي نه ضامن کيږي لٰكِنَّهُ يَسْقُطُ الثَّمَنُ وَهُوَ حَقُّ الْبَائِعِ لېکن ثمن ساقطيږي کوم چي د بائع حق دی فَلَا يَصِحُّ الرَّهْنُ نو ځکه رهن به صحيح نه وي.

**اللغات:** ﴿ودائع﴾ جمع د وَدِيعَةٌ ده: امانت. هغه شی چا ته چي په امانت ايښوول سوی وي (امانتاً ورکول سوی شی). ﴿عواری﴾ جمع د عَارِيَةٌ ده: هغه شی چي عاريتاً ورکول سوی وي (هغه شی چي خواست کونکي ته ديو څو وخت لپاره ورکول سوی وي چي خپل کار ځني واخله! او بيرته يې واپس کړه!).

﴿مضمون﴾ د سمع د باب مفعول دی: ضمان والا. يعني د کوم شي چي ضمان (تاوان) واجب وي. هغه شی چي ضمان يې ورکول کيږي. ﴿مضمون بغيره﴾ مراد يې هغه شی دی چي په هلاکېدلو سره يې ضمان (تاوان) يعني د هغه قيمت يا مثل هيڅ شی نه واجبيږي او د هغه په بدله کي چي کوم شی حاصلېدونکی وي اوس هغه ختميږي. لکه د بائع په قبضه کي مبيع که هلاکه سي نو پر هغه هيڅ ضمان نه لازميږي او د مبيع په بدله کي چي کوم ثمن ورته حاصليږي. هغه ساقطيږي.

**تشريح:** مخکي دا خبره ذکر سوه چي رهن د مرتهن په قبضه کي مضمون دی يعني که رهن (مرهون شی) د هغه سره هلاک سي نو ضمان يې پر لازميږي او ضمان دا دی چي د هغه قرض ساقطيږي. له همدې څخه دا خبره ښکاره سوه چي د مرهون شي مضمون کېدل ضروري دي (يعني مرهون شی به داسي وي چي ضمان يې لازمېدای سي او د امانت ضمان نه لازميږي)، نو د غيرِ مضمون شي په عوض کي رهن جائز نه دی، په همدې وجه امام قدوري رَحِمَهُ الله فرمايي چي د امانتونو يعني د وديعت، عاريت، مال مضاربت او مال شرکت په عوض کي رهن صحيح نه دی (د وديعت مثال لکه زيد چي خالد ته خپل يو شی په امانت کښېږدي او له خالد [مودَع] څخه د هغه په عوض کي رهن وغواړي چي ما ته خپل د دغه امانت شي په عوض کي يوشی په رهن [په ګرو] راکړه!. نو رهن باطل دئ. او عاريت مثلاً زيد خالد ته عاريتاً يو شی ورکړي او د هغه په بدله کي يو شی په رهن ځني وغواړي. نو هم رهن باطل دی. او مال شرکت مثلاً د زيد او خالد تر مينځ شرکت وي بيا يو له بل څخه د مال شرکت په عوض کي يو شی په رهن وغواړي، نو دا عقدِ رهن هم باطل دی)؛ ځکه په رهن کي چي پر مرهون شي کومه قبضه کيږي هغه مضمونه وي، لهذا کوم شی چي د رهن په عوض کي وي د هغه مضمون کېدل ضرورَي دي، د دې لپاره چي د رهن قبضه مضمونه سي او بيا د حق ترلاسه کول هم آسانه سي، او څرنګه چي وديعتونه او داسي نور غيرِ مضمون دي، نو ځکه د هغوی په عوض کي به رهن صحيح نه وي.

وكذلك إلخ: د دې حاصل دا دی چي څرنګه د غيرِ مضمون شي په عوض کي رهن صحيح نه دی. همداسي هغه شی کوم چي مضمون خو وي لېکن مضمون بعينه نه وي بلکي مضمون بغيره وي د هغه د په عوض کي هم رهن صحيح نه دی، مثلاً مبيع د بائع په قبضه کي مضمون بغيره ده. اوس که بائع د مبيع په عوض کي د مشتري سره يو شی په رهن کښېږدي نو دا رهن جائز نه دی: ځکه مبيع د بائع سره مضمون بغيره وي، همدا وجه ده که مبيع د بائع په قبضه کي هلاکه سي نو پر هغه ضمان ن..

واجبيږي خو د دې هلاکېدلو په وجه ثمن کوم چي د بائع حق دی ساقطيږي. نو له دې څخه معلومه سوه چي مبيع مضمون بغيره ده. او ښکاره خبره ده چي د غير مضمون شي رهن صحيح نه دی. (احسن الهدايه)

## د مضمون بعينه شي په عوض کي رهن صحيح دی

فَأَمَّا الْأَعْيَانُ الْمَضْمُوْنَةُ بِعَيْنِهَا او پاته سوه هغه شيان کوم چي بذاتِ خود مضمون وي وَهِيَ أَنْ يَكُوْنَ مَضْمُوْنًا بِالْمِثْلِ أَوْ بِالْقِيمَةِ عِنْدَ هَلَاكِهِ او هغوی دا دي چي د مثل يا قيمت په عوض کي مضمون وي د خپل هلاکېدلو په وخت کي [يعني چي د هلاکېدلو په وخت کي يې د مثل يا قيمت ضمان واجبيږي] مِثْلَ الْمَغْصُوْبِ وَبَدَلِ الْخُلْعِ لکه مغصوب شی. بدلِ خلع وَالْمَهْرِ وَبَدَلِ الصُّلْحِ عَنْ دَمِ الْعَمَدِ او مهر او د قتلِ عمد بدلِ صلح يَصِحُّ الرَّهْنُ بِهَا د دې ټولو شيانو په عوض کي رهن صحيح دی لِأَنَّ الضَّمَانَ مُتَقَرِّرٌ ځکه چي ضمان ثابت دی فَإِنَّهُ إِنْ كَانَ قَائِمًا ځکه که له دې شيانو څخه يو شی موجود وي وَجَبَ تَسْلِيمُهُ نو د هغه ورسپارل واجب دي وَإِنْ كَانَ هَالِكًا او هلاک سوی [ضايع سوی] وي تَجِبُ قِيمَتُهُ نو د هغه قيمت واجب دی. فَكَانَ رَهْنًا بِمَا هُوَ مَضْمُوْنٌ نو دا [رهن] به د داسي شي په عوض کي رهن وي کوم چي مضمون دی [ضمان يې واجب دی] فَيَصِحُّ نو ځکه رهن به صحيح وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي د مضمون لغيره په عوض کي خو رهن صحيح نه دی. لېکن هغه شی کوم چي مضمون بعينه وي د هغه په عوض کي رهن صحيح دی. او د مضمون بعينه شي پېژندنه دا ده چي که هغه موجود وي نو خاص هغه (عينِ شی) ورسپارل واجب وي. او که موجود نه وي بلکي هلاک او ضايع سوی وي نو د هغه قيمت ورسپارل واجب وي که چيري له ذوات القيم څخه او که له ذواتُ الامثال څخه وي نو د هغه مثل ورسپارل واجب وي. لهذا په دې صورت کي رهن د داسي شي په عوض کي دی کوم چي مضمون دی. نو ځکه رهن به صحيح وي چي مصنف رَحِمَهُ الله د هغه څلور مثالونه بيان کړي دي:

① ... که زيد د خالد آس غصب کړي او بيا د دغه مغصوب آس په عوض کي يو شی په رهن کښېږدي. نو دا رهن جائز دي؛ ځکه که آس موجود وي نو بعينه د هغه ورسپارل واجب دي او که هلاک سي نو څرنګه چي هغه له ذواتُ القيم څخه دی نو د هغه د قيمت ورسپارل واجب دي. لهذا دا رهن د داسي شي په بدله کي دی کوم چي مضمون بعينه دی. نو ځکه رهن به صحيح وي.

②... که زيد او سلمیٰ خلع سره وکړي او د خلع په بدل کي مثلاً يو آس وټاکي (يعني سلمیٰ ووايي چي د خلع په بدل کي يو آس درکوم) بيا سلمیٰ د هغه آس په عوض کي د زيد سره يو شی په رهن کښېږدي نو جائز دي د مذکوره دليل په وجه.

③... که زيد د سلمیٰ سره نکاح وکړي او مثلاً يو آس په مهر کي وټاکي او بيا د هغه په آس په عوض کي د سلمیٰ سره يو شی په رهن کښېږدي. نو دا رهن هم جائز دی د مذکوره دليل په وجه.

④... که زيد عمداً خالد قتل کړي چي په دې وجه پر زيد قصاص واجب سي، لېکن زيد د خالد د وارثانو سره صلح وکړي چي زه تاسو ته مثلاً يو آس درکوم او تاسي زما قصاص معاف کړی. بيا زيد د هغه په بدله کي يو شی په رهن ورکړي، نو دا رهن هم جائز او صحيح دی د مخکيني دليل په وجه.

## رهن بالدرک باطل دی او کفاله بالدرک جائز ده (د فرق وجه)

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي] فرمايي وَالرَّهْنُ بِالدَّرَكِ بَاطِلٌ او رهن بالدرک باطل دی وَالْكَفَالَةُ بِالدَّرَكِ جَائِزَةٌ او کفاله بالدرک جائز ده وَالْفَرْقُ أَنَّ الرَّهْنَ لِلِاسْتِيفَاءِ او [په دواړو کي] فرق دا دی چي رهن د [حق] ترلاسه کولو لپاره کيږي وَلَا اِسْتِيفَاءَ قَبْلَ الْوُجُوْبِ او تر وجوب مخکي [حق] ترلاسه کول نسته [ځکه ښکاره خبره ده چي تر څو حق او قرض واجب سوی نه وي. تر هغه وخته په ځنګه ترلاسه کړی سي] وَإِضَافَةُ التَّمْلِيْكِ إِلٰى زَمَانٍ فِي الْمُسْتَقْبَلِ لَا تَجُوْزُ او په مستقبل کي د زمان وطرف ته د تمليک اضافت کول جائز نه دي [يا په بله وينا د هغه چي د آينده وخت وطرف ته د تمليک اضافت کول جائز نه دي] أَمَّا الْكَفَالَةُ فَلِالْتِزَامِ الْمُطَالَبَةِ او پاته سوه کفاله نو هغه د مطالبې د التزام لپاره کيږي وَالْتِزَامُ الْأَفْعَالِ يَصِحُّ مُضَافًا إِلَى الْمَآلِ او د افعالو التزام [پر ځان لازمول] د آينده وطرف ته په اضافت کولو سره صحيح دی كَمَا فِي الصَّوْمِ وَالصَّلَاةِ لکه په روژه او لمانځه کي چي کيږي وَلِهٰذَا تَصِحُّ الْكَفَالَةُ بِمَا ذَابَ لَهُ عَلٰى فُلَانٍ په همدې وجه د هغه حق کفاله [کفيل کېدل] جائز دي کوم چي د ده [مکفول لهٔ] لپاره پر فلانکي ثابت سي [يعني چي يو څوک بل چا ته ووايي: چي پر فلانکي ستا کوم حق او قرض باندي سي زه د هغه کفيل او ذمه واريم] وَلَا يَصِحُّ الرَّهْنُ او رهن صحيح نه دی فَلَوْ قَبَضَهُ قَبْلَ الْوُجُوْبِ بيا که مشتري تر وجوب مخکي پر رهن [مرهون] قبضه وکړي فَهَلَكَ عِنْدَهُ او هغه د

مشتري سره هلاک سي يَهْلِكُ أَمَانَةً نو هغه دامانت په توګه هلاکيږي لِأَنَّهُ لَا عَقْدَ حَيْثُ وَقَعَ بَاطِلًا ځکه عقد رهن نسته په دې حيثيت سره چي هغه باطل واقع سوی وو.

**اللغات**: ﴿الدرك﴾ او الدَّرَك: لاحق کېدل، رسېدل، متصل کېدل (مصباح اللغات)، مراد تاوان او خساره لاحق کېدل، ﴿كفالة بالدرك﴾ "كفالة بما يُدرِكك" ته وايي يعني چي تا ته کوم تاوان ورسيږي زه د هغه د کفيل او ذمه واريم، صورت به يې په تشريح کي ذکر سي، ﴿مآل﴾ پای او وروسته، مستقبل او آينده (راتلونکي) وخت، ﴿ذاب﴾ د نصر د باب ماضي ده، کله چي د دې باب په صله کي مال او يو حق (مثلاً قرض) ذکر سي، نو د "ثابتېدلو" او "واجبېدلو" معنیٰ ورکوي، ﴿تمليك﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مالک کول، مالک جوړول.

**تشريح**: د "کفاله بالدرک" صورت دا دی چي ځيني وخت داسي وي چي يو څوک مثلاً زيد له خالد څخه يو شی رانيول غواړي خو زيد بېريږي چي دا شی به د بل چا وي او ما ته به تاوان او خساره ورسيږي نو عُمر د زيد لپاره کفيل او ضامن سي چي ته مه بېرېږه! زه ستا کفيل يم او که څوک د دې شي مستحق وخېږي يا څه د تاوان او نقصان خبره پېښه سي نو زه د ثمن کفيل او زمه واريم چي ستا ثمن بيرته په خالد (بائع) تا ته واپس کوم، نو دې ته کفاله بالدرک وايي او دا جائز ده. لېکن که داغه پورتنی صورت وي خو عُمر د دې احتمالي تاوان په عوض کي زيد ته يو شی په رهن کښېږدي نو دا رهن بالدرک دی او جائز نه دی (يعني که د دې محتمل تاوان کفيل سي نو کفاله بالدرک ده او که د هغه په بدله کي رهن کښېږدي نو رهن بالدرک دی)، اوس دا سوال پيدا کيږي چي د دوی تر مينځ دا فرق ولي دی چي کفاله بالدرک جائز ده او رهن بالدرک ناجائز دی، نو مصنف رَحِمَهُ الله د دې په جواب کي فرمايي چي رهن د دې لپاره کيږي چي خپل حق ترلاسه کړی سي او کله چي د يو چا لپاره واجب او لازم حق نه وي، نو ترلاسه کول به د څه شي وسي؛ ځکه تر اوسه پر بائع (خالد) د مشتري (زيد) هيڅ حق نه دی راغلی. لهذا د هغه په عوض کي رهن ايښوول هم صحيح نه دي.

او که سوال وسي چي سمه ده! تر اوسه خو حق نه دی لازم سوی لېکن په آينده کي د واقع کېدلو او لازمېدلو احتمال خو يې سته، لهذا رهن صحيح کېدل پکار دي؟

نو جواب دا دی چي که څوک په آينده وخت کي د کېدونکي قرض په عوض کي له اوس څخه رهن کښېږدي (مثلاً د حامد اراده وي چي له يو سړي څخه څو وخت وروسته قرض واخلي خو له اوس څخه په رهن يو شی ورته کښېږدي) نو ښکاره ده چي دا جائز نه دي ځکه تمليک د زمان استقبال وطرف ته منسوب کول جائز نه دي، او رهن بالدرک همداسي دی، نو ځکه دا به هم جائز نه وي.

پاته سوه د کفالې مسئله. نو د کفالې (کفیل کېدلو) مقصد استیفاء نه وي بلکې د مطالبې التزام وي (یعني کفیل پر ځان د حق وغیره مطالبه لازموي چې که فلانکي ستا حق درنه کړي یا مثلاً څه تاوان پېښ سو نو زما څخه مطالبه کوه! زه یې غم خورم). او د مطالبې التزام چې څرنګه د موجوده شي په باره کې کېدلای سي، همداسې د آینده شي په باره کې هم کېدلای سي. لکه څرنګه چې په لمانځه او روژه کې دې چې منذوره (نذر کړل سوې) روژه یا لمونځ په آینده زمانه کې پر خپل ځان د نذر په ذریعه لازمول کېږي. او د همدې خبرې د نور وضاحت لپاره دویم مثال پېشوې چې که مثلاً زید خالد ته ووایې چې (په آینده کې) پر حامد ستا کوم قرض باندې سي زه د هغه کفیل یم. نو دا کفاله خو جائز ده لېکن په دې صورت کې رهن ایښوول صحیح نه دي. نو همدغه ډول کفاله بالدرک خو جائز ده لېکن رهن بالدرک جائز نه دی.

**فلو قبضه إلخ:** د دې حاصل دا دی چې رهن بالدرک خو جائز نه دی (کما مرّ). لېکن بیا هم که مشتري (زید) ته رهن کېښېښول سي او هغه قبضه پر وکړي. نو څرنګه چې دا عقد رهن باطل دی لهذا که د مشتري سره دا مرهون هلاک سي. نو پر مشتري هیڅ ضمان نه واجبېږي بلکې پر مرهون شي د امانت حکم جاري کېږي او په امانت کې ضمان نه واجبېږي. نو همداسې به دلته هم ضمان نه واجبېږي.

## د موعود قرض په عوض کې د رهن حکم

بِخِلَافِ الرَّهْنِ بِالدَّيْنِ الْمَوْعُودِ په خلاف د هغه رهن کوم چې د موعود قرض په عوض کې وي وَهُوَ أَنْ يَقُولَ: رَهَنْتُكَ هٰذَا لِتُقْرِضَنِيْ أَلْفَ دِرْهَمٍ او هغه دا دی چې راهن [داسې] ووایې: ما دا شي تا ته په رهن کېښېښوی د دې لپاره چې ته ما ته زر درهمه په قرض راکړې وَهَلَكَ فِيْ يَدِ الْمُرْتَهِنِ او د مرتهن په قبضه کې هغه [مرهون شی] هلاک سي حَيْثُ يَهْلِكُ بِمَا سَمّٰى مِنَ الْمَالِ بِمُقَابَلَتِهٖ نو دا د هغه مال په عوض کې هلاکېږي کوم چې د مرهون په مقابله کې نومول سوی [ټاکل سوی] وي لِأَنَّ الْمَوْعُوْدَ جُعِلَ كَالْمَوْجُوْدِ بِاعْتِبَارِ الْحَاجَةِ ځکه موعود د ضرورت په اعتبار سره د موجود په څېر ګرځول سوی دی وَلِأَنَّهُ مَقْبُوْضٌ بِجِهَةِ الرَّهْنِ الَّذِيْ يَصِحُّ عَلَى اعْتِبَارِ وُجُوْدِهٖ او ځکه چې پر دې مرهون شي د هغه رهن په جهت سره قبضه سوې ده کوم چې د خپل وجود په اعتبار سره صحیح کېږي فَيُعْطٰى لَهٗ حُكْمُهٗ نو هغه ته به د رهن حکم ورکول کېږي كَالْمَقْبُوْضِ عَلٰى سَوْمِ الشِّرَاءِ لکه هغه شی چې د شراء د نرخ ټاکلو په توګه قبضه پر سوې وي (یعني چې له دوکاندار څخه یې د دې لپاره واخلې چې زه یې ورم او نرخ یې معلوموم او خوښوم بیا یې رالېسم) فَيَضْمَنُهٗ نو ځکه مرتهن به د هغه ضامن کېږي.

**اللغات**: ﴿موعود﴾ د ضرب مفعول دی: وعده کړی سوی، د څه چي وعده سوې وي، ﴿مقبوض﴾ د ضرب د باب مفعول دی: قبضه کړی سوی، اخيستلی سوی، ﴿سوم الشراء﴾ "سَوْم" د نصر د باب مصدر دی، معنیٰ يې ده: قيمت ټاکل، نرخ ټاکل (چي زه يې په دومره رانيسم)، نرخ معلومول، "شراء" رانيولو ته وايي، "مقبوض علیٰ سوم الشراء" هغه شي ته وايي کوم چي د قيمت ټاکلو او معلومولو لپاره له بائع او دوکاندار څخه واخيستل سي، صورت به يې په تشريح کي ذکر سي.

**تشريح**: څه مخکي ذکر سوه چي رهن بالدرک جائز نه دی، نو له هغه څخه دا شبهه پيدا سوه چي د موعود قرض په عوض کي رهن اېښوول هم نه جائز کېدل پکار دي، صورت يې دا دی چي يو څوک مثلاً زيد خالد ته ووايي چي زه دا شی تا ته په رهن اږدم د دې لپاره چي ته ما ته بيا قرض راکړې يا مثلاً خالد د زيد سره فقط صرف د قرض وعده وکړي چي زه تا ته زر درهمه په قرض درکوم لېکن اوس يې ور نه کړي، نو د دې موعود قرض په بدله کي که زيد له اوس څخه خالد ته يو شی په رهن کښېږدي نو دا هم نه جائز کېدل پکار دي؛ ځکه دا رهن هم د داسي حق (قرض) په عوض کي دی کوم چي تر اوسه واجب سوی نه دی، نو څرنګه چي رهن بالدرک ناجائز دی، همداسي دا هم ناجائز کېدل پکار دي، حال دا چي تاسي هغه جائز ګڼئ.

نو مصنف رَحِمَهُ الله د دې په جواب کي فرمايي چي عموماً د خلکو عادت دا وي چي اول رهن غواړي (چي ما ته يو شی په ګرو کښېږده!) بيا قرض ورکوي، لهذا دلته حاجت او ضرورت ثابت دی کنې د قرض دروازه به بنده سي، نو د دې ضرورت په وجه مونږ موعود قرض ته د موجود قرض درجه ورکړه او د هغه په عوض کي مو رهن جائز وګرځوی؛ ځکه له قرض ورکولو څخه مخکي که څه هم دا اوس اصلي رهن نه دی خو په آينده کي رهن کېدونکی دی، لهذا د مَايَؤُلُ إِلَيْهِ په اعتبار کولو سره به دا له اوس څخه رهن شمېرل کيږي، او کله چي هغه رهن سو، نو پر هغه به د رهن احکام جاري کيږي، لهذا که دا رهن (مرهون شی) د مرتهن (خالد) سره هلاک سي، نو پر هغه به ضمان واجبيږي.

**سوال**: آيا تاسي يو بل مثال پېشولای سي چي په هغه کي د مَايَؤُلُ إليه په اعتبار کولو سره حکم جاري سوی وي؟.

**جواب**: هو!، هغه مقبوض علیٰ سوم الشراء دی، يعني که زيد مثلاً د کپړې رانيولو لپاره د حامد دوکان ته ورسي او هلته يوه کپړه ووينی او حامد قيمت ور وښيي، بيا زيد هغه کپړه له حامد څخه د دې لپاره واخلي چي مثلاً زه يې خپل کور والا ته ورښکاره کوم او نرخ يې ټاکم چي که د هغو خوښه سي بيا يې رانيسم او قيمت يې درکوم او حامد يې په لاس ور کړي (دې ته مقبوض علی سوم الشراء وايي)

اوس کـه تـر دې وروسته هغـه کپړه دزيد سره هلاکه او ضايع سي، نو پر زيد د کپړې هغه قيمت واجبيږي کوم چي حامد ښوولی وي. نو ګواکي دلته د رانيولو د واقع کېدلو اعتبار سوی دی چي ګواکي زيد په هغه قيمت سره کپړه رانيولې ده (حال دا چي زيد په هغه وخت کي کپړه نه ده رانيولې او شراء نه ده واقع سوې. خو د قيمت واجبېدلو په هکله د شراء واقع کېدلو اعتبار سوی دی)، نو همدغسي په مخکيني مثال کي موعود قرض ته د موجود قرض درجه ورکول سوې ده. (اشرف الهدايه)

## په بيع سَلَم او بيع صَرف کي د رهن حکم

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي وَيَصِحُّ الرَّهْنُ بِرَأْسِ مَالِ السَّلَمِ او رهن صحيح دی د بيع سلم د رأس المال په عوض کي وَبِثَمَنِ الصَّرْفِ او د بيع صَرف د ثمن په عوض کي وَالْمُسْلَمِ فِيْهِ او د مسلم فيه په عوض کي وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَجُوْزُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جائز نه دی لِأَنَّ حُكْمَهُ الِاسْتِيْفَاءُ ځکه د رهن حکم [حق] ترلاسه کول دي وَهٰذَا اِسْتِبْدَالٌ او دا بدلول دي لِعَدَمِ الْمُجَانَسَةِ د مجانست د نشتوالي په وجه وَبَابُ الِاسْتِبْدَالِ فِيهَا مَسْدُوْدٌ او په دې شيانو کي [يعني د سَلَم د رأسُ المال وغيره] د بدلولو دروازه تړل سوې ده وَلَنَا: أَنَّ الْمُجَانَسَةَ ثَابِتَةٌ فِي الْمَالِيَّةِ او زموږ دليل دا دی: چي مجانست په ماليت [مال کېدلو] ثابت دي [ځکه دواړه مال دي] فَيَتَحَقَّقُ الِاسْتِيْفَاءُ مِنْ حَيْثُ الْمَالُ نو ځکه د مال په اعتبار سره به [حق] ترلاسه کول ثابت سي وَهُوَ الْمَضْمُوْنُ او [په رهن کي] همدا ماليت مضمون دی عَلٰى مَا مَرَّ لکه [مخکي] چي تېر سوه.

**اللغات:** ﴿رأس المال﴾ سر د مال، اصل ثمن، په بيع سَلَم کي قيمت او ثمن ته "راس المال" وايي، او په مطلق بيع کي قيمت ته "ثمن" وايي، او په اجاره کي قيمت ته "اُجرت" (کرايه او مزدوري) وايي. ﴿سَلَم﴾ بيع الآجل بالعاجل، يعني ځنډمن شی د نغد شي په عوض کي خرڅول. مثلاً بائع له يو چا څخه في الحاله ثمن (نقد) واخلي او د يوې مياشتي په قرض غله (مثلاً غنم) پر خرڅ کړي چي غله يوه مياشت وروسته درکوم. په بيع سَلَم کي ثمن ته رأسُ المال وايي، ثمن ورکونکي يعني مشتري ته رَبُّ السَّلَمْ وايي او بائع "غله ورکونکي" ته مُسْلَمْ اِلَيْهِ وايي او په کوم شي کي چي بيع سَلَم وسي لکه دلته چي غلهٔ (غنم) دي، هغه ته مُسْلَم فِيْه وايي، ﴿الصرف﴾ مبادلة النقد بالنقد. يعني نغد مال په نغد مال سره بدلول. صرافي. ﴿اسْتبدال﴾ د استفعال مصدر دی: د يو شي په بدله کي بل شی

ورکول او اخيستل، يو شی په بل شي سره بدلول (اليشول). مثلاً د مسلم فيه په بدله کي بل شی اخيستل، ﴿مسدود﴾ د نصر له بابه د مفعول صيغه ده: بند کړی سوی، تړل سوی. ﴿مالية﴾ مال کېدل، مال والی، مالي حيثيت. او د مال په عربي کي څو تعريفونه سوي دي، چي له هغوی څخه ځيني دا دي: ① هر هغه شی چي له هغه څخه نفع اخيستل ممکن وي، ② هر هغه شی کوم چي قيمت او ارزښت لري. يا هغه شی کوم چي په قيمت سره ترلاسه کړی سوی وي.

**يادونه**: پورته د بيع سلم وغيره مذکوره تعريفونه په ياد لرئ! ځکه په آينده عبارتونو کي څو ځايه ذکر سوي دي، هلته يې مورږ دوباره نه ذکر کوو.

**تشريح**: د بيع سَلم او بيع صَرف تعريف او وضاحت د هدايې په جلد ثالث کي په تفصيل سره ذکر سوی دی او په لغاتو کي هم مورږ مختصراً ذکر کړی او دا مو هم ذکر کړه چي په بيع سلم کي ثمن ته رأس المال او مبيع ته مسلم فيه او بائع ته مسلم إليه او مشتري ته ربُ السلم وايي. او په بيع سلم کي د عاقدَينو (مسلم إليه او ربُ السلم) تر جلا کېدو مخکي پر رأسُ المال قبضه کول شرط دي، همدارنګه کوم شی چي په رأسُ المال يا مسلم فيه کي وټاکل سي، د هغه تبديلي (بدلول) جائز نه دي. همدارنګه په بيع صَرف کي هم د عاقدَينو تر جلا کېدو مخکي پر ثمن او مبيع دواړو قبضه کول شرط دي او د ثمن تبديلي جائز نه ده. اوس له دې تفصيل څخه وروسته صورت د مسئلې ته ګورئ!.

**صورت د مسئلې**: دا دی چي زمورږ په نېز د بيع سلم د رأسُ المال په عوض کي، د بيع صرف د ثمن په عوض کي، همدارنګه د مسلم فيه په عوض کي رهن (يعني يو شی په رهن اېښوول) جائز دي. خو پر دې اعتراض واردېږي چي بايد دا رهن جائز نه سي ځکه کله چي د دې شيانو (رأسَ المال وغيره) په عوض کي رهن کېښېښول سي نو د دوی تبديلي او استبدال به لازم سي يعني په رأس المال وغيره کي يو شی ټاکل سوی دی او د هغه په عوض کي بل جلا شی (يعني مرهون شی) ورکول کېږي. نو خپل حق ترلاسه نه سو بلکي په حق کي تبديلي وسوه او دا د بيع سلم په رأسُ المال او مسلم فيه وغيره کي حرام دي، نو په همدې وجه امام زفر رَحِمَهُ الله د مذکوره شيانو رهن ناجائز ګرځولی دی چي د مرهون شي او حق تر مينځ مجانست نسته نو پر ځای د استيفاء (حق ترلاسه کولو) دلته استبدال لازمېږي (کوم چي په بيع سلم او بيع صرف کي حرام دي)، نو ځکه به دا رهن جائز نه وي.

زمورږ له طرفه جواب دا دی چي مخکي ذکر سوه چي په رهن کي د مرهون عين امانت دی او د هغه ماليت مضمون دی (يعني ضمان چي لازمېږي هغه د مرهون شي د ماليت په اعتبار سره لازمېږي). او دلته که څه هم د عين په اعتبار سره مجانست نسته خو د ماليت په اعتبار سره مجانست موجود دی (يا په بله وينا دا چي مذکوره مرهون که څه هم د خپل عين په اعتبار سره د جلا جنس دی خو د خپل ماليت [مال کېدلو] په اعتبار سره د جلا جنس نه دی بلکي د مذکوره حق همجنس دی). او څرنګه چي په رهن کي همدا ماليت

مضمون وي او د ماليت په حواله سره مجانست موجود دی (ځکه ماليت په هريوه کي سته). نو ځکه د دې شيانو په عوض کي رهن جائز دی او د تبديلۍ اعتراض کول صحيح نه دي. (اشرف الهدايه)

## د مبيع په بدله کي د رهن حکم

قَالَ: وَالرَّهْنُ بِالْمَبِيعِ بَاطِلٌ فرمايي: او د مبيع په عوض کي رهن باطل دی لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ غَيْرُ مَضْمُونٍ بِنَفْسِهِ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی چي مبيع بذات خود مضمون نه ده فَإِنْ هَلَكَ نو که مرهون [د مشتري] سره هلاک سي ذَهَبَ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو هغه بغير له څه شي هلاکيږي [يعني په عوض کي يې هيڅ شی نه لازميږي] لِأَنَّهُ لَا اعْتِبَارَ لِلْبَاطِلِ ځکه باطل عقد لره هيڅ اعتبار نسته فَبَقِيَ قَبْضًا بِإِذْنِهِ نو مرهون د بائع [راهن] په اجازه سره مقبوض پاته سو.

**اللغات:** ﴿مبيع﴾ د ضرب د باب مفعول دی: خرڅ کړی سوی شی. ﴿مضمون﴾ د سمع د باب مفعول دی: د کوم شي چي ضمان واجب وي، د کوم شي په هکله چي ضمان ورکول کيږي. ﴿مقبوض﴾ د ضرب د باب مفعول دی: قبضه کړی سوی، اخيستل سوی.

**تشريح:** مخکي دا خبره ذکر سوه چي د مضمون بغيره شي په عوض کي رهن صحيح نه دی، او څرنګه چي مبيع هم مضمون بغيره ده، نو ځکه د مبيع په عوض کي رهن اېښوول صحيح نه دي او دا رهن باطل دی، خو د دې باوجود که بائع د مبيع په عوض کي مشتري ته يو شی په رهن کښېږدي او دا مرهون شی د مشتري سره هلاک سي، نو پر مشتري هيڅ ضمان (يعني د مرهون شي يا د مبيع قيمت) نه لازميږي؛ ځکه کله چي دا عقد رهن باطل واقع سوی دی نو ښکاره ده چي هغه لره اعتبار نسته، او د مشتري په قبضه کي چي کوم د بائع مرهون شی دی هغه امانت دی په دې اعتبار سره چي مشتري د بائع په اجازه سره پر هغه قبضه کړې ده (نو دا ګواکي امانت سو)، او د امانت په هلاکېدلو سره ضمان نه لازميږي، نو ځکه دلته به پر مشتري هيڅ ضمان نه لازميږي. (احسن الهدايه)

## په بيع سَلَم او بيع صَرف کي د رهن (مرهون) د هلاکېدلو تفصيلي حکم

وَإِنْ هَلَكَ الرَّهْنُ بِثَمَنِ الصَّرْفِ وَرَأْسِ مَالِ السَّلَمِ فِي مَجْلِسِ الْعَقْدِ او که د عقد رهن په مجلس کي هغه رهن [مرهون] هلاک سي کوم چي د بيع صَرف د ثمن او د بيع سَلَم د رأس المال په عوض کي وي تَمَّ الصَّرْفُ وَالسَّلَمُ نو بيع صَرف او بيع سَلَم تام [پوره] سوه وَصَارَ الْمُرْتَهِنُ مُسْتَوْفِيًا لِدَيْنِهِ او مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی وګرځېدی لِتَحَقُّقِ الْقَبْضِ حُكْمًا ځکه د حکم په اعتبار سره قبضه ثابته

سوه وَإِنِ افْتَرَقَا قَبْلَ هَلَاكِ الرَّهْنِ او كه د رهن له هلاكېدلو څخه مخكې دوی دواړه سره جلا سي بَطَلَا نو دواړه عقدونه باطليږي لِفَوَاتِ الْقَبْضِ حَقِيقَةً وَحُكْمًا ځكه د حقيقت او حكم [دواړو] په اعتبار سره قبضه فوت سوه.

**اللغات**: ﴿مُسْتَوْفِي﴾ د استفعال د باب فاعل دی: ترلاسه كونكی (حاصلونكی)، پوره اخيستونكی،

﴿تحقق﴾ د تفعّل مصدر دی: ثابتېدل، موجودېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی كه په بيع صَرف كي د ثمن يا په بيع سلم كي د رأسُ المال په عوض كي رهن كښېښول سي او بيا د عاقدَينو د مجلس تر بدلېدو (يعني د عاقدينو تر جلا كېدو) مخكې مرهون شی په هغه مجلس كي هلاک او ضايع سي، نو په دې سره بيع صَرف او بيع سَلم تام او مكمل ګرځي او مرتهن د خپل قرض ترلاسه كوونكی ګرځي؛ ځكه مرهون شی د مرتهن په قبضه كي هلاک سوی دی (ځكه كله چي دا شی هغه ته په رهن كښېښول سو نو تر دې وروسته په هغه مجلس كي هلاک سو). او د هغه د هلاكېدلو په وجه مرتهن حكماً پر خپل قرض قبضه كونكی سو يعني كله چي دا مرهون شی د مرتهن په قبضه كي هلاک سو، نو ګواكي هغه پر خپل قرض قبضه وكړه، او په قبضه سره بيع تام او پوره ګرځي، نو ځكه دا دواړه بيع (سَلم او صرف) به هم تام ګرځول كيږي او مرتهن به د خپل قرض ترلاسه كونكی شمېرل كيږي.

خو كه د مرهون شي تر هلاكېدلو مخكې عاقدَين (راهن او مرتهن) سره جلا سي، نو په دې صورت كي دواړه بيع باطليږي؛ ځكه د بيع صَرف پر ثمن او د بيع سَلم پر رأسُ المال نه حقيقتاً قبضه سوې ده او نه حكماً (ځكه مرهون نه دئ هلاک سوی او كه مرهون هلاک سوی وای نو حكماً به قبضه شمېرل كېدای)، او له قبضې څخه بغير بيع نه پوره كيږي، نو ځكه په دې صورت كي دواړه بيع باطليږي.

**سوال**: تاسي خو مخكې په دې هكله زموږ او د امام زفر رَحِمَهُ الله تر مينځ اختلاف بيان كړی چي زموږ په نېز د رأسُ المال او ثمن په عوض كي رهن جائز دی او ذلته واياست چي كه په هغه مجلس كي مرهون هلاک او ضايع سي نو بيع صرف او بيع سلم تام ګرځي، كنې باطليږي؟.

**جواب**: د دې مسئلې هم داغه مطلب دی چي رهن د دې شيانو په عوض كي جائز خو دی لېكن وروسته به دې ته كتل كيږي چي مرهون شی په هغه مجلس كي هلاک سوی دی او كه نه دی، كه هلاک سي نو بيع تام او پوره ده، او كه هلاک نه سي نو څرنګه چي هيڅ ډول قبضه ثابته نه سوه (نه حقيقتاً او نه حكماً)، نو ځكه دواړه بيع به باطليږي. په بله وينا دا چي دا عبارت د مخكنۍ مسئلې د اجمال تفصيل دی.

## د پورتنۍ مسئلې نور وضاحت (که رهن د مسلم فيه په عوض کې وي او هلاک سي)

وَإِنْ هَلَكَ الرَّهْنُ بِالْمُسْلَمِ فِيْهِ او که د مسلم فيه په عوض کې رهن هلاک سي بَطَلَ السَّلَمُ بِهَلَاكِهِ نو د هغه په هلاکېدلو سره بيع سلم باطلېږي وَمَعْنَاهُ أَنَّهُ يَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا لِلْمُسْلَمِ فِيْهِ او د دې مطلب دا دی چي هغه [رب السلم] د مسلم فيه ترلاسه کونکی ګرځي فَلَمْ يَبْقَ السَّلَمُ نو ځکه بيع سلم باقي پاته نه سوه [ختم سوه].

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي خالد او زيد په خپل مينځ کي بيع سلم وکړه (مثلاً خالد پر زيد په قرض غله خرڅه کړه) او زيد خالد ته رأسُ المال ورکړی (لکه څرنګه چي دا د بيع سلم حکم دی) او خالد د مسلم فيه (غلې) په عوض کي خپل يو شی مثلاً آس زيد ته په رهن ورکړی، نو دا جائز دي (لکه مخکي چي ذکر سوه. نو دلته زيد ربُ السلم او مرتهن دی. او خالد مسلم إليه او راهن دی)، اوس که د زيد (مرتهن) سره هغه آس کوم چي د مسلم فيه عوض دی هلاک سي، نو دا بيع سلم باطلېږي.

او د "بَطَلَ" په هکله صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د دې باطلېدلو مطلب دا دی چي بيع سلم تام سوه او بيا ختم سوه؛ ځکه کله چي ربُ السلم يعني زيد د مسلم فيه پر عوض (آس) قبضه وکړه او هغه د ده په قبضه کي هلاک سو، نو ګواکي ده پر خپل حق قبضه وکړه يعني ګواکي مسلم فيه (غله) يې ترلاسه کړه، نو ځکه اوس بيع سلم باقي پاته نه سوه بلکي پوره سوه.

**يادونه:** خو دا حکم هغه وخت دی کله چي د مرهون شي قيمت د اصل حق (مسلم فيه) سره برابر يا زيات وي، او که قيمت يې کم وي، نو د قيمت په اندازه د ربُ السلم حق وصول سو يعني ګواکي هغه د مرهون شي د قيمت په مقدار مسلم فيه ترلاسه کړه او پاته مقدار به هغه له مسلم إليه څخه واپس اخلي. (احسن الهدايه)

## په پورتني صورت کي د بيع سلم د فسخ کولو حکم

وَلَوْ تَفَاسَخَا السَّلَمَ وَبِالْمُسْلَمِ فِيْهِ رَهْنٌ او که دوی دواړه بيع سلم فسخ کړي حال دا چي د مسلم فيه په عوض کي رهن وي يَكُونُ ذٰلِكَ رَهْنًا بِرَأْسِ الْمَالِ نو دا د رأسُ المال په عوض کي رهن ګرځي حَتّٰى يَحْبِسَهُ تر دې چي ربُ السلم به مرهون شی راګرځوي لِأَنَّهُ بَدَلُهُ ځکه چي رأس المال د مسلم فيه بدل دی فَصَارَ كَالْمَغْصُوبِ إِذَا هَلَكَ وَبِهِ رَهْنٌ نو داسي سو لکه مغصوب شی چي کله هلاک سي او د هغه په عوض کي رهن وي يَكُونُ رَهْنًا بِقِيمَتِهِ نو دا د هغه [مغصوب شي] په عوض کي رهن ګرځي.

**اللغات:** ﴿التفاسخ﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو تر بله فسخ کول (ماتول). ﴿تقايلا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو د بل سره اقاله کول او پښېمانه کېدل. يو د بل سره سودا فسخ ... (ماتول).

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که زید او خالد بیع سلم وکړه او زید رأسُ المال خالد ته ورکړی او خالد د مسلم فیه (غلې) په عوض کې زید ته خپل آس په رهن ورکړی. نو بیع سلم خو جائز سوه. لېکن اوس که دوی دواړه په خپل خوښه او رضاء سره دا بیع سلم فسخ کړي او رهن (مرهون آس) د زید سره موجود وي، نو اوس څه حکم دی؟. فرمایي چي دا آس اول د مسلم فیه (غلې) په عوض کې رهن وو. او اوس دا د هغه رأسُ المال په عوض کې رهن ګرځي کوم چي زید و خالد ته ورکړی وو. لهذا اوس ربُ السلم یعني زید (مرتهن) ته دا حق سته چي تر څو هغه ته خالد (راهن) خپل رأس المال ورنه کړي، تر هغه وخته زید دي د هغه آس نه ورکوي. ځکه رأسُ المال د مسلم فیه بدل او عوض دی (یعني د مسلم فیه په عوض کې یې ورکړی دی). نو کله چي بیع سلم فسخ سوه او مسلم فیه معدوم سوه، نو اوس به د مسلم فیه بدل (یعني رأسُ المال) د مسلم فیه قائم مقام ګرځول کیږي او ویل کیږي به چي دا رهن (آس) د مسلم فیه پر ځای اوس د رأسُ المال په عوض کې (د مرتهن زید سره) محبوس دی.

او د دې مثال داسې دی لکه حامد چي د عُمر پسه غصب کړي بیا حامد د مغصوب پسه په عوض کې عُمر ته یو شی په رهن کښېږدي نو دا جائز دي، لېکن بیا که د حامد (غاصب) سره دا مغصوب پسه هلاک سي، نو حکم دا دی چي مذکوره رهن (مرهون شی) مخکې د مغصوب بدل وو، او اوس د مغصوب د قیمت بدل دی (ځکه مغصوب یعني پسه هلاک او معدوم سو. نو اوس مرهون شی د هغه د قیمت بدل دی)، لهذا تر څو چي حامد غاصب د پسه قیمت عُمر ته ورنه کړي، تر هغه وخته عُمر ته دا حق سته چي مرهون شی د خپل ځان سره محبوس وساتي؛ نو همدغسې دا پورتنۍ مسئله هم ده.

## که تر فسخ کولو وروسته مرهون هلاک سي (حکم او تفصیل)

وَلَوْهَلَكَ الرَّهْنُ بَعْدَ التَّفَاسُخِ او که چیري [د بیع سلم] تر فسخ کولو وروسته مرهون هلاک سي يَهْلِكُ بِالطَّعَامِ الْمُسْلَمِ فِيْهِ نو د هغه غلې په عوض کې هلاکیږي کوم چي مسلم فیه ده لِأَنَّهُ رَهْنٌ بِهِ ځکه چي دا د هغه په عوض کې رهن دی وَإِنْ كَانَ مَحْبُوسًا بِغَيْرِهِ که څه هم له هغه څخه بغیر [ادبل شه] په عوض کې محبوس دی كَمَنْ بَاعَ عَبْدًا وَسَلَّمَ الْمَبِيْعَ لکه څوک چي غلام خرڅ کړي او مبیع [غلام] ور وسپاري وَأَخَذَ بِالثَّمَنِ رَهْنًا او د ثمن په عوض کې رهن واخلي ثُمَّ تَقَايَلَا الْبَيْعَ بیا دوی دواړه د بیع اقاله وکړي [بیع ماته کړي] لَهُ أَنْ يَحْبِسَهُ لِأَخْذِ الْمَبِيْعِ نو بائع ته دا حق سته چي د مبیع [غلام] اخیستلو لپاره مرهون راوګرځوي لِأَنَّ الثَّمَنَ بَدَلُهُ ځکه چي ثمن د هغه بدل دی وَلَوْ هَلَكَ الْمَرْهُونُ او که مرهون هلاک سي يَهْلِكُ بِالثَّمَنِ نو د ثمن په عوض کې هلاکیږي لِمَا بَيَّنَّا د

هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی وَكَذَا لَوِ اشْتَرَى عَبْدًا شِرَاءً فَاسِدًا او همدارنګه که يو غلام دشراءِ فاسد په توګه رانيسي وَأَدَّى ثَمَنَهُ او د هغه ثمن اداء کړي لَهُ أَنْ يَحْبِسَهُ لِيَسْتَوْفِيَ الثَّمَنَ نو مشتري ته دا حق سته چي مبيع راوګرځوي د دې لپاره چي ثمن ترلاسه کړي ثُمَّ لَوْ هَلَكَ الْمُشْتَرَى فِي يَدِ الْمُشْتَرِيْ بيا که رانيول سوی غلام د مشتري په قبضه کي هلاک سي يَهْلِكُ بِقِيمَتِهِ نو هغه د خپل قيمت په عوض کي هلاکيږي فَكَذَا هٰذَا نو همداسي به دا هم وي.

**اللغات**: ﴿قيمة﴾ د شي بازاري نرخ او قيمت. يعني په بازار او منډۍ کي چي د شي کوم رېټ چليږي، هغه ته قيمة وايي. ﴿ثمن﴾ هغه قيمت چي د بائع او مشتري ترمينځ ټاکل سوی وي.

**تشريح**: مخکنی حکم هغه وخت دی کله چي د بيع سلم تر فسخ وروسته مرهون شی (آس) هلاک نه سي، خو که تر فسخ وروسته مرهون هلاک سي، نو که څه هم دا مرهون (آس) مخکي د رأسُ المال په عوض کي رهن او محبوس وو، لېکن اوس د اصل په اعتبار سره (په حقيقت کي) دا مرهون د مسلم فيه (غلې) په عوض کي رهن او محبوس دی، لهذا که تر فسخ وروسته مرهون (آس) د مرتهن (زيد) سره هلاک سي نو د مسلم فيه په عوض کي هلاکيږي يعني اوس حکم دا دی چي مرتهن (زيد) به هغومره غله راهن (خالد) ته ورکوي کوم چي په مسلم فيه کي ټاکل سوې وي. او کله چي هغه ورکړي نو بيا مرتهن (زيد) ته د خپل رأسُ المال دا خيستلو حق سته. نه تر هغه مخکي (يعني کله چي د مسلم فيه مقدار اداء کړي نو بيا به "راهن خالد" [کوم چي مسلم إليه دی] و "مرتهن زيد" [ربُّ السلم] ته د هغه رأسُ المال واپس کوي. نه تر هغه مخکي).

كمن باع إلخ: په دې سره مصنف رَحِمَهُ الله د مخکنۍ پوره مسئلې د څرګندولو لپاره يو مثال پېشوي فرمايي چي مثلاً که حامد پر عُمر يو غلام په زر درهمه خرڅ کړی او غلام يې عُمر (مشتري) ته وسپاری او عُمر د ثمن (زر درهمو) په عوض کي خپل آس حامد ته په رهن ورکړی. لېکن بيا وروسته دوی دواړو په خپل رضاء سره اقاله وکړه يعني بيع يې فسخ کړه. نو حامد (مرتهن) ته خو مخکي دا حق وو چي تر څو له عُمر څخه ثمن ترلاسه نه کړي تر هغه وخته دا مرهون آس د ځان سره راوګرځوي. لېکن څرنګه چي اوس د اقالې (فسخُ البيع) په وجه ثمن له منځه ولاړی. نو ځکه اوس حامد ته دا حق سته چي تر څو خپل خرڅ کړده غلام له عُمر څخه ترلاسه نه کړي تر هغه وخته دا مرهون (آس) د ځان سره راوګرځوي (يا په بله وينا دا چي دا مرهون آس د غلام په عوض کي د ځان سره محبوس کړي). او دا حکم هغه وخت دی کله چي تر اقالې وروسته مرهون آس هلاک نه سي. لېکن که آس هلاک سي. نو که څه هم دا مرهون آس د مبيع يعني د غلام په بدله کي محبوس وو. لېکن په حقيقت

کي هغه د ثمن عوض دی (ځکه عُمر دا آس حامد ته د ثمن په عوض کي په رهن ورکړی دی). لهذا که مرهون آس هلاک سي نو هغه د ثمن په عوض کي هلاکيږي، لهذا اول به بائع يعني حامد (کوم چي مرتهن دی) مشتري يعني عُمر (راهن) ته هغومره ثمن ورکوي کوم چي په بيع کي تاکل سوی وي (يعني زر درهمه). او کله چي هغه ورکړي نو بيا حامد ته د خپل غلام داخيستلو حق سته، نه تر هغه مخکي (يعني کله چي ثمن اداء کړي نو بيا به "راهن عُمر" و "مرتهن حامد" ته د هغه غلام واپس کوي. نه تر هغه مخکي). نو همداسي دا پورتنی مسئله هم ده.

وکذا لو اشترى إلخ: د دې حاصل دا دی چي که يو څوک مثلاً خالد له زيد څخه يو غلام د شراء فاسد په توګه رانيسي (او تاسي ته معلومه ده چي د شراء فاسد او بيع فاسد فسخ کول شرعاً واجب دي)، او خالد پر غلام قبضه وکړي او د هغه ثمن هم اداء کړي، بيا دوی دواړه (د شريعت د حکم پر بناء) دا اراده وکړي چي دا بيع فسخ کړي، نو اوس خالد (مشتري) ته دا حق سته چي تر څو خپل ثمن له زيد (بائع) څخه تر لاسه نه کړي، تر هغه وخته رانيول سوی غلام راوګرځوي؛ ځکه دا غلام دلته د مرهون شي په درجه کي دی او کله چي زيد ثمن ورکړي نو بيا دي خالد و زيد ته د هغه غلام وسپاري، او که چيري د خالد (مشتري) سره دا غلام هلاک سي، نو د خپل قيمت په عوض کي هلاکيږي، لهذا اوس پر خالد ضروري ده چي د دې غلام قيمت زيد (بائع) ته وسپاري، نو بيا دي له هغه څخه خپل ثمن واخلي (يعني د هلاک سوي غلام د قيمت تر اداء کولو وروسته مشتري ته د خپل ثمن داخيستلو حق سته، نه تر هغه مخکي).

## آزاد، مدبر، مکاتب او أم ولد د رهن په توګه ورکول صحيح نه دي

قَالَ: وَلَا يَجُوزُ رَهْنُ الْحُرِّ وَالْمُدَبَّرِ وَالْمُكَاتَبِ وَأُمِّ الْوَلَدِ فرمايي: آزاد کس او مدبر، مکاتب او اُم ولد په رهن ورکول جائز نه دي لِأَنَّ حُكْمَ الرَّهْنِ ثُبُوتُ يَدِ الِاسْتِيفَاءِ ځکه د رهن حکم د [حق] تر لاسه کولو قبضه ثابتېدل دي وَلَا يَتَحَقَّقُ الِاسْتِيفَاءُ مِنْ هٰؤُلَاءِ او په دې کسانو سره [د حق] تر لاسه کول نه سي متحقق کېدلای لِعَدَمِ الْمَالِيَّةِ فِي الْحُرِّ ځکه په آزاد کي خو ماليت نسته [يعني هغه مال نه دی] وَقِيَامِ الْمَانِعِ فِي الْبَاقِينَ او په ورو کي مانع [د حُريت حق] موجود دی.

**اللغات:** ﴿حُرّ﴾ آزاد کس. ﴿مُدبَّر﴾ هغه غلام چي خپل مالک (مولیٰ) ورته ويلي وي: ته زما تر مرګ وروسته آزاد يې! (يعني هغه غلام چي مالک د هغه آزادي پر خپل مرګ معلقه کړې وي). ﴿مکاتب﴾ هغه غلام چي خپل مالک ورته ويلي وي: ته ما ته دومره پيسې راوړه! (مثلاً پنځه سوه درهمه راوړه!) نو ته آزاد يې! او غلام دا معامله منظور کړي، نو دغه غلام ته مکاتب وايي او دې معاملې ته کتابت وايي،

﴿أم ولد﴾ هغه مينځه چي خپل مالک جماع ور سره کړې وي او د جماع په نتيجه کي له هغې څخه بچي پيدا سوی وي، داسي مينځه د مالک تر مرګ وروسته آزاديږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي آزاد، مدبر او مکاتب وغيره په رهن ورکول جائز نه دي: ځکه درهن حکم دا دی چي په هغه (مرهون) سره خپل حق او قرض ترلاسه کړی سي. او په آزاد، مدبر وغيره سره قرض ترلاسه کول ممکن نه دي؛ ځکه په آزاد کي خو ګردسره ماليت سته نه، او په مدبر وغيره کي که څه هم ماليت وي لېکن من وجه په هغوی کي حريت وي، لهذا په هغوی سره هم قرض ترلاسه کول ممکن نه دي، او کله چي په دې مذکوره کسانو کي د رهن حکم امکان نه لري، نو ځکه دوی په رهن ورکول به هم جائز نه وي.

## د کفاله بالنفس، قصاص او داسي نورو په عوض کي رهن صحيح نه دی

وَلَا يَجُوزُ الرَّهْنُ بِالْكَفَالَةِ بِالنَّفْسِ او د کفاله بالنفس په عوض کي رهن جائز نه دی وَكَذَا بِالْقِصَاصِ فِي النَّفْسِ وَمَا دُونَهَا او همدارنګه د نفس او ما دون النفس د قصاص په عوض کي رهن جائز نه دی لِتَعَذُّرِ الِاسْتِيفَاءِ د [حق] ترلاسه کولو د ناممکن والي په وجه بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَتِ الْجِنَايَةُ خَطَأً په خلاف د هغه صورت کله چي جرم په خطاء سره وسي لِأَنَّ اسْتِيفَاءَ الْأَرْشِ مِنَ الرَّهْنِ مُمْكِنٌ ځکه په رهن [مرهون شي] سره ارش ترلاسه کول ممکن دي وَلَا يَجُوزُ الرَّهْنُ بِالشُّفْعَةِ او د شفعي په عوض کي رهن جائز نه دی لِأَنَّ الْمَبِيعَ غَيْرُ مَضْمُونٍ عَلَى الْمُشْتَرِيْ ځکه مبيع پر مشتري مضمون نه ده وَلَا بِالْعَبْدِ الْجَانِيْ وَالْعَبْدِ الْمَأْذُوْنِ الْمَدْيُوْنِ او نه د جنايتکاره غلام او د مأذون مقروضه غلام په عوض کي رهن جائز دی لِأَنَّهُ غَيْرُ مَضْمُوْنٍ عَلَى الْمَوْلٰى ځکه غلام پر خپل مالک مضمون نه دی فَإِنَّهُ لَوْ هَلَكَ ځکه که هغه هلاک سي لَا يَجِبُ عَلَيْهِ شَيْءٌ نو پر هغه شي نه واجبيږي وَلَا بِأُجْرَةِ النَّائِحَةِ وَالْمُغَنِّيَةِ او نه د ژړونکې ښځي او سندره ويونکي ښځي د اُجرت په عوض کي رهن جائز دی حَتّٰى لَوْ ضَاعَ تر دې چي که مرهون ضايع سي لَمْ يَكُنْ مَضْمُوْنًا نو هغه نه مضمون کيږي لِأَنَّهُ لَا يُقَابِلُهُ شَيْءٌ مَضْمُوْنٌ ځکه چي د هغه په مقابله کي هيڅ مضمون شی نسته.

**اللغات:** ﴿أَرْش﴾ ديت، تاوان او جرمانه، هغه مال کوم چي له ما دون النفس څخه په کم جنايت کي واجبيږي (معجم لغة الفقهاء). ﴿نائحة﴾ ژړونکې ښځه، هغه ښځه چي پر مړي ژړاوي کوي. يو خو د غم

او مصیبت په وجه فطري ژړا ده. دلته له "نائحه" څخه مراد هغه ښځه ده کوم چې په اُجرت او کرایه ژړا کوي چې د هغې کسب او پېشه همدا ژړا وي. نور د هغې هیڅ غم او مصیبت نه وي. داسې نوحه خواني ګناه کبیره ده. ﴿مغنیة﴾ بدله او سندره ویونکې ښځه (غزلچي او سندرغاړې ښځه. سروزګره ښځه) هغه ښځه چې د هغې پېشه غزلي. سندري او شله وي او همدا یې خپل کسب ګرځولی وي.

**تشریح** : په دې عبارت کې ځیني هغه شیان بیانوي چې د هغوی په عوض کې رهن جائز نه دی.

①... د "کفاله بالنفس" صورت دا دی چې مثلاً د عُمر پر زید یوه دعوىٰ ده چې د هغه په وجه زید نیول سوی دی او دا خطره ده چې زید به وتښتیږي. بیا خالد د هغه ضمانت وکړی او عُمر ته یې وویل چې زه د زید ضامن یم چې هغه چیري نه تښتي او نه پټیږي او زه د هغه د حاضرولو کفیل یم. نو دې ته کفاله بالنفس وایي. اوس که خالد (کفیل) د دې کفاله بالنفس په عوض کې عُمر ته یو شی (مثلاً ګوتمی) په رهن کښېږدي. نو دې ته "رهن بالکفالة بالنفس" وایي او دا رهن جائز نه دی: ځکه رهن خو د دې لپاره کیږي چې په رهن (مرهون شي) سره حق ترلاسه کړی سي. او دلته په رهن سره د زید حاضرول او ترلاسه کول نه سي کېدلای چې عُمر په مرهون شي (ګوتمی) سره زید حاضر او ترلاسه کړي. نو ځکه د کفاله بالنفس په عوض کي رهن جائز نه دی.

②... زید عمداً خالد قتل کړی چې د هغه په وجه پر زید قصاص واجب سو چې د خالد په قصاص کي به زید هم قتلول کیږي. بیا زید د قصاص په عوض کي د خالد وارثانو ته رهن کښېښوی چې تاسي دا شی درسره کښېږدئ! څو وخت وروسته زه حاضرېږم. نو دا رهن جائز نه دی: ځکه په مرهون شي سره قصاص نه سي ترلاسه کول کېدای.

③... زید عمداً د خالد لاس پرېکړی چې د هغه په وجه پر زید د "قطع الید" قصاص واجب سو چې لاس به یې قصاصاً پرېکول کیږي. او زید د دې قصاص په عوض کي رهن کښېښوی. نو رهن هم جائز نه دی؛ ځکه په مرهون شي سره قطع الید نه سي ترلاسه کول کېدای.

④... خو که زید خطاءً خالد قتل کړی یا یې خطاءً د هغه لاس پرېکړی چې د هغه وجه دیت یا ارش پر واجب سو. او زید د دیت یا ارش په عوض کي رهن کښېښوی یعني خپل یو شی مثلاً موټر یې په رهن ورکړی. نو دا رهن جائز دی: ځکه دلته مقصود دیت او ارش ترلاسه کول دي چې په مرهون شي (موټر) سره هغه ترلاسه کېدلای سي.

⑤... د زید او خالد ځمکي سره څنګ په څنګ دي او د زید ځمکه د دریاب سره لګېدلې ده. بیا زید خپله ځمکه پر عُمر خرڅه کړه نه پر خالد حالانکي د شفعي حق خو د خالد دی. نو خالد د خپل شفعي طلب وکړی او عُمر د دې شفعي (مشفوعه ځمکي) په عوض کي رهن کښېښوی. نو دا رهن هم جائز نه دی: ځکه دغه مبیعه مشفوعه ځمکه مضمونه نه ده یعني کهدا ځمکه هلاکه او ضایع سي (مثلاً د دریاب او به پر هغې را واوړي او تر اوبو

سي چي بالکل له کاره ووځي) نو پر مشتري (عمر) د هغې ضمان نه واجبيږي. حالانکې مخکې ذکر سوه چې رهن د هغه شي په عوض کې جائز کيږي کوم چې مضمون بنفسه وي.

⑥... د زيد غلام خطاءً د خالد لاس پرېکړی چې د هغه په وجه دا واجب سوه چې زيد به دا مجرم غلام و مقطوع اليد (خالد) ته ورکوي. نو اوس که زيد (مالک) د غلام په عوض کې رهن کښېږدي. نو جائز نه دي: ځکه که غلام هلاک سي نو پر مالک هيڅ ضمان نه واجبيږي. حالانکې د غير مضمون شي په عوض کې رهن قبول جائز نه دي.

⑦... زيد خپل غلام ته د تجارت اجازه ورکړې وه او بيا هغه غلام مقروض سو او د خلکو قرضونه پر باندي سوه چي د هغه په وجه دا واجب سوه چې دا غلام به هغه خلکو (قرضخواهانو) ته ورکول کيږي. خو مالک (زيد) د غلام په عوض کې هغو ته رهن کښېږدي. نو دا هم جائز نه دي د پورتني دليل په وجه.

⑧... د زيد په کور کې يوه ښادي او خوشالي راغله مثلاً د ورور واده يې سو. او زيد يوه سروزګره ښځه په اُجرت ونيوله چې سندري او بدلې وايي چې خلک پرې خوشاله سي او کله چې د هغې داُجرت وخت پوره سو، نو زيد داُجرت په عوض کې هغې ته يو شی په رهن کښېښوی، نو دا رهن جائز نه دی. همدارنګه که د زيد په کور کې يو څوک مړ سو، او هغه يوه ښځه په اُجرت ونيوله چې پر مړي ژړا او غم خرګندي وکړي چې خلک هم پرې وژاړي. بيا زيد داُجرت په عوض کې هغې ته رهن کښېښوی، نو دا رهن هم جائز نه دی: ځکه د سندرغاړي ښځي او ژړونکي ښځي اُجرت پر انسان نه واجبيږي لهذا هغه غير مضمون دی او د غير مضمون شي په عوض کې رهن جائز نه دی. نو ځکه دا رهن به هم جائز نه وي.

او بيا که دې ښځو ته رهن کښېږدي او مرهون شی د دوی سره هلاک سي. نو پر دوی هم ضمان نه واجبيږي: ځکه هغه ګردسره رهن نه دی. لهذا پر هغه به د رهن احکام هم نه جاري کيږي: "لأنه لا يقابله شيء مضمون" يعني ځکه چې د دې رهن په مقابله کې هيڅ مضمون شی نسته ځکه د دې ښځو اُجرت مضمون نه دی. همدا وجه ده که دا ښځې له عقد رهن څخه مخکې د قاضي په حضور کې داُجرت دعویٰ وکړي چې مونږ ته دې خپل اُجرت راکول سي، نو قاضي به داُجرت ورکولو حکم نه کوي.

## شراب په رهن ورکول او اخيستل جائز نه دي

وَلَا يَجُوزُ لِلْمُسْلِمِ أَنْ يَرْهَنَ خَمْرًا او د مسلمان لپاره جائز نه دي چې شراب په رهن ورکړي أَوْ يَرْتَهِنَهُ مِنْ مُسْلِمٍ أَوْ ذِمِّيٍّ يا يې له مسلمان او ذمي څخه په رهن واخلي لِتَعَذُّرِ الْإِيفَاءِ وَالِاسْتِيفَاءِ فِي حَقِّ الْمُسْلِمِ ځکه [د شرابو] ورکول او اخيستل د مسلمان په حق کې نا ممکن دي ثُمَّ الرَّاهِنُ إِذَا كَانَ ذِمِّيًّا بيا که راهن ذمي وي فَالْخَمْرُ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ لِلذِّمِّيِّ نو [په دې صورت کې] پر مسلمان د ذمي لپاره شراب مضمون دي [يعني پر مسلمان يې ضمان لازم دي] كَمَا إِذَا غَصَبَهُ لکه [په هغه صورت کې] کله چې

مسلمان د ذمي شراب غصب کړي وَإِنْ كَانَ الْمُرْتَهِنُ ذِمِّيًّا او که مرتهن ذمي وي لَمْ يَضْمَنْهَا لِلْمُسْلِمِ نو ذمي د مسلمان لپاره د شرابو نه ضامن کيږي كَمَا لَا يَضْمَنُهَا بِالْغَصْبِ مِنْهُ لکه څرنګه چې له مسلمان څخه د شرابو د غصب کولو په صورت ذمي د هغوی نه ضامن کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا جَرَى ذٰلِكَ فِيمَا بَيْنَهُمْ په خلاف د هغه صورت کله چې دا عقد د ذميانو تر مينځ جاري سوی وي لِأَنَّهَا مَالٌ فِي حَقِّهِمْ ځکه شراب د دوی په حق کې مال دی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د مسلمان کس لپاره دا جائز نه دي چې شراب په رهن ورکړي يا يې په رهن واخلي؛ ځکه مسلمان نه د شرابو مالک کېدلای سي او نه بل څوک د شرابو مالک کولای سي يعني شراب اخيستل او ورکول د هغه په حق کې ممنوع دي.

خو که د مسلمان او ذمي تر مينځ د شرابو عقد رهن وسي نو اوس څه حکم دی؟، فرمايي چې که راهن ذمي وي او مرتهن مسلمان وي او د مسلمان سره د ذمي شراب هلاک او ضايع سي، نو پر مسلمان د هغه ضمان واجبيږي؛ ځکه د ذميانو په حق کې شراب مال دی، همدا وجه ده که يو مسلمان د ذمي شراب غصب کړي، نو هم پر مسلمان ضمان واجبيږي.

او که مسئله د دې برعکس وي يعني راهن مسلمان وي او مرتهن ذمي وي يعني مسلمان ذمي ته شراب په رهن ورکړي وي او هغه شراب د ذمي سره هلاک او ضايع سي، نو پر ذمي د هغه ضمان نه واجبيږي؛ ځکه د مسلمان په حق کې شراب مال نه دی، همدا وجه ده که يو ذمي کس د مسلمان شراب غصب کړي، نو پر ذمي ضمان نه واجبيږي.

ها! که دا د شرابو عقد رهن د دوو ذميانو ترمينځ وسي، نو اوس په هر صورت کې پر هغه د رهن احکام جاري کيږي، لهذا د شرابو د هلاکېدلو په صورت کې پر مرتهن ضمان واجبيږي؛ ځکه شراب د ذميانو په حق کې مال دی، نو ښکاره ده چې د دوی په حق کې به مضمون هم وي.

## د مړزکي (مردار سوي حيوان) رهن جائز نه دی

أَمَّا الْمَيْتَةُ فَلَيْسَتْ بِمَالٍ عِنْدَهُمْ او کوم چې مړزکه ده نو هغه د ذميانو په نيز [هم] مال نه ده فَلَا يَجُوزُ رَهْنُهَا وَارْتِهَانُهَا فِيمَا بَيْنَهُمْ نو ځکه مړزکه په رهن ورکول او په رهن اخيستل د دوی تر مينځ [هم] جائز نه دي كَمَا لَا يَجُوزُ فِيمَا بَيْنَ الْمُسْلِمِينَ بِحَالٍ لکه څرنګه چې د مسلمانانو تر مينځ په هيڅ حالت کې جائز نه دي.

**اللغات:** مردار سوی حيوان، مړزکه (يعني هغه حيوان چې په خپل مرګ مړ سوي وي. صاحب مصباح يې داسي تعريف کړی دی: وَالْمَيْتَةُ مِنَ الْحَيَوَانِ مَا مَاتَ حَتْفَ أَنْفِهِ).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي شراب خو د ذميانو په نېز مال دی، لېکن مړ ژکه د دوی په نېز هم مال نه شمېرل کيږي لهذا هغه د دوی په حق کي مال نه دی، نو څرنګه چي د مسلمانانو په مېنځ کي د مړژګي عقد رهن او هغه په رهن ورکول او اخيستل جائز نه دي، همداسي د ذميانو په مېنځ کي هم دا جائز نه دي.

**که مرهون غلام آزاد ثابت سي يا مرهون شی شراب يا مړژکه وخبري**

وَلَوِ اشْتَرَىٰ عَبْدًا او که غلام رانيسي وَرَهَنَ بِثَمَنِهِ عَبْدًا أَوْ خَلًّا أَوْ شَاةً مَذْبُوحَةً او د هغه د ثمن په عوض کي غلام يا سرکه يا ذبح کړی سوی پسه په رهن ووکړي ثُمَّ ظَهَرَ الْعَبْدُ حُرًّا أَوِ الْخَلُّ خَمْرًا أَوِ الشَّاةُ مَيْتَةً بيا غلام آزاد يا شراب سرکه يا پسه مړژکه ښکاره سي فَالرَّهْنُ مَضْمُونٌ نو دا رهن مضمون دی لِأَنَّهُ رَهَنَهُ بِدَيْنٍ وَاجِبٍ ظَاهِرًا ځکه مشتري دا شی د داسي قرض په عوض کي په رهن ورکړی وو کوم چي په ښکاره واجب دی وَكَذَا إِذَا قَتَلَ عَبْدًا وَرَهَنَ بِقِيمَتِهِ رَهْنًا او همدارنګه کله چي غلام قتل کړي او د هغه د قيمت په عوض کي رهن ورکړي ثُمَّ ظَهَرَ أَنَّهُ حُرٌّ بيا ښکاره سي چي هغه آزاد دی وَهٰذَا كُلُّهُ عَلَىٰ ظَاهِرِ الرِّوَايَةِ او دا ټوله بحث د ظاهر مطابق دی وَكَذَا إِذَا صَالَحَ عَلَىٰ إِنْكَارٍ او همدارنګه کله چي پر انکار صلح وکړي وَرَهَنَ بِمَا صَالَحَ عَلَيْهِ رَهْنًا او پر کوم شي چي صلح وکړي د هغه په عوض کي رهن ورکړي ثُمَّ تَصَادَقَا أَنْ لَا دَيْنَ بيا دواړه [پر دې] اتفاق وکړي چي قرض نسته فَالرَّهْنُ مَضْمُونٌ نو دا رهن [هم] مضمون دی وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ خِلَافُهُ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه د دې په خلاف نقل سوي دي وَكَذَا قِيَاسُهُ فِيمَا تَقَدَّمَ مِنْ جِنْسِهِ او همدارنګه د همدې جنس په مخکينيو [دوو] مسئلو کي [هم] د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دغه قياس دی.

**اللغات**: ﴿شاة﴾ مخکي مو ذکر کړه چي پسه، مېږه، سېرلي او بزه ټولو باندي د دې لفظ اطلاق کيږي.

﴿تصادقا﴾ د تفاعل له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو د بل تصديق کول. پر يو خبره اتفاق کول دي.

**تشريح**: مخکي تر دې د هغو صورتونو بيان وو کله چي د مرهون شراب والی يا مړژکه والی يا آزاد والی له مخکي څخه معلوم او ښکاره وي، او که له مخکي څخه معلوم نه وي بلکي وروسته معلوم سي، نو د هغه جلا حکم دی چي په دې عبارت کي د هغه حکم او تفصيل بيانوي:

① ... زيد له خالد څخه مثلاً يو غلام رانيسي او د ثمن په بدله کي يې خالد (بائع) ته يو غلام يا سرکه يا مذبوح پسه ورکړي، نو دا رهن خو صحيح دی، لېکن وروسته معلومه سوه چي دا مرهون کس غلام

نه دی بلکي آزاد دی يا مرهون شی سرکه نه ده بلکي شراب دي يا د مذبوح پسه په هکله معلومه سوه چي دا خو مړ که ده يعني بغير له ذبح په خپل طبعي مرګ مردار سوی دی. نو آيا اوس هم د مرهون ضمان واجبيږي؟. نو فرمايي چي هو! دا رهن هم مضمون دی: ځکه دا هر مرهون د داسي قرض (ثمن) په مقابله کي اينبوول سوی وو کوم چي په ښکاره واجب وو. نو ځکه دا رهن به مضمون وي يعني ضمان به يې واجب وي.

او پاته سو دا خبره چي څومره ضمان يې واجب دی؟. نو جواب دا دی چي د ثمن. مبيع او مرهون قيمت ته به کتل کيږي چي په دوی کي هريو کم وي. د هغه مطابق ضمان واجبيږي. او دلته د واجب قرض دليل دا دی چي که د مذکوره خبرو له معلومېدلو څخه مخکي بائع د قاضي په حضور کي دعویٰ وکړي (چي مشتري دي ما ته ثمن راکړي). نو قاضي به (مشتري ته) د ثمن اداء کولو حکم کوي.

وكذا إلخ: ② ... زيد خطاءً د خالد غلام قتل کړی او د غلام د قيمت په عوض کي يې و خالد ته يو شی رهن کښېښوی. بيا معلومه سوه چي مقتول کس غلام نه وو بلکي آزاد وو. نو په دې صورت کي هم رهن مضمون دی د مذکوره پورتني دليل په وجه. دا ټوله ظاهر روايت دی. خو په نوادر کي په دې کي اختلاف نقل سوی دی.

② ... زيد پر خالد مثلاً د سلو (۱۰۰) درهمو دعویٰ وکړه او خالد انکار وکړی خو د جنجال ختمېدو لپاره خالد د زيد سره مثلاً پر پنځوس درهمه صلح وکړه. او د مالِ صلح (پنځوس درهمو) په عوض کي زيد ته يو شی په رهن کښېښوی. بيا دواړه پر دې متفق سوه چي هيڅ قرض نسته. نو په دې صورت کي هم رهن مضمون دی يعني که مرهون شیٰ هلاک سي نو پر زيد يې ضمان واجب دی.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز دا رهن نه مضمون کيږي: ځکه کله چي دواړو پر عدمِ قرض تفاق وکړی نو دوی پر عدمِ ضمان اتفاق وکړی. نو ځکه رهن به مضمون نه وي.

په دې مسئله کي چي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله کوم قول او قياس دی. د هغه تقاضا دا ده چي په مخکني دريو سره مسئلو کي د هغه دغه اختلاف جاري کېدل پکار دي (يعني د "لو اشترى عبداً" څخه تر آخره).

## د خپل بچي مال په رهن اينبوول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَيَجُوزُ لِلأَبِ أَنْ يَرْهَنَ بِدَيْنٍ عَلَيْهِ عَبْدًا لابْنِهِ الصَّغِيرِ فرمايي: او جائز دي د پلار لپاره چي د خپل قرض په عوض کي د خپل کوچني زوی غلام اد قرض مالک ته اپه رهن کښېږدي لِأَنَّهُ يَمْلِكُ الإِيدَاعَ ځکه پلار د امانتاً اينبوولو مالک دی اچي د خپل بچي مال يو چا ته په امانت کښېږدي] وَهَذَا أَنْظَرُ

نِ حَقِّ الصَّبِيِّ مِنْهُ او رهن ايښوول د بچي په حق كي له امانتاً ايښوولو څخه زيات د مصلحت [او شفقت] باعث دي لِأَنَّ قِيَامَ الْمُرْتَهِنِ بِحِفْظِهِ أَبْلَغُ خِيفَةَ الْغَرَامَةِ ځكه د تاوان له بيري د مرهون شي په حفاظت سره د مرتهن قايمېدل به زيات وي [يعني له دي بيري چي د مرهون شي ضمان او تاوان به پر ما لازم سي مرتهن به د هغه زيات حفاظت كوي] وَلَوْهَلَكَ او كه مرهون هلاک سي يَهْلِكُ مَضْمُونًا نو ضمان والا هلاكيږي [يعني ضمان يې واجبيږي] وَالْوَدِيعَةُ تَهْلِكُ أَمَانَةً او امانتاً ايښوول سوى شى د امانت په توګه هلاكيږي وَالْوَصِيُّ بِمَنْزِلَةِ الْأَبِ فِي هٰذَا الْبَابِ او وصي په دې باب كي د پلار په درجه كي دى لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ بيان كړى وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ وَزُفَرَ أَنَّهُ لَا يَجُوزُ ذٰلِكَ مِنْهُمَا او له امام ابو يوسف او امام زفر رَحِمَهُمَا الله څخه روايت دى چي د پلار او وصي له طرفه رهن ايښوول جائز نه دي وَهُوَ الْقِيَاسُ او همدا قياس دى اِعْتِبَارًا بِحَقِيقَةِ الْإِيفَاءِ پر حقيقتاً وركولو په قياس كولو سره وَوَجْهُ الْفَرْقِ عَلَى الظَّاهِرِ وَهُوَ الْاِسْتِحْسَانُ او د ظاهر روايت مطابق د فرق وجه دا ده (او همدا استحسان هم دى) أَنَّ فِي حَقِيقَةِ الْإِيفَاءِ إِزَالَةَ مِلْكِ الصَّغِيرِ مِنْ غَيْرِ عِوَضٍ يُقَابِلُهُ فِي الْحَالِ چي په حقيقتاً وركولو كي له څه داسي عوض څخه بغير د بچي د ملكيت زائلول سته كوم چي في الحاله د دې ملكيت مقابل وي وَفِي هٰذَا نَصْبُ حَافِظٍ لِمَالِهِ نَاجِزًا مَعَ بَقَاءِ مِلْكِهِ او په رهن وركولو كي د بچي د ملكيت د پاتېدلو سره في الفوره د هغه د مال [د حفاظت] لپاره د ساتونكي مقررول سته فَوَضَحَ الْفَرْقُ نو [د وديعت او رهن ترمينځ] فرق ښكاره سو.

**اللغات**: ﴿إيداع﴾ د افعال د باب مصدر دى: په امانت ايښوول. چا ته په امانت وركول. ﴿أنظر﴾ د اسم تفضيل صيغه ده: زيات مصلحت او ښېګڼي والا (زيات فايده من). پر زيات شفقت مبني.

﴿غرامة﴾ تاوان. جرمانه. ﴿حافظ﴾ د ضرب د باب فاعل دى: ساتونكى. نګران. ﴿ناجز﴾ د نصر د باب اسم فاعل دى: ېيله ځنډه. فوراً (سمدستي). موجود او حاضر.

**تشريح: صورت د مسئلي**: دا دى چي پلار د خپل كوچني بچي ولي او سرپرست دى چي پر خپل بچي هغه ته ولايت حاصل دئ همدارنګه د خپل بچي د مال د حفاظت اختيار او ولايت هغه ته حاصل دى. لهذا د پلار لپاره دا جائز دي چي د بچي مال يو چا ته په امانت كېښږدي. او دا ښكاره خبره ده چي په رهن كي له امانت ايښوولو څخه زيات حفاظت دى: ځكه كه د امانت په صورت كي

مال هلاک سي، نو پر مودَع ضمان نه واجبيږي او د رهن په صورت کي پر مرتهن ضمان واجبيږي (لکه مخکي چي دا څو ځله ذکر سوه)، او کله چي په رهن کي له وديعت څخه زيات حفاظت دی، لهذا هغه به په درجه اولیٰ جائز وي. نو اوس واورئ! که مثلاً د زيد و بچي ته د مور په ميراث کي يو غلام حاصل سي او پر زيد د يو چا قرض وي چي د هغه په عوض کي زيد د خپل بچي غلام په رهن ورته کښېږدي (په رهن ورکړي)، نو دا جائز دي. او که د پلار وصي وي نو هم دغه حکم دی يعني هغه هم په دې توګه رهن ايښوولای سي، دا ظاهر روايت دی او همدا استحسان دی.

لېکن امام ابو يوسف او امام زفر رَحِمَهُمَا الله فرمايي او همدا قياس دی چي څرنګه دا جائز نه دي چي پلار يا وصي خپل قرض د بچي په مال سره اداء کړي، نو همداسي د هغه مال په رهن ايښوول هم جائز نه دي.

ووجه الفرق إلخ: له دې ځايه صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د ظاهر روايت (کوم چي پر استحسان مبني دی) او د قياس تر مينځ د فرق وجه بيانوي، حاصل يې دا دی چي قرض اداء کول پر رهن قياسول صحيح نه دي، بلکي په دواړو کي فرق دی او هغه دا چي په قرض اداء کولو کي د صغير مال بلا عوضه او مفت زايليږي، حال دا چي په رهن ايښوولو کي د هغه مال د قرض يا يو عوض په بدله کي ورکول کيږي او په رهن کي د هغه د مال د حفاظت لپاره يو نګران هم ټاکل کيږي (ځکه چي مرتهن د هغه حفاظت کوي)، نو په دې حواله سره په قرض اداء کولو او په رهن ايښوولو کي فرق دی او دواړه يو ګڼل غلط دي، په همدې وجه موږ وايو چي د بچي په مال سره قرض اداء کول که څه هم جائز نه دي، خو هغه په رهن ايښوول جائز او صحيح دي.

## که د بچي د رهن مال هلاک سي نو د هغه حکم

وَإِذَا جَازَ الرَّهْنُ او کله چي رهن جائز دی يَصِيْرُ الْمُرْتَهِنُ مُسْتَوْفِيًا دَيْنَهُ لَوْهَلَكَ فِي يَدِهِ نو مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی ګرځي که چيري مرهون د هغه په قبضه کي هلاک سي وَيَصِيْرُ الْأَبُ أَوِ الْوَصِيُّ مُوْفِيًا لَهُ او پلار (يا وصي) د هغه اداء کونکي ګرځي وَيَضْمَنُهُ لِلصَّبِيِّ او پلار (او وصي) د بچي لپاره د هغه ضامن کيږي لِأَنَّهُ قَضٰى دَيْنَهُ بِمَالِهِ ځکه چي پلار (او وصي) د بچي په مال سره خپل قرض اداء کړی دی وَكَذَا لَوْسَلَّطَا الْمُرْتَهِنَ عَلٰى بَيْعِهِ او همدارنګه که پلار او وصي د مرهون شي پر خرڅولو مرتهن وګوماري لِأَنَّهُ تَوْكِيْلٌ بِالْبَيْعِ ځکه چي دا [ګومارل] د خرڅولو وکيل جوړول دي وَهُمَا يَمْلِكَانِهِ او پلار او وصي دواړه د وکيل جوړولو ملکيت [اختيار] لري قَالُوْا: أَصْلُ هٰذِهِ الْمَسْأَلَةِ الْبَيْعُ مشايخ فرمايي: چي په دې مسئله کي اصل بيع ده فَإِنَّ الْأَبَ أَوِ الْوَصِيَّ إِذَا بَاعَ

مَالَ الصَّبِيِّ مِنْ غَرِيمٍ نَفْسِهِ ځکه که پلار یا وصي د بچي مال پر خپل قرضخواه خرڅ کړي [یعني د ماشوم پر پلار یا وصي قرض بلندي وي پر هغه یې خرڅ کړي] جَازَ وَتَقَعُ الْمُقَاصَةُ نو جائز دي او مقاصه [تبادله] به واقع کیږي وَيَضْمَنُهُ لِلصَّبِيِّ او پلار (او وصي) د بچي لپاره د هغه مال ضامن کیږي عِنْدَهُمَا [دا حکم] د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز دی وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ لَا تَقَعُ الْمُقَاصَةُ او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز به مقاصه نه واقع کیږي وَكَذَا وَكِيلُ الْبَائِعِ بِالْبَيْعِ او همدارنګه د بیع [خرڅولو] په هکله د بائع وکیل وَالرَّهْنُ نَظِيرُ الْبَيْعِ او رهن د بیع مشابه دی نَظَرًا إِلَى عَاقِبَتِهِ مِنْ حَيْثُ وُجُوبِ الضَّمَانِ د هغه انجام [آخر] ته په کتلو د ضمان واجبېدلو په حیثیت سره.

**اللغات:** ﴿مُسْتَوْفِي﴾ د استفعال د باب فاعل دی: ترلاسه کونکی، پوره اخیستونکی. ﴿مُوْفِي﴾ د افعال د باب فاعل دی: پوره کونکی، اداء کونکی (ورکونکی). ﴿مقاصة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: یو شی د بل شي سره مقابله کول، ادل بدل کول (د مثال په توګه پر زید د خالد لس درهمه قرض باندي وي او بیا د خالد هم پر زید لس درهمه قرض باندي سي، نو دوی خپل قرضونه سره مقابله او ادل بدل کړي، دې ته مقاصه وایي). تبادله کول. په برابرۍ سره یو شی د بل شي په مقابله کي راتلل.

**تشریح:** دا عبارت د مخکیني عبارت سر متعلق دی چي کله د بچي مال په رهن ورکول د پلار او وصي لپاره جائز دي، نو ښکاره ده چي پر هغه به د رهن احکام جاري کیږي، لهذا که دا مرهون مال د مرتهن سره هلاک سي، نو مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی ګرځي او پلار او وصي د قرض اداء کونکي او بري ګرځي، او څرنګه چي دوی د بچي په مال سره د قرض اداء کونکي سوه، نو ځکه پر دوی ضمان (تاوان) واجبیږي. او د ضمان دا چي د مرهون مال قیمت که د قرض سره برابر وي او که زیات یا کم وي په هر صورت کي به صرف د مرهون مال د قیمت په اندازه ضمان ورکوي.

**وکذا الوسلط الخ:** پلار او وصي ته دا اختیار سته چي د بچي مال خرڅ کړي (لکه مخکي چي ذکر سوه) لهذا دا حق هم ورته سته چي یو څوک د هغه د خرڅولو وکیل جوړ کړي، او کله چي دوی ته دې اختیار سته، نو دا به هم جائز وي چي پلار او وصي د هغه پر خرڅولو مرتهن مسلط کړي یعني مرتهن ته د بچي د مرهون مال خرڅولو حکم وکړي او په خرڅ یې کړي؛ ځکه دا د بیع توکیل دی. او پلار او وصي دواړه د هغه ملکیت او اختیار لري.

---

(۞) القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله. انظر لتفصيل الكتاب [القول الراجح ج:۲، ص:۳۲۸]

قالوا إلخ: مشایخو فرمایلي دي چي د طرفینو رَحِمَهُمَا الله او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دغه اختلاف په اصل کي د بیع پر اختلاف مبني دی چي هاغه دلته په رهن کي هم جاري سوی دی. په بیع کي د دوی اختلاف دا دی چي. که په پلار یا وصي باندي دیو چا (مثلاً د زید) قرض وي او بیا پلار یا وصي په قرضخواه (زید) باندي د بچي مال خرخ کړي. نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز حکم دا دی چي قرضخواه به هغه رانیسي خو پر قرضخواه ثمن نه واجبېږي بلکي مقاصه (او مبادله) به کیږي یعني پر پلار یا وصي چي کوم قرض دی، دا ثمن د هغه بدل ګرځي. نو ځکه قرضخواه به ثمن نه ور کوي.

لیکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز حکم دا دی چي مقاصه به نه کیږي بلکي پر قرضخواه ثمن واجبېږي (چي د بچي د مال ثمن به اداء کوي) او پاته سو دده قرض د مخکي په څېر پر پلار یا وصي باقي پاتیږي. همدارنګه که یو څوک مثلاً عُمر د خپل یو سامان خرڅولو لپاره خالد وکیل جوړ کړي او خالد هغه سامان پر حامد خرخ کړي او په خالد د حامد قرض باندي وي. نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز به مقاصه کیږي لهذا پر حامد ثمن نه واجبېږي. لیکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نېز به مقاصه نه کیږي او پر حامد ثمن واجبېږي.

نو اصل اختلاف په بیع کي دی، خو څرنګه چي د انجام یعني د ضمان واجبېدلو په اعتبار سره رهن هم د بیع په څېر دی، نو ځکه په رهن کي هم دغه اختلاف جاري کړی سوی دی.

## پلار د خپل بچي مال د خپل ځان او خپلي کورني والا سره په رهن هم ایښوولای سي

وَإِذَا رَهَنَ الْأَبُ مِنْ نَفْسِهِ او کله چي پلار [د بچي سامان] د خپل ځان سره په رهن کښېښېږدي أَوْ مِنِ ابْنٍ لَهُ صَغِيرٍ یا خپل [بل] کوچني بچي ته یې کښېږدي أَوْعَبْدٍ لَهُ تَاجِرٍ لَا دَيْنَ عَلَيْهِ یا د خپل داسي تاجر غلام سره یې کښېږدي چي پر هغه قرض نه وي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الْأَبَ لِوُفُوْرِ شَفَقَتِهِ أُنْزِلَ مَنْزِلَةَ شَخْصَيْنِ ځکه پلار د خپل شفقت د بشپړتیا په وجه د دوو کسانو په درجه ګرځول سوی دی وَأُقِيمَتْ عِبَارَتُهُ مَقَامَ عِبَارَتَيْنِ فِي هٰذَا الْعَقْدِ او د هغه عبارت په دې عقد کي د دوو عبارتونو قائم مقام کړی سوی دی كَمَا فِي بَيْعِهِ مَالَ الصَّغِيرِ مِنْ نَفْسِهِ لکه په هغه صورت کي اچي فانه مثلاً دی[ا] چي پلار د بچي مال پر خپل ځان خرخ کړي فَتَوَلَّى طَرَفَيِ الْعَقْدِ نو ځکه پلار به د عقد د دواړو طرفونو [ایجاب و قبول] ولي وي.

**اللغات:** ﴿وفور﴾ د ضرب د باب مصدر دی: زيات پوره کېدل. بشپړ کېدل. ﴿شفقة﴾ شفقت. مهرباني او رحم. ﴿تَوَلّٰی﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: متولي او سرپرست کېدل. (مختار کېدل). ذمه وار کېدل. ﴿طرفي العقد﴾ د عقد او معاملې دواړه طرفونه يعني ايجاب و قبول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که پلار د بچي مال د خپل ځان سره په رهن کښېږدي يا د خپلې کورنۍ والا د هغو کسانو سره يې په رهن کښېږدي کوم چې د هغه د نفس په درجه کې دي مثلاً د خپل بل بچي يا د خپل داسي تاجر غلام سره چې قرض باندي نه وي. نو دا جائز دي.

**سوال:** دلته دا سوال پيدا کيږي چې د عقد رهن لپاره خو ايجاب او قبول دواړه پکار دي. که د پلار قول ايجاب ومنل سي نو قبول موجود نه سو او که قبول ومنل سي نو ايجاب موجود نه سو. لهذا دا رهن نه صحيح کېدل پکار دي؟.

**جواب:** خبره خو همداسي ده! خو څرنګه چې د پلار شفقت کامل دی پر خپل بچي او د هغه پر مال. نو ځکه پلار د دوو کسانو په درجه وګرځول سو يعني هغه د ايجاب او قبول دواړو متولي وګرځول سو او د هغه قول د دوو عبارتونو قائم مقام وګڼل سو. لکه کله چې پلار د بچي مال خپله پر خپل ځان خرڅ کړي، نو جائز دي او هلته پلار د ايجاب او قبول دواړو متولي ګرځي او بيع جائز کيږي. نو همداسي په رهن کي هم پلار د ايجاب او قبول دواړو متولي ګرځي او رهن جائز کيږي.

## وصي د بچي مال د ځان سره په رهن نه سي ايښوولای

وَلَوِارْتَهَنَهُ الْوَصِيُّ مِنْ نَفْسِهِ او که وصي د [يتيم] بچي مال د خپل ځان سره کښېږدي أَوْمِنْ هٰذَيْنِ يا د دې دواړو [يعني د بل بچي يا مذکوره غلام] سره يې کښېږدي أَوْرَهَنَ عَيْنًا لَهُ مِنَ الْيَتِيْمِ يا د يتيم سره يو شی په رهن کښېږدي بِحَقٍّ لِلْيَتِيْمِ عَلَيْهِ د يتيم د هغه حق [او مال] په عوض کي کوم چې پر وصي دی لَمْ يَجُزْ نو دا جائز نه دي لِأَنَّهُ وَكِيْلٌ مَحْضٌ ځکه چې وصي خالص وکيل دی وَالْوَاحِدُ لَا يَتَوَلّٰی طَرَفَيِ الْعَقْدِ فِي الرَّهْنِ او يو کس د عقد د دواړو طرفونو ولي کېدلای نه سي كَمَا لَا يَتَوَلَّاهُمَا فِي الْبَيْعِ لکه څرنګه چې يې په بيع کي نه سي ولي کېدلای وَهُوَ قَاصِرُ الشَّفَقَةِ او وصي کم شفقت والا [هم] دی فَلَا يُعْدَلُ عَنِ الْحَقِيْقَةِ فِي حَقِّهِ إِلْحَاقًا لَهُ بِالْأَبِ نو د پلار سره د وصي په لاحقولو کي به د وصي په حق کي له حقيقت څخه عدول نه کيږي وَالرَّهْنُ مِنِ ابْنِهِ الصَّغِيْرِ او د خپل [بل] کوچني بچي سره رهن ايښوول وَعَبْدِهِ التَّاجِرِ الَّذِي لَيْسَ عَلَيْهِ دَيْنٌ او د خپل هغه تاجر

غلام سره ارهن ایښوول ا چې قرض باندې نه وي بِمَنْزِلَةِ الرَّهْنِ مِنْ نَفْسِهِ د خپل ځان سره د رهن ایښوولو په درجه کې دې بِخِلَافِ ابْنِهِ الْكَبِيرِ وَأَبِيهِ وَعَبْدِهِ الَّذِي عَلَيْهِ دَيْنٌ په خلاف [د رهن ایښوولو] د خپل لوی بچي او د خپل پلار او د خپل هغه غلام [سره] چې قرض باندې وي لِأَنَّهُ لَا وِلَايَةَ لَهُ عَلَيْهِمْ ځکه چې وصي لره پر دوی هیڅ ولایت نسته بِخِلَافِ الْوَكِيلِ بِالْبَيْعِ إِذَا بَاعَ مِنْ هَؤُلَاءِ په خلاف د وکیل بالبیع کله چې هغه ددې کسانو سره بیع کړي لِأَنَّهُ مُتَّهَمٌ فِيهِ ځکه چې هغه په دې بیع کې متهم دی وَلَا تُهْمَةَ فِي الرَّهْنِ او په رهن کې هیڅ تهمت نسته لِأَنَّ لَهُ حُكْمًا وَاحِدًا ځکه د رهن صرف یو حکم دی [وهو أن الرهن مضمون، سواءٌ رهنه عند هٰؤلاء أو عند أجنبي].

**اللغات:** ﴿ارتهن﴾ د افتعال د باب ماضي ده: په رهن (په ګرو) اخیستل. د رهن تو ګه اخیستل.

﴿یعدل﴾ د ضرب له بابه د نفي مجهول صیغه ده: عدول کول، رجوع کول او مخ ګرځول. واپس کېدل. ﴿متهم﴾ د افتعال د باب مفعول دی: پر چا چې تهمت وي، تومتي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د بچي مال د خپل ځان سره په رهن ایښوول د پلار لپاره خو جائز دي لېکن د وصي لپاره جائز نه دي، همدارنګه د بچي مال د خپل بل بچي او د خپل غیر مقروض تاجر غلام سره په رهن ایښوول د پلار لپاره خو جائز دي لېکن د وصي لپاره جائز نه دي (یعني وصي نه د خپل ځان سره د یتیم مال په رهن ایښولای سي او نه یې د بل یتیم او غیر مقروض تاجر غلام سره په رهن ایښوولای سي)، همدارنګه که د یتیم پر وصي قرض یا بل حق باندې وي او وصي د دې قرض او حق په عوض کې یتیم ته یو شی په رهن کښېږدي نو دا هم جائز نه دي، خلاصهٔ د خبرې دا چې د وصي لپاره دا ځلور سره صورتونه ناجائز دي؛ ځکه اُصول دا ټاکل سوی دی چې یوازې یو کس د ایجاب او قبول دواړو نه سي متولي کېدلای نه په بیع کې او نه په رهن کې. او پاته سو د پلار حکم خو د کامل او بشپړ شفقت په وجه خلافُ القیاس د هغه لپاره مخصوص دی او وصي پر هغه نه سي قیاسول کېدی: ځکه وصي قاصرُ الشفقة دی. او د پلار شفقت او محبت د اعلیٰ درجې وي چې په هغه کې بېله څه شکه د مصلحت او خیر خواهي اړخ غالب وي. لهذا پلار خلافُ القیاس د عقد د دواړو طرفونو (ایجاب وقبول) متولي ګرځول سوی دی او قاعده دا ده چې "ما ثبت علیٰ خلاف القیاس فغیره لا یُقاسُ علیه" یعني کوم شی چې خلاف القیاس ثابت وي پر هغه بل شي نه سي قیاسول کېدای. نو ځکه په دې

مکله به وصي ته د پلار درجه او مرتبه نه ورکول کيږي او د پلار سره د هغه د لاحقولو لپاره به له حقيقت څخه عدول نه کيږي.

او څرنګه چې پر خپل کوچنی بچي او پر خپل غير مقروض تاجر غلام سړي ته ولايت حاصل دی، نو ځکه هغه د سړي د خپل نفس په درجه شمېرل سوي دي.

بخلاف ابنه الکبير الخ: د دې حاصل دا دی چې سړي ته پر خپل بالغ بچي او پر خپل پلار او پر تاجر مقروض غلام باندي ولايت نسته، نو ځکه د دوی سره رهن اېښوول د وصي لپاره هم جائز دي؛ ځکه پر دوی وصي ته هم ولايت حاصل نه دی، نو دوی د اجنبي په څېر سول او اجنبي کس ته رهن اېښوول جائز دي.

خو دوی ته صرف رهن اېښوول جائز دي او پاته سو پر دې کسانو د بل چا مال خرڅول جائز نه دي، مثلاً زيد د يو سامان خرڅولو لپاره خالد وکيل جوړ کړی او خالد بيا هغه سامان پر خپل بالغ بچي يا پر خپل پلار يا پر خپل مقروض غلام باندي خرڅ کړي، نو جائز نه دي؛ ځکه په دې بيع کي تهمت دی (چي مثلاً په ډېر ارزانه قيمت به يې پر خرڅ کړي) او په رهن کي هيڅ تهمت نسته؛ ځکه د رهن صرف يو حکم دی چي هغه د مرهون مضمون کېدل او يد الاستيفاء ثابتېدل دي او دا حکم برابره ده مرتهن هر څوک وي په رهن سره ثابتېدلای سي، نو د تهمت د نشتوالي په وجه رهن جائز دی او بيع د تهمت په وجه ناجائز ده.

## د يتيم د حاجت لپاره د قرض اخيستلو په صورت کي د هغه مال په رهن اېښوول

وَإِنِ اسْتَدَانَ الْوَصِيُّ لِلْيَتِيمِ فِي كِسْوَتِهِ وَطَعَامِهِ او که وصي د يتيم د جامې [کپړې] او خوراک لپاره قرض واخلي فَرَهَنَ بِهِ مَتَاعًا لِلْيَتِيمِ او د هغه په عوض کي د يتيم يو سامان په رهن کښېږدي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّ الِاسْتِدَانَةَ جَائِزَةٌ لِلْحَاجَةِ ځکه د ضرورت لپاره قرض اخيستل جائز دي وَالرَّهْنُ يَقَعُ إِيفَاءً لِلْحَقِّ او رهن د حق اداء کولو لپاره واقع کيږي [يا په بله وينا دا چي عقد رهن د قرض اداء کولو لپاره کيږي] فَيَجُوزُ نو ځکه دا جائز دي وَكَذَلِكَ لَوِ اتَّجَرَ لِلْيَتِيمِ فَارْتَهَنَ أَوْ رَهَنَ او همدارنګه که وصي د يتيم لپاره تجارت وکړي بيا رهن واخلي يا رهن ورکړي [نو هم جائز دي] لِأَنَّ الْأَوْلَى لَهُ التِّجَارَةُ تَثْمِيرًا لِمَالِ الْيَتِيمِ ځکه د وصي لپاره تجارت کول افضل دي د يتيم د مال اضافه کولو په خاطر فَلَا يَجِدُ بُدًّا مِنَ الِارْتِهَانِ وَالرَّهْنِ نو هغه به له رهن اخيستلو او رهن ورکولو څخه چاره نه

مومي لِأَنَّهُ إِيفَاءٌ وَاسْتِيفَاءٌ ځکه چي دا [ارتهان او رهن] (د حق) ورکول او اخيستل دي.

**اللغات**: ﴿استدان﴾ د استفعال د باب ماضي ده: په قرض اخيستل. په پور غوښتل. ﴿كِسوة﴾ لباس. جامه. ﴿اتجر﴾ د افتعال د باب ماضي ده: تجارت کول. کاروبار کول. ﴿تثمير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مال اضافه کول. زياتول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي که وصي له يو چا څخه ديتيم د ضرورت مثلاً د کپړې او خوراک لپاره څه قرض واخلي او د هغه په عوض کي ديتيم يو شی په رهن ورکړي. نو جائز دي: ځکه کپړه او خوراک له انساني ضروريا تو څخه دي او د ضرورت لپاره قرض اخيستل جائز دي. او څرنګه چي د رهن مقصد د حق اداء کول دي چي حقدار (قرض والا) ته خپل حق (قرض) ورکول سي. او وصي ته دا جائز دي چي ديتيم بچي قرض ديتيم په مال سره اداء کړي. نو ځکه وصي ته به دا هم جائز وي چي ديتيم يو شئ قرض والا ته په رهن ورکړي.

**وكذالك إلخ**: د دې حاصل دا دی چي که وصي ديتيم لپاره تجارت کوي چي ديتيم مال ګټه وکړي او اضافه سي، او بيا په تجارت کي رهن ورکولو يا رهن اخيستلو ته ضرورت پېښ سي، نو وصي ته هغه جائز دي، ځکه د تجارت او کاروبار په دوران کي کله د رهن ورکولو او کله د رهن اخيستلو معاملې ته ضرورت پېښيږي، نو ځکه دا به هم جائز وي.

## بچي تر بلوغت وروسته خپل رهن له قرض اداء کولو څخه بغير نه سي اخيستلای

وَإِذَا رَهَنَ الْأَبُ مَتَاعَ الصَّغِيرِ او کله چي پلار د کوچني بچي [زوی] سامان په رهن ورکړي فَأَدْرَكَ الِابْنُ وَمَاتَ الْأَبُ بيا زوی بالغ سي او پلار مړ سي لَيْسَ لِلِابْنِ أَنْ يَرُدَّهُ حَتَّى يَقْضِيَ الدَّيْنَ نو زوی ته دا حق نسته چي مرهون سامان واپس واخلي تر دې چي قرض اداء کړي لِوُقُوعِهِ لَازِمًا مِنْ جَانِبِهِ ځکه د بچي له طرفه رهن لازم واقع سوی دی إِذْ تَصَرُّفُ الْأَبِ بِمَنْزِلَةِ تَصَرُّفِهِ بِنَفْسِهِ بَعْدَ الْبُلُوغِ ځکه د پلار تصرف د بچي تر بالغه کېدو وروسته د بچي د تصرف په درجه کي دی [نو د پلار تصرف داسي سو لکه بچي چي دا تصرف (عقد رهن) د خپل بالغ والي په حالت کي کړی وي] لِقِيَامِهِ مَقَامَهُ ځکه پلار د بچي قائم مقام دی.

**اللغات**: ﴿أدرك﴾ د افعال د باب ماضي ده. د دې باب معنیٰ ده: بلوغ ته رسېدل. بالغ کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که پلار د خپل بچي د قرض په عوض کي د هغه يو سامان په رهن ورکړي او کله چي بچی بالغ سي نو هغه له مرتهن څخه د خپل سامان اخيستل وغواړي، نو حکم دا دی چي اول به دا بالغ بچی د مرتهن قرض اداء کوي. تر دې وروسته به خپل سامان ځني اخلي. برابره ده

پلار ژوندی وي او که مړ سوی وي: ځکه د پلار دا تصرف د بچي له طرفه لازم واقع سوی دی ځکه پلار چي د بچي لپاره کوم تصرف کړی وي هغه تر بلوغت وروسته د بچي خپل تصرف شمېرل کېږي. نو ځکه د مرتهن له حق ور کولو څخه مخکي هغه نه ختمېږي.

ښکاره دي وي چي په دې عبارت کي د "ومات الأب" قيد اتفاقي قيد دی. لهذا که پلار ژوندی وي نو هم دغه حکم دی. (عنايه/بنايه)

## او که پلار د بچي مال د خپل قرض په عوض کي کښېږدي او بيا بچی هغه اداء کړي (حکم)

| |
|---|
| وَلَوْكَانَ الْأَبُ رَهَنَهُ لِنَفْسِهِ او که پلار د بچي مال د خپل ځان [د قرض] لپاره په رهن کښېږدي فَقَضَاهُ الِابْنُ بيا زوی د هغه قرض اداء کړي رَجَعَ بِهِ فِيْ مَالِ الْأَبِ نو زوی به په هغه سره د پلار په مال کي رجوع کوي [يعني اداء کړی سوی مال به د پلار له مال څخه واپس اخلي] لِأَنَّهُ مُضْطَرٌّ فِيْهِ لِحَاجَتِهِ إِلٰى إِحْيَاءِ مِلْكِهِ ځکه زوی د هغه اداء کولو ته مجبور دی د خپل ملکيت د ژوندي کولو په خاطر فَأَشْبَهَ مُعِيْرَ الرَّهْنِ نو دا د مرهون د عاريتاً ورکونکي سره مشابه سو وَكَذَا إِذَا هَلَكَ قَبْلَ أَنْ يَفْتَكَّهُ او همدارنګه کله چي مرهون هلاک سي مخکي تر دې چي بچی هغه را خلاص کړي لِأَنَّ الْأَبَ يَصِيْرُ قَاضِيًا دَيْنَهُ بِمَالِهِ ځکه پلار د خپل بچي په مال سره قرض اداء کونکی ګرځي فَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ عَلَيْهِ نو ځکه هغه ته به پر پلار د رجوع کولو حق وي. |

**اللغات:** ﴿مضطر﴾ د افتعال د باب مفعول دی: مجبور. ﴿معير﴾ د افعال د باب فاعل دی: عاريتاً ورکونکی (په عاريت ورکونکی) خواست کونکي ته ورکونکی. مثلاً زيد خالد ته خواست وکړي چي فلانکی شی ما ته د يو څو وخت لپاره راکړه! زه به خپل کار څني واخلم بير ته به يې درکړم او خالد هغه شی ورکړي. نو دې ته عاريتاً ورکول وايي. خالد ته معير وايي او زيد ته مستعير وايي.

﴿الرهن﴾ مراد څني مرهون شی دی. ﴿يفتك﴾ د افتعال د باب مضارع ده: رهن راخلاصول. يعني د مرتهن حق او قرض اداء کول او خپل مرهون شی واپس څني اخيستل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که پر پلار د يو کس قرض باندي وي او پلار د خپل بچي مال د قرض په عوض کي هغه کس ته په رهن ورکړي. بيا چي بچی غټ سي نو د پلار قرض اداء کړي او خپل مرهون مال له هغه کس (مرتهن) څخه واخلي. نو په دې صورت کي بچي ته دا حق سته چي له پلار څخه دومره مال واپس واخلي څومره چي يې د پلار د قرض په اداء کولو کي ورکړی وي: ځکه بچي دې ته محتاج دی چي خپل مرهون مال را خلاص کړي او په هغه سره کاروبار وغيره وکړي. او دا

کار له قرض اداء کولو څخه بغیر ناممکن دی، لهذا که څه هم د قرض اداء کولو لپاره د پلار له طرفه صراحتاً اجازه نسته. لیکن دلالتاً د هغه له طرفه اجازه سته. په همدې وجه بچي ته دا حق سته چي له خپل پلار څخه د قرض په اندازه مال واپس واخلي.

او دا مسئله د رهن د اعارې په څیر ده یعني مثلاً خالد و زید ته یو شی عاریتاً ورکړي چي ورسه! دا یو چا ته په رهن ورکړه او له هغه څخه قرض واخله! (نو خالد مُعیر د رهن سو. ځکه زید ته یې د رهن لپاره په عارت شی ورکړی) او زید له یو سړي مثلاً له حامد څخه قرض واخیستی او هغه د خالد شی یې په رهن ورته کښېښوی. بیا خالد خپله د زید قرض اداء کړی او خپل شی یې له مرتهن (حامد) څخه واخیستی، نو اوس خالد ته دا حق سته چي له زید څخه د قرض په اندازه مال واخلي.

نو څرنګه چي مُعیر د رهن (خالد) ته له مقروض (زید) څخه د مال اخیستلو حق سته. همداسي په پورتني صورت کي بچي ته له پلار څخه د مال اخیستلو حق سته.

**وکذا إذا هلك إلخ:** د دې حاصل دا دی چي بچی خو بالغ سو لیکن تر اوسه یې له مرتهن څخه خپل مرهون مال نه وو اخیستی چي هغه د مرتهن په قبضه کي هلاک سو، نو په دې صورت کي هم بچی د خپل پلار له مال څخه د پلار د قرض په اندازه اخیستلای سي: ځکه په دې صورت کي هم د پلار قرض د مرهون مال په هلاکېدلو سره اداء سوی دی. نو ځکه بچي ته به د پلار له مال څخه د اخیستلو حق وي.

## که پلار د خپل او د بچي دواړو د قرض په عوض کي د بچي مال په رهن ورکړي (حکم)

وَلَوْ رَهَنَهُ بِدَيْنٍ عَلَى نَفْسِهِ وَبِدَيْنٍ عَلَى الصَّغِيرِ او که پلار د بچي مال په رهن کښېږدي د خپل قرض او د بچي د قرض په عوض کي جَازَ نو جائز دي لِاشْتِمَالِهِ عَلَى أَمْرَيْنِ جَائِزَيْنِ ځکه دا پر دوو جائزو کارونو مشتمل دی. فَإِنْ هَلَكَ بیا که مرهون هلاک سي ضَمِنَ الْأَبُ حِصَّتَهُ مِنْ ذٰلِكَ لِلْوَلَدِ نو پلار له دې رهن څخه د خپلي حصې په اندازه د بچي لپاره ضامن کیږي لِإِيفَائِهِ دَيْنَهُ مِنْ مَالِهِ بِهٰذَا الْمِقْدَارِ ځکه چي پلار په همدې مقدار سره د بچي له مال څخه خپل قرض اداء کړی دی وَكَذٰلِكَ الْوَصِيُّ او همدارنګه وصي دی وَكَذٰلِكَ الْجَدُّ أَبُ الْأَبِ او همدارنګه نیکه دی [یعني] د پلار پلار إِذَا لَمْ يَكُنِ الْأَبُ أَوْ وَصِيُّ الْأَبِ کله چي پلار یا د پلار وصي نه وي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که پر پلار د خالد قرض باندي وي او د هغه پر بچي هم د خالد قرض باندي وي (د پلار قرض مثلاً یو نیم سل درهمه وي او د بچي قرض سل درهمه وي)، او پلار د دواړو قرضونو په عوض کي د بچي مال هغه ته په رهن کښېږدي، نو دا جائز او صحیح دي: ځکه دا پر دوو

جائزو امرونو مشتمل دی، ځکه که پوازې پر پلار یا پوازې پر بچي دیو چا قرض باندي وي او پلار دهغه پوه قرض په عوض کي د بچي مال په رهن ورته کښېږدي، نو هم جائز دي. لهذا کله چي د دواړو قرضونو په عوض کي د هغه مال په رهن کښېږدي، نو اوس به هم جائز وي.

او که مرهون مال د مرتهن (خالد) سره هلاک سي، نو پلار د خپل قرض د حصې (پونیم سل درهمو) په اندازه د بچي د مال ضامن کیږي؛ ځکه د بچي مال د پلار او بچي دواړو د قرضونو په عوض کي په رهن ایښوول سوی دی، نو د بچي له مال څخه د بچي د قرض په اندازه (یعني سل درهمه) خو ساقطیږي او پاته سوه د پلار حصه نو د پلار د قرض په اندازه ضمان پر هغه واجب پاتیږي (چي پلار به یو نیم سل درهمه د بچي په مال کي ورکوي)، ځکه پلار په همدې مقدار د بچي له مال څخه خپل قرض اداء کړی دی.

**وكذالك إلخ:** په مذکوره مسئلو کي چي کوم حکم د پلار دی، هغه حکم د نیکه او د پلار د وصي هم دی، یعني نیکه د پلار په څېر دی کله چي پلار یا د پلار وصي نه وي، همدارنګه د پلار وصي د پلار په څېر دی کله چي پلار نه وي، مثلاً په مذکوره مسئله کي چي څرنګه پلار د خپل قرض په اندازه د بچي د مال ضامن کیږي، همداسي وصي او نیکه هم ضامن کیږي.

## که د وصي ایښوول سوی رهن هلاک سي (حکم او تفصیل)

وَلَوْ رَهَنَ الْوَصِيُّ مَتَاعًا لِلْيَتِيمِ فِي دَيْنٍ اِسْتَدَانَهُ عَلَيْهِ او که وصي د یتیم سامان په رهن کښېږدي د هغه قرض په عوض کي کوم چي وصي د یتیم لپاره په قرض اخیستی وي وَقَبَضَ الْمُرْتَهِنُ او مرتهن [پر مرهون سامان] قبضه وکړي ثُمَّ اسْتَعَارَهُ الْوَصِيُّ لِحَاجَةِ الْيَتِيمِ بیا وصي دا مرهون [سامان] د یتیم د ضرورت لپاره په عاریت [په خواست] واخلي فَضَاعَ فِي يَدِ الْوَصِيِّ نو هغه د وصي په قبضه کي ضایع سي فَإِنَّهُ خَرَجَ مِنَ الرَّهْنِ وَهَلَكَ مِنْ مَالِ الْيَتِيمِ نو دا مرهون له رهن څخه وځي او د یتیم له مال څخه هلاکیږي لِأَنَّ فِعْلَ الْوَصِيِّ كَفِعْلِهِ بِنَفْسِهِ بَعْدَ الْبُلُوغِ ځکه د وصي فعل تر بلوغت وروسته د یتیم د فعل په څېر دی لِأَنَّهُ اسْتَعَارَهُ لِحَاجَةِ الصَّبِيِّ ځکه وصي مرهون [سامان] د بچي د ضرورت لپاره په عاریت اخیستی وو وَالْحُكْمُ فِيهِ هٰذَا عَلَى مَا نُبَيِّنُهُ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالَى او په دې کي همدا حکم دی د هغه تفصیل مطابق چي هغه به موږ ان‌شاء الله بیان کړو.

**اللغات:** ﴿استدان﴾ د استفعال د باب ماضي ده: په قرض او په پور اخیستل. ﴿استعار﴾ مخکنی صیغه ده: په عاریت اخیستل (په خواست اخیستل). ﴿ضاع﴾ د ضرب د باب ماضي ده: ضایع کېدل او د لاسه وتل. بربادېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که وصي کس د بچي د ضرورت مثلاً د خوراک او کپړې وغيره لپار له حامد څخه څو روپۍ په قرض واخلي او وصي د هغه په عوض کې د دې يتيم بچي يو سامان قرضخواه (حامد) ته په رهن کښېږدي او مرتهن (حامد) پر هغه قبضه هم کړي، او څو ورځې وروسته يتيم هغه مرهون سامان ته محتاج او مجبوره سي او وصي له مرتهن (حامد) څخه په خواست هغه سامان واخلي. بيا نا ببره هغه سامان د وصي سره هلاک سي، نو په دې صورت کې حکم دا دی چې هغه سامان د يتيم له مال څخه هلاک کيږي او د هغه هلاکت به د يتيم د مال هلاکت شمېرل کيږي. نه د مرهون مال هلاکت. او د مرتهن قرض د مخکې په څېر باقي پاتيږي؛ ځکه وصي دا مرهون سامان د بچي د ضرورت لپاره عاريتاً اخيستی وو. نه د ځان لپاره، او څرنګه چې د وصي فعل د يتيم په حق کې داسي دی لکه تر بلوغت وروسته د يتيم خپل فعل. او تر بلوغت وروسته که يتيم خپل سامان چا ته په رهن ورکړي بيا د مجبورۍ له کبله هغه سامان بيرته په خواست ځني واخلي او هغه د ده سره هلاک سي. نو ښکاره ده چې هغه سامان خو د ده له مال څخه هلاک شمېرل کيږي. نو همداسي په صورت مسئله کې به هم د مذکوره سامان هلاکت د يتيم له مال څخه شمېرل کيږي او د مرتهن (حامد) قرض به د مخکې په څېر باقي پاته وي. (کفايه)

## د مخکنۍ مسئلې نور وضاحت

وَالْمَالُ دَيْنٌ عَلَى الْوَصِيِّ او مال پر وصي قرض دی مَعْنَاهُ هُوَ الْمُطَالَبُ بِهٖ د دې مطلب دا دی چې له همدې وصي څخه به د هغه مطالبه کيږي ثُمَّ يَرْجِعُ بِذٰلِكَ عَلَى الصَّبِيِّ بيا به وصي په هغه سره پر بچي رجوع کوي لِأَنَّهٗ غَيْرُ مُتَعَدٍّ فِي هٰذِهِ الْاِسْتِعَارَةِ ځکه هغه په دې استعاره [عاريتاً اخيستلو] کې تعدّی کونکی نه دی إِذْ هِيَ لِحَاجَةِ الصَّبِيِّ ځکه دا استعاره د بچي د ضرورت لپاره وه وَلَوِاسْتَعَارَهٗ لِحَاجَةِ نَفْسِهٖ او که وصي هغه د خپل ضرورت لپاره په عاريت اخيستی وي ضَمِنَهٗ لِلصَّبِيِّ نو د بچي لپاره د هغه ضامن کيږي لِأَنَّهٗ مُتَعَدٍّ ځکه [په دې صورت کې] وصي تعدّی کونکی دی إِذْ لَيْسَ لَهٗ وِلَايَةُ الْاِسْتِعْمَالِ فِي حَاجَةِ نَفْسِهٖ ځکه وصي ته په خپل ضرورت کې د استعمالولو ولايت [او اختيار] نسته.

**اللغات:** ﴿مُطَالَب﴾ د مفاعلې د باب مفعول دی: مطالبه کړی سوی. د څه چې مطالبه سوې وي. مُطَالَب بِهٖ: د څه چې له چا څخه مطالبه کېدونکې وي. ﴿متعدی﴾ د تفعل د باب فاعل دی: تعدّی کونکی، ناحقه تصرف کونکی.

**تشريح**: دا عبارت د ماقبل سره مربوط دی. حاصل یې دا دی چې کله په مخکنی مسئله کې د مرتهن (حامد) قرض پاته دی نو مرتهن به خپل قرض له وصي شخصه اخلي او که له یتیم شخصه؟. په همدې مکله فرمايي چې مرتهن به له وصي شخصه د خپل قرض مطالبه کوي؛ ځکه همدا وصي له هغه شخصه قرض اخيستی وو، او همدا وصي له هغه شخصه بیا مرهون سامان اخيستی وو.

بيا که وصي د هغه قرض اخيستنه يا د مرهون استعاره د يتيم بچي لپاره کړي وي نه د خپل ضرورت لپاره. نو وصي به د قرض په اندازه مال له يتيم شخصه واپس اخلي: ځکه په دې صورت کې وصي تعدی کونکی نه دی چې پر هغه ضمان واجب کړی سي. خو که وصي د خپل ضرورت لپاره داسې کړي وي. نو بیا هغه د يتيم لپاره د قرض په اندازه مال ضامن کيږي: ځکه اوس هغه تعدی کونکی دی چې په خپل ضرورت کې يې د يتيم مال استعمال کړی دی. حال دا چې هغه ته د دې حق نسته.

## په مذکوره صورت کې که وصي مرهون شی غصب کړي (حکم او تفصيل)

وَلَوْغَصَبَهُ الْوَصِيُّ بَعْدَ مَا رَهَنَهُ او که چيري وصي مرهون غصب کړي وروسته تر دې چې هغه په رهن کېښېږدي فَاسْتَعْمَلَهُ لِحَاجَةِ نَفْسِهِ حَتّٰى هَلَكَ عِنْدَهُ او دا مرهون په خپل ضرورت کې استعمال کړي تر دې چې هغه د وصي سره هلاک سي فَالْوَصِيُّ ضَامِنٌ لِقِيْمَتِهٖ نو وصي د هغه د قيمت ضامن دی لِأَنَّهٗ مُتَعَدٍّ فِيْ حَقِّ الْمُرْتَهِنِ بِالْغَصْبِ وَالْاِسْتِعْمَالِ ځکه چې هغه د غصب کولو او استعمالولو په وجه د مرتهن په حق کې تعدی کونکی دی وَفِيْ حَقِّ الصَّبِيِّ بِالْاِسْتِعْمَالِ فِيْ حَاجَةِ نَفْسِهٖ او په خپل ضرورت کې د استعمالولو په وجه د بچي په حق کې تعدی کونکی دی فَيُقْضٰى بِهِ الدَّيْنُ إِنْ كَانَ قَدْ حَلَّ نو د هغه په ذريعه به قرض اداء کول کيږي که چيري د قرض اداء کولو وخت راغلی وي فَإِنْ كَانَ قِيْمَتُهٗ مِثْلَ الدَّيْنِ نو که د مرهون قيمت د قرض په څېر وي (يعني د قرض برابر وي) أَدَّاهُ إِلَى الْمُرْتَهِنِ نو وصي دي هغه مرتهن ته اداء کړي (ورکړي) وَلَا يَرْجِعُ عَلَى الْيَتِيْمِ او پر يتيم بچي به رجوع نه کوي لِأَنَّهٗ وَجَبَ لِلْيَتِيْمِ عَلَيْهِ مِثْلُ مَا وَجَبَ لَهٗ عَلَى الْيَتِيْمِ ځکه چې د يتيم لپاره پر وصي هغومره واجب دي څومره چې د وصي لپاره پر يتيم واجب دي فَالْتَقَيَا قِصَاصًا نو دواړه به د مقاصې په توګه يوځای کيږي (يعني په دواړو کې به مقاصه کيږي) وَإِنْ كَانَتْ قِيْمَتُهٗ أَقَلَّ مِنَ الدَّيْنِ او که د مرهون قيمت له قرض شخه کم وي أَدّٰى قَدْرَ الْقِيْمَةِ إِلَى الْمُرْتَهِنِ نو وصي دي د قيمت مقدار

مرتهن ته اداء کړي وَأَدَّى الزِّيَادَةَ مِنْ مَالِ الْيَتِيمِ او زياتوب [زائد مقدار] دي د يتيم له مال څخه اداء کړي لِأَنَّ الْمَضْمُونَ عَلَيْهِ قَدْرُ الْقِيمَةِ لَا غَيْرَ ځکه چې پر وصي د مرهون د قيمت په اندازه ضمان لازم دی وَإِنْ كَانَتْ قِيمَةُ الرَّهْنِ أَكْثَرَ مِنَ الدَّيْنِ او که د مرهون قيمت له قرض څخه زيات وي أَدَّى قَدْرَ الدَّيْنِ مِنَ الْقِيمَةِ إِلَى الْمُرْتَهِنِ نو وصي دي د قرض مقدار مرتهن ته اداء کړي وَالْفَضْلُ لِلْيَتِيمِ او اضافه [زائد] مقدار د يتيم دی.

**اللغات:** ﴿الغصب﴾ د ضرب مصدر دی: غصب کول، په زوره يو شی اخيستل (جبراً اخيستل).

﴿حلّ﴾ د ضرب ماضي ده، مراد: د قرض اداء کېدلو وخت راتلل. ﴿قصاصاً﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی چې بل مصدر يې مُقَاصةً راځي. د دې څو معناوي دي: په بدله کي راګرځول او بدله اخيستل. يو شی د بل شي سره تبادله کول، ادل بدل کول (مثلاً پر زيد د خالد لس درهمه قرض باندي وي او بيا د خالد هم پر زيد لس درهمه قرض باندي سي، نو دوی خپل قرضونه سره مقابله او ادل بدل کړي، دې ته مقاصه وايي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که وصي د يتيم د ضرورت لپاره له يو چا څخه قرض واخلي او د هغه سره د يتيم سامان په رهن کښېږدي، بيا وصي هغه سامان له مرتهن څخه غصب کړي او په خپل ضرورت کي يې استعمال کړي تر دې چې هغه سامان د وصي سره هلاک سي، نو پر وصي د هغه سامان د قيمت ضمان واجبيږي؛ ځکه هغه د مرتهن او يتيم دواړو په حق کي تعدی او زياتوب کړی دی: د مرتهن په حق کي تعدی او زياتوب په دې توګه دی چې له هغه څخه يې مرهون سامان غصب کړی دی او استعمال کړی يې دی، او د يتيم په حق کي زياتوب په دې توګه دی چې وصي د هغه سامان په خپل ضرورت کي استعمال کړی دی، حال دا چې هغه ته د دې حق نسته، نو د دغه تعدی او زياتوب د ازالې او ليري کولو لپاره پر وصي د مرهون سامان قيمت واجبيږي، اوس که د قرض اداء کولو وخت راغلی وي، نو په هغه سره به د مرتهن قرض اداء کول کيږي چې د هغه ټوله درې (۳) صورتونه دي:

①... که قرض مثلاً پنځه سوه (۵۰۰) وي او د مرهون قيمت هم پنځه سوه (۵۰۰) وي، نو وصي دي له خپل جېب څخه هغه قيمت مرتهن ته ور کړي او کله چې هغه ور کړي نو معامله به سره ختمه سي او بيا وصي ته له يتيم څخه د هيڅ شي د مطالبې حق نسته؛ ځکه که څه هم په ښکاره وصي د يتيم قرض اداء کړی دی، خو هغه دا په خپل ضرورت کي استعمال کړی او هلاک کړی دی، لهذا د

بچي هم پر وصي پنځه سوه واجب دي، نو په دواړو کي به مقاصه او تبادله کيږي، لهذا له دواړو طرفونو څخه حساب برابر سو او يوه ته هم له بل څخه د څه غوښتني او مطالبې حق نسته.

②... دويم صورت دا دی چي که د مرهون قيمت له قرض څخه کم وي مثلاً قرض پنځه سوه (۵۰۰) وي او د مرهون قيمت څلور سوه (۴۰۰) وي، نو وصي دي څلور سوه (۴۰۰) له خپل جېب څخه اداء کړي کوم چي د قرض قيمت دی او سل (۱۰۰) دي د يتيم له مال څخه اداء کړي؛ ځکه وصي په مرهون کي تعدی او زياتوب کړی دی، لهذا پر هغه صرف د مرهون قيمت واجبيږي برابره ده هغه له قرض څخه کم وي او که زيات وي.

③... دريم صورت دا دی چي که د مرهون قيمت له قرض څخه زيات وي، نو اوس حکم دا دی چي د قرض مقدار دي وصي (مرتهن ته) اداء کړي او کوم چي تر قرض زيات سي هغه دي يتيم ته وسپاري؛ ځکه کله چي د کموالي په صورت کي د همدې يتيم په مال سره هغه کمي پوره کيږي (لکه په پورتني صورت کي چي کم سوی مقدار سل ۱۰۰ د يتيم له مال څخه اداء کړل سوي دي)، نو ښکاره ده چي د زياتوب په صورت کي به دا زيات سوی مقدار هم د همدې يتيم حق او ملکيت کيږي، نو ځکه هغه ته به ور کول کيږي.

## د مخکنی مسئلې نور وضاحت

وَإِنْ كَانَ لَمْ يَحِلَّ الدَّيْنُ او که د قرض اداء کولو وخت راغلی نه وي فَالْقِيمَةُ رَهْنٌ نو قيمت به رهن وي لِأَنَّهُ ضَامِنٌ لِلْمُرْتَهِنِ بِتَفْوِيتِ حَقِّهِ الْمُحْتَرَمِ ځکه وصي د مرتهن لپاره ضامن دی د هغه د محترم حق د فوتولو په وجه فَتَكُونُ رَهْنًا عِنْدَهُ نو ځکه قيمت به د هغه سره رهن وي ثُمَّ إِذَا حَلَّ الْأَجَلُ بيا چي کله د قرض اداء کولو نېټه راسي كَانَ الْجَوَابُ عَلَى التَّفْصِيلِ الَّذِي فَصَّلْنَاهُ نو جواب [حکم] به د هغه تفصيل مطابق وي کوم چي موږ بيان کړی.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي د قرض اداء کولو په هکله چي مخکي موږ کم تفصيل ذکر کړی دی، دا پر هغه صورت محمول دي کله چي د قرض اداء کولو وخت راغلی وي، لېکن که تر اوسه د قرض اداء کولو وخت نه وي راغلی او څه وخت يې لا پاته وي، نو په دې صورت کي به د مرهون قيمت بيا د مرتهن سره په رهن ايښوول کيږي، ځکه وصي د غصب کولو په وجه د مرتهن حق محترم فوت کړی دی او څرنګه چي قيمت د مرهون دی، نو ځکه د مرهون په څېر به هغه هم د مرتهن سره په رهن ايښوول کيږي او کله چي د قرض اداء کولو وخت راسي، نو مخکي چي کوم تفصيل ذکر سو، د هغه مطابق به اداء کول کيږي.

## كه تر غصب وروسته مرهون شی د بچي په ضرورت کي استعمال کړی سي (حکم او تفصيل)

وَلَوْ أَنَّهُ غَصَبَهُ وَاسْتَعْمَلَهُ لِحَاجَةِ الصَّغِيرِ او كه چيري وصي مرهون غصب كړي او د بچي په ضرورت كي يې استعمال كړي حَتَّى هَلَكَ فِي يَدِهِ تر دې چي هغه د وصي په قبضه كي هلاک سي يَضْمَنُهُ لِحَقِّ الْمُرْتَهِنِ نو وصي د مرتهن د حق لپاره د هغه ضامن كيږي وَلَا يَضْمَنُهُ لِحَقِّ الصَّغِيرِ او د صغير د حق لپاره نه ضامن كيږي لِأَنَّ اسْتِعْمَالَهُ لِحَاجَةِ الصَّغِيرِ لَيْسَ بِتَعَدٍّ ځكه چي د بچي په ضرورت كي د مرهون استعمالول تعدى [او زياتوب] نه دى وَكَذَا الْأَخْذُ او همدارنګه اخيستل [هم تعدى نه ده] لِأَنَّ لَهُ وِلَايَةَ أَخْذِ مَالِ الْيَتِيمِ ځكه چي وصي ته د يتيم د مال اخيستلو ولايت سته وَلِهَذَا قَالَ فِي كِتَابِ الْإِقْرَارِ: إِذَا أَقَرَّ الْأَبُ أَوِ الْوَصِيُّ بِغَصْبِ مَالِ الصَّغِيرِ په همدې وجه امام محمد رَحِمَهُ الله [د مبسوط] په كتاب الاقرار كي ويلي دي: كله چي پلار يا وصي د بچي د مال غصب كولو اقرار وكړي لَا يَلْزَمُهُ شَيْءٌ نو پر پلار يا وصي هيڅ شی نه لازميږي لِأَنَّهُ لَا يُتَصَوَّرُ غَصْبُهُ ځكه چي د دوى [له طرفه] غصب نا متصور [او ناممكنه] دى لِمَا أَنَّ لَهُ وِلَايَةَ الْأَخْذِ ځكه چي دوى ته د [بچي د مال] اخيستلو ولايت سته فَإِذَا هَلَكَ فِي يَدِهِ بيا چي كله مرهون د وصي په قبضه كي هلاک سي يَضْمَنُهُ لِلْمُرْتَهِنِ نو وصي د مرتهن لپاره د هغه ضامن كيږي [يعني وصي به مرتهن ته د مرهون ضمان (تاوان) وركوي] يَأْخُذُهُ بِدَيْنِهِ چي مرتهن به هغه [ضمان] د خپل قرض په عوض كي اخلي إِنْ كَانَ قَدْ حَلَّ كه چيري د قرض اداء كولو وخت راغلی وي وَيَرْجِعُ الْوَصِيُّ عَلَى الصَّغِيرِ او وصي به پر صغير رجوع كوي [يعني هغه ضمان به له صغير څخه واپس اخلي] لِأَنَّهُ لَيْسَ بِمُتَعَدٍّ ځكه چي وصي تعدى كونكی نه دى بَلْ هُوَ عَامِلٌ لَهُ بلكي د بچي لپاره كار كونكی دى وَإِنْ كَانَ لَمْ يَحِلَّ او كه د اداء كولو وخت نه وي راغلی يَكُونُ رَهْنًا عِنْدَ الْمُرْتَهِنِ نو ضمان د مرتهن سره رهن كيږي ثُمَّ إِذَا حَلَّ الدَّيْنُ بيا چي كله د قرض اداء كولو وخت راسي يَأْخُذُ دَيْنَهُ مِنْهُ نو مرتهن به له هغه ضمان څخه خپل قرض اخلي وَيَرْجِعُ الْوَصِيُّ عَلَى الصَّبِيِّ بِذَلِكَ او وصي به په هغه سره پر بچي رجوع كوي [يعني د ضمان مقدار به له بچي څخه واپس اخلي] لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه كوم چي موږ ذكر كړی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که وصي مرهون شی له مرتهن څخه غصب کړی او د صغير (يتيم بچي) په ضرورت کې يې استعمال کړي او بيا هغه شی د وصي په قبضه کې هلاک سي. نو دلته پر وصي فقط د مرتهن لپاره ضمان واجبيږي او د صغير لپاره ضمان نه پرې واجبيږي: ځکه وصي دا مرهون شی د دې لپاره غصب کړی وو چې د صغير په ضرورت او حاجت کې يې استعمال کړي. او دا د هغه له طرفه تعدی نه ده چې ضمان پرې واجب سي. او د صغير لپاره د ضمان نه واجبېدلو مطلب دا دی چې کله وصي مرتهن ته ضمان ورکړي. نو وصي به هغه مقدار له صغير څخه واپس اخلي. حال دا چې له دې څخه په مخکيني صورت کې (کوم چې په تېر عبارت کې ذکر سو) وصي ته له صغير څخه د واپس اخيستلو حق نه دی ورکول سوی. ځکه چې هلته پر وصي د صغير (يتيم) لپاره هم ضمان واجب کړی سوی دی.

وکذا الأخذ إلخ: د دې حاصل دا دی چې په دغه مسئله کې په دې وجه فقط د مرتهن لپاره ضمان واجبيږي. نه د صغير لپاره: ځکه د صغير لپاره د ضمان واجبېدلو صرف دوه صورتونه دي او هغه دواړه دلته معدوم دي: ① يو دا چې د مرهون شي (کوم چې د صغير مال دی) د استعمالولو په وجه پر وصي ضمان واجب سي. ② دويم دا چې د مرهون شي يعني د صغير د مال د غصب کولو په وجه پر هغه ضمان واجب دي.

او دلته دا دواړه صورتونه معدوم دي: ځکه صغير دا مال په خپل ذاتي کار کې نه دی استعمال کړی بلکې د صغير په ضرورت کې يې استعمال کړی دی. لهذا په دې صورت کې خو ضمان نه سي واجبېدلای، او دويم صورت ځکه معدوم دی چې د وصي له طرفه د صغير د مال غصب کول نه متحقق کيږي: ځکه د صغير مال د وصي لپاره مباح وي او وصي ته د هغه د اخيستلو حق وي. په همدې وجه امام محمد رَحِمَهُ الله د مبسوط په کتاب الاقرار کې ويلي دي چې که د صغير پلار يا د هغه وصي د صغير د مال غصب کولو اقرار وکړي (چې ما د هغه مال غصب کړی دی). نو د دوی اقرار معتبر نه دی او د دې اقرار په وجه پر پلار يا وصي باندې هيڅ شی نه لازميږي: ځکه کله چې دوی ته هر وخت د صغير د مال اخيستلو اجازت حاصل دی نو آخر به د دوی له طرفه غصب څنګه متحقق سي! بلکې هر کله چې هم دوی د هغه مال واخلي. صحيح ده. لنډه دا چې په دويم صورت کې هم (د صغير لپاره) پر وصي د ضمان وجوب ساقطيږي او پر هغه فقط د مرتهن د قرض په اندازه مال واجبيږي چې د مخکې ذکر سوي تفصيل مطابق به قرض اداء کيږي او وروسته به وصي هغه مقدار له صغير څخه واپس اخلي. صاحب د کتاب رَحِمَهُ الله د "فإذا هلك" څخه تر "لما ذكرنا" پوري د همدې قرض اداء کولو بيان کړی دی. (احسن الهدايه)

نېز د قيمت په اعتبار سره دي وَهِيَ مِثْلُ الدَّيْنِ فِي الْأَوَّلِ او قيمت په اول صورت کښې د قرض په څېر دی [د قرض سره برابر دی] وَزِيَادَةٌ عَلَيْهِ فِي الثَّانِيْ او په دويم صورت کښې تر قرض زيات دی فَيَصِيْرُ بِقَدْرِ الدَّيْنِ مُسْتَوْفِيًا نو مرتهن به د قرض په مقدار ترلاسه کونکی ګرځي فَإِنْ كَانَ قِيْمَتُهُ أَقَلَّ مِنَ الدَّيْنِ ليکن که د هغه [کوزې] قيمت تر قرض کم وي فَهُوَ عَلَى الْخِلَافِ الْمَذْكُوْرِ نو دا پر دې ذکر سوي اختلاف دي [يعني په دې کي د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله مذکوره اختلاف دی].

**اللغات**: ﴿إبريق﴾ کوزه، يعني هغه لاستی لرونکی لوښی چې د اوبو يا نورو شيانو لپاره استعمالېږي. بيا ابريق پر څو قسمه دی، مثلاً إبريق الشای د چای کوپ (ګيلاس) ته وايي او داسي نور.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که جنس د خپل جنس په عوض کي په رهن ورکول سي. نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د وزن په اعتبار سره به استيفاء کيږي (او د وزن په اعتبار سره ضمان لازميږي) او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قيمت په اعتبار سره به استيفاء کيږي (لکه مخکي چي هم ضمناً ذکر سوه). دا ګواکي د دوی هر يوه خپل أصول او قاعده کليه ده. دلته پر همدې قاعدې دا مسئله تفريع کوي چي امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي فرمايلي دي چي که يو څوک مثلاً زيد د سپينو زرو داسي کوزه چي د هغې وزن لس درهمه وي و خالد ته د لسو درهمو په عوض کي په رهن ورکړي او د مرتهن (خالد) په قبضه کي هغه کوزه هلاکه او ضايع سي، نو دا هلاکت به د هغه لسو درهمو په عوض کي شمېرل کيږي چي د هغوی په عوض کي يې کوزه په رهن ورکړې وه (يعني دا ګواکي هاغه لس درهمه هلاک او ضايع سول کوم چي مرتهن [خالد] و زيد ته په قرض ورکړي وه او مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی سو).

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې نور وضاحت کوي فرمايي چي که د کوزې قيمت د هغې د وزن يعني د لسو درهمو سره برابر وي يا تر هغه زيات وي، نو د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله ټولو په نېز د برابرۍ او زياتوب په دواړو صورتونو کي همدغه حکم دی چي مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی ګرځي: ځکه د مذکوره قاعدې مطابق د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د قرض ترلاسه کول (استيفاء) د وزن په اعتبار سره کيږي. او د کوزې وزن په دواړو صورتونو کي د قرض يعني د لسو درهمو برابر دی. نو ځکه د هغه په نېز دلته په دواړو صورتونو کي حسابوو کتاب سره برابر دي.

او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز په دې صورتونو کې د قرض ترلاسه کول د قيمت په ذريعه کېږي او هغه هم دلته موجود دي. ځکه که د کوزې قيمت د هغې د وزن سره برابر وي. نو ښکاره ده چې مرتهن ته خپل ټوله حق ترلاسه سو. نو ځکه په دې صورت کې هيڅ نزاع نسته. او که دويم صورت وي يعني د کوزې قيمت د هغې تر وزن زيات وي. نو لا ښه خبره ده چې مرتهن به د خپل قرض ترلاسه کونکی سي او زياتوب (زائد مقدار) امانت دی چې پر مرتهن د هغه هيڅ ضمان نه واجبيږي.

لېکن که د کوزې قيمت د هغې تر وزن کم وي مثلاً اته درهمه وي. نو په دې صورت کې د امام صاحب او صاحبينو رَحِمَهُمَا الله اختلاف دی. د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز په دې صورت کې هم مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی ګرځي؛ ځکه د وزن په اعتبار سره خو په قرض او مرهون شي (کوزه) کې مساوات سته. او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نېز پر مرتهن د دراهمو په خلاف الجنس (يعني دنانيرو) سره د قيمت ضمان واجبيږي چې هغه به راهن ته ورکوي او بيا به همدا قيمت مرتهن ته د هلاک سوي مرهون (کوزې) پر ځای په رهن ورکول کېږي (يا په بله وينا دا چې تر دې وروسته همدا قيمت د هلاک سوي مرهون پر ځای مرهون ګرځي).

## په پورتنۍ مسئله کې د امام صاحب او صاحبينو دلائل

لَهُمَا: أَنَّهُ لَا وَجْهَ إِلَى الِاسْتِيفَاءِ بِالْوَزْنِ د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې په وزن سره (د قرض) ترلاسه کولو لره هيڅ صورت نسته لِمَا فِيهِ مِنَ الضَّرَرِ بِالْمُرْتَهِنِ ځکه چې په دې کې د مرتهن ضرر دی وَلَا إِلَى اعْتِبَارِ الْقِيمَةِ او نه د قيمت اعتبار کولو لره څه صورت سته لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى الرِّبٰوا ځکه چې دا سُود ته رسول کوي [د سُود سبب ګرځي] فَصِرْنَا إِلَى التَّضْمِينِ بِخِلَافِ الْجِنْسِ نو ځکه موږ [صاحبينو] په خلاف جنس سره د ضامن کولو [ضمان واجبولو] وطرف ته رجوع وکړه لِيَنْتَقِضَ الْقَبْضُ د دې لپاره چې قبضه ماته سي [يعني په هلاک سوي مرهون (کوزه) کې د مرتهن قبضه ختمه سي] وَيُجْعَلَ مَكَانَهُ او هغه [ضمان] د مرهون پر ځای وګرځول سي [يعني مرتهن ته د مرهون (کوزې) پر ځای ورکول سي] ثُمَّ يَتَمَلَّكَهُ بيا راهن د هغه مالک سي وَلَهُ: أَنَّ الْجَوْدَةَ سَاقِطَةُ الْعِبْرَةِ فِي الْأَمْوَالِ الرِّبَوِيَّةِ عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِجِنْسِهَا د امام صاحب رَحِمَهُ الله ليل دا دی: چې د خپل جنس سره د مقابلې په وخت کې په اموال ربويه وو کې د غوره والي [ګڼه والي] اعتبار ساقط دی وَاسْتِيفَاءُ الْجَيِّدِ

او که سوال وسي چي د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز ترلاسه کول (استیفاء) ثابته نه سوه. نو تاسي بالاجماع څنګه وویل؟. نو جواب دا دی چي بالاجماع استیفاء ثابته سوې ده (بالاجماع مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی ګرځېدلی دی). په همدې وجه د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قبضې او استیفاء ماتولو ته ضرورت پېښ سوی دی (چي راهن به د کوزې پر ځای د هغه ضمان [دنانیر] مرتهن ته په رهن ورکوي. د دې لپاره چي مرتهن د هلاک سوي مرهون [کوزې] پر ځای د هغه [دنانیرو] په ذریعه قرض ترلاسه کړي). نو داد نقض استیفاء خبره کول د دې خبري څرګند دلیل دی چي استیفاء سوې ده (یعني مرتهن قرض ترلاسه کړی دی). او کله چي استیفاء سوې ده نو ښکاره خبره ده چي بیا هغه نه سي ماتول کېدای: ځکه چي دا نقض د ضمان واجبېدلو لپاره کیږي او د ضمان واجبېدلو لپاره یو مُطالب (طلب کونکی) او یو مُطالَب (چي له هغه څخه طلب وسي) موجودېدل ضروري دي او دلته یو هم نه سي مُطالب کېدلای نه راهن او نه مرتهن؛ راهن خو ځکه نه سي مُطالب کېدلای چي د هغه د مرهون شي یعني د رډي کوزې د هلاکېدلو په عوض کي د مرتهن قرض اداء سوی دی، اوس که هغه مُطالِب وګرځي او نقض استیفاء وکړي. نو په دې کي د هغه ضرر دی او څوک دومره بې عقل دی چي پر خپل ځان ضرر لازم کړي. او مرتهن هم نه سي مُطالِب کېدلای. ځکه د هغه په قبضه کي د مرهون شي (کوزې) د هلاکېدلو په وجه مور هغه مُطالَب ګرځولی دی او مُطالَب د مدعیٰ علیه په درجه کي وي. اوس که مور هغه مُطالِب هم وګرځوو. نو یوازي یو کس به مطالِب او مطالَب یا په بله وینا مدعي او مدعیٰ علیه دواړه وګرځي کوم چي صحیح نه دي. نو ځکه په پورتنی مسئله کي د استیفاء نقض (ماتول) صحیح نه دي چي پر مرتهن په خلاف الجنس سره ضمان واجب کړی سي؛ ځکه کله چي د مرهون شي د هلاکېدلو پر بناء استیفاء متحققه او ثابته سوه، نو ګواکي مرتهن د دې مرهون شي مالک سو. اوس که نقض استیفاء وسي او پر مرتهن ضمان واجب کړی سي، نو ګواکي پر مرتهن د خپل ملکیت لپاره ضمان واجب کړی سو. حال دا چي پر انسان د خپل ملکیت ضمان واجبول محال او ناممکن دي. او کله چي ضمان واجبول نا ممکن دي نو بیا استیفاء ماتول هم ناممکن دي. لکه څرنګه چي صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د عبارت په آخري جمله "ویتعذر التضمین یتعذر النقض" سره همدا خبره کړې ده. (احسن الهدایه)

## د امام صاحب او صاحبينو د اختلاف بنياد پر يو بله مسئله دی

وَقِيلَ: هٰذِهِ فُرَيْعَةُ مَا إِذَا اسْتَوْفَى الزُّيُوفَ مَكَانَ الْجِيَادِ او ويل سوي دي: چي دا مسئله د هغه مسئلې فرع ده کله چي قرضخواه [د قرض مالک] د کره دراهمو پر ځای کوټه دراهم واخلي. فَهَلَكَتْ بيا هغوی هلاک سي [مثلاً خرچ يې کړي] ثُمَّ عَلِمَ بِالزِّيَافَةِ بيا [د هغوی] په کوټه والي خبر سي وَهُوَ مَعْرُوفٌ او دا [يعني د دغه مسئلې حکم] پېژندل سوی [مشهوره] دی غَيْرَ أَنَّ الْبِنَاءَ لَا يَصِحُّ عَلَى مَا هُوَ الْمَشْهُورُ لېکن دا بناء [يعني د رهن مسئله پر دغه اصل مسئلې بناء کول] صحيح نه دي د مشهور قول مطابق لِأَنَّ مُحَمَّدًا فِيهَا مَعَ أَبِي حَنِيفَةَ ځکه چي امام محمد رَحِمَهُ الله په هغه [اصل مسئله] کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله سره دی وَفِي هٰذَا مَعَ أَبِي يُوسُفَ او په دې [رهن والا مسئله] کي د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله سره دی وَالْفَرْقُ لِمُحَمَّدٍ: أَنَّهُ قَبَضَ الزُّيُوفَ لِيَسْتَوْفِيَ مِنْ عَيْنِهَا او د امام محمد رَحِمَهُ الله لپاره وجه د فرق دا ده: چي هغه [قرضخواه] ځکه پر کوټه دراهمو قبضه کړې ده چي د هغوی له عين څخه [خپل حق] ترلاسه کړي وَالزِّيَافَةُ لَا تَمْنَعُ الِاسْتِيفَاءَ او کوټه والی [د حق] ترلاسه کول نه منع کوي وَقَدْ تَمَّ بِالْهَلَاكِ او [د دراهمو] د هلاکېدلو په وجه [د حق] ترلاسه کول بشپړ سوه وَقَبْضُ الرَّهْنِ لِيَسْتَوْفِيَ مِنْ مَحَلٍّ آخَرَ او پر رهن قبضه کول [يعني مرهون شي اخيستل] د دې لپاره دي چي مرتهن له بل محل څخه [خپل حق] ترلاسه کړي [يعني مرتهن (له راهن څخه) د دې لپاره مرهون شی اخلي چي د هغه په ذريعه له بل محل څخه خپل قرض ترلاسه کړي. نه له عين مرهون څخه] فَلَا بُدَّ مِنْ نَقْضِ الْقَبْضِ نو ځکه [د مرتهن] د قبضې ماتول ضروري دي وَقَدْ أَمْكَنَ عِنْدَهُ بِالتَّضْمِينِ او دا [د قبضې ماتول] د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز [د مرتهن] په ضامن کولو سره ممکن دي [چي مرتهن د هغه د قيمت ضامن وګرځول سي (يا په بله وينا دا چي د قيمت ضمان پرې لازم کړی سي)].

**اللغات**: ﴿زيوف﴾ جمع د زَيف ده: کوټه. ردي (جعلي). ﴿جِياد﴾ جمع د جَيِّد ده: ښه. کره. اصلي. ﴿تضمين﴾ د تفعيل مصدر دی: ضامن ګرځول. ضمان پرې واجبول (تاوان پرې لازمول).

**تشريح**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د رهن په مذکوره مسئله کي د امام صاحب او صاحبينو اختلاف د هغه اختلاف فرع دی کوم چي د قرض په مسئله کي دی. يا په بله وينا دا چي دا

جِنْسِهٖ او که خوښه یې وي نو مرتهن دي د هغه [ماتي کوزې] د قیمت ضامن وګرځوي [برابره ده] د هغه له جنس څخه وي یا له خلاف جنس څخه وي وَتَكُونُ رَهْنًا عِنْدَ الْمُرْتَهِنِ او هغه قیمت د مرتهن سره رهن ګرځي وَالْمَكْسُوْرُ لِلْمُرْتَهِنِ بِالضَّمَانِ او ماته کوزه د ضمان اداء کولو په وجه د مرتهن کیږي وَعِنْدَ مُحَمَّدٍ اِنْ شَاءَ افْتَكَّهُ نَاقِصًا او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز که د راهن خوښه وي نو هغه [ماته کوزه] دي د نقصان په حالت کي را خلاصه کړي وَاِنْ شَاءَ جَعَلَهُ بِالدَّيْنِ او که خوښه یې وي نو هغه دي د قرض بدل وګرځوي اِعْتِبَارًا لِحَالَةِ الِانْكِسَارِ بِحَالَةِ الْهَلَاكِ په قیاس کولو سره د ماتېدلو د حالت پر حالت د هلاکېدلو وَهٰذَا لِاَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ الْفِكَاكُ مَجَّانًا او دا [حکم] ځکه دی چي کله مفت راخلاصول ناممکن سوه صَارَ بِمَنْزِلَةِ الْهَلَاكِ نو ماتېدل د هلاکېدلو په درجه کي سوه وَفِي الْهَلَاكِ الْحَقِيقِيِّ مَضْمُوْنٌ بِالدَّيْنِ بِالْاِجْمَاعِ او د حقیقي هلاکېدلو په صورت کي مرهون شی بالاجماع د قرض په عوض کي مضمون کیږي فَكَذَا فِيْمَا هُوَ فِيْ مَعْنَاهُ نو همداسي په هغه صورت کي [به د قرض په عوض کي مضمون کیږي] کوم چي د هلاکت په معنیٰ سره وي [یعني د ماتېدلو صورت].

**اللغات**: ﴿الفكاك﴾ د سمع د باب مصدر دی: رهن راخلاصول. یعني خپل مرهون شی له مرتهن څخه واپس اخیستل، د مرتهن قرض اداء کول او مرهون شی له هغه څخه اخیستل.

**تشریح**: فرمایي که مرهونه کوزه هلاکه نه سي بلکي ماته او خرابه سي مثلاً چونکه یې ماته سي چي له دې کبله د هغې په مالیت او قیمت کي کمي راسي. نو څه حکم دی؟.

فرمایي چي که اول صورت وي یعني د کوزې قیمت د هغې د وزن سره برابر وي. نو په دې صورت کي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نېز راهن د رهن (ماتي کوزې) په راخلاصولو باندي نه سي مجبورول کېدای بلکي د هغه لپاره دوه اختیاره دي چي هغه به لاندي ذکر کړو: ځکه چي دلته د رهن راخلاصولو دوصور تونه دي او هغه دواړه باطل دي:

(۱)... اول صورت دا دی چي راهن دا ماته کوزه واپس واخلي او د ماتېدلو په وجه چي په هغې کي کوم نقص راغلی دی، د هغه په وجه له قرض څخه مثلاً درې درهمه کم او ساقط کړي. په دې صورت کي د مرتهن نقصان دی په دې توګه دی چي محض په جودت او جوړښت کي د کمي راتللو په وجه د مرتهن له اصل قرض څخه درې درهمه کمول کیږي او د جودت په کمی سره مرتهن د درېو درهمو

ترلاسه کونکی شمېرل کیږي، حال دا چي په متحد الجنس اموال ربویه وو کي جودت لره اعتبار نشته. نو ځکه دا صورت باطل دی.

(۲)... دویم صورت دا دی چي له قرض څخه څه حصه کمه نه کړل سي بلکي راهن دغه عیبداره (ماته) کوزه واپس واخلي او مرتهن لره خپل پوره حق (قرض) اداء کړي. دا صورت هم باطل دي؛ ځکه په دې کي دراهن ښکاره ضرر دی چي هغه صحیح سالمه کوزه په رهن ورکړې وه حالانکي اوس دا کوزه عیبجنه هغه ته واپس کول کیږي. نو ځکه دا صورت هم باطل دی.

لهذا کله چي دواړه صورتونه باطل او بې ځایه دي. نو موږ دمینځ لاره وکتله او راهن ته مو له دوو اختیاراتو څخه یو اختیار ورکړی.

① ... یو دا چي که خوښه یې وي نو تاوان او خساره دي وزغمي او مرتهن ته دي خپل ټوله قرض ورکړي او له هغه څخه دي ماته کوزه واپس واخلي.

② ... او بل دا چي که خوښه یې وي نو مرتهن دي په دې سره مکلف کړي چي د مرهون یعني (د سپینو زرو) د ماتي کوزې د قیمت ضمان د هغې له جنس یعني په دراهمو سره اداء کړي (ورکړي) یا د هغې په خلاف جنس یعني په دنانیرو سره یې اداء کړي، بیا دي راهن دا قیمت مرتهن ته د مرهون پر ځای ورکړي. او کله چي راهن د مرتهن قرض اداء کړي، نو مرتهن دي دا مذکوره قیمت (کوم چي د ضمان په شکل د مرهون پر ځای ورکول سوی دی) راهن ته واپس کړي، او کله چي مرتهن د مرهون (ماتي کوزې) ضمان اداء کړي. نو هغه د مرتهن په ملکیت کي داخلیږي.

وعند محمد إلخ: فرمایي چي په دې مسئله کي د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز هم راهن ته دوه اختیاره حاصلیږي:

① ... اول اختیار خو همدا ورته حاصلیږي چي (د ماتوالي) تاوان وزغمي او ماته کوزه واپس واخلي او مرتهن ته د هغه ټوله قرض ورکړي.

② ... دویم اختیار دا ورته حاصلیږي چي دا مرهون یعني ماته کوزه د قرض عوض وګرځوي یعني ګواکي راهن د مرتهن قرض اداء کړی (یا په بله وینا دا چي دویم اختیار دا دی چي د ماتي کوزې په عوض کي راهن له ځان څخه د مرتهن قرض ساقط کړي کله کله چي کوزه هلاکه او ضایع سي نو قرض ساقطیږي).

خلاصه دا چي امام محمد رَحِمَهُ الله په انکسار (ماتېدلو) باندي د هلاکت (هلاکېدلو) حکم جاري کړی دی. او که کوزه هلاکه سوې وای نو هم دغه حکم دی چي د مرتهن قرض ساقطیږي. او انکسار ګواکي هلاکت دی لهذا کوم شی چي د هلاکت په درجه کي وي، نو پر هغه به هم د هلاکت حکم جاري کول کیږي او ویل کیږي به چي ماته کوزه د قرض عوض وګرځېده او معامله ختم سوه.

تیست ضامن کیږي وَتَكُوْنُ رَهْنًا عِنْدَهُ او دا قیمت به د مرتهن سره رهن وي وَهٰذَا بِالاتِّفَاقِ او دا په اتفاق سره دي [یعني دا مذکوره حکم متفق علیه دی] أَمَّا عِنْدَهُمَا فَظَاهِرٌ هر چي د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز خو ښکاره ده وَكَذٰلِكَ عِنْدَ مُحَمَّدٍ او همدارنګه د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز هم لِأَنَّهُ يَعْتَبِرُ حَالَةَ الانْكِسَارِ بِحَالَةِ الْهَلَاكِ ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله [د مرهون شي] د ماتېدلو حالت د هلاکېدلو پر حالت قیاسوي [نو د هغه په نیز ماته کوزه داسي ده لکه هلاکه سوې کوزه] وَالْهَلَاكُ عِنْدَهُ بِالْقِيمَةِ او د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز [په دې صورت کي] هلاکېدل په قیمت سره [مضمون] وي.

**اللغات**: ﴿ثَمَانِيَةٌ﴾ ځکه منصوب دی چي له أَقَلَّ څخه بدل دی: اته. ﴿ردیء﴾ خراب او بد. کمزوری او ناکره.

**تشریح**: په دې عبارت کي د مخکني مسئلې (یعني د سپینو زرو د کوزې مسئله. د هغې) د درېیم صورت بیان دی. صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله ځکه د "وجه ثاني" (دویم صورت) له بیان څخه مخکي "وجه ثالث" بیان کړی دی چي په "وجه ثاني" کي تفصیل څه زیات دی. "وجه ثالث" یعني درېیم صورت دا وو چي که د مرهونه کوزې قیمت د هغې له وزن څخه کم وي مثلاً د کوزې وزن لس درهمه وي لیکن د هغې قیمت اته درهمه وي. نو په دې صورت کي امام محمد او شیخینو رَحِمَهُمُ الله ټولو په اتفاق سره مرتهن د قیمت ضامن ګرځولی دی چي مرتهن به د مرهون (کوزې) قیمت (راهن ته) په ضمان کي ورکوي او دا قیمت به بیرته مرتهن ته په رهن ورکول کیږي. نو که مرتهن د مرهون له خلاف جنس (مثلاً په دنانیرو) سره ضمان ورکوي، نو جیّد او کره مال به ورکوي. ها! که د مرهون (کوزې) له جنس مثلاً په دراهمو سره ضمان ورکوي، نو بیا به په ردي او نا کره درهمو سره ضمان ورکوي. د دې لپاره چي ربوا (سُود) لازم نه سي.

وهٰذا بالاتفاق إلخ: فرمایي چي په دې صورت کي پر مرتهن د ضمان بالقیمت واجبېدلو حکم د امام محمد او شیخینو رَحِمَهُمُ الله په اتفاق سره دی. د شیخینو رَحِمَهُمَا الله په نیز خو ښکاره ده چي دا حکم دی، ځکه د دوی په نیز په اول صورت کي هم د قیمت ضمان واجب کړی سوی دی. لیکن د امام محمد رَحِمَهُ الله په نیز په دې صورت کي د ضمان بالقیمت واجبېدل په فهم کي نه راځي. ځکه هغه په اول صورت کي مرهون شی مضمون بالدین ګرځولی دی (د قرض په عوض کي یې شمېرلی دی) او دلته یې مضمون بالقیمة ګرځوي.

صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د همدې خبرې وضاحت کوې فرمایي چې په دې صورت کې د امام محمد رَحِمَهُ الله په نېز چې کوم د ضمان بالقیمة حکم دی هغه په دې وجه دی چې امام محمد رَحِمَهُ الله دانکسار حالت د هلاکت پر حالت قیاسوي او په همدې توګه مرهون شی مضمون ګرځوي او کله چې د مرهون شي (کوزې) قیمت د هغه د وزن سره برابر وي نو هغه مضمون بالدین کیږي لکه په اول صورت کې چې دي، لېکن کله چې د مرهون شي قیمت د هغه له وزن څخه کم وي نو بیا هغه مضمون بالقیمة کیږي، او دلته قیمت کم دی، نو ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله هم د شیخینو رَحِمَهُمَا الله د قول سره اتفاق کړی دی.

ځکه امام محمد رَحِمَهُ الله هغه وخت مرهون شی مضمون بالدین ګرځوي کله چې د دې امکان وي، او دلته یې امکان نسته، ځکه که مرهون شی یعني کوزه د وزن په اعتبار سره د قرض بدل وګرځول سي، نو د مرتهن ضرر لازمیږي ځکه د مرهون شي قیمت اته درهمه دی او د مرتهن قرض لس درهمه دی، او که د قیمت اعتبار وسي، نو دا به ربوا وي (یعني دلته نه استیفاء بالوزن ممکنه ده او نه استیفاء بالقیمة چې تفصیل یې مخکي تېر سو)، لهذا د قیمت له ضمان څخه بغیر بله چاره نسته.

**د دویم صورت وضاحت او د امام صاحب رَحِمَهُ الله رایه**

وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِيْ او په دویم صورت کي وَهُوَ مَا إِذَا كَانَتْ قِيْمَتُهُ أَكْثَرَ مِنْ وَزْنِهِ اِثْنَيْ عَشَرَ او هغه دا دی چې کله د مرهونه کوزې قیمت د هغې له وزن څخه زیات یعني دوولس درهمه وي عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ يَضْمَنُ جَمِيْعَ قِيْمَتِهِ نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز مرتهن د کوزې د ټوله قیمت ضامن کیږي وَتَكُوْنُ رَهْنًا عِنْدَهُ او دا قیمت به د مرتهن سره رهن وي لِأَنَّ الْعِبْرَةَ لِلْوَزْنِ عِنْدَهُ لَا لِلْجَوْدَةِ وَالرَّدَاءَةِ ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز اعتبار وزن لره دی، نه ګره والي او نا ګره الي لره فَإِنْ كَانَ بِاعْتِبَارِ الْوَزْنِ كُلِّهِ مَضْمُوْنًا نو که مرهون د وزن په اعتبار سره ټوله مضمون وي [یعني د ټوله مرهون ضمان لازم وي یعني د هغه په بدله کي ټوله قرض ساقطیږي] يُجْعَلُ كُلُّهُ مَضْمُوْنًا نو هغه ټوله به (د قیمت په اعتبار سره) مضمون ګرځول کیږي وَإِنْ كَانَ بَعْضُهُ او که د مرهون بعضي حصه مضمونه وي فَبَعْضُهُ نو د هغه بعضي حصه [به د قیمت په اعتبار سره مضمونه ګرځول کیږي] وَهٰذَا لِأَنَّ الْجَوْدَةَ تَابِعَةٌ لِلذَّاتِ او دا ځکه چې جودت د ذات تابع دی وَمَتٰى صَارَ الْأَصْلُ مَضْمُوْنًا او کله چې اصل مضمون سو اِسْتَحَالَ

أَنْ يَكُوْنَ التَّابِعُ أَمَانَةً نو دا محال [او ناممكنه] سوه چي تابع امانت سي.

**اللغات:** ﴿جودة﴾ ښه والى او كَره والى (كَره كېدل.)، سوچه والى. ﴿رداءة﴾ بدوالى او نا كره والى. خرابوالى.

**تشريح:** په دې عبارت كې د مخكنى مسئلې د دويم صورت بيان دى. حاصل يې دا دى چې كه د مرهونه كوزې قيمت د هغې له وزن څخه زيات وي، مثلاً د كوزې وزن لس درهمه وي او د هغې قيمت دوولس درهمه وي (د جودت او كَره والي په وجه)، نو په دې صورت كې زموږ د امامانو اختلاف دى. د امام احب رَحِمَهُ الله په نيز مرتهن د ټوله كوزې د قيمت (يعني د دوولسو درهمو) ضامن كيږي او كوزه د مرتهن په ملكيت كې داخليږي او قيمت (دوولس درهمه) د مرهون پر ځاى رهن گرځي كله چې راهن د مرتهن قرض اداء كړي نو بيا به راهن ته هغه دوولس درهمه وركول كيږي: ځكه امام صاحب رَحِمَهُ الله په اموال ربويه وو كې وزن "اصل" گڼي او د هغه په نيز جودت او ودائت لره اعتبار نسته. او صورت يې دا دى چې كه مرهون د وزن په اعتبار سره ټوله مضمون وي (په دې توگه چې مرهون [كوزه] او قرض په وزن كې سره برابر وي، نو ښكاره ده چې په دې صورت كې كه مرهون هلاک سي نو د ټوله مرهون ضمان لازميږي او ضمان دا چې د هغه په بدله كې ټوله قرض ساقطيږي. لنډه دا چې كله مرهون د وزن په اعتبار سره ټوله مضمون وي) نو هغه د قيمت په اعتبار سره هم ټوله مضمون كيږي، او كه د مرهون بعضي حصه مضمونه وي (په دې توگه چې د مرهون وزن د قرض له وزن څخه زيات وي)، نو په دې صورت كې د قيمت هم بعضه حصه مضمونه كيږي او پاته حصه د مرتهن سره امانت گرځي.

دا گواكي د امام صاحب رَحِمَهُ الله اصل او بنياد دى، او څرنگه چې په دې مسئله كې مرهون (كوزه) د وزن په اعتبار سره ټوله مضمون دى، نو د دغه پورتني اصل پر بناء به قيمت هم ټوله مضمون وي (يعني د ټوله قيمت ضمان به واجب وي)، نو ځكه امام صاحب رَحِمَهُ الله فرمايلي دي چې دلته پر مرتهن د ټوله قيمت (دوولسو درهمو) ضمان واجب دى.

**وهٰذا إلخ:** فرمايي چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز جودت وغيره لره په دې وجه اعتبار نسته: ځكه چې جودت عرض او تابع دى او وزن (كوزه) اصل او ذات دى (چې له هغه څخه د عرض او تابع [جودت] جلا كېدل ناممكن دي). او كله چې اصل مضمون وي نو بيا عرض او تابع هم مضمون كيږي، كنې د اصل او تابع په حكم كې به اختلاف راسي چې اصل به مضمون سي او تابع به امانت سي (يعني كه عرض او تابع مضمون نه سي. نو بيا به د اصل مضمون كېدل او د تابع امانت كېدل لازم سي)، حال دا چې دا باطل دي بلكې دوا...

حکم يو وي، او څرنګه چې په دې مسئله کې د ټوله مرهون ضمان واجب دی، نو ځکه پر مرتهن به د وزن په اعتبار سره د مرهون د ټوله قيمت ضمان واجب وي او د مرهون هيڅ جزء به هم د ضمان له وجوب څخه مستثنیٰ نه ګرځول کيږي.

## په دويم صورت کې د امام ابو يوسف او امام محمد رَحِمَهُمَاالله رايه

وَعِنْدَ أَبِي يُوسُفَ يَضْمَنُ خَمْسَةَ أَسْدَاسِ قِيمَتِهِ او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز مرتهن د کوزې د قيمت د پنځو شپږمو حصو ضامن کيږي [يعني د کوزې له شپږو حصو څخه پر مرتهن د پنځو حصو د قيمت ضمان لازميږي] وَيَكُونُ خَمْسَةُ أَسْدَاسِ الْإِبْرِيقِ لَهُ بِالضَّمَانِ او د ضمان په وجه [يعني چې ضمان اداء کړي نو] د کوزې د پنځو حصې مالک کيږي وَسُدُسُهُ يُفْرَزُ او د هغې پاتـه شپږمه حصه به جلا کول کيږي حَتَّى لَا يَبْقَى الرَّهْنُ شَائِعًا چې رهن شايع [مشاع] پاتـه نه سي [يعني شيوع پکښې رانه سي] وَيَكُونُ مَعَ قِيمَتِهِ خَمْسَةِ أَسْدَاسِ الْمَكْسُورِ رَهْنًا او دا [شپږمه حصه] به د ماتې سوې کوزې د پنځو حصو د قيمت سره رهن وي فَعِنْدَهُ تُعْتَبَرُ الْجَوْدَةُ وَالرَّدَاءَةُ نو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز د جودت او ردائت اعتبار کړی سوی دی وَتُجْعَلُ زِيَادَةُ الْقِيمَةِ كَزِيَادَةِ الْوَزْنِ كَأَنَّ وَزْنَهُ اِثْنَا عَشَرَ او [د هغه په نيز] د قيمت زياتوب د وزن د زياتوب په څېر ګرځول سوی دی ګواکې د کوزې وزن دوولس درهمه دی وَهٰذَا لِأَنَّ الْجَوْدَةَ مُتَقَوِّمَةٌ فِي ذَاتِهَا او دا ځکه چې جودت بذات خود متقوم [قيمتداره] دی حَتَّى تُعْتَبَرَ عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِخِلَافِ جِنْسِهَا همدا وجه ده چې د خپل خلاف جنس سره [د جودت] د مقابلې په وخت کې د جودت اعتبار کيږي وَفِي تَصَرُّفِ الْمَرِيضِ او د مريض په تصرف کې [د هغه اعتبار کيږي] وَإِنْ كَانَتْ لَا تُعْتَبَرُ عِنْدَ الْمُقَابَلَةِ بِجِنْسِهَا سَمْعًا که څه هم د خپل جنس سره د مقابلې په وخت کې [د شريعت] د سماع په وجه د جودت اعتبار نه کيږي فَأَمْكَنَ اعْتِبَارُهَا نو ځکه [په رهن کې] د جودت اعتبار کول ممکن دي وَفِي بَيَانِ قَوْلِ مُحَمَّدٍ نَوْعُ طُولٍ او د امام محمد رَحِمَهُ الله د قول په بيان کې څه اوږدوالی [او تفصيل] دی يُعْرَفُ فِي مَوْضِعِهِ مِنَ الْمَبْسُوطِ وَالزِّيَادَاتِ مَعَ جَمِيعِ شُعَبِهَا چې هغه په خپل ځای يعني په مبسوط او زيادات کې د خپل ټولو ښاخونو [او صورتونو] سره پېژندل سوی دی.

**اللغات**: ﴿أسداس﴾ جمع د سُدُس او سُدْسٌ ده: شپږمه حصه. يعني يو شی چي شپږ حصې کړل سي نو د هغه هري حصې ته سُدس وايي او دوو حصو ته يې سُدسان وايي.... او پنځو حصو ته يې خمسة أسداس وايي. ﴿يفرز﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله ده: جلا کول. عليحده کول. ﴿متقوّمة﴾ د تفعل د باب اسم مفعول دی: قيمت والا؛ قيمتداره (قيمت لرونکی).

**تشريح**: دلته د دويم صورت په هکله د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله او د امام محمد رَحِمَهُ الله اقوال ذکر سوي دي، د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نېز جودت او ردائت لره اعتبار سته، نو د هغه په نېز د قيمت زياتوالی د وزن د زياتوالي په څېر دی نو په مذکوره مثال کي چي کله د کوزې قيمت دوولس درهمه دی (د جودت په وجه)، نو ګواکي د کوزې وزن هم دوولس درهمه دی، او دا دوولس درهمه دي شپږ حصې کړل سي او له هغه څخه دي د پنځو حصو (يعني د لسو درهمو) ضمان پر مرتهن لازم کړی سي يا په بله وينا دا چي ماته کوزه دي شپږ حصې کړل سي او له هغه څخه د پنځو حصو د قيمت (يعني د لسو درهمو) ضمان له مرتهن څخه واخيستل سي او پاته يوه حصه دي جلا کړل سي چي د هغې د قيمت ضمان دي نه ځني اخيستل کيږي، او د دې ضمان ورکولو په وجه مرتهن د کوزې د پنځو حصو مالک کيږي، ځکه ښکاره خبره ده چي کله مرتهن د پنځو حصو ضمان اداء کړی، نو هغه پنځه حصې د ده په ملکيت کي داخله سوې، او د هغوی قيمت (يعني لس درهمه) دي بيا مرتهن ته په رهن ورکول سي، او پاته يوه حصه (شپږمه حصه) کومه چي جلا کړل سوې ده، د هغې قيمت (دوه درهمه) دي هم د هغه نورو پنځو حصو د قيمت سره په رهن ورکول سي، د دې لپاره چي شيوع لازم نه سي؛ ځکه شيوع د رهن لپاره مانع دی (که څه هم شيوع طاري وي، ځکه د ظاهر روايت مطابق طاري شيوع هم داسي دی لکه مقارن شيوع کما تقدّم). (الثمار الهدايه)

لنډه دا چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د جودت او ردائت اعتبار کړی دی او په همدې وجه يې د قيمت زياتوب د وزن د زياتوب په څېر ګرځولی دی چي ګواکي د کوزې وزن دوولس درهمه دی او په همدې وجه يې کوزه شپږ حصې کړې ده.

وهٰذا إلخ: فرمايي چي امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله ځکه د جودت اعتبار کړی دی، ځکه چي جودت بذات خود متقوّم (قيمتداره) دی، همدا وجه ده که د هغه په مقابله کي خلاف جنس وي، مثلاً د کَره سپينو زرو په مقابله کي سره زر وي، نو په دې صورت کي د سپينو زرو د جودت (کَره والي) اعتبار کيږي يعني د کَره سپينو زرو په اعتبار سره قيمت لګول کيږي او په دې کي څه اختلاف نسته. همدارنګه که مريض په مرض الموت کي سل کَره درهمه د سلو کوټه درهمو په عوض کي خرڅ کړي (يعني

مشتري ته سل کَرَه درهمه ورکړي او له هغه څخه سل کوټه درهمه واخلي)، نو د مریض دا تصرف فقط د هغه د مال په دریېمه حصه کې نافذیږي؛ ځکه چې د مریض په تصرف کې هم د جودت او ردائت اعتبار کړی سوی دی، نو له دې دوو مثالونو څخه معلومه سوه چې جودت بذات خود متقوم (قیمتداره) او معتبر دی کله چې د خلاف جنس په مقابله کې وي. لېکن کله چې د خپل جنس په مقابله کې وي، نو په دې وخت کې جودت لره اعتبار ځکه نسته چې په حدیث کې له دې څخه منع سوې ده چې د جنس سره د مقابلې په وخت کې به د جودت اعتبار نه کېږي.

لنډه دا چې کله شریعت په نورو مسئلو کې د جودت اعتبار کړی دی، نو د رهن په صورت کې به هم چې تر څو ممکنه وي د هغه اعتبار کول کېږي، د دې لپاره چې راهن له نقصان او تاوان څخه وساتل سي. دا د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله قول سو.

وفي بيان قول محمد إلخ: فرمايي چې امام محمد رَحِمَهُ الله په دې مسئله کې زيات تفصيل او وضاحت کړی دی. کوم چې پر شپږويشت (۲۶) فصلونو او صورتونو مشتمل دی، نو د نور بحث لپاره د امام محمد رَحِمَهُ الله کتاب مبسوط او زیادات مطالعه کړئ!. او په بنایه جلد ۱۱ کې له ۶۱۶ صفحې څخه تر ۶۱۸ صفحې پورې هم د همدې څه بحث سوی دی.

## د رهن پر شرط بیع کول استحساناً جائز ده

قَالَ: وَمَنْ بَاعَ عَبْدًا عَلَى أَنْ يَرْهَنَهُ الْمُشْتَرِيْ شَيْئًا بِعَيْنِهِ فرمايي: او څوک چې په دې شرط یو غلام خرڅ کړي چې مشتري به هغه ته یو معیّن شی په رهن ورکوي جَازَ اسْتِحْسَانًا نو استحساناً دا جائز دي وَالْقِيَاسُ أَنْ لَا يَجُوْزَ او قیاس دا دی چې جائز نه سي وَعَلَى هٰذَا الْقِيَاسِ وَالاسْتِحْسَانِ إِذَا بَاعَ شَيْئًا او پر همدې قیاس او استحسان [دا صورت هم] دی کله چې یو شی خرڅ کړي عَلَى أَنْ يُعْطِيَهُ كَفِيْلًا مُعَيَّنًا حَاضِرًا فِي الْمَجْلِسِ په دې شرط چې مشتري به بائع ته یو معیّن کفیل ورکوي کوم چې په مجلس کې حاضر وي فَقَبِلَ نو کفیل دا کفاله قبوله کړي وَجْهُ الْقِيَاسِ أَنَّهُ صَفْقَةٌ فِيْ صَفْقَةٍ د قیاس دلیل دا دی چې دا په عقد کې [دننه] عقد کول دي وَهُوَ مَنْهِيٌّ عَنْهُ حال دا چې له هغه څخه منع سوې ده وَلِأَنَّهُ شَرْطٌ لَا يَقْتَضِيهِ الْعَقْدُ او ځکه چې هغه یو داسې شرط دی کوم چې د عقد د مقتضا خلاف دی وَفِيْهِ مَنْفَعَةٌ لِأَحَدِهِمَا او په هغه کې له دواړو عاقدینو څخه د یوه عاقد نفع [هم] سته وَمِثْلُهُ يُفْسِدُ الْبَيْعَ او دا ډول شرط بیع فاسدوي وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّهُ شَرْطٌ

مُلَائِمٌ لِلْعَقْدِ او داستحسان دليل دا دی چې دا شرط د عقد بيع مناسب دی لِأَنَّ الْكَفَالَةَ وَالرَّهْنَ لِلِاسْتِيثَاقِ ځکه چې کفاله او رهن [د ثمن] د مضبوطي لپاره دي وَأَنَّهُ يُلَائِمُ الْوُجُوبَ او دا [استيثاق] د ثمن د وجوب مناسب دي.

**اللغات**: ﴿صفقة﴾ عقد، معامله. ﴿ملائم﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: مناسب، لايق. ﴿استيثاق﴾ د استفعال د باب مصدر دی: مضبوطول (مضبوط ګرځول) ټينګول، وثيقه اخيستل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که څوک په دې شرط خپل غلام پر يو چا (مثلاً پر زيد) خرڅ کړي چې هغه (زيد) به ما ته يو شی په رهن اږدي. يعني بائع ومشتري (زيد) ته ووايي چې زه خپل غلام په دې شرط پر تا خرڅوم چې ته به مثلاً ستا آس ما ته په رهن راکوې او کله چې ته ثمن اداء کړې نو خپل آس واپس واخله!. يا بائع په دې شرط خپل يو شی خرڅ کړي چې مشتري به ما ته د ثمن اداء کولو لپاره متعيّن کفيل راکوي کوم چې د بيع په مجلس کي حاضر وي.

نو په دې دواړو صورتونو کي بالاتفاق بيع جائز ده او د هيچا اختلاف پکښې نسته. لېکن د قياس او استحسان اختلاف پکښې سته چې استحساناً دا بيع جائز ده لېکن قياساً جائز نه ده.

د قياس دليل دا دی چې د بيع په مېنځ کي رهن داخلول او د رهن يا کفالت شرط لګول (چې په دې شرط يې خرڅوم چې ته به ما ته فلانکی شی په رهن راکوې يا کفيل به راکوې) صفقه في صفقه ده. يعني په يوه عقد کي دننه بل عقد کول دي، حال دا چې نبي کريم ﷺ له "صفقه في صفقه" څخه منع کړې ده لکه څرنګه چې د هدايې د ۳ جلد په اوله حصه کي ذکر سوي دي، نو ځکه په دې اعتبار سره قياساً دا بيع جائز نه ده.

او د قياس دويم دليل دا دی چې دا شرط د عقد د تقاضا خلاف دی؛ ځکه چې په عقد بيع کي پر مشتري رهن لازم نه دی چې هغه به بائع ته خپل يو شی په رهن اږدي. او بل دا چې په دې شرط کي د بائع نفع ده او داسي شرطونه بيع فاسدوي، نو په دې وجه هم قياساً دا مذکوره بيع جائز نه ده.

وجه الاستحسان إلخ: د استحسان دليل دا دی چې دا (د رهن او کفالت) شرط که څه هم د عقد بيع د مقتضا موافق نه دی لېکن که غور او فکر وسي نو د عقد بيع د مقتضا مخالف هم نه دی بلکي مناسب يې دی؛ ځکه د رهن او کفالت مقصد دا وي چې د بائع ثمن مضبوط او يقيني سي چې بيا مشتري په هغه کي څه درغلي نه وکړي. او ثمن هسي هم واجب او لازم دی که څه هم رهن او کفالت نه وسي (ځکه کله چې مشتري پر مبيع قبضه وکړي. نو ښکاره ده چې پر هغه ثمن واجب ګرځي)، نو رهن او کفالت به (کوم چې د مضبوطي او لزوم لپاره کيږي) د ثمن د وجوب مناسب ګڼل کيږي (نو دا شرط داسي دی لکه د ثمن د

کړه والي شرط لګول چي کره پيسې به راکوې!)، نو ځکه استحساناً په بيع کي د رهن او کفالت شرط لګول جائز دي او په دې سره بيع نه فاسديږي.

## د پورتني مسئلې نور وضاحت

فَإِذَا كَانَ الْكَفِيْلُ حَاضِرًا فِي الْمَجْلِسِ وَالرَّهْنُ مُعَيَّنًا بيا کله چي هغه کفيل په مجلس کي حاضر وي او رهن [مرهون] معيّن وي اِعْتَبَرْنَا فِيْهِ الْمَعْنَى نو موږ په هغه کي د معنیٰ اعتبار کړی دی وَهُوَ مُلَائِمٌ او معنیٰ [د عقد] مناسب ده فَصَحَّ الْعَقْدُ نو ځکه عقد صحيح دی وَإِذَا لَمْ يَكُنِ الرَّهْنُ وَلَا الْكَفِيْلُ مُعَيَّنًا او کله چي رهن او کفيل معيّن نه وي أَوْ كَانَ الْكَفِيْلُ غَائِبًا يا کفيل غائب وي حَتَّى افْتَرَقَا تر دې چي دواړه عاقدين يو له بل څخه جلا سي لَمْ يَبْقَ مَعْنَى الْكَفَالَةِ وَالرَّهْنِ لِلْجَهَالَةِ نو د جهالت په وجه د کفالې او رهن معنیٰ پاته نه سوه فَبَقِيَ الِاعْتِبَارُ لِعَيْنِهِ نو د عينِ شرط اعتبار باقي پاته سو فَيَفْسُدُ نو ځکه عقد به فاسديږي وَلَوْ كَانَ غَائِبًا فَحَضَرَ فِي الْمَجْلِسِ وَقَبِلَ او که کفيل غائب وي بيا په مجلس کي حاضر سي او کفاله قبوله کړي صَحَّ نو عقد صحيح کيږي.

**اللغات:** ﴿معيّن﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: ټاکل سوی، معلوم. ﴿ملائم﴾ د مفاعلې د باب فاعل دی: مناسب، لايق. ﴿افترقا﴾ د افتعال له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: يو له بل څخه جلا کېدل، بېلېدل.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي مخکي چي استحساناً عقد جائز ګرځول سوی دی، دا په هغه صورت کي جائز ګرځول سوی دی کله چي مرهون او کفيل متعين وي، کنې د جهالت په وجه عقد فاسديږي، او که کفيل متعيّن وي لېکن د عقد په مجلس کي حاضر نه وي، نو هم عقد فاسديږي؛ ځکه کېدلای سي چي کفيل دا کفالت (کفيل کېدل) قبول نه کړي.

او د متعيّن کېدلو په صورت کي د عقد جائز کېدلو او د غيرِ متعيّن کېدلو په صورت کي د عقد فاسدېدلو وجه دا ده چي په دې عقد کي چي کوم د کفالت او رهن شرط لګول سوی دی، په حقيقت کي د هغه دوه اړخه دي: ① د لفظ په اعتبار سره هغه شرط صفقه فی صفقه ده. ② او د معنیٰ په اعتبار سره هغه يو داسي شرط دی کوم چي د عقد مناسب دی، نو د متعيّن کېدلو په صورت کي د معنیٰ اعتبار کړی سوی دی او عقد جائز ګرځول سوی دی او د نا متعيّن کېدلو په صورت کي د لفظ اعتبار کړی سوی دی او عقد فاسد ګرځول سوی.

**ولوكان غائبًا إلخ:** او كه چيري كفيل له مخكي څخه په مجلس كي نه وي لېكن د عاقدينو تر جلا كېدلو مخكي حاضر سي او كفاله قبوله كړي، نو جائز دي.

**يادونه:** په دليل او علت كي چي مصنف رَحِمَهُ الله "لِلْجَهالَةِ" ويلي دي دا څه مخدوش دي؛ ځكه د غائب كفيل په صورت كي دا علت مناسب نه لګي، لهذا تر "للجهالة" وروسته دا اضافه مناسب وه "للجهالةِ والجوازُ أن لا يقبلَ الكفالة عند حضوره". (اشرف الهدايه)

## كه مشتري د مرهون شي له ورسپارلو څخه منع سي (حكم او د امام زفر اختلاف)

وَلَوِ امْتَنَعَ الْمُشْتَرِيْ عَنْ تَسْلِيْمِ الرَّهْنِ او كه مشتري د رهن [مرهون] له ورسپارلو څخه منع سي لَمْ يُجْبَرْ عَلَيْهِ نو پر هغه به جبر نه كيږي [يعني پر ورسپارلو به نه مجبورول كيږي] وَقَالَ زُفَرُ: يُجْبَرُ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي جبر به كيږي لِأَنَّ الرَّهْنَ إِذَا شُرِطَ فِي الْبَيْعِ ځكه رهن چي كله په بيع كي شرط كړى سي صَارَ حَقًّا مِنْ حُقُوْقِهِ نو هغه د بيع له حقوقو څخه يو حق وګرځي كَالْوَكَالَةِ الْمَشْرُوْطَةِ فِي الرَّهْنِ لكه هغه وكالت كوم چي په رهن كي شرط كړى سوى وي فَيَلْزَمُهُ بِلُزُوْمِهِ نو د بيع د لازمېدلو په وجه رهن [هم] پر مشتري لازميږي وَنَحْنُ نَقُوْلُ: الرَّهْنُ عَقْدُ تَبَرُّعٍ مِنْ جَانِبِ الرَّاهِنِ او موږ وايو: چي رهن د راهن له طرفه د تبرّع عقد دى عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لكه څرنګه چي [مخكي] موږ بيان كړه وَلَا جَبْرَ عَلَى التَّبَرُّعَاتِ او پر تبرّعاتو جبر نسته [يعني پر تبرع او نفلي كارونو څوك نه مجبورول كيږي] وَلٰكِنَّ الْبَائِعَ بِالْخِيَارِ إِنْ شَاءَ رَضِيَ بِتَرْكِ الرَّهْنِ لېكن بائع ته اختيار دى كه خوښه يې وي نو د رهن په پرېښوولو دي راضي سي وَإِنْ شَاءَ فَسَخَ الْبَيْعَ او كه خوښه يې وي نو بيع دي فسخ كړي لِأَنَّهُ وَصْفٌ مَرْغُوْبٌ فِيْهِ ځكه چي رهن يو داسي وصف دى كوم چي مرغوب فيه [او خوښ كړى سوى] دى [يعني داسي وصف دى چي هغه ته رغبت كيږي] وَمَا رَضِيَ إِلَّا بِهِ او بائع نه دى راضي سوى مګر په رهن سره فَيَتَخَيَّرُ بِفَوَاتِهِ نو ځكه د هغه د فوتېدلو په وجه به بائع ته اختيار وي إِلَّا أَنْ يَدْفَعَ الْمُشْتَرِيْ الثَّمَنَ حَالًا مګر دا چي مشتري نغد ثمن وركړي لِحُصُوْلِ الْمَقْصُوْدِ ځكه چي مقصود حاصل سو [يعني حق (ثمن) ترلاسه سو] أَوْ يَدْفَعَ قِيْمَةَ الرَّهْنِ رَهْنًا يا مشتري د رهن [مرهون] قيمت د

رهن په توګه ورکړي لِأَنَّ يَدَ الْاِسْتِيْفَاءِ تَثْبُتُ عَلَى الْمَعْنٰى وَهُوَ الْقِيْمَةُ ځکه چې د (حق) ترلاسه کولو قبضه پر معنیٰ ثابتيږي چې هغه قيمت دی.

**اللغات:** ﴿فسخ﴾ د فتح د باب ماضي ده: فسخ کول. بيع او سودا ماتول. ﴿يجبر﴾ د افعال د باب مضارع مجهوله ده: جبر کول. مجبوره کول (په يو چا په زوره يو کار کول) ﴿تبرّع﴾ د تفعل مصدر دی: احسان کول. داسي کار کول کوم چې د انسان پر ذمه واجب نه وي لکه وصيت. هبه او داسي نور. بلا عوضه (مفت) شی ورکول. جمع: تبرّعات. ﴿يتخيّر﴾ د تفعّل مضارع ده؛ اختيار من کېدل. اختيار حاصلېدل. ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: (حق) ترلاسه کول. پوره اخيستل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که بائع د رهن په شرط سره خپل غلام خرڅ کړي چې ما ته به ستا فلانکی شی مثلاً آس په رهن راکوې! او مشتري يې ورکړي او عقد پوره سي. لېکن کله چې د ورکولو وخت راسي نو مشتري د مرهون (آس) له ورسپارلو څخه انکار وکړي. نو زموږ په نېز حکم دا دی چې په دې باره کي به پر مشتري جبر نه کيږي (يعني د مرهون پر ورسپارلو به نه مجبورول کيږي). لېکن دامام زفر رَحِمَهُ الله په نېز پر مشتري به جبر کيږي؛ ځکه کله چې په بيع کي د رهن شرط ولګول سو. نو هغه د بيع د حقوقو په څېر يو حق سو. لکه کله چې يو راهن بل څوک وکيل جوړ کړي او هغه ته داسي ووايي چې کله د قرض اداء کولو وخت راسي نو ته مرهون شی خرڅ کړه او زما قرض په اداء کړه!. نو دا وکالت لازم سو او مؤکل يعني راهن هغه وکيل له وکالت څخه نه سي معزوله کولای. نو همداسي په مذکوره مسئله کي هم عقدِ رهن په بيع کي لازم سو لهذا که مشتري د مرهون له وسپارلو څخه انکار کوي نو پر هغه به جبر کيږي؛ ځکه چې د واجب حق پر ورسپارلو جبر کېدلای سي.

ونحن نقول إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله زموږ له طرفه دليل بيانوي فرمايي چې رهن د راهن له طرفه تبرّع ده لکه مخکي چې موږ د دې تفصيل بيان کړی. او اُصول دا دی چې "لا جبر في التبرّعات" يعني په تبرّعاتو کي جبر نه چليږي. نو ځکه دلته به پر مشتري جبر نه کيږي. خو بائع ته دا دوه اختياره حاصليږي چې ① يا دي له رهن څخه بغير بيع وکړي او هر وخت چې د قرض ثمن وخت پوره سي. نو ثمن دي ځني واخلي. ② يا دي بيع فسخ کړي: ځکه چې هغه د مرغوب وصف په وجه يعني د رهن په وجه د قرض په معامله راضي سوی وو. لېکن کله چې دلته په عقد کي دا وصف فوتيږي. نو ښکاره خبره ده چې بائع ته به د بيع د کولو يا نه کولو اختيار خامخا حاصليږي.

إلّا أن يدفع المشتري إلخ: هـا! که چيري مشتري د مرهون (آس) له ورسپارلو څخه تر انکار کولو وروسته سمدستي ثمن اداء کړي. يا د مرهون (آس) پر ځای د هغه قيمت په رهن ورکړي. نو په دې

دواړو صورتونو کي د بائع اختيار ساقطيږي: ځکه په اول صورت يعني د ثمن اداء کولو په صورت کي بائع ته خپل مقصود شي يعني ثمن حاصل سو. لهذا د رهن معامله اوس بې فايدي ده. او په دويم صورت کي هغه ته د مرهون ماليت او قيمت حاصل سو. او مخکي ذکر سوه چي د رهن حکم او مقصد يعني د "يد الاستيفاء" ثبوت په همدې ماليت او قيمت سره حاصليږي. لهذا په دې صورت کي ګواکي د رهن مقصود حاصل دی. نو ځکه په دې دويم صورت کي به هم د بائع خيار ساقطيږي.

## د رهن يو صورت او د امام زفر او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله اختلاف

قَالَ [امام محمد رَحِمَهُ الله په جامع صغير کي] فرمايي وَمَنِ اشْتَرَى ثَوْبًا بِدَرَاهِمَ او څوک چي د څو درهمو په عوض کي يوه کپړه رانيسي فَقَالَ لِلْبَائِعِ: أَمْسِكْ هٰذَا الثَّوْبَ حَتّٰى أُعْطِيَكَ الثَّمَنَ او بائع ته ووايي: چي دا کپړه در سره ونيسه [وساته]! تر دې چي زه ستا ثمن درکړم فَالثَّوْبُ رَهْنٌ نو دا کپړه رهن ده لِأَنَّهُ أَتٰى بِمَا يُنْبِئُ عَنْ مَعْنَى الرَّهْنِ ځکه هغه په داسي څه سره راتګ کړی دی [يعني داسي الفاظ يې ويلي دي] کوم چي د رهن د معنیٰ خبر ورکوي وَهُوَ الْحَبْسُ إِلٰى وَقْتِ الْإِعْطَاءِ او هغه د اعطاء [ثمن ورکولو] تر وخته پوري راګرځول دي وَالْعِبْرَةُ فِي الْعُقُوْدِ لِلْمَعَانِيْ او په عقدونو [معاملاتو] کي اعتبار معناګانو لره دی حَتّٰى كَانَتِ الْكَفَالَةُ بِشَرْطِ بَرَاءَةِ الْأَصِيْلِ حَوَالَةً همدا وجه ده چي کفاله د اصيل د بري کېدلو په شرط سره حواله ګرځي [يعني که په کفاله کي د اصيل د بري کېدلو شرط ولګول سي نو هغه حواله ګرځي] وَالْحَوَالَةُ فِيْ ضِدِّ ذٰلِكَ كَفَالَةٌ او حواله د دې په ضد سره [يعني د اصيل د نه بري کېدلو په شرط سره] کفاله ګرځي [يعني که په حواله کي د اصيل د نه بري کېدلو شرط ولګول سي نو هغه کفاله ګرځي] وَقَالَ زُفَرُ: لَا يَكُوْنُ رَهْنًا او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي دا کپړه رهن نه ګرځي وَمِثْلُهُ عَنْ أَبِيْ يُوسُفَ او همداسي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت سوی دی لِأَنَّ قَوْلَهُ "أَمْسِكْ" يَحْتَمِلُ الرَّهْنَ وَيَحْتَمِلُ الْإِيْدَاعَ ځکه چي د مشتري دا قول "أَمْسِكْ" [چي دا کپړه در سره وساته!] د رهن احتمال هم لري او د ايداع [امانتاً ايښوولو] احتمال هم لري وَالثَّانِيْ أَقَلُّهُمَا او دويم [ايداع] په دې دواړو کي أقل [د کمي درجې] دی [يعني په رهن او ايداع کي ايداع اخف او ادنیٰ دی] فَيُقْضٰى بِثُبُوْتِهِ نو ځکه د هغه د ثابتېدلو فيصله به کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا قَالَ: أَمْسِكْهُ بِدَيْنِكَ أَوْ بِمَالِكَ په خلاف د هغه صورت کله چي مشتري ووايي: چي دا کپړه د خپل قرض يا د خپل مال په عوض کي در سره ونيسه! لِأَنَّهُ لَمَّا

قَابَلَهُ بِالدَّيْنِ ځکه کله چې مشتري کپړه د قرض مقابل وګرځوله فَتَعَيَّنَ جِهَةَ الرَّهْنِ نو هغه د رهن اړخ متعيّن کړی قُلْنَا: لَمَّا مَدَّهُ إِلَى الْإِعْطَاءِ موږ [په جواب کې] وايو: چې کله مشتري د کپړې نيول [امساک الثوب] د ثمن ورکولو تر وخته پورې اوږده کړه عُلِمَ أَنَّ مُرَادَهُ الرَّهْنُ نو معلومه سوه چې د هغه مراد رهن دی.

**اللغات:** ﴿أَمْسِكْ﴾ د افعال له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده: نيول، راګرځول او ساتل. ﴿يَنبغي﴾ له مخکيني بابه د مضارع صيغه ده: خبر ورکول. ﴿إعطاء﴾ له مخکيني بابه مصدر دی: ورکول. ﴿عِبرة﴾ اعتبار. ﴿عقود﴾ جمع د عَقْدٌ ده: معامله.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو څوک مثلاً خالد يوه کپړه (يا يو تان) رانيسي او بائع ته ثمن نه ورکړي بلکې ورته ووايي چې تر څو زه تا ته ثمن نه درکړم تر هغه وختـه دا کپړه د ځان سره وګرځوه!، نو زموږ په نيز دا کپړه رهن کيږي، لېکن د امام زفر او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله په نيز هغه نه رهن کيږي بلکې امانت کيږي.

د دې کپړې په رهن کېدلو باندې زموږ دليل دا دی چې که څه هم د مشتري (خالد) په کلام سره په ښکاره رهن نه ثابتيږي، لېکن د معنیٰ په اعتبار سره هغه د رهن خبر ورکوي، په دې توګه چې مشتري د ثمن ورکولو تر وخته پورې د دې کپړې د ګرځولو خبره کړې ده چې "أمسکه حتى أعطيك الثمن" يعني دا کپړه تر هغه وخته وګرځوه او د ځان سره يې وساته! تر څو چې زه ستا ثمن درکړم. او په رهن کې همداسې کيږي چې د قرض ورکولو تر وخته پورې مرهون شی مرتهن د ځان سره ګرځولی او ساتلی وي، نو پر دې بناء په مذکوره مسئله کې به دا کپړه د بائع سره رهن وي: ځکه چې په هغه کې د رهن معنیٰ موجوده ده والعِبرة في العقود للمعاني.

مثلاً که زيد د خالد لپاره د قرض کفيل سي چې که عُمر تا ته قرض درنه کړي نو زه يې کفيل او ذمه وار يم. نو په دې صورت کې مکفول لهٗ (يعني خالد) له کفيل (زيد) او له اصيل (عُمر) دواړو څخه د خپل حق (قرض) مطالبه کولای سي، او په حواله کې اصيل بري کيږي مثلاً که عُمر د خالد قرض پر زيد حواله کړي چې ستا قرض به زيد درکړي او زيد دا حواله قبوله کړي نو اصيل (عُمر) بري کيږي لهذا خالد به يوازې له حواله قبلونکي (يعني له زيد) څخه مطالبه کوي، نه له اصيل څخه. لېکن که چيري په کفاله کې د اصيل (عُمر) د برې کېدلو شرط ولګول سي نو هغه په حواله سره بدليږي. يا که

چيري په حواله کي داصيل نه بري کېدلو (اوله هغه څخه د مطالبه کولو) شرط ولګول سي نو حواله په کفاله سره بدليږي. او د "العبرة في العقود للمعاني" پر بناء لفظاً منعقده کېدونکي کفاله "حواله" ګرځي او حواله "کفاله" ګرځي، نو همدغسي په مذکوره مسئله کي هم د معنیٰ په اعتبار کولو سره عقدِ رهن ثابتيږي.

د امام زفر او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی چي د مشتري په قول "أمسکه إلخ" کي د رهن احتمال هم سته او د وديعت احتمال هم پکښې سته، او اُصول دا دی چي کله په يو شي کي دوه داسي اړخه سره جمع سي چي يو اقویٰ او اعلیٰ وي او بل اخفّ او اقلّ وي او د اقویٰ د اثبات لپاره قطعي او ظاهري دليل نه وي، نو حکم د اخفّ وطرف ته ګرځول کيږي، نو ځکه په دې مسئله کي مورږ د مشتري قول "امسکه إلخ" د وديعت وطرف ته ګرځولی دی؛ ځکه وديعت له رهن څخه اخفّ او سپک دی، ځکه چي د وديعت ضمان نه واجبيږي او د رهن ضمان واجبيږي.

بخلاف ما إذا قال إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مشتري "أمسك هٰذا الثوب بدَيْنِكَ يا بِمالِكَ" ووايي، نو په دې صورت کي د امام زفر او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله په نېز هم په دې سره رهن ثابتيږي؛ ځکه کله چي مشتري "بدينك" يا "بمالك" ووېل يعني ثوب (کپړه) يې د قرض يا مال مقابل وګرځول، نو په دې سره يې د رهن احتمال ته تقويه ورکړه، نو ځکه په دې الفاظو سره به رهن ثابتيږي.

قلنا إلخ: په دې سره د مذکوره مسئلې په اول صورت کي د امام زفر او امام ابو يوسف رَحِمَهُمَا الله د دليل جواب ورکوي فرمايي چي هلته هم د رهن احتمال قوي او راجح دی؛ ځکه کله چي مشتري د امساکُ الثوب موده د اعطاء الثمن (ثمن ورکولو) تر وخته پوري متعيّن کړه، نو ښکاره سوه چي د هغه مراد رهن دی، نه وديعت، نو ځکه له دغو الفاظو "أمسکه حتّی اعطيك الثمن" څخه به هم رهن مراد ول کيږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

❀❀❀

# فصل

**تشریح**: دا فصل هم د رهن او د رهن د اُمورو سره متعلق دی، مخکې تر دې د رهن هغه مسئلې بيان سوي دي چې په هغوی کې په مرهون، راهن او مرتهن کې تعدّد نسته (یا په بله وینا دا چې په هغوی کې دیوه مرهون، یوه راهن یا یوه مرتهن بیان دی)، اوس په دې فصل کې هغه مسئلې بیانوي چې په هغوی کې مرهون یا راهن یا مرتهن متعدد وي (یا په بله وینا دا چې له یوه څخه زیات یعني دوه وي)، او ښکاره خبره ده چې اثنین تر واحد وروسته وي، نو ځکه یې دا فصل وروسته کړی دی. (بنایه ج:۱۱)

## دوه شیان په رهن (په ګرو) ایښوول (یو راهن او دوه مرتهنان)

وَمَنْ رَهَنَ عَبْدَيْنِ بِأَلْفٍ او څوک چې دوه غلامان د زرو درهمو په عوض کې په رهن ورکړي فَقَضٰى حِصَّةَ أَحَدِهِمَا بيا د يوه غلام حصه اداء کړي لَمْ يَكُنْ لَهُ أَنْ يَقْبِضَهُ نو ده ته دا حق نسته چې پر هغه قبضه وکړي حَتّٰى يُؤَدِّيَ بَاقِيَ الدَّيْنِ تر دې چې پاته قرض [هم] اداء کړي وَحِصَّةُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مَا يَخُصُّهُ إِذَا قُسِّمَ الدَّيْنُ عَلٰى قِيْمَتِهِمَا او له دوی دواړو څخه د هر يوه غلام حصه هغه ده کوم چې ور سره خاص سي [يعني خصوصاً د هغه په حصه کي راسي] کله چې قرض د دوی دواړو پر قيمت تقسيم کړی سي وَهٰذَا لِأَنَّ الرَّهْنَ مَحْبُوسٌ بِكُلِّ الدَّيْنِ او دا ځکه چې رهن [دوه غلامان] د ټوله قرض په عوض کي محبوس [راګرځول سوي] دي فَيَكُوْنُ مَحْبُوْسًا بِكُلِّ جُزْءٍ مِنْ أَجْزَائِهِ نو د قرض د هر، هر جزء په عوض کي به رهن محبوس وي مُبَالَغَةً فِي حَمْلِهِ عَلٰى قَضَاءِ الدَّيْنِ د مبالغه کولو لپاره پر قرض اداء کولو د راهن په هڅولو کي [يعني چې راهن (مقروض) د قرض پر ادائنه ښه وهڅول سي] وَصَارَ كَالْمَبِيْعِ فِيْ يَدِ الْبَائِعِ او دا داسي سو لکه مبيع د بائع په قبضه کي.

**اللغات**: ﴿قَضٰى﴾ د ضرب ماضي ده، د دې باب له معناوو څخه يوه معنیٰ ده: اداء کول. ﴿حصة﴾ تاکل سوي برخه، ﴿يخصّ﴾ د نصر مضارع ده: خاص کېدل، ﴿حَمْل﴾ د ضرب مصدر دی، د دې باب په صله کي چې "على" راسي نو معنیٰ يې ده: هڅول، پارول.

**تشريح : صورت د مسئلې** : دا دی چي د يو سړي پر بل چا مثلاً د خالد پر زيد زر درهمه باندي دي. او زيد (مقروض) د هغه زرو درهمو په عوض کي خپل دوه غلامان خالد ته په رهن ورکړه چي له هغوی څخه د يوه غلام قيمت اُووه سوه او د بل قيمت درې سوه درهمه دی (يا مثلاً د يوه غلام قيمت پنځلس سوه درهمه دی او د بل قيمت زر درهمه دی). بيا زيد اُووه سوه درهمه قرض اداء کړی او درې سوه درهمه باقي پاته سوه (يا مثلاً پنځلس سوه درهمه قرض يې اداء کړی او زر درهمه باقي پاته سوه). نو آيا اوس زيد ته دا حق سته چي هغه غلام له خالد څخه واخلي چي قيمت يې اُووه سوه (يا پنځلس سوه) دی.

نو فرمايي زيد (مقروض) ته دا حق نسته بلکي کله چي باقي مانده قرض (درې سوه درهمه) هم اداء کړي او ټوله قرض پوره سي. نو بيا به خپل دوه غلامان يوځای له خالد څخه اخلي؛ ځکه مرهون (دوه غلامان) د ټوله قرض په عوض کي محبوس دي، نو دا حبس به د قرض د هر، هر جز په عوض کي وي (د قرض د هر درهم او هرې حصې په عوض کي به مرهون محبوس وي) لهذا تر څو چي د قرض لږ حصه هم پاته وي، زيد ته دا حق نسته چي مرهون له مرتهن (خالد) څخه واخلي. او په دې کي راز او ښېګڼه دا هم ده چي مقروض (زيد) به د ټوله قرض د اداء کولو په فکر کي وي ګواکي دا د قرض پر ادا ينه د مقروض د هڅولو تدبير دی.

او د دې پورتنی مسئلې مثال بعينهٖ همداسي دی لکه زيد چي له خالد څخه دوه غلامان په زر درهمه رانيسي چي د يوه قيمت اُووه سوه او د بل قيمت درې سوه درهمه وي او زيد (مشتري) اُووه سوه ثمن وخالد (بائع) ته ورکړي، نو زيد ته دا حق نسته چي هغه يو غلام واخلي بلکي کله چي ټوله ثمن اداء کړي نو بيا به مبيع (دوه غلامان) ورسپارل کيږي.

وحصّة كل واحد إلخ : د دې جملې حاصل دا دی چي دا کوم دوه غلامان چي په رهن ورکول سوي دي، د دوی د هر يوه د حصې معلومولو طريقه دا ده چي د دواړو قيمت دي معلوم کړل سي او قرض دي پر تقسيم کړل سي نو د هر يوه په حصه کي چي څومره قرض راسي. هاغه يې حصه ده. لکه په مذکوره مسئله کي چي د يوه حصه اُووه سوه او د بل حصه درې سوه درهمه ده.

**په پورتني صورت کي د هر يوه مرهون حصه متعيَّنول چي د دومره په عوض کي رهن دی**

فَإِنْ سَمَّى لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْ أَعْيَانِ الرَّهْنِ شَيْئًا مِنَ الْمَالِ الَّذِي رَهَنَهُ بِهِ بيا که راهن متعيَّن کړي د رهن [مرهونه] شيانو څخه د هر يوه لپاره څه مال له هغه مال څخه چي د هغه په عوض کي يې دا [مرهونه شيان] په رهن ورکړی دی [يا په بله وينا دا چي که راهن له مرهونه شيانو (دوو غلامانو) څخه د هر يوه لپاره له هغه مال څخه حصه متعيَّنه کړي چي د هغه په عوض کي يې دوی په رهن ورکړي دي] فَكَذَا الْجَوَابُ فِي رِوَايَةِ

الْأَصْلِ نو همداسي جواب [او حکم دی] د مبسوط په روايت کي وَفِي الزِّيَادَاتِ: لَهُ أَنْ يَقْبِضَهُ إِذَا أَدَّى مَا سَمَّى لَهُ او په زيادات کي دي: چي راهن ته دا حق سته چي پر يوه [غلام] قبضه وکړي کله چي هغه مال اداء کړي چي د هغه [يوه غلام] لپاره متعين کړی وي وَجْهُ الْأَوَّلِ أَنَّ الْعَقْدَ مُتَّحِدٌ لَا يَتَفَرَّقُ بِتَفَرُّقِ التَّسْمِيَةِ د اول [يعني د مبسوط د روايت] دليل دا دی چي دا يو عقد دی کوم چي نه متفرق کيږي په تفرق سره [د مال او حصې] د متعين کولو كَمَا فِي الْمَبِيعِ لکه څرنګه چي په مبيع کي دي وَجْهُ الثَّانِي أَنَّهُ لَا حَاجَةَ إِلَى الِاتِّحَادِ او د دويم [يعني د زيادات د روايت] دليل دا دی چي يو والي ته څه ضرورت نسته لِأَنَّ أَحَدَ الْعَقْدَيْنِ لَا يَصِيرُ مَشْرُوطًا فِي الْآخَرِ ځکه له دوو عقدونو څخه يو په بل کي مشروط نه ګرځي أَلَا يَرَى أَنَّهُ لَوْ قَبِلَ الرَّهْنَ فِي أَحَدِهِمَا آيا نه ګوري چي که مرتهن له دوی دواړو څخه په يوه کي رهن قبول کړي جَازَ نو جائز دي.

**اللغات**: ﴿سمّی﴾ د تفعيل ماضي ده: نومول، متعين کول، ټاکل او بيانول. ﴿أعيان﴾ جمع د عَيْن ده: عين شيان. ﴿متحد﴾ د افتعال د باب اسم فاعل دی: سره يو. دلته د "واحد" په معنیٰ سره دی. ﴿يتفرق﴾ د تفعّل مضارع ده: جلا کېدل. سره بېلېدل.

**تشريح**: يو صورت خو هغه دی کوم چي مخکي تېر سو، لېکن که راهن (زيد) د دې تعين او وضاحت هم وکړي چي دا يو غلام د قرض د اُوو سوو درهمو په عوض کي رهن دی او دا بل غلام د قرض د دريو سوو درهمو په عوض کي رهن دی، نو آيا په دې صورت کي چي کله راهن اُووه سوه درهمه اداء کړي، نو هغه ته دا جائز دي که نه چي هغه اُووه سوه درهمو والا غلام له مرتهن (خالد) څخه واخلي؟.

همدارنګه که قرض مثلاً زر درهمه وي او مقروض دوه غلامان په رهن ورکړي او دا واضحه کړي چي دا دواړه د پنځه سوو درهمو په عوض کي رهن دي او پاته پنځه سوه درهمه بغير له رهن څخه دي، بيا پنځه سوه درهمه اداء کړي او ووايي چي زما دواړه غلامان راکړه! ځکه دا هغه پنځه سوه دي چي د هغوی په عوض کي غلامان مرهون دي، نو آيا دا جائز دي؟.

نو فرمايي چي په دې باره کي د مبسوط او زيادات روايتونه سره مختلف دي. په مبسوط کي دي چي جائز نه دي او په زيادات کي دي چي جائز دي.

د مبسوط د روايت دليل دا دی چي دا عقد (دوه غلامان په رهن ورکول) متحد او يو عقد دی. نو په مذکوره وضاحت او تعين سره د هغه توحد نه ختميږي او تفرق او تعدد نه پکښي پيدا کيږي. لهذا کله چي دا يو عقد سو، نو د دغه مسئلې به هم هاغه حکم وي کوم چي د مخکښي مسئلې دی. او د دې مثال بعينه داسي دی لکه بائع چي دوه غلامان په زر درهمه خرڅ کړي او دا واضحه کړي چي د يوه قيمت اووه سوه او د دې بل يوه قيمت درې سوه درهمه دی. بيا مشتري د يوه غلام قيمت ورکړي او پر هغه قبضه کول وغواړي (يعني وغواړي چي له بائع څخه هغه يو غلام واخلي). نو مشتري ته دا حق نسته د دې لپاره چي تفرق صفقه (د عقد متفرق کېدل) لازم نه سي.

د زيادات د روايت دليل دا دی چي په حقيقت کي دا دوه جلا عقدونه سوه. او اُصول دا دی چي يو عقد د بل عقد لپاره شرط نه ګرځي، همدا وجه ده چي کله راهن دا واضحه کړي چي دا غلام د قرض د اوو سوو په عوض کي دی او دا بل د دريو سوو په عوض کي دی او مرتهن فقط يو عقد قبول کړي او په بل غلام کي يې قبول نه کړي، نو جائز دي.

خلاصه د خبري دا چي دغه په رهن کي تفرق دی کوم چي جائز دی او مضر نه دی، نو د هغوی د متحد کولو څه حاجت نسته، خو ضرر فقط د بيع په صورت کي لازميږي ځکه په بيع کي تفرق مضر دی، او د دې وجه دا ده چي په بيع کي عادت دا وي چي جيد او ردي (ښه او خراب) دواړه يو ځای سره خرڅول کيږي نو که په جيد کي عقد بيع قبول کړی سي او ردي ور پرېښودل سي نو د بائع ضرر به لازم سي.

## يو شی د دوو کسانو د قرض په عوض کي په رهن ايښوول (حکم او تفصيل)

قَالَ [امام قدوري رَحِمَهُ الله] فرمايي فَإِنْ رَهَنَ عَيْنًا وَاحِدَةً عِنْدَ رَجُلَيْنِ او که څوک يو شی د دوو کسانو سره په رهن کښېږدي بِدَيْنٍ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلَيْهِ د هغه قرض په عوض کي کوم چي د دې دوو کسانو پر هغه باندي دی جَازَ نو جائز دي وَجَمِيْعُهَا رَهْنٌ عِنْدَ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا او هغه [مرهون] شی ټوله د دوی هر يوه سره رهن دی لِأَنَّ الرَّهْنَ أُضِيْفَ إِلٰى جَمِيْعِ الْعَيْنِ فِيْ صَفْقَةٍ وَاحِدَةٍ ځکه چي د رهن اضافت د ټوله شي وطرف ته په يوه عقد کي سوی دی وَلَا شُيُوْعَ فِيْهِ او په دې کي شيوع نسته وَمُوْجِبُهُ صَيْرُوْرَتُهُ مُحْتَبِسًا بِالدَّيْنِ او د رهن حکم د قرض په عوض کي د مرهون شي محبوس ګرځېدل دي وَهٰذَا مِمَّا لَا يَقْبَلُ الْوَصْفَ بِالتَّجَزِّيْ او دا له هغه شيانو څخه دي کوم چي د تجزی [او انقسام] وصف نه قبلوي فَصَارَ مَحْبُوْسًا بِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نو مرهون شی د دوی هر يوه [د قرض] په

عوض کي محبوس وګرځېدی وَهٰذَا بِخِلَافِ الْهِبَةِ مِنْ رَجُلَيْنِ او دا دوو خلکو ته د هبه کولو په خلاف دي [یعني چي یو څوک دوو کسانو ته یو شی هبه کړي] حَيْثُ لَا تَجُوزُ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ چي هغه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه دي فَإِنْ تَهَايَئَا بیا که دواړه [قرضخواهان] نوبت وټاکي فَكُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا فِي نَوْبَتِهِ كَالْعَدْلِ فِي حَقِّ الْآخَرِ نو له دوی څخه هر یو په خپل نوبت کي د بل یوه په حق کي د عادل په څېر دی.

**اللغات**: ﴿أَضَافَ﴾ د افعال د باب ماضي ده: اضافت او نسبت کول. مضاف کول (منسوب کول). ﴿صَفقة واحدة﴾ یو عقد (یو معامله). ﴿شیوع﴾ اشتراک (غیر مقسوم شرکت). ﴿التجزی﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: جزء جزء کېدل (حصه حصه کېدل)، ټوټه ټوټه کېدل. ﴿تهایئا﴾ د تفاعل له بابه د تثنیه غائب مضارع صیغه ده: په وار او نوبت سره یو کار کول یا نفع حاصلول. په نوبت نوبت یو شی اخیستل.

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که پر یو سړي د دوو کسانو مثلاً پر زید د خالد او حامد لس زره روپۍ باندي دي او زید د هغو په عوض کي خپل یو شی مثلاً موبایل (تلیفون) دوی دواړو ته په رهن ورکړي، نو دا رهن جائز دی او داسي به ګڼل کیږي چي ټوله موبایل د هر یوه سره مرهون او محبوس دی.

او که سوال وسي چي دا رهن نه جائز کېدل پکار دي ځکه چي په مستحقینو کي تعدّد دی (یعني د مرهون شي مستحقین دوه کسان دي) چي په دې وجه په رهن کي شیوع راغلی دی کوم چي د رهن له جواز څخه مانع دی.

نو جواب دا دی چي په محلِ واحد کي د مستحقینو تعدّد شیوع نه ثابتوي. مثلاً که پر یوه کس د ډېرو خلکو قصاص واجب وي، نو دا د مستحقینو تعدّد د محل شیوع نه لازموي.

او که سوال وسي چي شیوع خو سته ځکه چي دوو کسانو ته د رهن اضافت د دوی په مینځ کي نیم په نیمه د رهن (مرهون) انقسام ثابتوي.

نو جواب دا دی چي د جواز لټولو لپاره به انقسام نه کیږي بلکي مرهون شی (موبایل) به د دواړو کسانو (قرضخواهانو) په حق کي محبوس ګرځول کیږي یعني ګواکي بغیر له انقسام څخه مرهون شی د هر یوه سره پوره محبوس دی؛ ځکه په موبایل کي خو دا صورت نه سي جوړېدلای چي د دواړو سره محبوس پاته سي، نو داسي به ګڼل کیږي چي د دوی هر یوه د حق په عوض کي محبوس دی.

وهٰذا بخلاف الهبة إلخ: څرنګه چې د هبې مقصد تمليک دی (یعني چې موهوب لهٔ د موهوب شي مالک کړی سي) لهذا که یو شی دوو کسانو ته پوره هبه کړی سي نو دواړه کسان د هغه ټوله شي پوره مالکان کول محال او ناممکن دي، په دې وجه امام صاحب رَحِمَهُ الله دا ناجائز ګرځولي دي.

فإن تهايئا إلخ: فرمايي که چيري دوی دواړه نوبت وټاکي چې مرهون شی (موبايل) به مثلاً پنځه ورځي ستا سره وي او پنځه ورځي به زما سره وي، نو دا جائز او صحيح دي، او له دوی څخه هر يو به په خپل نوبت کي د عادل کس په څېر وي يعني څرنګه چې کله يو مرهون شی د مرتهن پر ځای د عادل کس سره کېښېښوول سي نو که څه هم هغه د عادل سره وي لېکن هغه د مرتهن سره موجود شمېرل سيږي، همدارنګه کله چې دلته مرهون شی (موبايل) د يوه کس سره وي نو هغه به د بل يوه سره موجود شمېرل کيږي او په دې توګه به پر مرهون شي د دواړو قبضه باقي پاته وي.

## په پورتني صورت کي د رهن هلاکېدلو مسئله

| قَالَ فرمايي [کله چې مرهون هلاک سي] وَالْمَضْمُوْنُ عَلٰى كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا حِصَّتُهُ مِنَ الدَّيْنِ [نو] له دوی دواړو [قرضخواهانو] څخه پر هر يوه د هغه د قرض حصه مضمونه ده [يعني پر هر يوه د خپل قرض د حصې ضمان لازم دی] لِأَنَّ عِنْدَ الْهَلَاكِ يَصِيْرُ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُسْتَوْفِيًا حِصَّتَهُ ځکه [د مرهون] د هلاکېدلو په وخت کي له دوی څخه هر يو د خپلي حصې ترلاسه کونکی ګرځي إِذِ الْاِسْتِيْفَاءُ مِمَّا يَتَجَزَّأُ ځکه چې استيفاء له هغه شيانو څخه ده کوم چې متجزّي کيږي [يعني په (قرض) ترلاسه کولو کي تجزی کېدلای سي] |
|---|

**اللغات**: ﴿المضمون﴾ د سمع د باب اسم مفعول دی: د څه چې ضمان (تاوان) واجب وي، هغه څه چې ضمان يې ورکول کيږي. ﴿يتجزی﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: جزء جزء کېدل (حصه حصه کېدل)، ټوټه ټوټه کېدل. ﴿استيفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: (حق) ترلاسه کول، اخيستل.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې مرهون شی تر څو موجود او باقي وي نو تر هغه وخته پوري خو انقسام نه پکښي راځي بلکي داسي به ګڼل کيږي چې ګواکي د هر يوه قبضه په ټوله مرهون کي ده، لېکن که مرهون هلاک سي، نو بيا په هغه کي انقسام او تجزی کيږي او له دواړو قرضخواهانو (خالد او حامد) څخه هر يو د خپل قرض د حصې ضامن کيږي، ځکه چې په قرض ترلاسه کولو (استيفاء) کي تجزی کېدلای سي، نو که د دواړو پر زيد مثلاً زر درهمه قرض وي چې پنځه سوه د يوه وي او پنځه سوه د بل وي او مرهون هلاک سي، نو د دواړو قرض ساقط سو؛ ځکه چې د مرهون د هلاکېدلو

په وجه هر يو د خپل قرض ترلاسه کونکی وګرځېدی او په قرض ترلاسه کولو کي تجزی کېدلای سي، نو ځکه اوس به په قرض او مرهون کي هم تجزی کېږي. (احسن الهدايه)

## که راهن د يوه قرض اداء کړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: فَإِنْ أَعْطَى أَحَدُهُمَا دَيْنَهُ فرمايي: بيا که راهن په دوی کي د يوه قرض ورکړي كَانَ كُلُّهُ رَهْنًا فِي يَدِ الْآخَرِ نو ټوله مرهون د هغه بل يوه په قبضه کي رهن ګرځي لِأَنَّ جَمِيعَ الْعَيْنِ رَهْنٌ فِي يَدِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مِنْ غَيْرِ تَفَرُّقٍ ځکه چي ټوله [مرهون] شی بغير له څه تفرّق څخه د دوی هر يوه په قبضه کي رهن دی وَعَلَى هٰذَا حَبْسُ الْمَبِيعِ او پر همدغه اختلاف دي د مبيع راګرځول إِذَا أَدَّى أَحَدُ الْمُشْتَرِيَيْنِ حِصَّتَهُ مِنَ الثَّمَنِ کله چي په دوو رانيونکو کسانو کي يو خپله د ثمن حصه اداء کړي.

**اللغات:** ﴿العَين﴾ شی، په اصل کي هغه شي ته وايي کوم چي موجود وي او په لاس سره مسه کېدلای سي او محفوظ کېدلای سي، جمع يې "أَعْيَان" راځي. ﴿تفرُّق﴾ د تفعّل مصدر دی: جلا کېدل، سره بېلېدل. ﴿حبس﴾ د ضرب مصدر دی: بندول، منع کول، راګرځول.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی که راهن (زيد) د يوه قرض اداء کړي (مثلاً د خالد قرض اداء کړي)، نو اوس ټوله مرهون (موبايل) د بل يوه (حامد) سره رهن ګرځي؛ ځکه چي د هغه بل يوه (حامد) سره خو له مخکي څخه هم ټوله مرهون شی په کامله توګه رهن او محبوس وو (او ټوله مرهون شی د هغه لپاره مثل سوی وو). نو اوس به هم هغسي رهن او محبوس پاتېږي ترڅو چي د هغه قرض اداءنه کړی سي. لکه دوه کسان چي يو شی مثلاً موبايل رانيسي او له دوی څخه يو کس د خپلي حصې ثمن اداء کړي. نو ترڅو چي بل يو هم د خپلي حصې ثمن اداء نه کړي، تر هغه وخته پوري بائع ته دا حق سته چي مبيع (موبايل) د ځان سره محبوس او محفوظ کړي او دوی ته يې نه ورکړي.

## دوه راهنان او يو مرتهن

قَالَ [امام کرخي رَحِمَهُ الله په خپل مختصر کي] فرمايي وَإِنْ رَهَنَ رَجُلَانِ بِدَيْنٍ عَلَيْهِمَا رَجُلًا رَهْنًا وَاحِدًا او که دوه سړيان د هغه قرض په عوض کي کوم چي پر دوی باندي دی يو سړي ته رهن کښېږدي [يعني دوه مقروضه (پور وړي) د خپل قرض په عوض کي د قرض مالک ته يو شی په رهن کښېږدي] فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي وَالرَّهْنُ رَهْنٌ بِكُلِّ الدَّيْنِ او رهن [مرهون شی] د ټوله قرض په عوض کي رهن دی وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يُمْسِكَهُ حَتَّى يَسْتَوْفِيَ جَمِيعَ الدَّيْنِ او مرتهن لره دا حق سته چي هغه [مرهون شی]

راو گرځوي تر دې چې ټوله قرض ترلاسه کړي لِأَنَّ قَبْضَ الرَّهْنِ يَحْصُلُ فِي الْكُلِّ مِنْ غَيْرِ شُيُوْعٍ ځکه چې د رهن قبضه په ټوله [مرهون] کې له شيوع څخه بغير حاصليږي [يعني قبضه په ټوله مرهون شي کې بغير له شيوعه داخله سوې ده او مرتهن په يوه ځل پر ټوله مرهون قبضه کړې ده او په قبضه کې شيوع او تقسيم نسته].

**اللغات**: ﴿يمسکه﴾ د افعال د باب مضارع ده: نيول. راګرځول. ﴿شيوع﴾ اشتراک (غير مقسوم شرکت).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی که پر دوو کسانو د يو سړي مثلاً پر زيد او عُمر د خالد قرض باندې وي او دوی دواړه د خالد سره يو شی په رهن کښېږدي، نو دا رهن جائز دی او دا مرهون شی د دواړو د قرض په عوض کې مرهون شمېرل کيږي او خالد چې تر کومه وخته خپل ټوله قرض ترلاسه نه کړي، تر هغه وخته ده ته دا حق سته چې مرهون شی د ځان سره وګرځوي.

او که سوال وسي چې په ښکاره خو دلته شيوع معلوميږي چې نصف مرهون شی د زيد ملکيت دی او نصف د عُمر، او مخکې ذکر سوه چې شيوع د جواز منافي دی.

نو د "لأن قبض الرهن" په دليل سره مصنف رَحِمَهُ الله د دې جواب ورکړی دی، حاصل يې دا دی چې څرنګه په هغه صورت کې شيوع نسته کله چې يو راهن وي او يو مرتهن وي، نو همداسې که دوه راهنان وي او يو مرتهن وي، نو بيا هم شيوع نسته، نو ځکه دا عقد رهن به جائز وي.

## د يوه شي په هکله د رهن دوې متضاده دعوې

فَإِنْ أَقَامَ الرَّجُلَانِ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ عَلَى رَجُلٍ او که له دوو سړيو څخه هر يو پر يو سړي بيّنه پېش کړي أَنَّهُ رَهَنَهُ عَبْدَهُ الَّذِي فِي يَدِهِ چې دغه سړي خپل هغه غلام کوم چې يې په قبضه کې دی هغه ته [يعني ما ته] په رهن ايښی وو وَقَبَضَهُ او هغه [يعني ما] پر غلام قبضه کړې وه فَهُوَ بَاطِلٌ نو دا باطل دي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَثْبَتَ بِبَيِّنَتِهِ أَنَّهُ رَهَنَهُ كُلَّ الْعَبْدِ ځکه چې له دوی دواړو څخه هر يوه په خپل بيّنه سره دا ثابته کړې ده چې سړي ټوله غلام هغه ته په رهن ايښی وو وَلَا وَجْهَ إِلَى الْقَضَاءِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالْكُلِّ او له دوی څخه د هر يوه لپاره د ټوله غلام د فيصلې هيڅ صورت نسته لِأَنَّ الْعَبْدَ الْوَاحِدَ يَسْتَحِيلُ أَنْ يَكُوْنَ كُلُّهُ رَهْنًا لِهٰذَا وَكُلُّهُ رَهْنًا لِذٰلِكَ فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ ځکه دا محال [او ناممکنه] ده چې په يوه حالت کې يو غلام ټوله د ده لپاره هم رهن سي او د هغه لپاره هم رهن سي وَلَا إِلَى الْقَضَاءِ بِكُلِّهِ لِوَاحِدٍ بِعَيْنِهِ او نه بعينه د يوه لپاره د ټوله غلام د فيصله کولو هيڅ صورت

ستہ لِعَدَمِ الْأَوْلَوِيَّةِ داولیٰ والي د نشتوالي په وجه [چې يو له بل څخه اولیٰ او مقدم نه دی] وَلَا إِلَى الْقَضَاءِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا بِالنِّصْفِ او نه له دوی څخه د هر يوه لپاره د نيم غلام د فيصله کولو هيڅ صورت ستہ لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى الشُّيُوعِ ځکه چې دا فيصله د شيوع سبب ګرځي فَتَعَذَّرَ الْعَمَلُ بِهِمَا نو پر دواړو بيّنو [ګواهيو] عمل کول ناممکن سوه وَتَعَيَّنَ التَّهَاتُرُ او [د بيّنو] ساقطېدل متعيّن سوه.

**اللغات:** ﴿أقام﴾ د افعال د باب ماضي ده: قايمول (درول)، پېشول. ﴿بيّنة﴾ ګواهي، حجت او دليل، جمع: بَيِّنَات. ﴿أَوْلَوِيَّة﴾ اولیٰ والی (اولیٰ کېدل)، غوره والی، او که د الف په ضمه سره سي يعني أُوْلَوِيَّة نو معنیٰ يې ده: اول والی، مخکې والی. ﴿شيوع﴾ د ضرب مصدر دی: اشتراک، شرکت (غيرِ مقسوم شرکت). ﴿تعذر﴾ د تفعل د باب ماضي ده، د دې باب دوې معناوي دي: مشکل کېدل، ناممکن کېدل. ﴿التهاتر﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: ① (بينه) ساقطېدل او بې ځايه کېدل. ② باطله دعویٰ کول يا باطله ګواهي پېشول او له دې کبله ساقطېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که زيد او عُمر جلا، جلا دعویٰ وکړي چې د خالد په قبضه کي چې کوم غلام دی، هغه يې ما ته په رهن راکړی وو او ما قبضه هم پر کړې وه (له دوی دواړو څخه هر يو دا دعویٰ کوي) او هر يو خپله دعویٰ په دوو ګواهانو سره ثابته هم کړي، نو اوس څه حکم دی؟، د دې مختلفه صورتونه دي:

① ... يو صورت دا دی چې که هغه غلام د يوه مدعي (يعني د زيد يا خالد) په قبضه کي وي، نو د هغه لپاره به فيصله کيږي؛ ځکه قبضه د ملکيت او استحقاق تر ټولو واضح دليل دی.

② ... دويم صورت دا دی که په يو دليل سره معلومه سي چې واقعي خالد دا غلام په رهن ورکړی وو او زيد ته يې اول ورکړی وو، نو په دې صورت کي د اولويت او تقدّم پر بناء به د زيد لپاره د دې غلام فيصله کيږي.

③ ... درېيم صورت (کوم چې په کتاب کي ذکر سوی دی) دا دی چې که غلام د هيڅ مدعي په قبضه کي هم نه وي بلکي د راهن يعني د خالد په قبضه کي وي او د يوه مدعي په حق کي هم د قبضې او د اولويت او تقدّم هيڅ دليل موجود نه وي، لکه څرنګه چې مصنف رَحِمَهُ الله په کتاب کي همدا صورت ذکر کړی دی، نو په داسي صورت کي د دوی دواړو دعویٰ او ګواهي باطليږي او قاضي به د

يوه لپاره هم د رهن او غلام فيصله نه کوي؛ ځکه چې په احتمالي توګه دلته د فيصلې کولو (قضاء) درې صورتونه جوړېدلای سي چې هغه درې سره باطل دي:

①... يو صورت دا دی چې د هر مدعي لپاره د ټوله غلام فيصله وسي، دا باطل او محال دي؛ ځکه يو غلام په يوه وخت کي د دواړو په قبضه کي کېدل محال او نا ممکن دي.

②... په دوی کي د يوه مدعي لپاره د ټوله غلام فيصله وسي، دا صورت هم باطل دی؛ ځکه چې د اوليت او تقدّم د نشتوالي په وجه د يوه لپاره فيصله کول ترجيح بلا مرجح ده کوم چې باطله ده، نو ځکه دا صورت هم باطل دی.

③... دريم صورت دا دی چې د هر يوه لپاره د نيم غلام فيصله وسي او هر يوه ته په نيم غلام کي حق ورکول سي، دا صورت هم باطل دی؛ ځکه په داسي کولو سره په مرهون غلام کي شيوع لازميږي، او مخکي ذکر سوه چې شيوع د رهن د جواز لپاره مانع دی. کله چې دا درې سره صورتونه باطل دي، نو ځکه موږ وويل چې اوس د فيصلې لپاره فقط يوه لاره پاته سوه چې هغه تهاتر دی يعني د دعوو او ګواهيو تساقط او پرېښوول (ځکه چې پر دواړو عمل کول ناممکن دي). لهذا کله چې په دريم په صورت کي (کوم چې په کتاب کي مذکوره دی) تساقط او ترک متعيّن سو. نو ځکه هغه صورت باطل دی.

## د مذکوره دعوو د صحيح ګرځولو سوال

وَلَا يُقَالُ: أَنَّهُ يَكُونُ رَهْنًا لَهُمَا او داسي دي نه ويل کيږي: چې دا غلام د دوی دواړو لپاره رهن کيږي كَأَنَّهُمَا ارْتَهَنَاهُ مَعًا ګواکي دواړو يو ځای هغه په رهن اخيستی دی إِذْ جُهِلَ التَّارِيخُ بَيْنَهُمَا ځکه د دواړو بېنو [ګواهيو] ترمينځ تاريخ مجهول دی وَجَعَلَ فِي كِتَابِ الشَّهَادَاتِ هٰذَا وَجْهَ الِاسْتِحْسَانِ او امام محمد رَحِمَهُ الله [د مبسوط] په کتابُ الشهادات کي دا د استحسان دليل ګرځولی دی [خو بيا هم دا پورتنی سوال دي نه کيږي] لِأَنَّا نَقُولُ: هٰذَا عَمَلٌ عَلَى خِلَافِ مَا اقْتَضَتْهُ الْحُجَّةُ ځکه چې موږ [په جواب کي] وايو: چې دا [غلام د دواړو لپاره رهن کېدل] داسي عمل دی کوم چې د حجت [بېنې] د تقاضا خلاف دی لِأَنَّ كُلًّا مِنْهُمَا أَثْبَتَ بِبَيِّنَتِهِ حَبْسًا يَكُونُ وَسِيلَةً إِلَى مِثْلِهِ فِي الِاسْتِيفَاءِ ځکه چې له دوی دواړو څخه هر يوه په خپل بېنه سره [د ځان لپاره د غلام] داسي حبس ثابت کړی دی کوم چې په حق ترلاسه کولو کي د هغه د حبس په څېر [بشپړ] حبس ته وسيله وي [په لنډه وينا دا چې په دوی کي هر

يوه د ځان لپاره د پوره غلام محبوس کېدل ثابت کړي دي] وَبِهٰذَا الْقَضَاءِ يَثْبُتُ حَبْسٌ يَكُوْنُ وَسِيْلَةً إِلٰى شَطْرِهٖ فِي الِاسْتِيْفَاءِ او په دغه فيصله [چي غلام د دواړو لپاره رهن کيږي] سره داسي حبس ثابتيږي کوم چي په حق ترلاسه کولو کي د هغه نصف ته وسيله ده وَلَيْسَ هٰذَا عَمَلًا عَلٰى وَفْقِ الْحُجَّةِ او دا د حجت [بيِّنې] موافق عمل نه دي وَمَا ذَكَرْنَاهُ وَإِنْ كَانَ قِيَاسًا او څه چي موږ ذکر کړي دي که څه هم هغه قياس دي لٰكِنَّ مُحَمَّدًا أَخَذَ بِهٖ لېکن [بيا هم] امام محمد رَحِمَهُ الله هغه [يعني قياس] اختيار کړی دی لِقُوَّتِهٖ ځکه چي هغه قوي دی.

**اللغات:** ﴿إِرْتَهَنَا﴾ د افتعال له بابه د تثنيه غائب ماضي صيغه ده: په رهن اخيستل (د رهن په توګه اخيستل)، ﴿اقتضته﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: تقاضا کول (غوښتل)، دلالت کول، ﴿شطر﴾ حصه (ټوټه)، جزء.

**تشريح:** په دې عبارت کي د مخکنۍ مسئلې په هکله يو سوال او جواب پېش کړل سوي دي، سوال دا دی چي دا خو ممکنه ده چي د هر مدعي (زيد او عُمر) لپاره د نيم غلام فيصله وسي او د دواړو تر مينځ غلام نيم په نيمه وګرځول سي؛ ځکه چي په تاريخ کي جهالت دی، لهذا داسي به ګڼل کيږي چي دواړو يو ځای دا غلام په رهن اخيستی وو، لکه يو څو خلک چي يو ځای په اُوبو کي غرق سي يا په اُور کي وسوځل سي يا له ور ځای څخه را ولوېږي او مړه سي او د يوه د مرګ تقدّم او تأخر معلوم نه سي، نو داسي ګڼل کيږي چي ټوله يو ځای مړه سوي دي، نو همداسي به دلته رهن هم يو ځای ګڼل کيږي چي دواړو يو ځای هغه غلام په رهن اخيستی وو؟.

د جواب حاصل دا دی چي که داسي وسي، نو د هر يوه د بيِّنې د تقاضا په خلاف به عمل وسي؛ ځکه د هر يوه له طرفه د بيِّنې پېشولو مقصد دا دی چي هم هاغه د ټوله غلام مستحق دی او دلته صرف په نيم غلام کي د هغه استحقاق ثابتيږي، او د حجت (بيِّنې) د مقتضا په خلاف عمل کول صحيح نه دي؛ ځکه کله چي پر حجت يو فيصله کيږي، هغه به د حجت مطابق او موافق وي، نو ځکه د هر يوه لپاره د نيم غلام فيصله نه سي کېدلای.

حبسًا يكون إلخ: د مصنف رَحِمَهُ الله د دې عبارت "حبسًا يكون..." مطلب دا دی چي د دواړو مدعيانو مقصد د پوره او بشپړ غلام رهن د خپل ځان سره ثابتول دي (يعني چي راهن پوره غلام ما ته په رهن راکړی

دی)، نو په مذکوره صورت کي د هر يوه د دعوې په خلاف فيصله کول لازميږي. حاصل دا چي له مِثلهٖ څخه تَمامهٖ مراد کړل سي نو اوس مطلب دا سو: إلیٰ استيفاء تمام حقهٖ.

وما ذكرناه إلخ: د دې حاصل دا دی چي مذکوره فيصله نه کول قياس دی او استحسان دا دی چي د هر يو لپاره دي د نيم غلام فيصله وسي يعني هغه غلام دي د دواړو تر مينځ نيم په نيمه وګرځول سي، او دا مذکوره دليل (کوم چي په سوال کي ذکر سو) امام محمد رَحِمَهُ الله د مبسوط په کتابُ الشهادات کي د استحسان دليل ذکر کړی دی، خو په دې مسئله کي امام محمد رَحِمَهُ الله استحسان پرې ايښی دی او په قياس يې عمل کړی دی؛ ځکه چي د دلائلو په اعتبار سره قياس دلته له استحسان څخه قوي او مضبوط دی، کنې عموماً استحسان ته پر قياس ترجيح ورکول کيږي. خو اُووه ځايونه داسې دي چي هلته قياس پر استحسان مخکي کول کيږي. نور هر ځای د دې برعکس کيږي.

## د پورتني معلق رهن د هلاکېدلو حکم

وَإِذَا وَقَعَ بَاطِلًا او کله چي رهن باطل واقع سو فَلَوْ هَلَكَ نو بيا که هغه هلاک سو يَهْلِكُ أَمَانَةً نو د امانت په توګه هلاکيږي لِأَنَّ الْبَاطِلَ لَا حُكْمَ لَهُ ځکه چي باطل لره هيڅ حکم نسته.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که غلام له دواړو مدعيانو څخه د يوه مدعي (زيد يا عُمر) په قبضه کي وي، خو د اولويت لو تقدّم د نشتوالي په وجه د يوه په حق کي فيصله کول ناممکن وي (لکه څرنګه چي دا دريم صورت وو) او په همدې حالت کي دا غلام د هغه په قبضه کي مړ سي، نو څرنګه چي په دې صورت کي رهن باطل دی او باطل لره هيڅ حکم نه وي، نو ځکه دا د امانت هلاکت شمېرل کيږي (چي ګواکي د هغه په قبضه کي د امانت غلام هلاک سوی دی). او ښکاره ده چي که د امانت شی د مودَع په قبضه کي هلاک سي او د هغه په هلاکېدلو کي د مودَع لاس نه وي. نو پر هغه هيڅ ضمان (تاوان) نسته، نو ځکه په دغه مسئله کي به هم پر مذکوره مدعي هيڅ ضمان نه واجبيږي. (احسن الهدايه)

## د راهن د مرګ په صورت کي څه حکم دی؟

قَالَ: وَلَوْ مَاتَ الرَّاهِنُ وَالْعَبْدُ فِي أَيْدِيهِمَا فرمايي: او که چيري راهن مړ سي او غلام د دوی دواړو [مدعيانو] په قبضه کي وي فَأَقَامَ كُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا الْبَيِّنَةَ عَلَى مَا وَصَفْنَا بيا له دوی دواړو څخه هر يو زموږ د ذکر سوي طريقې مطابق بيّنه پېش کړي كَانَ فِي يَدِ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا نِصْفُهُ رَهْنًا نو د غلام نصف [نيمه حصه] له دوی څخه د هر يوه په قبضه کي رهن دی يَبِيعُهُ بِحَقِّهِ اِسْتِحْسَانًا چي هغه

په خپل حق کښې خرڅولای سي وَهُوَقَوْلُ أَبِيْ حَنِيْفَةَ وَمُحَمَّدٍ او همدا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی وَفِي الْقِيَاسِ هٰذَا بَاطِلٌ او په قياس کې دا باطل دی وَهُوَقَوْلُ أَبِيْ يُوْسُفَ او همدا د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دی لِأَنَّ الْحَبْسَ لِلِاسْتِيْفَاءِ حُكْمٌ أَصْلِيٌّ لِعَقْدِ الرَّهْنِ ځکه چې د استيفاء [حق ترلاسه کولو] لپاره حبس [مرهون راګرځول] د دعقد رهن اصلي حکم دی فَيَكُوْنُ الْقَضَاءُ بِهٖ قَضَاءً بِعَقْدِ الرَّهْنِ نو د استيفاء لپاره د حبس فيصله به د عقد رهن فيصله وي وَأَنَّهُ بَاطِلٌ لِلشُّيُوْعِ او د عقد رهن فيصله د شيوع په وجه باطله ده كَمَا فِيْ حَالَةِ الْحَيَاةِ لکه څرنګه چې د ژوند په حالت کې دي [يعني لکه د راهن د ژوند په حالت کې چې باطله ده].

**اللغات:** ﴿وصفنا﴾ د ضرب له بابه د جمع متکلم ماضي صيغه ده: ستايل، نقلول او ذکر کول. ﴿حبس﴾ د ضرب مصدر دی: بندول او منع کول، راګرځول. ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: (حق) ترلاسه کول، پوره اخيستل. ﴿شيوع﴾ اشتراک او شرکت (غير مقسوم [نا تقسيم شده] شرکت).

**تشريح:** مخکې چې کوم حکم بيان سو، دا په هغه صورت کې دی کله چې راهن (خالد) ژوندی وي، او که چيرې راهن مړ سي او غلام د دواړو مدعيانو (زيد او عمر) په قبضه کې وي، نو قاضي به دا فيصله کوي چې غلام د دوی دواړو لپاره نيم په نيمه رهن دی چې دوی هغه په خپل حق کې خرڅولای سي، خو دا د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی او د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله قول دلته هم هغه دی چې دا فيصله به نه کيږي.

خلاصه د خبرې دا چې په مخکنۍ مسئله کې بالاتفاق پر قياس عمل سوی دی او په دې مسئله کې طرفينو پر استحسان او امام ابو يوسف پر قياس عمل کړی دی.

د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې لکه څرنګه په مخکنۍ مسئله کې په دې صورت کې شيوع لازميدی، هغه اوس هم لازميږي کوم چې د راهن په ژوند او مرګ سره نه متفرق کيږي: ځکه چې د رهن حکم خو په هر صورت کې همدا دی چې د حق ترلاسه کولو لپاره به مرهون د مرتهن سره محبوس پاتيږي، او شيوع د رهن د جواز مانع دی.

## د استحسان او طرفينو دليل دی

وَجْهُ الِاسْتِحْسَانِ أَنَّ الْعَقْدَ لَا يُرَادُ لِذَاتِهِ د استحسان دليل دا دی چې عقد رهن بذات خود مقصود نه وي وَإِنَّمَا يُرَادُ لِحُكْمِهِ بلکې د هغه حکم مقصود وي وَحُكْمُهُ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ الْحَبْسُ او د رهن حکم حبس دی د راهن د ژوند په حالت کې وَالشُّيُوعُ يَضُرُّهُ او شيوع حبس لره مُضر دی وَبَعْدَ الْمَمَاتِ الِاسْتِيفَاءُ بِالْبَيْعِ فِي الدَّيْنِ او د راهن تر مرګ وروسته [د رهن حکم] د بيع [يعني د مرهون د خرڅولو] په ذريعه قرض ترلاسه کول دي وَالشُّيُوعُ لَا يَضُرُّهُ او شيوع بيع لره مُضر نه دی وَصَارَ كَمَا إِذَا ادَّعَى الرَّجُلَانِ نِكَاحَ امْرَأَةٍ او دا داسې سوه لکه دوه کسان چې د يوې ښځې سره د نکاح دعوىٰ وکړي أَوِ ادَّعَتْ أُخْتَانِ النِّكَاحَ عَلَى رَجُلٍ يا دوې خوندې پر يوه سړي د نکاح دعوىٰ وکړي وَأَقَامُوا الْبَيِّنَةَ او دوی تول بيّنه [ګواهي] پېش کړي تَهَاتَرَتْ فِي حَالَةِ الْحَيَاةِ نو د ژوند په حالت کې دا بيّنې [ګواهيانې] ساقطيږي وَيُقْضَى بِالْمِيرَاثِ بَيْنَهُمْ بَعْدَ الْمَمَاتِ او تر مرګ وروسته به د دوی تر مينځ د ميراث فيصله کول کيږي لِأَنَّهُ يَقْبَلُ الِانْقِسَامَ ځکه چې ميراث تقسيم قبلوي.

**اللغات:** ﴿لا يراد﴾ د افعال له بابه د نفي مجهول صيغه ده: مراد کېدل، مقصود کېدل. ﴿ممات﴾ د ضرب د باب مصدر ميمي دی: مرګ، مړينه. ﴿تهاترت﴾ د تفاعل له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: ساقطېدل او ختمېدل.

**تشريح:** په دې عبارت کې د استحسان (کوم چې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله قول دی) دليل بيان سوی دی. حاصل يې دا دی چې په عقد رهن سره محض د الفاظو ايجاب او قبول مقصود نه وي بلکې حکم يې مقصود وي، او کله چې په مرګ او ژوند کې د رهن حکم مختلف دی، نو خامخا به په دغه حالتونو کې د رهن فيصله هم مختلفه وي؛ ځکه د راهن په ژوند کې د رهن حکم او مقصد دا دی چې مرتهن د خپل حق (قرض) ترلاسه کولو په غرض سره مرهون د ځان سره محبوس ساتي او د راهن تر مرګ وروسته د رهن حکم دا دی چې مرهون خرڅ کړي او قرض په اداء کړی سي، نو په اول صورت کې (يعني د راهن د ژوند په حالت کې) کې شيوع مُضر دی، نو ځکه موږ هغه باطل ګرځولی دی او په دويم صورت کې (يعني د راهن تر مرګ وروسته) شيوع مُضر نه دی، ځکه چې د راهن تر مرګ وروسته د رهن حکم له استيفاء څخه په بيع بدليږي او د بيع لپاره شيوع مضر نه ده، نو ځکه موږ دا صورت جائز

ګرځولی دی چې د دواړو لپاره به د نیم، نیم غلام فیصله کول کیږي چې هر یو د هغه نیمه حصه په خپل حق کې خرڅولای سي.

**وصار كما إلخ**: د پورتنۍ خبري (یعني چې د ژوند او مرګ په حالت کې فرق سته) د تائید لپاره یو مثال پېښوي، چې که زید او عُمر دعویٰ وکړي چې موږ د زینب سره نکاح کړې ده (یعني هر یو وواېي چې ما د زینب سره نکاح کړې ده) او زینب د دوی یوه په قبضه او کور کې نه وي، بیا دوی هر یو پر خپله دعویٰ ګواهي هم پېشه کړي او زینب ژوندۍ وي، نو په دې صورت کې د دوی دعویٰ او ګواهي غیر معتبره ده او قاضي به فیصله نه کوي؛ ځکه د دوی دواړو مقصد دا دی چې زینب زموږ دواړو لپاره حلاله ده او په حلت کې د شیوع او شرکت احتمال نسته (یعني یوه ښځه په یوه وخت کې د دوو خلګو زوجه [مانه] کېدل محال او ناممکن دي)، نو ځکه د ژوند په حالت کې شیوع د هغې د زوجیت لپاره مضر دي.

لېکن که همدا صورت د زینب تر مرګ وروسته واقع سي. نو د دواړو دعویٰ او ګواهي معتبره ده؛ ځکه چې اوس د دواړو مقصود مال (میراث) ترلاسه کول دی چې په هغه کې د شیوع احتمال نسته؛ ځکه چې د میراث لپاره شیوع مُضر نه دی، لهذا تر مرګ وروسته په دې صورت کې دوی هر یوه ته د ښځې نیم میراث حاصلیږي یعني د یوې ښځې په حصه کې چې څومره میراث راسي، د هغې نیمه حصه به یوه ته ور کول کیږي او نیمه به بل ته ور کول کیږي.

او بل مثال یې دا دی چې که دوې سکه خوندي دعویٰ وکړي چې فلانـي سړي مثلاً حامد زموږ سره نکاح کړې ده، نو د مذکوره دلیل په وجه د حامد په ژوند کې د دوی دعویٰ او ګواهي نا معتبره ده او د حامد تر مرګ وروسته صحیح ده او هري خور ته د ښځې نیم میراث حاصلیږي (ځکه چې د حامد تر مرګ وروسته حکم د میراث وطرف ته منتقل کیږي او د میراث لپاره شیوع مُضر نه دی. او د حامد د ژوند په حالت کې حکم او مقصد حلت دی او شیوع د هغه لپاره مضر دی، ځکه چې د یوه کس لپاره د دوو خوندو حلال کېدلو ممنوع او محال دي).

نو خاص همداسي په پورتنۍ مسئله کې هم د راهن د ژوند په حالت کې د رهن د حکم یعني د: "حبس" لپاره شیوع مُضر دی، نو په هغه حالت کې قضاء بالنصف باطله ده، خو تر مرګ وروسته دا حکم د "بیع" وطرف ته منتقل کیږي او د بیع لپاره شیوع مُضر نه دی، نو ځکه په دې حالت کې به د هر یوه لپاره د نصف فیصله کیږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم

❀❀❀

# بَابُ الرَّهْنِ الَّذِيْ يُوْضَعُ عَلٰى يَدِ الْعَدْلِ

دا باب د هغه رهن په بیان کي دی کوم چي د عادل پر لاس ایښودل کیږي

**تشریح**: مخکي تر دې صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د مرتهن سره د رهن ایښودلو احکام او مسائل بیان کړي دي؛ ځکه چي د مرتهن سره رهن ایښودل اصل دي، اوس په دې باب کي د عادل کس سره د رهن ایښودلو احکام او مسائل بیانوي (یعني چي راهن د مرتهن پر ځای بل عادل کس ته خپل شی په رهن کښېږدي) او عادل کس د ځان سره د مرهون په ایښودلو کي د مرتهن نائب وي، او ښکاره ده چي د نائب درجه تر اصل وروسته ده، نو ځکه اول یې د اصل یعني د مرتهن سره اړوند احکام او مسائل بیان کړي دي، او اوس د نائب د احکامو د بیان نوبت دی.

**له مرتهن څخه بغیر د بل عادل کس سره د رهن ایښودلو حکم او د فقهاؤ قولونه**

قَالَ: وَإِذَا اتَّفَقَا عَلٰى وَضْعِ الرَّهْنِ عَلٰى يَدِ الْعَدْلِ فرمایي: او کله چي دوی [راهن او مرتهن] دواړه د عادل پر لاس [یعني د عادل انسان سره] د رهن پر ایښودلو اتفاق وکړي جَازَ نو جائز دي وَقَالَ مَالِكٌ: لَا يَجُوْزُ او امام مالک رَحِمَهُ الله فرمایي: چي جائز نه دي ذُكِرَ قَوْلُهُ فِيْ بَعْضِ النُّسَخِ د امام مالک رَحِمَهُ الله قول په بعضي نسخو کي ذکر سوی دی لِأَنَّ يَدَ الْعَدْلِ يَدُ الْمَالِكِ ځکه چي د عادل قبضه د مالک قبضه ده وَلِهٰذَا يَرْجِعُ الْعَدْلُ عَلَيْهِ عِنْدَ الِاسْتِحْقَاقِ په همدې وجه د استحقاق په وخت کي عادل پر راهن رجوع کوي فَانْعَدَمَ الْقَبْضُ نو د مرتهن قبضه معلومه سوه وَلَنَا: أَنَّ يَدَهُ عَلَى الصُّوْرَةِ يَدُ الْمَالِكِ فِي الْحِفْظِ او زموږ دلیل دا دی: چي د مرهون شي پر صورت [ذات] د عادل قبضه د مالک قبضه ده د حفاظت په حق کي إِذِ الْعَيْنُ أَمَانَةٌ ځکه چي [د مرهون] ذات امانت دی وَفِيْ حَقِّ الْمَالِيَّةِ يَدُ الْمُرْتَهِنِ او د مالیت په حق کي [د عادل قبضه] د مرتهن قبضه ده لِأَنَّ يَدَهُ يَدُ ضَمَانٍ ځکه چي د مرتهن قبضه د ضمان قبضه وي [چي که مرهون د هغه په قبضه کي هلاک سي نو ضمان یې پر لازم دی] وَالْمَضْمُوْنُ هُوَ الْمَالِيَّةُ او مضمون همدا [د مرهون] مالیت وي فَنُزِّلَ مَنْزِلَةَ الشَّخْصَيْنِ تَحْقِيْقًا لِمَا قَصَدَاهُ مِنَ الرَّهْنِ نو ځکه راهن او مرتهن چي په رهن سره کوم قصد کړی دی د هغه د ثابتولو لپاره

به عادل کس د دوو کسانو په منزله ګرځول کیږي وَإِنَّمَا يَرْجِعُ الْعَدْلُ عَلَى الْمَالِكِ فِي الْاِسْتِحْقَاقِ او عادل د استحقاق په صورت کي پر مالک ځکه رجوع کوي لِأَنَّهُ نَائِبٌ عَنْهُ فِي حِفْظِ الْعَيْنِ كَالْمُودَعِ ځکه چي د عين مرهون په حفاظت کولو کي هغه د مالک نائب دی لکه مودَع.

**اللغات:** ﴿مالية﴾ مال والی (مال کېدل)، قیمت، ﴿نُـزِّل﴾ د تفعیل له بابه د ماضي مجهولي صیغه ده: نازلول، شوه کول، یو شی د بل شي په درجه ګرځول، قائم مقام کول. ﴿مودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چي امانت اېښودل سوی وي، امین (امانت ساتونکی).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که راهن وغواړي چي رهن (مرهون شی) د عادل کس سره کښېږدي او د مرتهن هم ورسره خوښه سي او دواړه پر دې متفق سي، نو دا جائز دي، خو د امام مالک رَحِمَهُ الله په نېز جائز نه دي (د امام مالک رَحِمَهُ الله دا قول خو یا د قدوري په بعضي نسخو کي مذکوره دی یا د اکابرو په بعضي کتابو کي مذکوره دی، په "بعض النسخ" کي د دواړو احتمال سته)؛ د امام مالک رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي د رهن د جواز لپاره دا ضروري ده چي پر هغه به مرتهن قبضه کوي، او دلته د مرتهن قبضه نسته بلکي د عادل قبضه سته کوم چي د راهن د قبضې قائم مقام ده؛ او پر دې خبره چي د عادل قبضه د راهن د قبضې نائب ده د امام مالک رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي که مرهون شی د عادل سره هلاک سي او تر دې وروسته یو څوک په هغه مرهون شي کي خپل استحقاق ثابت کړي او له عادل څخه تاوان واخلي، نو عادل به هغه تاوان له راهن څخه اخلي، نو له راهن څخه تاوان اخیستل د دې خبري دلیل دی چي عادل په قبضه کي د همدې راهن نائب او وکیل وو، کنې که چیري هغه په قبضه کي د مرتهن نائب وای نو هغه به تاوان له مرتهن څخه اخیستلای، لنډه دا چي د مرتهن قبضه معدومه ده، نو ځکه رهن به جائز نه وي، دا د امام مالک رَحِمَهُ الله د قول دلیل سو.

زموږ دلیل دا دی چي کله د راهن او مرتهن په اتفاق سره مرهون شی عادل ته اېښودل سوی دی، نو ښکاره خبره ده چي دا عادل کس چي څرنګه د راهن نائب دی، همداسي به د مرتهن هم نائب وي، او کله چي هغه د دواړو نائب دی او د دواړو نیابت کوي، نو پر مرهون شي به د هغه قبضه د راهن او مرتهن دواړو قبضه شمېرل کیږي، خو فرق یې دا دی چي د مرهون شي عَين (ذات) به امانت وي، ځکه د مرهون شي دوه اړخونه دي یو د هغه ذات او بل د هغه مالیت، نو د مرهون شي د حفاظت په حق کي به د مرهون شي پر ذات او صورت د عادل قبضه د مالک قبضه شمېرل کیږي او د مالیت په حق کي به د عادل قبضه د مرتهن قبضه شمېرل کیږي، او څرنګه چي د مرتهن قبضه د ضمان قبضه وي نو

همداسي به د عادل قبضه هم د ضمان قبضه وي؛ ځکه چي د مرهون شي ماليت مضمون وي. نه ذات او صورت. نو د دې لپاره چي د عادل قبضه د راهن او مرتهن دواړو قبضه ثابته کړل سي عادل به د دوو کسانو په منزله ګرځول کيږي د دې لپاره چي عادل ته په رهن ايښودلو سره د راهن او مرتهن دواړو مقصد حاصل سي يعني چي مرتهن د هغه په ذريعه خپل قرض ترلاسه کړی سي او د راهن خپل شی د عادل سره صحيح سلامت محفوظ او خوندي وي.

وإنما يرجع إلخ: د دې حاصل دا دی چي په ښکاره خو په دې مسئله کي عادل ته پکار دي چي له مرتهن څخه تاوان واخلي، ليکن موږ چي کومه فيصله کړې ده چي عادل به له راهن څخه تاوان اخلي د هغه وجه دا ده چي عادل کس د مرهون شي په عين او ذات کي د راهن نائب دی او د هغه حيثيت د مودَع په څېر دی. د مودَع مثال دا دی چي که زيد خالد ته خپل يو شی په امانت کښېږدي او د خالد سره هغه شی هلاک سي، بيا يو بل څوک په هغه امانت شي کي خپل استحقاق ثابت کړي او له خالد (مودَع) څخه د هغه تاوان واخلي، نو خالد به هغه تاوان له زيد څخه اخلي؛ ځکه چي مودَع يعني خالد د حفاظت په حق کي د مالک (زيد) نائب وو، نو همداسي په دې مسئله کي هم عادل کس د حفاظت په حق کي د مالک يعني د راهن نائب دی، نو ځکه د استحقاق په صورت کي چي کله عادل کس تاوان اداء کړي، نو هغه تاوان به له مالک يعني له راهن څخه اخلي، نه له مرتهن څخه. (احسن الهدايه)

## له عادل کس څخه د رهن اخيستلو حکم

قَالَ: وَلَيْسَ لِلْمُرْتَهِنِ وَلَا لِلرَّاهِنِ أَنْ يَأْخُذَهُ مِنْهُ فرمايي: او مرتهن او راهن ته دا حق نسته چي مرهون شی له عادل څخه واخلي لِتَعَلُّقِ حَقِّ الرَّاهِنِ فِي الْحِفْظِ بِيَدِهِ وَأَمَانَتِهِ ځکه چي [د رهن سره] د راهن حق متعلق دی [د مرهون] په حفاظت کولو کي د عادل کس په قبضه او امانت سره [يعني د عادل کس په قبضه او امانت سره د مرهون شي په حفاظت کولو کي د راهن حق د رهن سره متعلق دی] وَتَعَلُّقِ حَقِّ الْمُرْتَهِنِ بِهِ اِسْتِيفَاءً او [ځکه چي] د استيفاء [حق ترلاسه کولو] په اعتبار سره د مرتهن حق د رهن سره متعلق دی فَلَا يَمْلِكُ أَحَدُهُمَا إِبْطَالَ حَقِّ الْآخَرِ نو ځکه دوی يو د بل د حق باطلولو ملکيت [اختيار] نه لري فَلَوْ هَلَكَ فِي يَدِهِ بيا که مرهون شی د عادل په قبضه کي هلاک سي هَلَكَ فِي ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ نو د مرتهن په ضمان کي هلاکيږي لِأَنَّ يَدَهُ فِي حَقِّ الْمَالِيَّةِ يَدُ الْمُرْتَهِنِ ځکه چي د ماليت په هکله د عادل کس قبضه د مرتهن قبضه ده وَهِيَ الْمَضْمُونَةُ او همدا ماليت مضمون وي.

**اللغات**: ﴿مالية﴾ مال والی، قيمت.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چې هغه مرهون شی کوم چې د راهن او مرتهن دواړو په اتفاق سره عادل کس ته ايښودل سوی وي، څرنګه چې په هغه کې د راهن او مرتهن داواړو حق دی (چې د راهن حق د عين او ذات په اعتبار سره دی او د مرتهن حق د ماليت په اعتبار سره دی)، نو ځکه دوی يوه ته دا حق نسته چې د بل حق باطل کړي. لهذا کله چې داسې ده نو بيا يوه ته دا حق هم نسته چې مرهون له عادل څخه واخلي.

بيا که دا مرهون د عادل سره هلاک سي، نو د مرتهن په ضمان کې هلاکيږي او د مرتهن له مال څخه هلاک شمېرل کيږي او د مخکينې تفصيل مطابق قرض ساقطيږي؛ ځکه چې د مرهون شي د ماليت په هکله د عادل کس قبضه د ضمان قبضه وي. ځکه چې د عادل قبضه د ماليت په اعتبار سره د مرتهن قبضه وي، او څرنګه چې د رهن په باب کې همدا ماليت مضمون وي (يعني د مرهون شي ضمان دِ ماليت په اعتبار سره لازميږي)؛ نو ځکه د مرهون شي هلاکت به د مرتهن په ضمان کې شمېرل کيږي او راهن به د هغه له قرض څخه بري کيږي.

## که مذکوره رهن ضايع سي نو څه حکم دی؟

> وَلَوْ دَفَعَ الْعَدْلُ إِلَى الرَّاهِنِ أَوِ الْمُرْتَهِنِ او که عادل کس [مرهون شی] راهن يا مرتهن ته ورکړي ضَمِنَ نو عادل ضامن کيږي لِأَنَّهُ مُوْدَعُ الرَّاهِنِ فِي حَقِّ الْعَيْنِ ځکه عادل چې کس [د مرهون شي] د ذات په حق کې د راهن مودَع [او امين] دی وَمُوْدَعُ الْمُرْتَهِنِ فِي حَقِّ الْمَالِيَةِ او د ماليت په حق د مرتهن مودَع دی وَأَحَدُهُمَا أَجْنَبِيٌّ عَنِ الْآخَرِ او د دوی يو له بل څخه اجنبي دی وَالْمُوْدَعُ يَضْمَنُ بِالدَّفْعِ إِلَى الْأَجْنَبِيِّ او مودَع کس اجنبي ته په ورکولو سره ضامن کيږي.

**تشريح:** مخکينی حکم (چې مرهون د مرتهن په ضمان کې هلاکيږي) هغه وخت دی کله چې د مرهون په هلاکت او ضايع کېدلو کې د عادل لاس نه وي، لېکن که د مرهون په هلاکت کې د عادل لاس وي او د هغه له طرفه تعدي واقع سي په دې توګه چې هغه خپله راهن يا مرتهن مرهون شی ورکړي او بيا دا شی د هغه په قبضه کې هلاک سي، نو اوس هغه د مرتهن په ضمان کې نه هلاکيږي، بلکې د هغه ضمان پر عادل کس دی؛ ځکه چې د مرهون د ذات په حق کې عادل کس د راهن مودَع او امين (امانت ساتونکی) دی او د مرهون د ماليت په حق کې د مرتهن امين دی، او راهن او مرتهن يو د بل په حق کې اجنبي دی او حکم دا دی چې امين (مودَع) که يو اجنبي سړي ته د امانت شی ورکړي او دا شی د هغه سره هلاک او ضايع سي، نو پر امين ضمان لازميږي، نو ځکه په دې مسئله کې به پر عادل کوم چې امين (مودَع) دی ضمان لازميږي او مرهون شی چې د چا سره هلاک سوی دی پر هغه به ضمان نه وي. (احسن الهدايه)

## د رهن د ضمان قيمت عادل کس د ځان سره ايښوولای سي که نه ؟ (حکم او تفصيل)

وَإِذَا ضَمِنَ الْعَدْلُ قِيْمَةَ الرَّهْنِ بَعْدَ مَا دَفَعَ إِلَى أَحَدِهِمَا او کله چي عادل کس ضامن سي د رهن [مرهون] د قيمت وروسته تر دې چي د دوی [راهن او مرتهن] يوه ته مرهون ورکړي [يعني کله چي راهن يا مرتهن ته د مرهون شي د ورکولو او هلاکېدلو په وجه عادل کس د هغه د قيمت ضامن سي] وَقَدِ اسْتَهْلَكَهُ الْمَدْفُوْعُ إِلَيْهِ حال دا چي مدفوع اليه [کوم يوه ته چي مرهون ورکول سوی وي هغه] دا مرهون هلاک کړی وي أَوْ هَلَكَ فِيْ يَدِهِ يا د هغه په قبضه کي هلاک [او ضايع] سوی وي لَا يَقْدِرُ أَنْ يَجْعَلَ الْقِيْمَةَ رَهْنًا فِيْ يَدِهِ نو [په دې صورت کي] عادل کس د دې قدرت [او اختيار] نه لري چي دا قيمت په خپل قبضه کي رهن وګرځوي [يعني چي د ځان سره يې په رهن کښېږدي] لِأَنَّهُ يَصِيْرُ قَاضِيًا وَمُقْتَضِيًا ځکه چي [په دې صورت کي] عادل کس به هم اداء کونکی او هم ترلاسه کونکی وګرځي وَبَيْنَهُمَا تَنَافٍ او د دې دواړو تر مينځ منافات دی لٰكِنْ يَتَّفِقَانِ عَلٰى أَنْ يَأْخُذَاهَا مِنْهُ وَيَجْعَلَاهَا رَهْنًا عِنْدَهُ أَوْ عِنْدَ غَيْرِهِ ليکن دا چي دوی پر دې خبره اتفاق وکړي چي دا قيمت له عادل څخه واخلي او د هغه سره يا د بل چا سره يې په رهن کښېږدي وَلَوْ تَعَذَّرَ اجْتِمَاعُهُمَا او که د دوی دواړو [راهن او مرتهن] جمع کېدل مشکل سي يَرْفَعُ أَحَدُهُمَا إِلَى الْقَاضِيْ لِيَفْعَلَ كَذٰلِكَ نو له دوی څخه يو دي قاضي ته دا [فيصله] پېښه کړي چي قاضي همداسي وکړي [أي ليأخذ القيمة من يد العدل بالضمان منه ثم يضعه رهنا عنده].

**اللغات**: ﴿استهلک﴾ د استفعال مضارع ده: هلاکول، تلفول (له منځه وړل)، ﴿قاضي﴾ د ضرب د باب فاعل دی، د دې باب له معناو څخه يوه معنیٰ ده: اداء کول، ورکول نو د دې لفظ معنیٰ ده: ورکونکی، ﴿مقتضي﴾ د افتعال د باب فاعل دی: کله چي د دې باب په صله کي مال، قرض يا بل حق ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: ترلاسه کول، اخيستل، حاصلول، نو د دې لفظ معنیٰ ده: ترلاسه کونکی (اخيستونکی).

﴿مودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چي امانت ايښودل سوی وي، امين (امانت ساتونکی).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که عادل کس راهن يا مرتهن ته مرهون شی ورکړي او د هغه سره هلاک او ضايع سي نو پر عادل کس د هغه د قيمت ضمان واجبېږي، اوس که عادل وغواړي چي دا قيمت د خپل ځان سره په رهن کښېږدي، نو هغه ته د دې حق نسته؛ ځکه په دې صورت کي به هغه هم ضمان ورکونکی او هم ضمان اخيستونکی وي، حال دا چي په ورکولو او اخيستلو کي منافات دی، نو ځکه عادل کس ته خپله د ضمان قيمت د ځان سره ايښوول جائز نه دي، خو که راهن او

مرتهن په ګډه له هغه څخه قيمت واخلي، نو اوس دوی ته اختيار دی چې هغه قيمت د عادل کس سره په رهن اږدي او که د بل چا سره يې اږدي؛ ځکه په دې صورت کې عادل کس ورکونکی او اخيستونکی دواړه نه شمېرل کيږي، نو ځکه دا صورت جائز دی.

او که راهن او مرتهن جلا، جلا او يو له بل څخه ليري اوسيږي او د دواړو جمع کېدل مشکل وي، نو په دې صورت کې حکم دا دی چې له دوی څخه يو دې قاضي ته دا معامله پېش کړي چې قاضي له عادل کس څخه د ضمان قيمت واخلي او بيرته يې د هغه (عادل) يا بل چا سره په رهن کښېږدي. (احسن الهدايه)

**که په مخکيني صورت کې راهن د مرتهن قرض اداء کړي نو قيمت د چا کيږي؟**

| |
|---|
| وَلَوْ فَعَلَ ذٰلِكَ او که قاضي داسي وکړي [يعني له عادل کس څخه قيمت واخلي او د هغه سره يې په رهن کښېږدي] ثُمَّ قَضَى الرَّاهِنُ الدَّيْنَ بيا راهن قرض اداء کړي وَقَدْ ضَمِنَ الْعَدْلُ الْقِيْمَةَ بِالدَّفْعِ إِلَى الرَّاهِنِ حال دا چې عادل کس راهن ته د [مرهون] ورکولو په وجه ضامن سوی وي فَالْقِيْمَةُ سَالِمَةٌ لَهُ نو قيمت د عادل کس لپاره سالم دی [يعني د هغه لپاره سالم او خوندي پاتيږي] لِوُصُوْلِ الْمَرْهُوْنِ إِلَى الرَّاهِنِ وَوُصُوْلِ الدَّيْنِ إِلَى الْمُرْتَهِنِ ځکه چې مرهون راهن ته ورسېدی او قرض مرتهن ته ورسېدی فَلَا يَجْتَمِعُ الْبَدَلُ وَالْمُبْدَلُ فِيْ مِلْكِ وَاحِدٍ نو د يوه کس په ملکيت کې به بدل او مبدل دواړه نه جمع کيږي وَإِنْ كَانَ ضَمِنَهَا بِالدَّفْعِ إِلَى الْمُرْتَهِنِ او که عادل کس مرتهن ته د [مرهون] ورکولو په وجه د قيمت ضامن سوی وي فَالرَّاهِنُ يَأْخُذُ الْقِيْمَةَ مِنْهُ نو راهن به له هغه څخه قيمت اخلي لِأَنَّ الْعَيْنَ لَوْ كَانَتْ قَائِمَةً فِيْ يَدِهِ ځکه که عين مرهون د عادل کس په قبضه کې موجود پاته وای يَأْخُذُهَا إِذَا أَدَّى الدَّيْنَ نو راهن به هغه اخيستلای کله چې يې قرض اداء کړي وای فَكَذٰلِكَ يَأْخُذُ مَا قَامَ مَقَامَهَا نو همداسي به راهن د دې عين مرهون قائم مقام [يعني قيمت] هم اخلي وَلَا جَمْعَ فِيْهِ بَيْنَ الْبَدَلِ وَالْمُبْدَلِ او په دې کې د بدل او مبدل تر مينځ جمع کول نسته. |

**اللغات:** ﴿ضمن﴾ د سمع د باب ماضي ده: ضامن کېدل، ضمان (تاوان) پرې واجبېدل. ﴿سالمة﴾ د سمع د باب فاعل دی: سلامت، خوندي او محفوظ. ﴿مبدل﴾ کوم شی چې د بدل په مقابله کې وي (لکه څرنګه چې مبيع ته هم په دې وجه مبدل ويل کيږي چې هغه د بدل يعني د ثمن په مقابله کې وي. يا په بله وينا دا

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دې چې کله قاضي له عادل کس شخصه په ضمان (تاوان) کې د هلاک سوي مرهون قيمت واخلي او دا قيمت بېرته همدې عادل کس ته په رهن کښېږدي او په دې دوران کې راهن د مرتهن قرض اداء کړي. نو هغه قيمت کوم چې د عادل سره پروت دی، هغه د چا کيږي؟. نو فرمايي چې د دې دوه صورتونه دي:

① ... يو صورت دا دی چې که عادل کس هغه هلاک سوی مرهون شی راهن ته ورکړی وي (او راهن د مرتهن قرض اداء کړي)، نو اوس مسئله ښکاره ده چې دا قيمت نه د راهن کيږي او نه د مرتهن، بلکې د همدې عادل کس حق کيږي؛ ځکه راهن ته خپل حق يعني مرهون شی حاصل سوی دی او مرتهن ته هم خپل حق يعني قرض حاصل سوی دی. لهذا اوس له هر طرف څخه معامله صفا ده. نو ځکه عادل کس ته به هم خپل حق يعني قيمت ورکول کيږي؛ ځکه که دا قيمت له عادل څخه واخيستل سي او راهن ته ورکول سي، نو د راهن په حق کې به مبدل يعني مرهون او بدل يعني د مرهون قيمت دواړه سره جمع سي، حالانکې د يوه کس په ملکيت کې د بدل او مبدل دواړو اجتماع صحيح نه ده.

② ... او که دويم صورت وي يعني عادل هغه هلاک سوی مرهون شی مرتهن ته ورکړی وي (او راهن د مرتهن قرض اداء کړي)، نو په دې صورت کې به دا قيمت له عادل څخه اخيستل کيږي او راهن ته به ورکول کيږي؛ ځکه که اصل يعني مرهون شی هلاک سوی نه وي او عادل هغه مرتهن ته ورکړي نه وي، نو په دې صورت کې هم کله چې راهن قرض اداء کړي نو راهن به له هغه (عادل) څخه خپل مرهون شی اخلي، او څرنګه چې قيمت د اصل (مرهون) قائم مقام دی. نو ځکه د قرض اداء کولو په وخت کې به د هغه قيمت هم راهن له عادل څخه اخلي؛ او څرنګه چې دلته عادل کس مرهون شی مرتهن ته ورکړی دی او د هغه سره هلاک سوی دی چې په دې وجه مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی ګرځېدلی دی نو ځکه اوس دا مذکوره قيمت مرتهن ته نه سي ورکول کېدای. کنې د مرتهن په حق کې به بدل يعني قيمت او مبدل يعني قرض دواړه سره جمع سي او د يوه کس په حق کې د بدل او مبدل دواړو اجتماع صحيح نه ده. ها! څرنګه چې راهن د مرتهن قرض اداء کړی دی. نو ځکه دا قيمت به راهن ته ورکول کيږي او د هغه په حق کې د بدل او مبدل اجتماع نه لازميږي. (احسن الهدايه)

## د رهن (مرهون) د خرڅولو وکيل جوړول (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا وَكَّلَ الرَّاهِنُ الْمُرْتَهِنَ أَوِ الْعَدْلَ أَوْ غَيْرَهُمَا فرمايي: او کله چې راهن وکيل جوړ کړي مرتهن يا عادل کس يا له دوی څخه بغير بل څوک بِبَيْعِ الرَّهْنِ عِنْدَ حُلُوْلِ الدَّيْنِ د مرهون شي د خرڅولو [وکيل يې جوړ کړي] د قرض راتللو په وخت کې [يعني که چيرې راهن د ځان له طرفه مرتهن يا عادل کس يا بل څوک د قرض د وخت راتللو پر مهال د مرهون شي د خرڅولو وکيل جوړ کړي] فَالْوَكَالَةُ جَائِزَةٌ نو دا وکالت

جائز دی لِأَنَّهُ تَوْكِيلٌ بِبَيْعِ مَالِهِ ځکه چي دا د خپل مال د خرڅولو وکيل جوړول دي وَإِنْ شُرِطَتْ فِي عَقْدِ الرَّهْنِ او که وکالت په عقد رهن کي شرط کړی سي فَلَيْسَ لِلرَّاهِنِ أَنْ يَعْزِلَ الْوَكِيلَ نو راهن ته دا حق نسته چي وکيل معزوله کړي وَإِنْ عَزَلَهُ او که چيري راهن هغه معزوله کړي لَمْ يَنْعَزِلْ نو [هم] هغه نه معزوله کيږي لِأَنَّهَا لَمَّا شُرِطَتْ فِي ضِمْنِ عَقْدِ الرَّهْنِ ځکه کله چي د عقد رهن په ضمن کي وکالت شرط کړی سو صَارَ وَصْفًا مِنْ أَوْصَافِهِ وَحَقًّا مِنْ حُقُوقِهِ نو هغه د رهن له وصفونو څخه يو وصف او د رهن له حقونو څخه يو حق وګرځېدی أَلَا تَرَى أَنَّهُ لِزِيَادَةِ الْوَثِيقَةِ آيا ته نه ګوري چي عقد وکالت د مضبوطۍ د زياتوب لپاره کيږي فَيَلْزَمُ بِلُزُومِ أَصْلِهِ نو ځکه عقد وکالت به د خپل اصل [رهن] په لازمېدلو سره لازميږي وَلِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْمُرْتَهِنِ او ځکه چي د عقد وکالت سره د مرتهن حق متعلق سو وَفِي الْعَزْلِ إِتْوَاءُ حَقِّهِ او په معزوله کولو کي د هغه د حق ضايع کول ستره وَصَارَ كَالْوَكِيلِ بِالْخُصُومَةِ بِطَلَبِ الْمُدَّعِي او دا داسي سو لکه د مدعي په طلب [مطالبه] سره د خصومت وکيل جوړول.

**اللغات:** ﴿وكّل﴾ د تفعيل ماضي ده: (يو څوک) وکيل جوړول. د ځان وکيل کول (د ځان نائب جوړول). ﴿حلول﴾ د ضرب مصدر دی: راتلل، حلول کول. ﴿يعزل﴾ د ضرب مضارع ده: معزوله کو، برطرفه کول، له يو منصبه ليري کول. ﴿وثيقة﴾ مضبوطي (مضبوطتيا)، په کوم څه سره چي بل څه مضبوط او ټينګيږي، د کوم څه په ذريعه چي معامله مظبوطه سي او عاقدين يو پر بل اعتماد وکړي، سند او دستاويز. ﴿اتواء﴾ د افعال د باب مصدر دی: بربادول، هلاکول او ضايع کول. ﴿خصومة﴾ دعویٰ (دعوه) کول. (خصومت په اصل کي دې ته وايي چي يو سړی پر بل چا د حق دعویٰ کوي او دا بل څوک له هغه څخه انکار کوي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که راهن د خپل ځان له طرفه مرتهن يا عادل کس د دې وکيل جوړ کړي چي کله زما د قرض وخت پوره سي نو زما مرهون شی خرڅ کړه او قرض په اداء کړه!، نو د راهن له طرفه دا توکيل جائز دی؛ ځکه چي هغه د خپل مال د خرڅولو لپاره وکيل جوړ کړی دی او انسان چي څرنګه خپل مال خپله خرڅولای سي، همداسي د بل چا په واسطه يې هم خرڅولای سي. لېکن

دا په یاد لرئ! چي داسي کول د راهن لپاره واجب او لازم نه دي او نه په دې باره کي پر هغه جبر کېدلای سي، بلکي په دې صورت کي چي راهن هر کله وغواړي، وکیل معزوله کولای سي.

د دې په خلاف که مرتهن په راهن باندي دا شرط ولګوي چي ته به يو څوک وکيل جوړوې! او راهن دا شرط قبول کړي او وکيل جوړ کړي، نو دا وکالت واجب او لازم دی، اوس که راهن وغواړي نو وکيل نه سي معزوله کولای؛ ځکه د شرط لګولو په وجه دا وکالت د رهن له حقوقو څخه يو حق او د هغه له اوصافو څخه يو وصف وګرځېدی؛ ځکه څرنګه چي رهن د حق او قرض د مضبوطتيا لپاره کيږي، همداسي وکالت هم د دغه مضبوطي د مضبوطتيا او پخېدلو لپاره کيږي، نو په دې اعتبار د وکالت سره د مرتهن حق هم متعلق کيږي، اوس دا ښکاره خبره ده چي که راهن وکالت ردّ کړي نو په دې سره د مرتهن حق باطليږي، حالانکي هيچا ته هم د بل چا د حق باطلولو اختيار نسته. نو په همدې وجه موږ وايو چي که په عقد رهن کي وکالت شرط کړی سي، نو هغه واجب او لازم ګرځي.

وصار کالوکيل بالخصومة إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله ديو مثال په ذريعه د دې نور وضاحت کوي، حاصل د مثال دا دی چي که په يو مسئله کي مدعي له مدعیٰ عليه څخه دا مطالبه وکړي چي د قاضي په دربار کي د خصومت او دعوې پېشولو لپاره يو څوک وکيل جوړ کړه! او مدعیٰ عليه د هغه مطالبه قبوله کړي او يو څوک د دې لپاره وکيل جوړ کړي، نو اوس دا وکالت هم لازم او مشروط ګرځي. لهذا مدعیٰ عليه ته دا اختيار نه حاصليږي چي د مدعي له رضاء څخه بغير هغه وکيل (وکيل بالخصومة) معزوله کړي؛ ځکه چي په دې کي د مدعي د حق باطلول سته، په دې وجه مدعیٰ عليه ته د دې اختيار نسته، نو همداسي په پورتنۍ مسئله کي هم چي کله وکالت په عقد رهن کي شرط کړی سي، نو بيا راهن ته د هغه د ردّ کولو اختيار نسته.

## مطلق وکالت مقيّد کول

وَلَوْوَكَّلَهُ بِالْمَبِيعِ مُطْلَقًا او که راهن يو څوک [يعني مرتهن يا عادل يا غيرهما] د مطلق خرڅولو وکيل جوړ کړی حَتّٰى مَلَكَ الْمَبِيعَ بِالنَّقْدِ وَالنَّسِيئَةِ تر دې چي هغه [وکيل] په نغدو او قرض دواړو سره د خرڅولو مالک سو ثُمَّ نَهَاهُ عَنِ الْمَبِيعِ نَسِيئَةً بيا راهن هغه په قرض له خرڅولو څخه منع کړی لَمْ يَعْمَلْ نَهْيُهُ نو د هغه منع کول کار [او اثر] نه کوي لِأَنَّهُ لَازِمٌ بِأَصْلِهِ ځکه چي عقد وکالت د خپل اصل سره لازم وو فَكَذَا بِوَصْفِهِ نو همداسي د خپل وصف سره به هم لازم وي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَكَذَا إِذَا عَزَلَهُ الْمُرْتَهِنُ او همدارنګه کله چي مرتهن

وکیل معزوله کړي لَا يَنْعَزِلُ نو هغه نه معزوله کیږي لِأَنَّهُ لَمْ يُوَكِّلْهُ ځکه چې مرتهن خو هغه وکیل نه دی جوړ کړی وَإِنَّمَا وَكَّلَهُ غَيْرُهُ بلکې هغه بل چا [یعني راهن] وکیل جوړ کړی دی.

**اللغات:** ﴿وَكَّل﴾ د تفعیل د باب ماضي ده: وکیل جوړول، یو څوک د ځان وکیل او نایب کول.

﴿بالنقد﴾ په نغدو سره، چې ثمن سمدستي ځني واخیستل سي. ﴿بالنسيئة﴾ په تأخیر (ځنډ) یعني په قرض سره (په پور).

**تشریح:** په دې عبارت کې دوې مسئلې بیان سوي دي:

① ... داولې مسئلې حاصل دا دی چې که په عقد رهن کې وکالت شرط کړی سي، نو هغه لازم ګرځي او ښکاره خبره ده چې کله اصل وکالت لازم ګرځي، نو د هغه اوصاف وغیره ټول لازم کیږي، او څرنګه چې په اصل کې بدلون ممکن نه دی، همداسې په وصف کې یې هم بدلون ممکن نه دی، نو که چیري راهن یو څوک د مطلق بیع او خرڅولو وکیل جوړ کړي او په هغه کې د نغد او قرض هیڅ قید نه ولګوي، نو وکیل ته په نغدو او په قرض دواړو سره د خرڅولو حق سته؛ ځکه دلته توکیل بالبیع مطلق دی او په مطلق کې نغد او قرض دواړه شاملیږي، اوس که تر دې وروسته راهن دا وکیل له قرض والا بیع (یعني په پور خرڅولو) څخه منع کړي نو دا منع کول بې ځایه دي او وکیل لره د مخکې په څېر په نغدو او په قرض دواړو سره د خرڅولو حق پاتیږي؛ ځکه یو ځل چې کله مطلق توکیل بالبیع لازم سو، نو بیا په هغه کې څه ترمیم او تبدیلي نه سي کېدلای.

② ... دویمه مسئله دا ده چې که د راهن پر ځای مرتهن وکیل معزوله کړي، نو هم هغه نه معزوله کیږي؛ ځکه کله چې خپله د مؤکل یعني د راهن عَزل په دغه وکالت کې مؤثر نه دی، نو مرتهن بیا څوک دی، د هغه په عَزل سره خو به په درجه اولیٰ وکیل نه معزوله کیږي.

## د راهن په مرګ سره وکالت نه ختمیږي

وَإِنْ مَاتَ الرَّاهِنُ او که راهن مړ سي لَمْ يَنْعَزِلْ نو هم [د هغه] وکیل نه معزوله کیږي لِأَنَّ الرَّهْنَ لَا يَبْطُلُ بِمَوْتِهِ ځکه چې رهن د راهن په مرګ سره نه باطلیږي وَلِأَنَّهُ لَوْ بَطَلَ او ځکه چې که وکالت باطلېدلای إِنَّمَا يَبْطُلُ لِحَقِّ الْوَرَثَةِ نو هغه به د وارثانو [میراث خورو] د حق په وجه باطلېدلای وَحَقُّ الْمُرْتَهِنِ مُقَدَّمٌ او د مرتهن حق [د دوی تر حق] مخکې دی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که چیري راهن مړ سي، نو وکالت نه ختمیږي او د هغه وکیل نه معزوله کیږي بلکې وکالت باقي پاتیږي؛ ځکه دا وکالت د مشروط کېدلو په وجه د رهن په حقوقو

کي داخل سوی دی او د راهن په مرګ سره چې کله رهن نه باطلیږي نو د هغه حق به څنګه باطل سي!. او بل دا چې که هغه باطل سي نو صرف د وارثانو د حق په وجه به باطلیږي ځکه چې تر مرګ وروسته د سړي ملکیت د هغه وارثانو (میراث خورو) ته منتقل کیږي. لیکن دلته دا صورت هم ممکن نه دی: ځکه مرتهن قرضخواه دی (چې پر راهن یې قرض باندي دی) نو ښکاره ده چې د هغه حق د وارثانو له حق څخه مخکي دی. او کله چې د مرتهن د حق په وجه رهن نه باطلیږي نو د وارثانو د حق په وجه به په درجه اولیٰ نه باطلیږي.

## د وارثانو په نا موجودیت کي د مرهون شي د خرڅولو حکم

قَالَ: وَلِلْوَكِيلِ أَنْ يَبِيعَهُ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنَ الْوَرَثَةِ فرمایي: او کیل ته دا حق سته چې [د راهن] د وارثانو له حضور څخه بغیر مرهون خرڅ کړي كَمَا يَبِيعُهُ فِي حَالِ حَيَاتِهِ بِغَيْرِ مَحْضَرٍ مِنْهُ لکه څرنګه چې وکیل د راهن په ژوند کي د هغه له حضور څخه بغیر مرهون خرڅولای سي وَإِنْ مَاتَ الْمُرْتَهِنُ او که چیري مرتهن مړ سي فَالْوَكِيلُ عَلَى وَكَالَتِهِ نو وکیل پر خپل وکالت دی [یعني وکالت باقي پاتیږي] لِأَنَّ الْعَقْدَ لَا يَبْطُلُ بِمَوْتِهِمَا وَلَا بِمَوْتِ أَحَدِهِمَا ځکه چې عقد رهن نه د دوی دواړو په مرګ سره باطلیږي او نه د دوی یوه په مرګ سره باطلیږي فَيَبْقَى بِحُقُوقِهِ وَأَوْصَافِهِ نو هغه [عقد رهن] به د خپلو حقوقو او اوصافو سره باقي پاتیږي [الحقوق: الحبس والاستیفاء والوکالة. الأوصاف: اللزوم وجبر الوکیل وحق الصرف الدراهم بالدنانیر...].

**اللغات:** ﴿محضر﴾ د نصر د باب مصدر میمي دی: حضور (حاضر والی)، موجودیت (موجود والی)، موجودګي.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې څرنګه د راهن په ژوند کي د هغه په نا موجودیت کي وکیل ته د مرهون شي د خرڅولو حق او اختیار سته. همداسي د راهن له مرګ څخه وروسته د راهن د وارثانو په نا موجودیت کي هم وکیل ته د هغه د خرڅولو حق سته او بیع یې صحیح او جائز ده.

**وإن مات إلخ:** فرمایي که چیري د راهن پر ځای مرتهن مړ سي. نو د هغه په مرګ سره هم وکالت نه ختمیږي بلکي وکیل د مخکي په څېر پر خپل وکالت باقي پاتیږي: ځکه چې دا وکالت په رهن کي مشروط دی. او رهن داسي عقد دی چې هغه نه د راهن او مرتهن په مرګ سره باطلیږي او نه په دوی کي د یوه په مرګ سره باطلیږي. بلکي د دواړو تر مرګ وروسته هم عقد رهن د خپلو اوصافو او حقوقو سره باقي سلامت پاتیږي.

## د وکیل په مرګ سره وکالت ختمیږي

وَإِنْ مَاتَ الْوَكِيلُ او که چیرې وکیل مړ سي اِنْتَقَضَتِ الْوَكَالَةُ نو وکالت ماتیږي وَلَا يَقُومُ وَارِثُهُ وَلَا وَصِيُّهُ مَقَامَهُ او نه دریږي د وکیل وارث او نه د وکیل وصي د وکیل پر ځای [یعني نه د وکیل وارث د دې وکیل قائم مقام کیږي او نه د ده وصي...] لِأَنَّ الْوَكَالَةَ لَا يَجْرِي فِيهَا الْإِرْثُ ځکه چې په وکالت کي وراثت نه جاري کیږي وَلِأَنَّ الْمُوَكِّلَ رَضِيَ بِرَأْيِهِ لَا بِرَأْيِ غَيْرِهِ او ځکه چې مؤکل د وکیل په رایه راضي سوی دی، نه له هغه څخه بغیر د بل چا په رایه وَعَنْ أَبِي يُوسُفَ أَنَّ وَصِيَّ الْوَكِيلِ يَمْلِكُ بَيْعَهُ او له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه روایت دی چې د وکیل وصي د هغه د خرڅولو ملکیت [او اختیار] لري لِأَنَّ الْوَكَالَةَ لَازِمَةٌ ځکه چې وکالت لازم دی فَيَمْلِكُهُ الْوَصِيُّ نو ځکه وصي به د هغه ملکیت لري كَالْمُضَارِبِ إِذَا مَاتَ بَعْدَ مَا صَارَ رَأْسُ الْمَالِ أَعْيَانًا لکه مضارب چې کله مړ سي وروسته تر دې چې رأسُ المال په شیانو سره بدل سي [یعني چې مضاب په رأسُ المال سره شیان رانیسي او بیا مړ سي] يَمْلِكُ وَصِيُّ الْمُضَارِبِ بَيْعَهَا نو د مضارب وصي د هغوی د خرڅولو ملکیت لري لِمَا أَنَّهُ لَازِمٌ بَعْدَ مَا صَارَ أَعْيَانًا ځکه چې عقد مضاربت لازم دی وروسته تر دې چې رأسُ المال په شیانو سره بدل سو قُلْنَا: التَّوْكِيلُ حَقٌّ لَازِمٌ لِكِنْ عَلَيْهِ موږ [په جواب کي ورته] وایو: چې توکیل [وکالت] لازم حق دی خو صرف پر وکیل [لازم دی] وَالْإِرْثُ يَجْرِي فِيمَا لَهُ او میراث په هغه څه کي جاري کیږي کوم چې د سړي لپاره وي [نه په هغه څه کي کوم چې پر سړي لازم وي] بِخِلَافِ الْمُضَارَبَةِ په خلاف د مضاربت لِأَنَّهَا حَقُّ الْمُضَارِبِ ځکه چې هغه د مضارب حق دی.

**اللغات:** ﴿انتقضت﴾ د افتعال له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صیغه ده: ماتېدل. ختمېدل.

﴿وصي﴾ چا ته چې مړي وصیت کړی وي (چا ته چې دیو کار وصیت سوی وي). هغه کس چې مړي یو کار ورته سپارلی وي. ﴿إرث﴾ میراث. وراثت. ﴿رأسُ المال﴾ اصل مال (اصل مال مضاربت کوم چې د ربُ المال له طرفه مضارب ته ور کول سوی وي).

**تشریح: صورت د مسئلي:** دا دی چې که راهن یا مرتهن مړ نه سي بلکي خودي وکیل مړ سي. نو وکالت ختمیږي او د هغه وارث یا وصي په دې هکله د هغه نه قائم مقام کیږي: ځکه د انسان نیابت په

هغه اُمورو کي کېدلای سي چي په هغوی کي وراثت جاري کيږي، حال دا چي په وکالت کي وراثت نه جاري کيږي، نو ځکه په هغه کي به نيابت هم نه جاري کيږي، او بل دا چي مؤکل (راهن) دا وکيل په خپله خوښه او په خپله رايه سره وکيل جوړ کړی دی چي په هغه کي يې فهم او قابليت ليدلی دی او د وکيل په وارث يا د هغه په وصي کي به دومره قابليت نه وي، نو په دې وجه به هم په هغه کي نيابت نه جاري کيږي، کنې د وکالت مقصد به فوت سي.

وعن أبي يوسف إلخ: په دې سلسله کي له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه دا نقل سوي دي چي د وکيل وصي د هغه نائب کيږي او د قرض اداء کولو لپاره هغه ته هم د مرهون شي د خرڅولو اختيار حاصليږي؛ ځکه چي دا وکالت لازم وو او د هغه فسخ کېدل متعذر وه، نو ځکه ذ وکيل تر مرګ وروسته به خپل وصي د هغه قائم مقام کيږي، لکه څرنګه چي مضارب دی چي که هغه په رأس المال (مال مضاربت) سره شيان رانيسي او بيا د هغوی تر خرڅولو مخکي مضارب مړ سي، نو ذ مضارب وصي د هغه قائم مقام کيږي او د مضارب وصي ته د هغه شيانو د خرڅولو اختيار حاصليږي؛ ځکه کله چي مال مضاربت په شيانو سره بدل سي (يعني سامان په رانيول سي) نو مضاربت هم لازم ګرځي، نو همداسي د رهن په مسئله کي هم څرنګه چي دا وکالت لازم وو، نو ځکه د رهن په مسئله کي به هم د وکيل وصي د هغه قائم مقام کيږي.

لېکن صاحب ذ هدايې د طرفينو له طرفه امام ابو يوسف ته دا جواب ورکړی دی چي وکالت که څه هم لازم خو دی لېکن هغه فقط پر وکيل لازم دی، نه د وکيل لپاره. او قاعده دا ده چي په کومو اُمورو کي وجوب وي او منفعت نه وي يا په بله وينا دا چي په کومو اُورو کي پر خپل ځان لزوم وي، د ځان لپاره پر بل چا لزوم نه وي، په هغه اُمورو کي ميراث نه جاري کيږي او يو له هغه اُمورو څخه وکالت دی، نو ځکه په هغه کي به هم ميراث نه جاري کيږي، او پر مضاربت هغه قياسول صحيح نه دي؛ ځکه چي په مضاربت کي وجوب او لزوم نه وي بلکي منفعت وي چي په داسي اُمورو کي ميراث جاري کيږي، لهذا يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

## د مرهون شي د خرڅولو حکم

وَلَيْسَ لِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يَبِيعَهُ إِلَّا بِرِضَا الرَّاهِنِ او مرتهن ته دا حق نسته چي مرهون شي خرڅ کړي مګر د راهن په رضا [او خوښې] سره لِأَنَّهُ مِلْكُهُ ځکه چي هغه د راهن ملکيت دی وَمَا رَضِيَ بِبَيْعِهِ او راهن د هغه په خرڅولو راضي سوی نه دی وَلَيْسَ لِلرَّاهِنِ أَنْ يَبِيعَهُ إِلَّا بِرِضَا الْمُرْتَهِنِ او راهن ته [هم] دا حق نسته چي مرهون شی خرڅ کړي مګر د مرتهن په رضا سره لِأَنَّ الْمُرْتَهِنَ أَحَقُّ بِمَالِيَّتِهِ

مِنَ الرَّاهِنِ ځکه چي مرتهن تر راهن د مرهون شي د ماليت زيات حقدار دی فَلَا يَقْدِرُ الرَّاهِنُ عَلٰى تَسْلِيْمِهٖ بِالْبَيْعِ لهذا په خرڅولو سره به راهن د مرهون شي پر وسپارلو قدرت [او اختيار] نه لري.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي نه د راهن له رضا او خوښې څخه بغير مرتهن مرهون شی خرڅولای سي او نه د مرتهن له رضا څخه بغير راهن هغه خرڅولای سي؛ مرتهن خو ځکه هغه نه سي خرڅولای چي مرهون شی د راهن ملکيت دی او د بل چا ملکيت د هغه له رضا څخه بغير خرڅول جائز نه دي، او راهن ځکه هغه نه سي خرڅولای چي د مرهون شي په ماليت کي د مرتهن حق له راهن څخه زيات دی، لهذا که راهن هغه خرڅ هم کړي، نو هم به د مرهون شي پر وسپارلو قادر نه وي (چي مشتري ته يې ورکړي)، حال دا چي د بيع د انعقاد لپاره د مبيع ورسپارل ضروري دي، يا په بله وينا دا چي د مبيع مقدورُ التسليم کېدل ضروري دي (لکه په کتابُ البيع کي چي ذکر سوه) او په دې مسئله کي چي کله بائع يعني راهن د مرهون پر ورسپارلو قادر نه دی، نو ښکاره ده چي بيع يې د هيڅ کار نه ده، نو ځکه راهن ته هم د مرهون شي د بيع حق نسته.

## که د قرض وخت راسي او راهن موجود نه وي نو څه به کيږي؟

قَالَ: فَإِنْ حَلَّ الْأَجَلُ فرمايي: که چيري [د قرض اداء کولو] نېټه راسي وَأَبَى الْوَكِيْلُ الَّذِيْ فِيْ يَدِهِ الرَّهْنُ أَنْ يَبِيْعَهُ او هغه وکيل چي په قبضه کي يې رهن [مرهون] دی د هغه له خرڅولو څخه انکار وکړي وَالرَّاهِنُ غَائِبٌ او راهن غائب وي أُجْبِرَ عَلٰى بَيْعِهٖ نو وکيل به د هغه په خرڅولو باندي مجبورول کيږي لِمَا ذَكَرْنَا مِنَ الْوَجْهَيْنِ فِيْ لُزُوْمِهٖ د هغه دوو دليلونو په وجه کوم چي موږ د توکيل د لزوم په هکله ذکر کړل وَكَذٰلِكَ الرَّجُلُ يُوَكِّلُ غَيْرَهُ بِالْخُصُوْمَةِ او همدارنګه که سړی بل څوک د خصومت [دعوې پېشولو] وکيل جوړ کړي وَغَابَ الْمُوَكِّلُ او مؤکل [سړی] غائب سي فَأَبٰى أَنْ يُخَاصِمَ بيا وکيل له خصومت کولو څخه انکار وکړي أُجْبِرَ عَلَى الْخُصُوْمَةِ لِلْوَجْهِ الثَّانِيْ نو هغه وکيل به په خصومت باندي مجبورول کيږي د دويم دليل په وجه وَهُوَ أَنَّ فِيْهِ إِتْوَاءَ الْحَقِّ او هغه [دويم دليل] دا دی چي په دې کي د حق ضايع کول [او باطلول] سته بِخِلَافِ الْوَكِيْلِ بِالْبَيْعِ په خلاف د خرڅولو د وکيل [کوم چي يو سړي ديو شي د خرڅولو وکيل جوړ کړی وي] لِأَنَّ الْمُوَكِّلَ يَبِيْعُ بِنَفْسِهٖ ځکه چي مؤکل خپله خرڅول کولای سي [يعني خپله هم د شي پر خرڅولو قادر دی] فَلَا يَتْوِىْ حَقُّهُ نو د هغه حق به نه ضايع

| کیږي ﴿أَمَّا الْمُدَّعِيْ لَا يَقْدِرُ عَلَى الدَّعْوٰى﴾ او کوم چي مدعي دی نو هغه پر دعوې [پیشولو] قادر نه دی ﴿وَالْمُرْتَهِنُ لَا يَمْلِكُ بَيْعَهُ بِنَفْسِهٖ﴾ او مرتهن خپله [په خپل اختیار سره] د خرڅولو ملکیت [او قدرت] نه لري. |
|---|

**اللغات**: ﴿حَلَّ﴾ د ضرب ماضي ده: (وخت) راتلل. ﴿أجل﴾ نېټه. ټاکل سوی مودت. ﴿أجبر﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: مجبورول. ﴿إتواء﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضایع کول. بربادول، هلاکول. ﴿خصومة﴾ دعویٰ او مقدمه. جنګ او نزاع. (خصومت په اصل کي دې ته وایي چي یو سړی پر بل چا د حق دعویٰ کوي او دا بل څوک له هغه څخه انکار کوي). ﴿لا يتوىٰ﴾ د سمع د باب ماضي ده: ضایع کېدل. بربادېدل. هلاکېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې**: دا دی که چیري د قرض د اداء کولو وخت راسي او د کوم وکیل سره چي مرهون شی وي هغه یې له خرڅولو څخه انکار وکړي او راهن هم موجود نه وي، نو په دې صورت کي به وکیل د مرهون شي پر خرڅولو مجبورول کیږي: ځکه مخکي دا خبره تېره سوه چي وکالت که په عقدِ رهن کي مشروط وي نو هغه لازم ګرځي او د لازم حق لپاره جبر کول جائز دي. او د جبر د جواز دویم دلیل دا دی چي د دغه مرهون شي سره د مرتهن حق (قرض) متعلق دی چي د هغه د اداء کولو یوازینی لاره بیع ده، لهذا له بیع څخه منع کېدل او انکار کول د مرتهن حق باطلول دي او له باطلېدلو څخه د ساتلو لپاره جبر کېدلای سي (یعني د دې لپاره جبر کول او مجبوره کول جائز دي چي د یو چا حق له باطلېدلو څخه وساتل سي)، نو په دې وجه هم پر وکیل بالبیع به جبر کیږي، صاحب د هدایې په "لما ذکرنا" سره د همدې دوو دلیلونو وطرف ته اشاره کړې ده.

وکذلك إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د مدعي په مطالبه سره مدعیٰ علیه یو څوک وکیل بالخصومت جوړ کړي او مدعیٰ علیه غائب سي. بیا کله چي مدعي له وکیل بالخصومت څخه د خصومت او دعوې پېشولو مطالبه وکړي چي زما سره دعویٰ وڅېړه او عدالت ته را سره ولاړ سه!. نو وکیل انکار وکړي، فرمایي چي په دې صورت کي به هم وکیل پر خصومت مجبورول کیږي: ځکه که هغه مخاصمه پرېږدي نو د مدعي حق باطلیږي، لهذا د دویم دلیل په وجه یعني له باطلېدلو څخه د بل چا (مدعي) د حق ساتلو په خاطر به وکیل پر خصومت مجبورول کیږي.

د دې په خلاف که یو سړی د خپل یو شي د خرڅولو لپاره یو څوک وکیل جوړ کړي او بیا وکیل انکار وکړي چي دا شی نه خرڅوم، نو پر هغه جبر نه سي کېدلای: ځکه په دې کي د جبر علت

يعني د بل چا د حق باطلېدل نسته او بل دا چي خپله مؤکل هم د خپل شي پر خرڅولو قادر دی. نو ځکه په دې صورت کي د جبر اختيار نسته.

لېکن د مؤکل په خلاف مرتهن او مدعي په دې هکله مجبوره دي؛ ځکه چي خپله مرتهن پر خرڅولو قادر نه دی لکه په مخکنی مسئله کي چي بيان سوه او مدعي پر دعوې پېشولو قادر نه دی. لهذا د دوی معامله د وکيل په لاس کي ده. نو ځکه د معاملې د حل کولو لپاره پر دغه وکيل جبر کېدلای سي. (احسن الهدايه)

## د وکالت نه مشروط کېدلو صورت

فَلَوْ لَمْ يَكُنِ التَّوْكِيلُ مَشْرُوْطًا فِيْ عَقْدِ الرَّهْنِ بيا که چيري توکيل [وکالت] په عقد رهن کي شرط کړی سوی نه وي وَإِنَّمَا شُرِطَ بَعْدَهُ بلکي تر عقد رهن وروسته هغه شرط کړی سوی وي قِيْلَ: لَا يُجْبَرُ اِعْتِبَارًا بِالْوَجْهِ الْأَوَّلِ نو ويل سوي دي: چي وکيل به نه مجبورول کيږي د اول دليل په اعتبار کولو سره [اول دليل دا دی چي د مشروط کېدلو په وجه وکالت د عقد رهن له حقوقو څخه يو حق وګرځېدی] وَقِيْلَ: يُجْبَرُ رُجُوْعًا إِلَى الْوَجْهِ الثَّانِيْ او ويل سوي دي: چي هغه به مجبورول کيږي دويم دليل ته په رجوع کولو سره [دويم دليل دا دی چي په دې کي د حق باطلېدل سته] وَهٰذَا أَصَحُّ او دا قول زيات صحيح دی وَعَنْ أَبِيْ يُوْسُفَ أَنَّ الْجَوَابَ فِي الْفَصْلَيْنِ وَاحِدٌ او له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي په دواړو صورتونو کي جواب [حکم] يو دی وَيُؤَيِّدُهُ إِطْلَاقُ الْجَوَابِ فِي الْجَامِعِ الصَّغِيْرِ وَفِي الْأَصْلِ او په جامع صغير او اصل [مبسوط] کي د جواب مطلق والی د همدې تائيد کوي.

**اللغات**: ﴿مشروط﴾ د ضرب د باب مفعول دی: شرط کړی سوی (د کوم څه چي شرط لګول سوی وي).

**تشريح**: پر وکيل جبر کول (مجبوره کول) هغه وخت صحيح دي کله چي وکالت په عقد رهن کي مشروط وي. لېکن که وکالت د عقد په وخت کي مشرط نه وي او وروسته هغه مشرط کړی سي. نو په دې صورت کي د جبر په هکله دوه قولونه دي:

① ... جبر به نه کيږي؛ ځکه کله چي له ابتداء څخه وکالت په عقد رهن کي مشروط نه وو. نو وکالت د عقد له حقوقو څخه نه سو. لهذا د دغه اول دليل په اعتبار سره به په دې صورت کي جبر نه کيږي.

(۲)... دویم قول دا دی چي جبر به کیږي؛ ځکه د دویم دلیل پر بناء په دې کي د مرتهن د حق باطلېدل سته، نو له ابطال څخه د هغه د حق ساتلو په خاطر به پر وکیل جبر کیږي، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چي دلته دویم قول زیات صحیح او معتمد دی.

وعن أبي یوسف إلخ: فرمایي چي له امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله څخه دا روایت سوی دی چي برابره ده وکالت له ابتداء څخه مشروط وي او که وروسته هغه شرط کړی سي، په هر صورت کي د هغه حکم یو دی یعني پر وکیل به جبر کیږي، او امام محمد رَحِمَهُ الله چي په جامع صغیر او مبسوط کي کوم حکم بیان کړی دی، په هغه سره هم د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله د قول تائید کیږي، د بنایه په حواله سره د مبسوط او جامع صغیر عبارت داسي دی "إذا أبی الوکیل عن البیع یجبر"، څرنګه چي دا قول مطلق دی او په دې کي د وکالت د مشروط کېدلو او نه کېدلو او د شروع او مینځ هیڅ قید نسته، نو ځکه د جبر حکم به هم مطلق وي او په دواړو صورتونو کي به جبر کیږي.

## دري مختلفه مسئلې

وَإِذَا بَاعَ الْعَدْلُ الرَّهْنَ او کله چي عادل رهن [مرهون] خرڅ کړي فَقَدْ خَرَجَ مِنَ الرَّهْنِ نو هغه [مرهون] له رهن څخه ووتی وَالثَّمَنُ قَائِمٌ مَقَامَهُ او دثمن د هغه قائم مقام دی [د هغه پر ځای ولاړ دی] فَكَانَ رَهْنًا نو ځکه [اوس] به ثمن رهن وي وَإِنْ لَمْ يُقْبَضْ بَعْدُ که څه هم تر اوسه پر ثمن قبضه نه وي سوې لِقِيَامِهِ مَقَامَ مَا كَانَ مَقْبُوضًا ځکه چي ثمن د هغه شي [مرهون] قائم مقام دی پر کوم چي قبضه سوې ده وَإِذَا تَوِيَ او کله چي ثمن هلاک سي كَانَ مَالَ الْمُرْتَهِنِ نو هغه به د مرتهن مال وي [یا په بله وینا دا چي د ثمن هلاکت د مرتهن د مال هلاکت دی] لِبَقَاءِ عَقْدِ الرَّهْنِ فِي الثَّمَنِ ځکه په ثمن کي عقد رهن باقي دی لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْمَبِيعِ الْمَرْهُونِ ځکه چي ثمن د خرڅ کړی سوي مرهون شي قائم مقام دی وَكَذٰلِكَ إِذَا قُتِلَ الْعَبْدُ الرَّهْنُ او همدارنګه کله چي مرهون غلام ووژل سي وَغَرِمَ الْقَاتِلُ قِيمَتَهُ او وژونکی کس د هغه د قیمت تاوان [ضمان] ورکړي لِأَنَّ الْمَالِكَ يَسْتَحِقُّهُ مِنْ حَيْثُ الْمَالِيَّةُ ځکه چي مالک [راهن] د مالیّت [مال کېدلو] په اعتبار سره د دې ضمان مستحق دی وَإِنْ كَانَ بَدَلَ الدَّمِ که څه هم دا ضمان د وینې بدل دی فَأَخَذَ حُكْمَ ضَمَانِ الْمَالِ فِي حَقِّ الْمُسْتَحِقِّ نو دا ضمان

به د مستحق [راهن] په حق کي د مال د ضمان حکم اخلي فَبَقِيَ عَقْدُ الرَّهْنِ لهذا عقدِ رهن باقي پاته سو وَكَذٰلِكَ لَوْقَتَلَهُ عَبْدٌ او همدارنګه که يو غلام دا مرهون غلام قتل کړي فَدُفِعَ بِهِ بيا قاتل غلام د هغه [مقتول غلام] په عوض کي ورکول سي لِأَنَّهُ قَائِمٌ مَقَامَ الْأَوَّلِ لَحْمًا وَ دَمًا ځکه چي دا [قاتل] غلام د غوښي او وينې په [هر] اعتبار سره د اول غلام قائم مقام دی.

**اللغات**: ﴿مقبوض﴾ د ضرب د باب مفعول دی: قبضه کړی سوی، اخيستلی سوی، ﴿توی﴾ د سمع د باب ماضي ده: ضايع کېدل، بربادېدل، هلاکېدل. ﴿غرم﴾ د سمع د باب ماضي ده: تاوان ورکول، ضمان اداء کول.

**تشریح**: په دې عبارت کي ټوله درې مسئلې بيان سوي دي:

(۱)... اوله مسئله دا ده که عادل کس مرهون شی خرڅ کړي نو د خرڅولو په وجه هغه له رهن کېدلو څخه خارج سو، خو څرنګه چي د دغه مرهون شي عوض او بدل ثمن دی، نو ځکه اوس ثمن د هغه قائم مقام کيږي او رهن شمېرل کيږي، او که څه هم تر اوسه ثمن د عادل يا مرتهن په قبضه کي نه وي راغلی خو بيا هم هغه به د دې خرڅ کړی سوي مرهون شي پر ځای اېښوول کيږي او د مرهون شي قبضه به د هغه په حق کي هم قبضه شمېرل کيږي، همدا وجه ده که چيري ثمن هلاک سي نو د هغه دا هلاکت د مرتهن له مال څخه شمېرل کيږي او په دې هلاکت سره راهن له قرض څخه بري کيږي؛ ځکه څرنګه چي د مرهون شي په هلاکت سره راهن له قرض څخه بري کېدی، همداسي د مرهون شي د قائم مقام يعني د ثمن په هلاکت سره به هم هغه بري شمېرل کيږي؛ ځکه چي د اصل او نائب حکم يو دی.

(۲)... دويمه مسئله دا ده چي که مرهون غلام وي او بيا يو څوک هغه قتل کړي چي په دې وجه پر قاتل په ضمان (تاوان) کي قيمت واجب سي، نو دا قيمت به د مقتول غلام پر ځای رهن شمېرل کيږي (يعني لکه مخکي چي غلام مرهون وو، اوس به د هغه دا قيمت مرهون شمېرل کيږي).

دلته دا سوال پيدا کيږي چي په دغه مسئله کي د مقتول غلام قيمت رهن شمېرل نه صحيح کېدل پکار دي؛ ځکه چي مذکوره قيمت د وينې (خون) بدل دی او غلام که څه د مالک په ملکيت کي وو، لېکن د هغه وينه د مالک په ملکيت کي نه ده او وينه په رهن اېښوول صحيح نه دي، لهذا د هغه بدل (يعني قيمت) هم په رهن اېښوول نه صحيح کېدل پکار دي؟.

د دې جواب دا دی چي د مالک ملکيت د غلام پر ذات او د هغه پر وينه او غوښه نه وي، بلکي د هغه ملکيت د غلام پر ماليت او قيمت وي، او په دغه مسئله کي پر قاتل د غلام د ماليت ضمان

واجب سوی دی. او مال په رهن ايښوول صحيح دي. نو ځکه دلته د مقتول غلام قيمت به هم په رهن ايښوول صحيح دوي.

(۳)... درېيمه مسئله دا ده چي که يو غلام بل مرهون غلام قتل کړي او بيا قاتل غلام د مقتول غلام مالک ته وسپارل سي. نو اوس به دا قاتل غلام د مقتولِ غلام پر ځای په رهن ايښوول کيږي: ځکه چي دا غلام د وينې او غوښې په هر اعتبار سره د مقتول غلام قائم مقام دی. ګواکي دا د هغه مثلِ صوري دی. او تاسي ته معلومه ده چي د مثلِ معنوي يعني د قيمت او ماليت رهن هم صحيح دی. نو د مثلِ صوري رهن خو به په درجه اولیٰ صحيح وي.

## که تر خرڅولو وروسته په مرهون شي کي د بل چا حق ثابت سي

قَالَ: وَإِنْ بَاعَ الْعَدْلُ الرَّهْنَ فرمايي: او که چيري عادل کس مرهون شی خرڅ کړي فَأَوْفَى الْمُرْتَهِنُ الثَّمَنَ او مرتهن ته ثمن پوره ورکړي ثُمَّ اُسْتُحِقَّ الرَّهْنُ بيا مرهون شی مستحق وخېږي فَضَمِنَهُ الْعَدْلُ او عادل کس د هغه ضامن سي [ضمان او تاوان يې ورکړي] كَانَ بِالْخِيَارِ نو عادل ته اختيار دی إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الرَّاهِنَ قِيمَتَهُ که وغواړي نو له راهن څخه دي د هغه [مرهون] د قيمت ضمان واخلي وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْمُرْتَهِنَ الثَّمَنَ الَّذِي أَعْطَاهُ او که وغواړي نو له مرتهن څخه دي د هغه د ثمن ضمان واخلي کوم چي يې ورکړی دی وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يُضَمِّنَهُ غَيْرَهُ او ضامن ته دا اختيار نسته چي له هغه ثمن څخه بغير د بل شي ضمان له مرتهن څخه واخلي وَكَشْفُ هٰذَا أَنَّ الْمَرْهُونَ الْمَبِيعَ إِذَا اسْتُحِقَّ او د دې وضاحت دا دی چي خرڅ کړی سوی مرهون شی چي کله مستحق وخېږي إِمَّا أَنْ يَكُونَ هَالِكًا أَوْ قَائِمًا نو هغه به يا هلاک سوی [ضايع سوی] وي يا به موجود وي فَفِي الْوَجْهِ الْأَوَّلِ الْمُسْتَحِقُّ بِالْخِيَارِ نو په اول صورت کي مستحق کس ته اختيار دی إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الرَّاهِنَ قِيمَتَهُ که وغواړي نو له راهن څخه دي د هغه د قيمت ضمان واخلي لِأَنَّهُ غَاصِبٌ فِي حَقِّهِ ځکه چي راهن د هغه [مستحق کس] په حق کي غاصب دی وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْعَدْلَ او که وغواړي نو له عادل څخه دي ضمان واخلي لِأَنَّهُ مُتَعَدٍّ فِي حَقِّهِ بِالْبَيْعِ وَالتَّسْلِيمِ ځکه چي عادل [د مرهون شي] د خرڅولو او ورسپارلو په وجه د هغه [مستحق کس] په حق کي تعدیٰ کونکی دی.

**اللغات:** ﴿أوفی﴾ د افعال د باب ماضي ده: پوره ورکول، اداء کول. ﴿استحق﴾ د استفعال د باب ماضي مجهوله ده: (يو شی د بل چا) مستحق کېدل. مستحق ختل (يعني چې مرهون شی د بل چا مستحق وخېږي او د بل چا سي (د بل چا مملوک وګرځي). ﴿ضمن﴾ د سمع د باب ماضي ده: ضامن کېدل. ضمان پرې لازمېدل. ﴿متعد﴾ د تفعل د باب فاعل دی: تعدي او تجاوز کونکی. نا حقه تصرف کونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله عادل کس مرهون شی خرڅ کړي او د هغه ثمن مرتهن ته پوره ورکړي يا په بله وينا دا چې د هغه په ثمن سره د مرتهن قرض اداء کړي. تر دې وروسته مرهون شی مستحق وخيږي يعني يو بل څوک (مثلاً زيد) په هغه کې د خپل استحقاق دعویٰ وکړي (چې دا خو زما شی دی) او خپله دعویٰ ثابته کړي او له عادل څخه ضمان (تاوان) واخلي. نو په دې صورت کې د عادل کس لپاره دوې لارې دي:

①... عادل دې له راهن څخه د مرهون شي د ټوله قيمت ضمان (تاوان) واخلي.

②... يا عادل چې مرتهن ته کوم ثمن ورکړی دی، هغه دې بېرته له مرتهن څخه واخلي او تر هغه دې زيات نه څني اخلي.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د دغه مسئلې نور وضاحت او تشريح دا ده چې تر استحقاق وروسته به مرهون شي ته کتل کيږي چې هغه تر اوسه موجود دی او که معدوم دی. که چيرې مرهون شی معدوم او هلاک سوی وي نو مستحق کس (زيد) ته اختيار دی چې که وغواړي نو له راهن څخه دې د هغه د قيمت ضمان واخلي؛ ځکه چې همدې راهن د ده حق غصب کړی دی چې هغه يې عادل ته په رهن ايښې دی ګواکې راهن هغه هلاک کړی دی. او که مستحق کس وغواړي نو له عادل څخه هم ضمان اخيستلای سي؛ ځکه عادل کس هم د هغه حق خرڅ کړی او بل چا ته يې سپارلی دی، خو څرنګه چې عادل کس په دې هکله مجبورِ محض دی، نو ځکه هغه ته دا حق سته چې له راهن څخه ضمان واخلي.

### په پورتني هر صورت کې بيع نافذيږي

فَإِنْ ضَمَّنَ الرَّاهِنَ بيا که چيرې مستحق کس له راهن څخه ضمان واخلي نَفَذَ الْبَيْعُ وَصَحَّ الِاقْتِضَاءُ نو بيع نافذيږي او د مرتهن اخيستل [پر ثمن قبضه کول] صحيح کيږي [يعني پر ثمن د مرتهن قبضه کول (ثمن اخيستل) صحيح کيږي کوم چې يې د خپل قرض په عوض کې اخيستی دی] لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ ځکه چې راهن د ضمان په اداء کولو سره د مرهون شي مالک سو فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ

أَمَرَهُ بِبَيْعِ مِلْكِ نَفْسِهِ نو څرګنده سوه چي راهن عادل ته د خپل ملکيت د خرڅولو حکم کړی دی وَإِنْ ضَمَّنَ الْبَائِعَ او که مستحق کس له بائع [عادل] څخه ضمان واخلي يَنْفُذُ الْبَيْعُ أَيْضًا نو هم بيع نافذيږي لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ ځکه چي هغه هم د ضمان په اداء کولو سره د مرهون شي مالک سو فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ بَاعَ مِلْكَ نَفْسِهِ نو څرګنده سوه چي هغه [عادل] خپل ملکيت خرڅ کړی دی.

**اللغات:** ﴿ضَمّن﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: بل څوک ضامن ګرځول (ضامن کول)، ضمان (تاوان) ځني اخيستل، ﴿نفذ﴾ د نصر ماضي ده: نافذېدل، جاري کېدل او پوره کېدل، ﴿اقتضاء﴾ کله چي د دې باب په صله کي مال، ثمن قرض يا بل حق ذکر سي نو معنیٰ يې ده: اخيستل، قبضه پر کول، ترلاسه کول او حاصلول، ﴿تبيّن﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: څرګندېدل، ښکاره کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي په مخکنۍ مسئله چي مستحق کس ته کوم دوه اختياره ورکول سوي دي يعني ① چي که هغه وغواړي نو له راهن څخه دي ضمان واخلي ② او که وغواړي نو له بائع (عادل) څخه دي يې واخلي، د دې هر اختيار په صورت کي بيع نافذيږي يعني مستحق کس چي له کوم يوه څخه هم ضمان واخلي نو د عادل کس بيع نافذيږي (يعني هغه چي مرهون شی خرڅ کړی دی دا بيع يې صحيح او نافذ ګرځي) او د همدې په ضمن کي مرتهن د خپل قرض هم ترلاسه کونکی ګرځي؛ ځکه عادل کس د مرهون شي ثمن مرتهن ته ورکړی دی.

لنډه دا چي که مستحق کس له راهن څخه ضمان واخلي، نو په دې صورت کي د بيع د صحيح کېدلو او نافذېدلو وجه دا ده چي د مرهون شي په ضمان اداء کولو سره راهن د هغه مالک سو، لهذا اوس د راهن له طرفه عادل کس ته د مرهون شي د خرڅولو حکم کول د خپل ملکيت د خرڅولو د حکم کولو او وکيل جوړولو په څېر دي، او دا ښکاره خبره ده چي که څوک بل چا ته د خپل ملکيت د خرڅولو حکم وکړي (چي زما فلانکی شی را خرڅ کړه!) نو دا صحيح دي، نو همدغسي په دې مسئله کي د راهن د خپل ملکيت يعني د مرهون شي د خرڅولو لپاره عادل کس وکيل جوړول هم صحيح دي لهذا که چيري عادل کس هغه خرڅ کړي نو بيع به يې صحيح او نافذ وي.

او که مستحق کس له عادل کس څخه ضمان واخلي، نو ځکه بيع صحيح او نافذ ګرځي، ځکه چي د ضمان اداء کولو په وجه دا عادل کس هم د مرهون شي مالک سوم او انسان ته د خپل ملکيت د خرڅولو پوره حق سته. (احسن الهدايه)

## له ضمان ورکولو څخه وروسته به عادل کس پر چا رجوع کوي؟

وَإِذَا ضَمَّنَ الْعَدْلَ او کله چي مستحق کس له عادل څخه ضمان واخلي فَالْعَدْلُ بِالْخِيَارِ نو عادل ته اختيار دی إِنْ شَاءَ رَجَعَ عَلَى الرَّاهِنِ بِالْقِيْمَةِ که وغواړي نو پر راهن دي په قيمت سره رجوع وکړي [يعني له راهن څخه دي قيمت واخلي] لِأَنَّهُ وَكِيْلٌ مِنْ جِهَتِهِ عَامِلٌ لَهُ ځکه چي عادل د راهن له طرفه وکيل دی او د هغه لپاره کار کونکی دی فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ بِمَا لَحِقَهُ مِنَ الْعُهْدَةِ نو ځکه عادل به پر راهن رجوع کويْ په هغه ذمه وارۍ سره کوم چي عادل ته لاحقه سوې وي وَنَفَذَ الْبَيْعُ وَصَحَّ الِاقْتِضَاءُ او بيع نافذيږي او د مرتهن اخيستل [ثمن ترلاسه کول] صحيح کيږي [کوم ثمن چي يې د خپل قرض په عوض کي اخيستی دی] فَلَا يَرْجِعُ الْمُرْتَهِنُ عَلَيْهِ بِشَيْءٍ مِنْ دَيْنِهِ نو ځکه مرتهن پر راهن دخپل قرض په هيڅ حصه سره رجوع نه سي کولای [خپل قرض نه سي ځني اخيستلی] وَإِنْ شَاءَ رَجَعَ عَلَى الْمُرْتَهِنِ بِالثَّمَنِ او که عادل وغواړي نو پر مرتهن دي په ثمن سره رجوع وکړي [يعني له مرتهن څخه دي ثمن واپس واخلي] لِأَنَّهُ تَبَيَّنَ أَنَّهُ أَخَذَ الثَّمَنَ بِغَيْرِ حَقٍّ ځکه دا څرکنده سوه چي مرتهن په نا حقه توګه ثمن اخيستی وو لِأَنَّهُ مَلَكَ الْعَبْدَ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ وَنَفَذَ بَيْعُهُ عَلَيْهِ ځکه چي د ضمان اداء کولو په وجه عادل د مرهون شي مالک سو او پر هغه د عادل بيع نافذه سوه فَصَارَ الثَّمَنُ لَهُ لهذا ثمن د عادل سو وَإِنَّمَا أَدَّاهُ إِلَيْهِ عَلَى حِسْبَانِ أَنَّهُ مِلْكُ الرَّاهِنِ او هغه خو مرتهن ته په دې ګومان ثمن ورکړی وو چي مرهون د راهن ملکيت دی فَإِذَا تَبَيَّنَ أَنَّهُ مِلْكُهُ لېکن کله چي دا څرګنده سوه چي مرهون د عادل خپل ملکيت دی لَمْ يَكُنْ رَاضِيًا بِهِ نو هغه به په دې راضي نه وي اچي ثمن مرتهن ته ورکړي] فَلَهُ أَنْ يَرْجِعَ بِهِ عَلَيْهِ نو ځکه هغه ته دا حق سته چي پر مرتهن رجوع وکړي [يعني ثمن واپس ځني واخلي] وَإِذَا رَجَعَ او کله چي هغه رجوع وکړي [ثمن واپس واخلي] بَطَلَ الِاقْتِضَاءُ نو د مرتهن اخيستل [ثمن ترلاسه کول] باطل سوه [کوم ثمن چي يې د خپل قرض په عوض کي اخيستی وو] فَيَرْجِعُ الْمُرْتَهِنُ عَلَى الرَّاهِنِ بِدَيْنِهِ نو ځکه مرتهن به پر راهن په خپل قرض سره رجوع کوي [قرض به واپس ځني اخلي].

**اللغات**: ﴿ضَمَّنَ﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: ضامن ګرځول، ضمان څنې اخيستل. ﴿عهدة﴾ ذمه واري (ذمه داري)، ضمان. ﴿اقتضاء﴾ د افتعال د باب مصدر دی: (ثمن يا داسې بل حق) اخيستل. ترلاسه کول. د تېر عبارت په لغاتو کې يې هم وضاحت وسو. ﴿حِسْبان﴾ د سمع د باب مصدر دی: ګومان کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې که مستحق کس له عادل څخه د خرڅ کړی سوي او هلاک سوي مرهون شي ضمان واخلي، نو عادل کس دي راهن (د مرهون شي مالک) ته ورسي او له راهن څخه دي هغه تاوان واخلي کوم چې ده مستحق کس ته ورکړی دی؛ ځکه عادل کس د همدې راهن وکيل دی او د هغه لپاره کار کونکی دی. لهذا په دې کار چې کوم نفع او نقصان راسي، هغه به د مؤکل يعني د راهن لپاره وي. لهذا په دې صورت کې چې د ضمان اداء کولو په وجه د عادل کس کوم نقصان سوی دی، هغه به له خپل مؤکل يعني له راهن څخه اخلي، او کله چې يې راهن هغه ته ورکړي، نو د مخکيني بيان سوي تفصيل مطابق راهن د هغه (مرهون) مالک کيږي او بيع صحيح کيږي، او کله چې بيع صحيح سي، نو عادل چې مرتهن د مرهون کوم ثمن ورکړی دی. د هغه په وجه مرتهن د خپل حق (قرض) ترلاسه کونکی هم ګرځي چې تر دې وروسته مرتهن له راهن څخه د خپل قرض په نامه يوه روپۍ هم نه سي اخيستلای.

وإن شاء إلخ: فرمايي عادل کس ته دويم اختيار دا حاصليږي چې که وغواړي نو مرتهن ته دي ولاړ سي او کوم ثمن چې هغه مرتهن ته ورکړی دی، هغه دي څنې واخلي؛ ځکه مرهون شی چې کله مستحق وختی او بيا عادل د هغه ضمان اداء کړی، نو عادل کس د هغه مالک سو. او کله چې دئ د مرهون شي مالک سو، نو ښکاره خبره ده چې د هغه ثمن به هم ده ته حاصليږي. او څرنګه چې عادل کس پر مرهون شي د راهن د ملکيت ګومان کړی وو (چې دا واقعي د راهن شی دی) او پر همدې بناء يې د هغه ثمن مرتهن ته ورکړی وو. لېکن کله چې هغه مستحق وختی، نو معلومه سوه چې د ثمن حقدار مرتهن نه دی بلکې د ضمان اداء کولو په وجه خپله عادل د هغه حق دار دی او مرتهن په ناحقه هغه ثمن اخيستی دی، نو ښکاره خبره ده چې عادل به اوس له مرتهن څخه هغه ثمن واپس اخلي او کله چې مرتهن اخيستل سوی ثمن واپس کړي، نو د هغه خپل حق (قرض) ترلاسه کول هم باطل سوه. لهذا اوس به هغه راهن ته ورځي او له هغه څخه به خپل قرض ترلاسه کوي.

خلاصه د خبرې دا چې د دغه معاملې په هر صورت کې به د انجام په اعتبار سره راهن تر ګرېوان نيول کيږي؛ ځکه چې هم هاغه د بل چا مستحق شی په رهن ايښی دی او دا ستونزه يې جوړه کړې ده.

## که مبيع مرهون شی د مشتري سره وي نو څه حکم دی؟

وَفِي الْوَجْهِ الثَّانِي وَهُوَ أَنْ يَكُونَ قَائِمًا فِي يَدِ الْمُشْتَرِي او په دويم صورت کي (او هغه دا دی چي خرڅ کړی سوی مرهون شی د مشتري په قبضه کي موجود وي) فَلِلْمُسْتَحِقِّ أَنْ يَأْخُذَهُ مِنْ يَدِهِ نو مستحق کس ته دا اختيار سته چي هغه د مشتري له قبضې څخه واخلي لِأَنَّهُ وَجَدَ عَيْنَ مَالِهِ ځکه چي هغه بعينهٖ خپل مال وميندلی ثُمَّ لِلْمُشْتَرِي أَنْ يَرْجِعَ عَلَى الْعَدْلِ بِالثَّمَنِ بيا مشتري ته دا حق سته چي پر عادل کس په خپل ثمن سره رجوع وکړي [ثمن څني واخلي] لِأَنَّهُ الْعَاقِدُ ځکه چي همدا عادل عقد کونکی دی [چي مرهون شی يې خرڅ کړی دی] فَتَتَعَلَّقُ بِهِ حُقُوقُ الْعَقْدِ نو د عقد حقوق به د همدې عادل سره متعلق وي وَهَذَا مِنْ حُقُوقِهِ او دا [ثمن اخيستل] هم د عقد له حقوقو څخه دي حَيْثُ وَجَبَ بِالْبَيْعِ ځکه چي [د مرهون شي] د خرڅولو په وجه واجب سوي دي وَإِنَّمَا أَدَّاهُ لِيَسْلَمَ لَهُ الْمَبِيعُ او مشتري عادل ته په دې وجه ثمن ورکړی دی چي مبيع [مرهون] د هغه لپاره سالم پاته سي وَلَمْ يَسْلَمْ حال دا چي هغه [د مشتري لپاره] سالم پاته نه سو.

**اللغات:** ﴿لِيَسْلَمَ﴾ د سمع د باب مضارع ده، په شروع کي يې "لام جاره" دی چي تر هغه وروسته "أنْ ناصبه" مقدر دی: سالم او خوندي پاته‌دل.

**تشريح:** مخکي چي کوم تفصيل او حکم بيان سو، دا د هغه حالت سره متعلق وو کله چي مبيع (خرڅ کړی سوی) مرهون شی د مشتري سره موجود نه وي بلکي مشتري هغه استعمال کړی او هلاک کړی يې وي، ليکن که مبيع مرهون شی د مشتري سره موجود وي نو څه به کيږي؟، په دې عبارت کي د همدې تفصيل بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چي که مبيع مرهون شی د مشتري سره موجود وي، نو بيا مستحق کس ته پکار دي چي له مشتري څخه دا مبيع واخلي او عادل وغيره دي پرېږدي؛ ځکه چي د هغه استحقاق په همدې مرهون شي کي ثابت سوی وو، او اوس هغه ده ته حاصل سو، لهذا د هغه قصه ختمه سوه، اوس د مشتري وار دی، نو د هغه په حق کي د شريعت فيصله دا ده چي مشتري دي له هغه عادل کس (بائع) څخه خپل ثمن واپس واخلي کوم چي پر مشتري دا مرهون شی خرڅ کړی وو؛ ځکه چي دلته همدا عادل کس عاقد او بائع دی او د عقد حقوق د عاقد وطرف ته راجع کيږي او څرنګه چي ثمن هم د عقد له حقوقو څخه يو حق دی، نو ځکه دا به هم د عاقد (عادل) وطرف ته راجع وي او همدا عاقد (عادل) به د هغه جواب ورکوي، او بل دا چي مشتري عادل ته د همدې لپاره

ثمن ورکړي وو چي عادل هغه ته مبيع مرهون وسپاري او هغه د مشتري سره سالم پاتـه سي. حال د چي د استحقاق (مستحق ختلو) په وجه د مبيـع سلامتي فوت سوه. نو ځکه اوس بـه مشتري تـه پر عادل کس د رجوع بالثمن اختيار وي.

## د ثمن تر لاسه کولو لپاره عادل کس ته دوه اختياره دي

ثُمَّ الْعَدْلُ بِالْخِيَارِ بيا عادل ته اختيار دی إِنْ شَاءَ رَجَعَ عَلَى الرَّاهِنِ بِالْقِيمَةِ که وغواړي نو پر راهن دي په قيمت سره رجوع وکړي لِأَنَّهُ هُوَ الَّذِي أَدْخَلَهُ فِي هٰذِهِ الْعُهْدَةِ ځکه چي همدې راهن په دغه ذمه واري کي عادل داخل کړی دی فَيَجِبُ عَلَيْهِ تَخْلِيصُهُ نو ځکه د هغه خلاصول به اهم پر همدې راهن واجب وي وَإِذَا رَجَعَ عَلَيْهِ او کله چي عادل پر راهن رجوع وکړي صَحَّ قَبْضُ الْمُرْتَهِنِ نو [پر ثمن] د مرتهن قبضه صحيح سوه [يعني هغه ثمن کوم چي يې د خپل قرض په عوض کي له عادل څخه اخيستی وو] لِأَنَّ الْمَقْبُوضَ سُلِّمَ لَهُ ځکه چي مقبوض [اخيستل سوی ثمن] د هغه لپاره سالم پاتـه سو وَإِنْ شَاءَ رَجَعَ عَلَى الْمُرْتَهِنِ او که عادل وغواړي نو پر مرتهن دي رجوع وکړي لِأَنَّهُ إِذَا انْتَقَضَ الْعَقْدُ ځکه کله چي عقد بيع مات سو [يعني عادل چي (د بل چا) مستحق مرهون شی خرڅ کړی دی. کله چي د عادل دا بيع ختمه سوه] بَطَلَ الثَّمَنُ نو ثمن [قيمت] باطل سو وَقَدْ قَبَضَهُ ثَمَنًا حال دا چي مرتهن د ثمن په توګه پر هغه [قيمت] قبضه کړې وه فَيَجِبُ نَقْضُ قَبْضِهِ ضَرُورَةً نو ضرورتاً د مرتهن د قبضې ماتول واجب دي وَإِذَا رَجَعَ عَلَيْهِ وَانْتَقَضَ قَبْضُهُ او کله چي عادل پر مرتهن رجوع وکړه او د مرتهن قبضه ماته سوه عَادَ حَقُّهُ فِي الدَّيْنِ كَمَا كَانَ نو د مرتهن حق په خپل قرض کي راوګرځېدی لکه څرنګه چي [مخکي] وو فَيَرْجِعُ بِهِ عَلَى الرَّاهِنِ نو ځکه مرتهن به په خپل قرض سره پر راهن رجوع کوي.

**اللغات:** ﴿العهدة﴾ ذمه واري، ضمان. ﴿تخليص﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: خلاصول. له يو شي څخه آزادول، نجات ورکول. ﴿سلم﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: ورسپارل. ﴿انتقض﴾ د افتعال د باب ماضي ده: ماتېدل. ختمېدل.

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي په مخکنۍ مسئله کي چي کله مشتري خپل ثمن له عادل څخه واپس واخلي، حال دا چي عادل هغه ثمن مرتهن تـه ورکړی وي، نو د خپل دغه حق د تر لاسه کولو لپاره عادل کس ته هم دوه اختياره حاصليږي:

(۱)... كه چيري هغه وغواړي، نو له راهن څخه دي د مرهون شي قيمت يا كوم مقدار چې هغه د ثمن په توګه ورکړی دی هغه مقدار دي له راهن څخه واخلي: ځکه چې همدې راهن عادل کس ته د بل چا (مستحق) شی اېښی دی او هغه يې په دې شخړه مبتلا کړی دی چې بالآخره له عادل څخه تاوان (ضمان) اخيستل سوی دی، نو ځکه له دې شخړې او تاوان څخه د عادل ايستل به هم د راهن پر ذمه وي، چې د هغه آسانه لاره همدا ده چې راهن هغومره ثمن عادل ته ورکړي کوم چې عادل د تاوان (ضمان) په توګه مشتري ته ورکړی دی. نو كه راهن عادل ته هغه ثمن ورکړي نو راهن د مرتهن له قرض څخه بري کيږي: ځکه چې مرتهن مخکې لا له عادل څخه ثمن اخيستی دی، په همدې وجه په آخر کې فرمايي چې کله عادل په ثمن سره پر راهن رجوع وکړي او راهن هغه ته ثمن ورکړي نو په دې صورت کې د مرتهن قبضه صحيح او تام ګرځي.

وإن شاء إلخ: (۲)... دويم اختيار عادل کس ته دا حاصليږي چې که هغه وغواړي نو مرتهن دي تر ګرېوان ونيسي او له مرتهن څخه دي هغه ثمن واپس واخلي کوم چې عادل کس له مشتري څخه اخيستی او مرتهن ته يې ته ورکړی وو (يعني چې په هغه سره يې د مرتهن قرض اداء کړی وو): ځکه چې د مبيع مرهون د استحقاق (مستحق ختلو) په وجه مذکوره عقد بيع ختم سو او کله چې عقد ختم سو، نو د ثمن په نامه چې کوم مال ورکول سوی دی، د هغه ثمن کېدل هم باطل سوه حال دا چې مرتهن هغه د ثمن کېدلو په اعتبار سره اخيستی وو، لېکن اوس د هغه ثمنيت ختم سو، نو ځکه پر مرتهن به د هغه واپس کول ضروري وي (چې عادل کس ته به يې واپس ورکوي) او کله چې مرتهن هغه واپس کړي، نو ښکاره خبره ده چې مرتهن ته د خپل قرض په عوض کې هيڅ حاصل نه سوه، نو ځکه په قرض کې د هغه حق بېرته راګرځي چې هغه به خپل قرض له راهن څخه واپس اخلي.

## او که مشتري ثمن مرتهن ته ورکړی وي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ أَنَّ الْمُشْتَرِيَ سَلَّمَ الثَّمَنَ إِلَى الْمُرْتَهِنِ او که چيري مشتري ثمن مرتهن ته ورکړی وي لَمْ يَرْجِعْ عَلَى الْعَدْلِ نو بيا به مشتري پر عادل کس رجوع نه کوي لِأَنَّهُ فِي الْبَيْعِ عَامِلٌ لِلرَّاهِنِ ځکه چې عادل په بيع کې د راهن لپاره کار کونکی دی وَإِنَّمَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ إِذَا قَبَضَ او پر عادل خو هغه وخت رجوع کولای سي کله چې هغه [پر ثمن] قبضه کړې وي وَلَمْ يَقْبِضْ حال دا چې هغه قبضه نه ده کړې فَبَقِيَ الضَّمَانُ عَلَى الْمُوَكِّلِ نو ځکه ضمان پر مؤکل [مرتهن] باقي پاته سو.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې مشتري ته له عادل څخه په هغه صورت کې د ثمن اخيستلو حق سته کله چې مشتري عادل ته ثمن ورکړی وي، لېکن که هغه د عادل پر ځای مرتهن ته ثمن

ورکړی وي او بیا مبیع مرهون مستحق وخېږي، نو په دې صورت کي هغه ته له مرتهن څخه د ثمن اخيستلو حق سته، نه له عادل څخه؛ ځکه چي عادل خو د راهن لپاره کارکونکی دی او له عادل څخه هغه وخت د ثمن اخيستلو حق سته کله چي هغه پر ثمن قبضه کړې وي. حال دا چي په دې صورت کي هغه ثمن ليدلی هم نه دی قبضه خو هلته پرېږده!، نو ځکه د ثمن ضمان به له مؤکل يعني له مرتهن څخه اخيستل کېږي.

**يادونه:** دلته له مؤکل څخه مرتهن مراد دی، نه راهن؛ ځکه چي بيع د همدې مرتهن د حق لپاره سوې ده. (بنايه، عنايه)

## په عقدِ رهن کي د توکيل دِ نه مشروط کېدلو حکم

وَإِن كَانَ التَّوْكِيلُ بَعْدَ عَقْدِ الرَّهْنِ غَيْرَ مَشْرُوطٍ فِي الْعَقْدِ او که چيري توکيل [وکالت] تر عقد رهن وروسته وي [او] په عقد کي مشرط نه وي فَمَا لَحِقَ الْعَدْلَ مِنَ الْعُهْدَةِ نو کومه ذمه واري چي عادل ته لاحقه سوې ده يَرْجِعُ بِهِ عَلَى الرَّاهِنِ د هغه په هکله به عادل پر راهن رجوع کوي قَبَضَ الثَّمَنَ الْمُرْتَهِنُ أَمْ لَا [برابره ده] مرتهن پر ثمن قبضه کړې وي که نه لِأَنَّهُ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهَذَا التَّوْكِيلِ حَقُّ الْمُرْتَهِنِ ځکه چي د دغه توکيل [وکالت] سره د مرتهن حق متعلق نه سو فَلَا رُجُوعَ نو [پر مرتهن] به رجوع نه کيږي كَمَا فِي الْوَكَالَةِ الْمُفْرَدَةِ عَنِ الرَّهْنِ لکه په هغه وکالت کي کوم چي له رهن څخه خالي وي [يعني له عقد رهن څخه بغير يو شوک د خپل يو شي د خرڅولو لپاره وکيل جوړ کړي او هغه ته حکم وکړي چي د دې شي ثمن فلانکي کس مثلاً حامد ته ورکړه!] إِذَا بَاعَ الْوَكِيلُ وَدَفَعَ الثَّمَنَ إِلَى مَنْ أَمَرَهُ الْمُوَكِّلُ کله چي وکيل سامان خرڅ کړي او ثمن هغه کس [حامد] ته ورکړي چي د هغه په باره کي مؤکل حکم ورته کړی وي ثُمَّ لَحِقَهُ عُهْدَةٌ بيا وکيل ته يوه ذمه واري لاحقه سي لَا يَرْجِعُ بِهِ عَلَى الْمُقْتَضِي نو وکيل به پر ثمن اخيستونکي کس [حامد] باندي رجوع نه کوي [بلکي پر مؤکل به رجوع کوي] بِخِلَافِ الْوَكَالَةِ الْمَشْرُوطَةِ فِي الْعَقْدِ په خلاف د هغه وکالت کوم چي په عقد کي شرط کړی سوی وي لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِهِ حَقُّ الْمُرْتَهِنِ ځکه چي د هغه سره د مرتهن حق متعلق سو فَيَكُونُ الْبَيْعُ لِحَقِّهِ نو بيع به د مرتهن د حق لپاره وي قَالَ ﷺ: هَكَذَا ذَكَرَ الْكَرْخِيُّ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: همداسي امام کرخي رَحِمَهُ الله ذکر کړي دي وَهَذَا يُؤَيِّدُ قَوْلَ مَنْ لَا يَرَى جَبْرَ هَذَا الْوَكِيلِ عَلَى الْبَيْعِ او دا [د امام کرخي قول] د هغه حضراتو د قول تائيد کوي کوم پر بيع د دغه وکيل مجبورول جائز نه گڼي [أي الوکيل الذي لم يکن وکالته مشروطة في العقد].

**اللغات:** ﴿لَحِقَ﴾ د سمع د باب ماضي ده: لاحق کېدل، رسېدل، متصل کېدل. ﴿مقتضی﴾ د افتعال د باب فاعل دی، مخکې يې معنیٰ ذکر سوه: (د ثمن) اخيستونکی، ترلاسه کونکی، قبضه کونکی.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که وکالت په عقد رهن کې مشروط (شرط کړی سوی) نه وي او عادل کس مرهون شی خرڅ کړي او د هغه ثمن مرتهن ته ورکړي، بيا يو بل څوک په دې مبيع مرهون کې خپل استحقاق ثابت کړي او له عادل څخه د هغه تاوان او جرمانه واخلي، نو په دې صورت کې عادل ته د خپل حق د ترلاسه کولو لپاره فقط يوه لاره ده چې هغه د راهن دروازه ده، يعني اوس عادل فقط له راهن څخه خپل حق اخيستلای سي او پر مرتهن په دې هکله هيڅ رجوع نه سي کولای؛ ځکه کلهٔ چي وکالت په عقد رهن کې مشروط نه وي نو ښکاره ده چې د هغه سره د مرتهن حق متعلق نه سو او کله چې د دې وکالت سره د مرتهن حق متعلق نه سو، نو ځکه په دې سلسله کې به له مرتهن څخه هيڅ مطالبه نه کيږي.

د دې مثال داسې دی لکه يو څوک مثلاً خالد بل څوک مطلق د خپل يو شي د خرڅولو وکيل جوړ کړي او هغه ته ووايي چې ته! دا شی خرڅ کړه او د هغه ثمن فلانکي کس (مثلاً حامد) ته ورکړه!، نو وکيل همداسې وکړي يعني شی خرڅ کړي او د هغه ثمن مطلوب کس (حامد) ته وسپاري، بيا يو بل څوک په هغه سامان کې د خپل استحقاق دعویٰ وکړي او خپله دعویٰ ثابته کړي او له وکيل څخه د هغه تاوان واخلي، نو اوس به وکيل هغه تاوان سيده له خپل مؤکل (خالد) څخه اخلي، نه له هغه کس (حامد) څخه چې وکيل هغه ته ثمن ورکړی وو؛ ځکه دلته خپله مؤکل دا حکم کړی وو چې د مذکوره شي ثمن دغه کس (حامد) ته ورکړه!، نو ځکه اوس به وکيل له خپل مؤکل (خالد) څخه تاوان اخلي.

د دې په خلاف هغه وکالت کوم چې په عقد رهن کې مشروط وي، په هغه کې وکيل له راهن او مرتهن دواړو څخه تاوان اخيستلای سي؛ ځکه څرنګه چې د هغه رهن سره د راهن حق متعلق وي همداسې د مرتهن حق هم ورسره متعلق وي (لکه مخکې چې ذکر سوه) نو هلته بيع د همدې مرتهن د حق (قرض) ورکولو لپاره متعيّنه وي او خاص د همدې لپاره کيږي، نو ښکاره ده چې په دې صورت کې به وکيل له مرتهن څخه هم تاوان اخيستلای سي.

صاحب د هدايې فرمايي چې امام کرخي رَحِمَهُ الله په خپل مختصر کې همداسې بيان کړي دي او په دې قول سره د هغه حضراتو د قول تائيد کيږي کوم چې په عقدِ رهن کې د غيرِ مشروط وکالت پر وکيل د بيع په باره کې جبر کول جائز نه ګڼي. (احسن الهدايه)

## د مرهون غلام تر مرګ وروسته د استحقاق ثابتېدلو حکم

قَالَ: وَإِنْ مَاتَ الْعَبْدُ الْمَرْهُوْنُ فِيْ يَدِ الْمُرْتَهِنِ فرمايي: او که مرهون غلام د مرتهن په قبضه کي مړ سي ثُمَّ اسْتَحَقَّهُ رَجُلٌ بيا يو سړی د هغه مستحق وخېږي فَلَهُ الْخِيَارُ نو مستحق کس ته اختيار دی إِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الرَّاهِنَ که وغواړي نو له راهن څخه دي ضمان واخلي وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْمُرْتَهِنَ او که وغواړي نو له مرتهن څخه دي ضمان واخلي لِأَنَّ كُلَّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا مُتَعَدٍّ فِيْ حَقِّهِ ځکه چي له دوی څخه هر يو د مستحق کس په حق کي تعدی کونکی دی بِالتَّسْلِيْمِ أَوْ بِالْقَبْضِ يا د ورسپارلو په وجه يا د قبضې په وجه [يعني راهن خو په دې وجه متعدي دی چي مرتهن ته يې داسي مرهون شی سپارلی دی، او مرتهن بيا په دې وجه متعدي دی چي پر هغه يې قبضه کړې ده] فَإِنْ ضَمَّنَ الرَّاهِنَ او که مستحق کس له راهن څخه ضمان واخلي فَقَدْ مَاتَ بِالدَّيْنِ نو مرهون [غلام] د قرض په عوض کي مړ سوی دی [لهذا مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی سو او قرض يې اداء سو] لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ ځکه چي راهن په ضمان اداء کولو سره د هغه مالک سوی دی فَصَحَّ الْإِيْفَاءُ نو ورکول [او د قرض اداء کول] صحيح سوه [يعني کله چي راهن د غلام مالک سو نو هغه چي مرتهن ته د قرض په عوض کي غلام ورکړی دی دا صحيح سوه او د مرتهن په قبضه کي د غلام د مړ کېدلو په وجه د مرتهن قرض اداء سو] وَإِنْ ضَمَّنَ الْمُرْتَهِنَ او که مستحق کس له مرتهن څخه ضمان واخلي يَرْجِعُ عَلَى الرَّاهِنِ بِمَا ضَمِنَ مِنَ الْقِيْمَةِ وَبِدَيْنِهِ نو مرتهن به پر راهن رجوع کوي په هغه قيمت سره کوم چي يې په ضمان کي اداء کړی دی او په خپل قرض سره [يعني په ضمان کي ورکول سوی قيمت او قرض به له راهن څخه واپس واخلي] أَمَّا بِالْقِيْمَةِ فَلِأَنَّهُ مَغْرُوْرٌ مِنْ جِهَةِ الرَّاهِنِ کوم چي قيمت دی نو ځکه چي مستحق کس د راهن له طرفه دوکه کړی سوی دی وَأَمَّا بِالدَّيْنِ فَلِأَنَّهُ انْتَقَضَ اقْتِضَاؤُهُ او کوم چي قرض دی نو ځکه چي د مرتهن اخيستل [د ثمن ترلاسه کول] مات سوه فَيَعُوْدُ حَقُّهُ كَمَا كَانَ نو ځکه د هغه حق [قرض] به بيرته راګرځي لکه [مخکي] چي وو.

**اللغات:** ﴿ايفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: پوره ورکول، اداء کول. ﴿مغرور﴾ د نصر له بابه د اسم مفعول صيغه ده: دوکه کړی سوی، فرېب خورده (چا ته چي دوکه ورکول سوې وي). ﴿الغرور﴾ دوکه، فرېب.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که راهن مرتهن ته غلام په رهن ورکړی، بيا هغه غلام د مرتهن په قبضه کې مړ سو، او تر مرګ وروسته يو بل څوک (مثلاً سعد) د هغه مستحق ثابت سو، نو اوس دغه مستحق کس (سعد) ته له راهن او مرتهن دواړو څخه د ضمان اخيستلو حق سته؛ ځکه دواړو د هغه په حق کي زياتوب او تعدی کړې ده، راهن خو په دې توګه تعدی کړې ده چي راهن د هغه غلام بل چا (مرتهن) ته سپارلی دی او مرتهن په دې توګه تعدی کړې ده چي هغه له څه تحقيق او پلټنې څخه بغير د بل چا پر غلام قبضه کړې ده، نو ځکه دواړه به خطا کاره او تعدی کونکي وي او مستحق (سعد) ته به له دوی هر يوه څخه د ضمان اخيستلو اختيار وي، لېکن د هر صورت حکم جلا دی، که چيري مستحق کس له راهن څخه ضمان واخلي، نو د مرهون غلام مړينه د مرتهن د قرض په عوض کي شمېرل کيږي (يعني ګواکي مرتهن خپل قرض ترلاسه کړی)؛ ځکه چي راهن د ضمان اداء کولو په وجه د دې غلام مالک سو او څرنګه چي د راهن دغه غلام د مرتهن په قبضه کي هلاک سوی دی (يعني د مرتهن سره مړ سوی دی)، نو ځکه د هغه د هلاکت او مړيني په وجه به مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی شمېرل کيږي او راهن به له قرض څخه بري کيږي.

او که چيري مستحق کس (سعد) له مرتهن څخه د غلام د قيمت ضمان واخلي او مرتهن هغه اداء کړي، نو په دې صورت کي به مرتهن له راهن څخه خپل اداء کړی سوی ضمان هم اخلي او خپل قرض به هم ځني اخلي، د ضمان د قيمت اخيستلو حق خو ځکه ورته سته چي راهن د بل چا غلام په رهن ورکړی دی نو دوکه يې ورکړې ده، او قاعده دا ده چي د غرر او دوکې په صورت کي پر دوکه ورکونکي ضمان (تاوان) واجبيږي. او د قرض اخيستلو حق ځکه ورته سته چي کلهٔ راهن د دغه غلام ضمان اداء نه کړی بلکي مرتهن اداء کړی، نو راهن د هغه مالک نه سو او کله چي راهن د غلام مالک نه سو، نو بيا د مرتهن په قبضه کي د غلام په هلاکت او مړيني سره مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی هم نه سو، او د مخکي په څېر پر راهن قرض باقي پاته سو. (احسن الهدايه)

## پر مذکوره مسئله يو اعتراض او د هغه جواب

فَإِنْ قِيلَ بيا که وويل سي [اعتراض وسي] لَمَّا كَانَ قَرَارُ الضَّمَانِ عَلَى الرَّاهِنِ بِرُجُوعِ الْمُرْتَهِنِ عَلَيْهِ کله چي پر راهن د مرتهن د رجوع کولو په وجه د ضمان ثبوت پر راهن سو وَالْمِلْكُ فِي الْمَضْمُونِ يَثْبُتُ لِمَنْ عَلَيْهِ قَرَارُ الضَّمَانِ او په مضمون کي ملکيت د هغه کس لپاره ثابتيږي چي پر هغه ضمان ثابت سوی وي فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ رَهَنَ مِلْكَ نَفْسِهِ نو دا څرګنده سوه چي راهن خپل ملکيت په رهن ورکړی دی فَصَارَ كَمَا إِذَا ضَمَّنَ الْمُسْتَحِقُّ الرَّاهِنَ ابْتِدَاءً نوداسي سولکه مستحق کس چي په شروع

کي له راهن څخه ضمان اخیستی وي قُلْنَا: هٰذَا طَعْنُ أَبِيْ خَازِمٍ الْقَاضِيْ نو موږ وایو: چي دا د قاضي ابو خازم اعتراض دی [چي د هغه نوم عبد الحمید بن عبد العزیز دی کوم چي د بغداد قاضي وو] وَالْجَوَابُ عَنْهُ أَنَّهُ يَرْجِعُ عَلَيْهِ بِسَبَبِ الْغُرُوْرِ او له دې څخه جواب دا دی چي مرتهن پر راهن د دوکې [دوکه کېدلو] په وجه رجوع کوي وَالْغُرُوْرُ بِالتَّسْلِيْمِ او دوکه په ورسپارلو کي ده [چي راهن د بل چا غلام مرتهن ته سپارلی دی] كَمَا ذَكَرْنَاهُ لکه څرنګه چي دا [څه مخکي] موږ ذکر کړه أَوْ بِالْانْتِقَالِ مِنَ الْمُرْتَهِنِ إِلَيْهِ یا د مرتهن له طرفه راهن ته د منتقل کېدلو په وجه كَأَنَّهُ وَكِيْلٌ عَنْهُ ګواکي مرتهن د راهن وکیل دی وَالْمِلْكُ بِكُلِّ ذٰلِكَ مُتَأَخِّرٌ عَنْ عَقْدِ الرَّهْنِ او ملکیت په دې هر یوه [یعني په تسلیم او انتقال] سره له عقد رهن څخه وروسته دی بِخِلَافِ الْوَجْهِ الْأَوَّلِ په خلاف د اول صورت لِأَنَّ الْمُسْتَحِقَّ يُضَمِّنُهُ بِاعْتِبَارِ الْقَبْضِ السَّابِقِ عَلَى الرَّهْنِ ځکه چي مستحق کس له مرتهن څخه د هغه قبضې په اعتبار سره ضمان اخلي کوم چي پر رهن مخکي ده فَيَسْتَنِدُ الْمِلْكُ إِلَيْهِ نو ملکیت به د قبضې وطرف ته منسوب کیږي فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ رَهَنَ مِلْكَ نَفْسِهِ نو دا خبره څرګنده شوه چي راهن خپل ملکیت په رهن ورکړی دی وَقَدْ طَوَّلْنَا الْكَلَامَ فِيْ كِفَايَةِ الْمُنْتَهِيْ او [په دې سلسله کي] موږ په کفایة المنتهي کي اوږد کلام کړی دی.

**اللغات:** ﴿قرار﴾ ثبوت او بقاء. ﴿أبي خازم﴾ د علامه لکنوي رَحِمَهُ الله په حاشیه کي د دې نوم عبد الحمید او په اُردو شروحاتو کي عبد المجید لیکل سوی دی، والله اعلم. ﴿یضمّنه﴾ د تفعیل د باب مضارع ده: ضامن ګرځول، ضمان ځني اخیستل. ﴿یستند﴾ د استفعال د باب مضارع ده. اِسْتَنَدَ يَسْتَنِدُ اِسْتِنَادًا: (د یو شي او یو حالت وطرف ته) تکیه کول، منسوب کېدل. استصحاب الحال المتأخر إلى الزمن المتقدم.

**تشریح:** صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله په دې عبارت کي د قاضي عبد الحمید بن عبد العزیز یو اعتراض او د هغه جواب بیان کړی دی. اعتراض دا دی چي څرنګه چي که مستحق کس له راهن څخه ضمان واخلي او راهن هغه ته ضمان ورکړي نو راهن د مرهون (غلام) مالک کیږي او بیا د مرهون هلاکت مضمون بالدین کیږي (یعني د مرهون غلام مرګ د مرتهن د قرض په عوض کي شمېرل کیږي او مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکي ګرځي)، نو همداسي که چیري مستحق کس له مرتهن څخه ضمان واخلي او بیا مرتهن هغه ضمان له راهن څخه واخلي، نو بنکاره ده چي په دې صورت کي هم د ضمان اداء کولو په وجه راهن د هغه مرهون (غلام) مالک شمېرل پکار دي او په

هغې صورت کې هم د مرهون غلام هلاکت مضمون بالدين کېدل پکار دي. حال دا چې تاسې په دې صورت کې هغه مضمون بالدين نه دی ګڼلی؟.

**والجواب عنه إلخ**: د مذکوره اعتراض د جواب حاصل دا دی چې کله مستحق کس له مرتهن څخه ضمان واخلي او مرتهن هغه اداء کړي نو په دې صورت کې د ضمان تر اداء کولو مخکې د مخکني (سابقه) قبضې په وجه راهن د مرهون مالک شمېرل سوی دی، ځکه قاعده دا ده چې "المضمونات تملك بالضمان السابق" (چې ضمان والا شيان په مخکيني ضمان او قبضه سره په ملکيت کې داخل شمېرل کيږي)، نو ګوا کې په اول صورت کې راهن خپل ملکيت (خپل غلام) مرتهن ته په رهن ورکړی دی او ښکاره خبره ده چې کله راهن خپل ملکيت په رهن ورکړي او مرهون د مرتهن سره هلاک سي، نو هغه مضمون بالدين کيږي.

لېکن په دې صورت کې خو نه تر ضمان او عقد رهن مخکې د راهن ملکيت ثابتېدلای سي او نه تر عقد رهن وروسته؛ ځکه چې د راهن د ملکيت دلته دوه سببه کېدلای سي:

①... د راهن له طرفه مرتهن ته دوکه ورکول کېدل او د دغه دوکې په وجه د مرتهن پر راهن رجوع کول (چې مرتهن له هغه څخه ضمان واخلي)، لېکن دا سبب د راهن د ملکيت سبب نه سي کېدلای: ځکه چې په مرهون (غلام) کې د مستحق کس استحقاق وروسته ښکاره سوی دی، نه له مخکې څخه. نو ځکه په هغه کې دوکه او غرور هم تر عقد رهن وروسته ثابت سوی دی، لهذا که هغه د راهن د ملکيت سبب ومنل سي، نو د راهن ملکيت به تر عقد رهن وروسته ثابت سي، او په داسې ملکيت سره د مرهون (غلام) هلاکت نه مضمون بالدين کيږي.

②... دويم سبب دا کېدلای سي چې کله مستحق کس له مرتهن څخه ضمان واخيستی او مرتهن هغه اداء کړي نو د ضمان تر اداء کولو وروسته مرتهن د مرهون مالک سو. خو څرنګه چې مرتهن د راهن په وجه پر دې مرهون قبضه کړې وه، نو ځکه دا ضمان د راهن و طرف ته متنقل کيږي او راهن چې مرتهن ته ضمان اداء کړي نو هغه د مرهون مالک سو او د هغه ملکيت پر مرهون د مرتهن تر قبضې وروسته شروع سو. او څرنګه چې د مرتهن قبضه له عقد رهن څخه وروسته ده، لهذا دلته به هم د راهن ملکيت له عقد رهن څخه وروسته ثابت سي، نو پر دې به هم د رهن احکام نه جاري کيږي او د مرهون (غلام) هلاکت به نه مضمون بالدين کيږي.

په همدې وجه صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي "والملك بكل ذلك متأخر عن العقد". د دې په خلاف په مخکيني صورت کې د راهن ملکيت د ضمان سابق او مخکنې قبضې په وجه ثابت سوی دی، نو ځکه په هغه صورت کې پر مرهون د رهن احکام جاري کيږي او هغه مضمون بالدين کيږي. فقط والله أعلم وعلمه أتم. (احسن الهدايه)

❀❀❀

## بَابُ التَّصَرُّفِ فِي الرَّهْنِ وَالْجِنَايَةِ عَلَيْهِ وَجِنَايَتِهِ عَلَى غَيْرِهِ

(دا) باب په رهن (مرهون) کي د تصرّف کولو. پر رهن (ديو چا) د جنايت کولو او پر بل چا د رهن د جنايت کولو (په بيان کي) دی

**تشريح**: دلته د دې احکام بيانول کيږي چي په مرهون کي تصرّف وسي يا يو څوک پر مرهون جنايت وکړي يا خپله مرهون (غلام مثلاً) پر يو چا جنايت وکړي.

څرنګه چي پر يو شي د تصرّف او جنايت احکام د هغه شي تر ثبوت او تحقّق وروسته جاري کيږي، نو ځکه اول د رهن له ثبوت څخه بحث سوی دی او اوس پر رهن د تصرّف او جنايت وغيره احکام او مسئلې بيانول کيږي (د دې لپاره چي ترتيب وضعي د ترتيب طبعي مطابق سي).

### د مرتهن له اجازې څخه بغير مرهون شی خرڅول

قَالَ: وَإِذَا بَاعَ الرَّاهِنُ الرَّهْنَ بِغَيْرِ إِذْنِ الْمُرْتَهِنِ فرمايي؛ او کله چي راهن د مرتهن له اجازې بغير مرهون خرڅ کړي فَالْبَيْعُ مَوْقُوفٌ نو مبيع موقوفه ده لِتَعَلُّقِ حَقِّ الْغَيْرِ بِهِ وَهُوَ الْمُرْتَهِنُ ځکه چي د هغه [مرهون] سره د بل چا حق متعلق دی چي هغه مرتهن دی فَيَتَوَقَّفُ عَلَى إِجَازَتِهِ نو ځکه دا بيع به د مرتهن پر اجازه موقوفه کيږي وَإِنْ كَانَ الرَّاهِنُ يَتَصَرَّفُ فِي مِلْكِهِ که څه هم راهن په خپل ملکيت کي تصرف کوي كَمَنْ أَوْصَى بِجَمِيعِ مَالِهِ لکه څوک چي د خپل ټوله مال وصيت وکړي تَقِفُ عَلَى إِجَازَةِ الْوَرَثَةِ فِيمَا زَادَ عَلَى الثُّلُثِ نو دا وصيت د وارثانو پر اجازه موقوف کيږي له درېيمي حصې څخه په زائد مال کي لِتَعَلُّقِ حَقِّهِمْ بِهِ ځکه چي د هغه [زائد على الثلث] سره د وارثانو حق متعلق دی فَإِنْ أَجَازَ الْمُرْتَهِنُ بيا که چيري مرتهن اجازه ورکړي جَازَ نو بيع جائز کيږي لِأَنَّ التَّوَقُّفَ لِحَقِّهِ ځکه چي د بيع موقوف کېدل د هغه [مرتهن] د حق په وجه وه وَقَدْ رَضِيَ بِسُقُوطِهِ او [اوس] هغه د خپل حق په ساقطېدلو راضي سوی دی وَإِنْ قَضَاهُ الرَّاهِنُ دَيْنَهُ او که چيري راهن د مرتهن قرض اداء کړي جَازَ أَيْضًا نو هم بيع جائز کيږي لِأَنَّهُ زَالَ الْمَانِعُ مِنَ النُّفُوذِ ځکه چي [د بيع] له نافذېدو څخه مانع شی زائل سو وَالْمُقْتَضِي مَوْجُودٌ او [د بيع د نافذېدو] تقاضا کونکی شی موجود دی وَهُوَ التَّصَرُّفُ الصَّادِرُ مِنَ الْأَهْلِ فِي الْمَحَلِّ او دا [مقتضي] هغه تصرف دی کوم چي د اهل کس له طرفه په محل کي صادر سوی دی.

**اللغات:** ﴿سقوط﴾ د نصر مصدر دی: ساقطېدل. ختمېدل. ﴿الأهل﴾ اهليت او صلاحيت لرونکی. قابل. ﴿المحل﴾ ځای. ﴿النفوذ﴾ د نصر مصدر دی: نافذېدل. جاري کېدل او پوره کېدل. ﴿الصادر﴾ د فاعل صيغه ده. د نصر او ضرب له هر باب څخه راځي: صادرېدونکی. واقع کېدونکی. حاصلېدونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** خو بالکل آسانه دی چي که د مرتهن له اجازې څخه بغير راهن مرهون شی خرڅ کړي، نو دا بيع د مرتهن پر اجازه موقوفه کيږي؛ ځکه چي د مبيع سره د مرتهن حق متعلق دی او مرتهن د هغه حقدار دی، او قاعده دا ده چي د کوم شي سره د بو چا حق متعلق وي، په هغه شي کي هر تصرّف د حقدار کس پر اجازه موقوف پاتيږي، او دلته که څه هم په ښکاره راهن په خپل ملکيت کي تصرّف کوي، ليکن ځرنګه چي هغه ملکيت د بل چا يعني د مرتهن په حق سره مشغول دی، نو ځکه د راهن مذکوره تصرّف به د مرتهن پر اجازه موقوف کيږي، که چيري مرتهن اجازه ورنه کړي، نو بيع نه نافذيږي او که اجازه ورکړي، نو بيع نافذيږي؛ ځکه دا بيع د همدې مرتهن د حق په وجه موقوفه ده او د مرتهن په اجازه ورکولو سره د خپل حق په ساقطېدلو راضي سو.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د دې يو مثال ذکر کوي چي که يو څوک د خپل ټوله مال د صدقه کولو وصيت وکړي چي زما ټوله مال دي مثلاً په مسجد يا مدرسه کې ولګول سي، نو دا وصيت فقط د مال په درېيمه حصه کي نافذيږي او له درېيمي حصې څخه بغير په نور مال کي د وارثانو پر اجازه موقوف کيږي؛ ځکه چي له درېيمي حصې څخه بغير د نور مال سره د وارثانو حق متعلق دی. نو همداسي په دې پورتنۍ مسئله کي هم د مرهون شي سره د مرتهن حق متعلق دی، نو ځکه د مرهون شي بيع به د هغه پر اجازه موقوفه کيږي.

خو که چيري تر بيع کولو وروسته راهن د مرتهن قرض اداء کړي، نو اوس بيع جائز ګرځي او خپله نافذيږي؛ ځکه کله چي راهن د مرتهن حق اداء کړی، نو اوس د مرهون شي سره د مرتهن هيڅ حق او تعلّق پاته نه سو او کوم څه چي د بيع له نافذېدو څخه مانع وه هغه ختم سوه او راهن په خپل ملکيت او په محل کي دا تصرّف کونکی سو، نو ځکه د هغه دا تصرّف (بيع) به جائز او نافذ وي.

**که مرتهن اجازه ورکړي نو حق يې د ثمن وطرف ته منتقل کيږي او د اجاز نه ورکولو حکم**

| |
|---|
| وَإِذَا نَفَذَ الْبَيْعُ بِإِجَازَةِ الْمُرْتَهِنِ او کله چي د مرتهن په اجازه سره بيع نافذه سوه يَنْتَقِلُ حَقُّهُ إِلَى بَدَلِهِ نو د هغه حق د مرهون شي د بدل [ثمن] وطرف ته منتقل کيږي هُوَ الصَّحِيحُ هم دا صحيح ده لِأَنَّ حَقَّهُ تَعَلَّقَ بِالْمَالِيَّةِ ځکه چي د مرتهن حق د ماليت سره متعلق دی وَالْبَدَلُ لَهُ حُكْمُ الْمُبْدَلِ او د بدل لپاره د مبدل حکم دی فَصَارَ كَالْعَبْدِ الْمَدْيُونِ الْمَأْذُونِ إِذَا بِيعَ بِرِضَا الْغُرَمَاءِ نو داسی سو لکه مأذون |

غلام چي كله د قرضخوهانو په رضا سره خرڅ كړی سي يَنْتَقِلُ حَقُّهُمْ إِلَى الْبَدَلِ نو د هغو حق د بدل وطرف ته منتقل كيږي لِأَنَّهُمْ رَضُوْا بِالِانْتِقَالِ دُوْنَ السُّقُوْطِ رَأْسًا ځكه چي هغوی په همدې منتقل كېدلو راضي سوي دي، نه په بالكليه ساقطېدلو فَكَذَا هٰذَا نو همداسي دا [مذكور صورت] هم دی وَإِنْ لَمْ يُجِزِ الْمُرْتَهِنُ الْبَيْعَ وَفَسَخَهُ او كه مرتهن د بيع اجازه نه وركړي او هغه فسخ [ماته] كړي اِنْفَسَخَ فِيْ رِوَايَةٍ نو د يوه روايت مطابق دا بيع فسخ كيږي حَتّٰى لَوْ اِفْتَكَّ الرَّاهِنُ الرَّهْنَ تر دې چي كه راهن رهن [مرهون] راخلاص كړي لَا سَبِيْلَ لِلْمُشْتَرِيْ عَلَيْهِ نو [بيا] پر رهن د مشتري لپاره هيڅ لاره نسته لِأَنَّ الْحَقَّ الثَّابِتَ لِلْمُرْتَهِنِ بِمَنْزِلَةِ الْمِلْكِ ځكه چي د مرتهن لپاره ثابت سوی حق د ملكيت په درجه كي دی فَصَارَ كَالْمَالِكِ نو مرتهن د مالک په څېر سو لَهُ أَنْ يُجِيْزَ وَلَهُ أَنْ يَفْسَخَ چي هغه ته دا حق [هم] سته چي [د بيع] اجازه وركړي او دا حق [هم] ورته سته چي فسخ يې كړي.

**اللغات:** ﴿نفذ﴾ د نصر ماضي ده: نافذېدل، جاري كېدل او پوره كېدل، لازمېدل. ﴿مبدل﴾ د كوم شي بدل چي وركول سوی وي، كوم شی چي د بدل (عوض) په مقابله كي وي. (لكه څرنګه چي مبيع ته په همدې وجه مبدل ويل كيږي چي هغه د بدل يعني د ثمن په مقابله كي وي). ﴿غرماء﴾ جمع د "غَرِيْمٌ" ده: د قرض مالک. قرضخواه (له مقروض څخه قرض غوښتونكی)، هغه څوک چي پر بل چا يې قرض (پور) باندي وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي كله مرتهن راهن ته د بيع اجازه وركړي او بيع نافذه سي او راهن له مشتري څخه ثمن ترلاسه كړي، نو اوس د مرتهن حق د مبيع (خرڅ كړی سوي) مرهون شي د ثمن سره متعلق كيږي؛ ځكه چي په اصل كي د مرتهن حق د ماليّت سره متعلق دی او څرنګه چي مرهون شی مال دی، همداسي د هغه بدل او ثمن هم مال دی، لهذا د مرتهن هغه حق كوم چي مخكي د مبدل يعني د مرهون سره متعلق وو، اوس د هغه د بدل يعني د ثمن سره متعلق كيږي، د دې مثال داسي دی لكه پر مأذون غلام چي د څو خلكو قرضونه باندي وي. نو د دې خلكو (قرضخواهانو) حق د هغه غلام د ماليت سره متعلق دی، لهذا كه د غلام مالک د قرضخواهانو په اجازه سره هغه خرڅ كړي، نو بيا د دوی ټولو حق د هغه ثمن ته منتقل كيږي او د ثمن سره متعلق كيږي؛ ځكه چي د بيع په اجازه وركولو سره قرضخواهان د خپل حق په منتقل كېدلو خو راضي دي، لېكن د خپل حق په ساقطېدلو راضي نه دي، نو همداسي په دې پورتنۍ مسئله كي هم چي كله مرتهن د بيع اجازه وركړه، نو هغه هم د خپل حق په انتقال اضي سوی دی، نه د خپل حق په سقوط.

وإن لم يجز إلخ: د دې حاصل دا دی چې که مرتهن د بيع اجازه نه ورکړي، بلکې سمدستي بيع فسخ (ماته) کړي، نو د بيع د فسخ کېدلو په هکله دوه روايتونه دي:

اول روايت کوم چې له محمد بن سماعه څخه نقل سوی دی، هغه دا دی چې (د مرتهن په فسخ کولو سره) بيع فسخ کيږي، همدا وجه ده که چيري د مرتهن د بيع تر فسخ کولو وروسته راهن مرهون شی راخلاص کړي يعني راهن د مرتهن قرض اداء کړي او خپل مرهون شی څني واخلي، نو اوس له مرهون څخه د مشتري ملکيت ختميږي او هغه مبيع نه پاتيږي. لهذا اوس مشتري هغه له راهن څخه نه سي اخيستلای؛ ځکه چې مرتهن له مخکي څخه بيع فسخ کړې ده او د مشتري معامله يې ختمه کړې ده.

د مرتهن په فسخ کولو سره د بيع د فسخ کېدلو دليل دا دی چې د مرهون شي سره د مرتهن حق متعلق دی ګواکي هغه د مرهون شي مالک دی په همدې وجه هغه د راهن تصرف منع کولای سي، او ښکاره خبره ده چې کله مرتهن د مالک په درجه کي دی نو څرنګه چې هغه ته دا حق سته چې د بيع اجازه ورکړي، نو همداسي هغه ته دا حق او اختيار هم سته چې بيع فسخ کړي.

**د صحيح روايت مطابق د مرتهن په اجازه نه ورکولو او فسخ کولو سره بيع نه فسخ کيږي**

وَفِي أَصَحِّ الرِّوَايَتَيْنِ لَا يَنْفَسِخُ بِفَسْخِهِ او په زيات صحيح روايت کي له دوو روايتونو څخه د مرتهن په فسخ کولو سره بيع نه فسخ کيږي لِأَنَّهُ لَوْ ثَبَتَ حَقُّ الْفَسْخِ لَهُ ځکه که چيري مرتهن لره د فسخ حق ثابتېدلای إِنَّمَا يَثْبُتُ ضَرُورَةَ صِيَانَةِ حَقِّهِ نو د هغه د حق خوندي کېدلو د ضرورت په خاطر به ورلره ثابتېدلای وَحَقُّهُ فِي الْحَبْسِ او د هغه حق په حبس [د مرهون په راګرځولو] کي دی [چې مرهون شی د ځان سره وګرځوي] لَا يَبْطُلُ بِانْعِقَادِ هٰذَا الْعَقْدِ او دا [د مرتهن د حبس حق] د دغه عقد بيع په منعقد کېدلو سره نه باطليږي فَبَقِيَ مَوْقُوفًا نو ځکه دا بيع موقوفه پاته سوه فَإِنْ شَاءَ الْمُشْتَرِيُ صَبَرَ حَتَّى يَفْتَكَّ الرَّاهِنُ الرَّهْنَ نو که د مشتري خوښه وي صبر دي وکړي تر دې چې راهن [مرهون شی] راخلاص کړي [او مشتري ته يې وسپاري] إِذِ الْعَجْزُ عَلَى شَرَفِ الزَّوَالِ ځکه چې [د مرهون شي له ورسپارلو څخه د راهن] عاجزه کېدل د زايلېدلو پر څنډه دي [چې ژر به زائل او ختم سي. نو تر هغه پوري دي صبر وکړي] وَإِنْ شَاءَ رَفَعَ الْأَمْرَ إِلَى الْقَاضِيْ او که خوښه يې وي نو دا معامله دي قاضي ته پېش کړي وَلِلْقَاضِي أَنْ يَفْسَخَ او قاضي ته دا حق سته چې بيع فسخ کړي لِفَوَاتِ الْقُدْرَةِ عَلَى التَّسْلِيمِ ځکه

چي [د مبيع] پر ورسپارلو قدرت فوت سوی دی [يعني راهن في الحاله د مبيع مرهون پر وسپارلو قادر نه دی] وَوِلَايَةُ الْفَسْخِ إِلَى الْقَاضِي لَا إِلَيْهِ او د فسخ کولو ولايت قاضي لره ده، نه مرتهن لره وَصَارَ كَمَا إِذَا أَبَقَ الْعَبْدُ الْمُشْتَرَى قَبْلَ الْقَبْضِ او دا داسي سوه لکه رانيول سوی غلام چي تر قبضې مخکي وتبنتي فَإِنَّهُ يَتَخَيَّرُ الْمُشْتَرِي نو [دلته هم] مشتري اختيارمن کيږي [يعني مذکوره دوه اختياره ورته حاصليږي] لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی كَذٰلِكَ هٰذَا نو همداسي دا [د رهن صورت] هم دی.

**اللغات:** ﴿صِيانة﴾ د نصر مصدر دی: حفاظت او ساتنه، خوندي کول او ساتل. ﴿شرف﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه يو څو دا دي: کناره، څنډه (ژی)، بوک، عرب وايي: هُوَ عَلٰى شَرَفِ الْهَلَاكِ، فلانکی د هلاکېدلو پر څنډه دی يعني هلاکېدلو ته ډېر نژدې دی. ﴿أَبَقَ﴾ د ماضي صيغه ده، له ضرب، نصر او سمع ټولو بابونو څخه راتلای سي: د غلام تبنتېدل. ﴿رفع﴾ د فتح د باب ماضي معلومه ده: پورته کول، پورته کېدل، کله چي د دغه باب په صله کي "إِلٰى" راسي، نو معنیٰ يې ده: د قاضي په عدالت او محکمه کي يو مسئله او معامله پېشول. ﴿فوات﴾ د نصر مصدر دی: فوتېدل، ساقطېدل او ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که مرتهن بيع فسخ کړي، نو د محمد بن سماعه د روايت مطابق خو بيع فسخ کيږي (لکه په تېر عبارت کي چي ذکر سوه)، لېکن زيات صحيح روايت دا دی چي مرتهن ته د بيع د فسخ کولو اختيار نسته او د هغه په فسخ کولو سره بيع نه فسخ کيږي؛ ځکه بالفرض که چيري مرتهن ته د بيع د فسخ کولو اختيار ورکول کېدلای، نو فقط د هغه د حق (قرض) د حفاظت لپاره به ورکول کېدلای او د هغه د حق حفاظت د بيع تر منعقد کېدلو وروسته هم کيږي؛ ځکه چي تر بيع وروسته د مرهون شي پر ځای د هغه بدل يعني ثمن راځي او د مرتهن سره محبوس کيږي، نو ځکه هغه ته د فسخ اختيار نه دی ورکول سوی، خو څرنګه چي د مرهون شي سره د مرتهن حق متعلق دی، نو د هغه د حق په خاطر شريعت د هغه پر اجازه بيع موقوف کړې ده. لهذا بيع خو فسخ کيږي نه، لېکن د هغه پر اجازه موقوف پاتيږي.

اوس د مشتري لپاره دوې لاري دي:

①... اوله او آسانه لاره دا ده چي تر بيع وروسته صبر او انتظار وکړي تر دې چي راهن د مرتهن قرض اداء کړي او له هغه څخه مرهون شی را خلاص کړي؛ ځکه في الحاله خو راهن مشتري ته د

مبيع (مرهون شي) له ورسپارلو څخه عاجزه دی. لېکن دا عاجزي ژر تر ژره ختمېدونکې ده، ځکه کېدلای سي چي مرتهن د ثمن په لالچ کي د بيع اجازه ورکړي، يا راهن خپله د مرتهن پر قرض اداء کولو قدرت پيدا کړي او قرض ورکړي، نو د مشتري د صبر شېبې به ختمي سي.

②... د مشتري لپاره دويمه لاره دا ده چي دا معامله د قاضي مخ ته پېش کړي او قاضي هغه فسخ کړي، ځکه کله چي بائع (راهن) اوس د مبيع پر ورسپارلو قادر نه دی او مشتري صبر نه کوي، نو بنکاره خبره ده چي دا بيع به فسخ کيږي، او د فسخ حق قاضي لره دی، نه مرتهن لره، نو ځکه د فسخ لپاره به قاضي ته معامله پېشوي، او بل دا چي کله د قاضي له طرفه بيع فسخ سي، نو د بائع او مشتري تر مينځ معامله او جنجال هم پوره ختميږي او د فتنې او فساد مخه نيول کيږي، نو په دې حواله سره هم د فسخ حق قاضي لره کېدل غوره معلوميږي.

وصار إلخ: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله د پورتني دويم روايت د تائيد لپاره يو مثال پېشوي. فرمايي چي که يو څوک غلام رانيسي لېکن بائع تر اوسه هغه ته غلام ورسپارلی نه وي چي غلام وتښتيږي، نو څرنګه چي اوس بائع د مبيع (غلام) پر ورسپارلو قادر نه دی، نو ځکه اوس د مشتري لپاره دوه اختياره او دوې لاري دي چي له هغوی څخه دي يو اختيار کړي، هغه دا چي يا مشتري دي د غلام د نيول کېدلو او واپس راتللو تر وخته پوري صبر وکړي، يا دي دا معامله قاضي ته پېشه کړي او د قاضي په ذريعه دي بيع فسخ کړي، نو همدغسي په پورتنۍ مسئله کي هم مشتري ته له مذکوره دوو اختياراتو څخه يو اختيار حاصليږي.

## د راهن دويمه بيع هم د مرتهن پر اجازه موقوفه کيږي

وَلَوْبَاعَهُ الرَّاهِنُ مِنْ رَجُلٍ او که چيري راهن پر يو سړي مرهون خرڅ کړي ثُمَّ بَاعَهُ بَيْعًا ثَانِيًا مِنْ غَيْرِهِ قَبْلَ أَنْ يُجِيزَهُ الْمُرْتَهِنُ بيا يې دويم ځل له هغه سړي څخه بغير پر بل چا خرڅ کړي مخکي تر دې چي مرتهن اجازه ورکړي [يعني بيا هغه مرهون شی د مرتهن له اجازې څخه مخکي پر بل چا هم خرڅ کړي] فَالثَّانِي مَوْقُوفٌ أَيْضًا عَلَى إِجَازَتِهِ نو دويمه بيع هم د مرتهن پر اجازه موقوفه ده لِأَنَّ الْأَوَّلَ لَمْ يَنْفُذْ ځکه چي اوله بيع نافذه نه سوه وَالْمَوْقُوفُ لَا يَمْنَعُ تَوَقُّفَ الثَّانِي او موقوف شی د دويم شي موقوف کېدل نه منع کوي فَلَوْ أَجَازَ الْمُرْتَهِنُ الْبَيْعَ الثَّانِيَ بيا که چيري مرتهن د دويمې بيع اجازه ورکړي جَازَ الثَّانِي نو دويمه بيع جائز کيږي [نافذيږي] وَلَوْ بَاعَ الرَّاهِنُ او که چيري راهن بيع وکړي [يعني مرهون شی پر يو سړي خرڅ کړي] ثُمَّ آجَرَ أَوْ وَهَبَ أَوْ رَهَنَ مِنْ غَيْرِهِ بيا له هغه [سړي] څخه بغير بل

چا ته [هغه مرهون شی] په اجاره ورکړي يا يې ورته هبه کړي يا يې په رهن ورکړي وَأَجَازَ الْمُرْتَهِنُ هٰذِهِ الْعُقُوْدَ او مرتهن د دغه عقدونو [اجاره، هبه او رهن] اجازه ورکړي جَازَ الْبَيْعُ الْأَوَّلُ نو اوله بيع جائز کيږي.

**اللغات:** ﴿يجيز﴾ د افعال د باب مضارع ده: اجازه ورکول، جائز ګرځول، نافذول. ﴿رَهَنَ﴾ د فتح د باب ماضي ده: په رهن (په ګرو) ايښوول، په رهن ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې د مرتهن له اجازې څخه بغير که چيرې راهن مرهون شی خرڅ کړي نو بيع موقوف کيږي (لکه مخکې چې ذکر سوه) او بيا که تر اوسه مرتهن اجازه ورکړې نه وه، چې راهن بيا هغه مرهون شی پر بل چا خرڅ کړی، نو اوس به څه کيږي؟، فرمايي چې څرنګه اوله بيع موقوفه وه، همداسې دويمه بيع هم موقوفه کيږي، بيا که چيرې مرتهن د اولې بيع اجازه ورکړي، نو اوله بيع نافذيږي او که د دويمې بيع اجازه ورکړي، نو دويمه بيع نافذيږي.

**سوال:** مصنف رَحِمَهُ الله خو فقط دا خبره ذکر کړې ده چې که د دويمې بيع اجازه ورکړي، نو هغه جائز کيږي؟.

**جواب:** هو! لېکن کله چې دويمه بيع جائز کيږي، نو که چيرې د اولې اجازه ورکړي، نو هغه خو په درجه اولیٰ جائز کيږي.

**سوال:** نو بيا ولې مصنف رَحِمَهُ الله دويمه بيع په ذکر سره خاص کړې ده چې فقط هغه يې ذکر کړې ده؟

**جواب:** د دويمې بيع او نورو عقدونو تر مينځ د فرق کولو لپاره، چې هغوی به په لاندينې عبارت کې ذکر سي.

ولو باع الراهن الخ: په دې عبارت کې د هغه فرق وضاحت سوی دی، حاصل د عبارت دا دی چې که چيرې راهن تر بيع وروسته بيا بيع وکړي، نو اوس ذکر سوه چې مرتهن د کومې بيع اجازه ورکړي صرف هغه بيع جائز کيږي او نافذيږي. خو که تر بيع وروسته هغه مرهون شی په اجاره ورکړي، يا يو چا ته يې په هبه ورکړي، يا يو چا ته يې په رهن ورکړي او مرتهن د دغه اجارې يا هبې يا رهن اجازه وکړي، نو بيا هم دا درې سره عقدونه نه جائز کيږي بلکې تر دوی مخکې چې کومه بيع سوې ده، صرف هغه جائز کيږي.

**سوال:** دغه بيع ته اوله بيع ولې ويل سوې ده، حال دا چې دلته دوې بيع نه دي سوې؟.

**جواب:** دې ته اوله بيع ځکه ويل سوې ده چې دا نورو عقدونو تر هغې وروسته واقع سوي دي او بيع تر دوی مخکې ده، نو په دې اعتبار "البيع الأول" ورته ويل سوې دي.

**سوال:** د دې څه وجه ده چې د دوو بيع کولو په صورت کې چې مرتهن د کومې بيع اجازه ورکړي، نو هغه جائز کيږي او نافذيږي، خو په دې نورو عقدونو کې د اجازې باوجود هم صرف اوله بيع نافذيږي، د دواړو صورتونو په مينځ کې د فرق وجه او دليل څه دی؟

**جواب:** په را روان عبارت کې مصنف رَحِمَهُ الله د همدې جواب ورکړی دی.

## په دواړو صورتونو کې د فرق وجه

وَالْفَرْقُ أَنَّ الْمُرْتَهِنَ ذُوْحَظٍّ مِنَ الْبَيْعِ الثَّانِيْ او فرق يې دا دی چې مرتهن له دويمې بيع څخه حصه داره دی لِأَنَّهُ يَتَعَلَّقُ حَقُّهُ بِبَدَلِهِ ځکه چې د مرتهن حق د مرهون د بدل [ثمن] سره متعلق دی فَيَصِحُّ تَعْيِيْنُهُ لِتَعَلُّقِ فَائِدَتِهِ بِهِ نو د دويمې بيع سره د مرتهن د فايدې د متعلق کېدلو په وجه د هغې تعيين [متعين‌ول] صحيح دي أَمَّا لَا حَقَّ لَهُ فِي هٰذِهِ الْعُقُوْدِ لېکن په دغه عقدونو [اجاره، هبه او رهن] کې د هغه هيڅ حق نسته لِأَنَّهُ لَا بَدَلَ فِي الْهِبَةِ وَالرَّهْنِ ځکه چې په هبه او رهن کې خو هيڅ بدل نسته وَالَّذِيْ فِي الْإِجَارَةِ بَدَلُ الْمَنْفَعَةِ لَا بَدَلُ الْعَيْنِ او کوم بدل چې په اجاره کې دی هغه د منفعت بدل دی، نه د عين بدل وَحَقُّهُ فِي مَالِيَّةِ الْعَيْنِ لَا فِي الْمَنْفَعَةِ او د مرتهن حق د عين په ماليت کې دی، نه په منفعت کې فَكَانَتْ إِجَازَتُهُ إِسْقَاطًا لِحَقِّهِ نو ځکه د مرتهن اجازه د هغه د خپل حق ساقطول سوه فَزَالَ الْمَانِعُ نو مانع زائل سو فَنَفَذَ الْبَيْعُ الْأَوَّلُ نو ځکه اوله بيع به نافذيږي فَوَضَحَ الْفَرْقُ نو [د دواړو ترمينځ] فرق څرګند سو.

**اللغات:** ﴿حظ﴾ حصه، برخه. ﴿منفعة﴾ نفع، فايده. ﴿مانع﴾ د فتح د باب فاعل دی: منع کونکی، بنديز.

**تشريح:** په دې عبارت کې مصنف رَحِمَهُ الله د پورتني دواړو صورونو تر مينځ فرق بيان کړی دی، حاصل يې دا دی چې په اول صورت (يعني د دوو بيعو په صورت) کې د مرتهن حق د بيع سره متعلق وي؛ ځکه د مرتهن حق په بدل کې دی چې د بيع په صورت کې به بدل (ثمن) د مرهون پر ځای هغه ته په رهن اينښول کيږي او کېدلای سي چې د مرتهن فايده او ګټه په دويمه بيع کې وي په دې توګه چې د هغې ثمن زيات وي، نو د خپل منفعت او فايدې په خاطر مرتهن ته د يوې بيع د تعين حق ورکول سوی دی.

او په دويم صورت (يعني د بيع او نورو عقدونو په صورت) کې په دريو سره عقدونو (اجاره، هبه او رهن) کې د مرتهن هيڅ حق نسته؛ ځکه چې په هبه او رهن کې خو يو هم بدل نه دی او په اجاره کې اجرت

بدل دی خو هغه د منفعت بدل دی، د عينِ ماليت بدل نه دی او د مرتهن حق د عينِ ماليت سره متعلق دی، د منفعت سره متعلق نه دی.

خلاصه د خبرو دا چې مرتهن لره په دغه عقدونو کې هيڅ حق نسته، نو په دغه عقدونو کې د هغه اجازه د تعيين کار نه کوي، بلکې د حق د اسقاط کار کوي، يعنې په اجازه ورکولو سره مرتهن له مرهون شي څخه خپل حق پورته کړي، او د راهن له تصرف کولو څخه چې کوم شي مانع وو، هغه مانع ختم سو، اوس به مورږ خپله غور کوو چې کوم عقد جائز وګرځوو (عقدِ بيع او که دا نور عقدونه)، نو مورږ عقدِ بيع اختيار کړی دی او هغه مو جائز ګرځولی دی؛ ځکه چې بيع تر نورو عقدونو مخکې ده او ځکه چې هغه لازمه ده او ځکه چې په هغه کې د مرتهن نفع ده، لهذا فرق څرګند سو.

## د مرهون غلام د آزادولو حکم او د امام شافعي رَحِمَهُ الله اختلاف

قَالَ: وَلَوْ أَعْتَقَ الرَّاهِنُ عَبْدَ الرَّهْنِ فرمايي: او که چيرې راهن د رهن غلام آزاد کړي نَفَذَ عِتْقُهُ نو د هغه عتق [آزادي] نافذيږي وَفِي بَعْضِ أَقْوَالِ الشَّافِعِيِّ او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په بعضې اقوالو کې دي [يعني د امام شافعي يو قول دا دی] لَا يَنْفُذُ إِذَا كَانَ الْمُعْتِقُ مُعْسِرًا چې عتق نه نافذيږي که چيرې آزادونکی [راهن] تنګلاسی وي لِأَنَّ فِي تَنْفِيذِهِ إِبْطَالَ حَقِّ الْمُرْتَهِنِ ځکه چې د هغه په نافذولو کې د مرتهن د حق باطلول سته فَأَشْبَهَ الْبَيْعَ نو دا د بيع په څېر سوه بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ مُوسِرًا په خلاف د هغه صورت کله چې مُعتِق [راهن] مالدار وي حَيْثُ يَنْفُذُ عَلَى بَعْضِ أَقْوَالِهِ نو په دې صورت کې د امام شافعي رَحِمَهُ الله د بعضې اقوالو مطابق عتق نافذيږي لِأَنَّهُ لَا يَبْطُلُ حَقُّهُ مَعْنًى بِالتَّضْمِينِ ځکه چې د ضمان واجبولو په وجه معناً د مرتهن حق نه باطليږي وَبِخِلَافِ إِعْتَاقِ الْمُسْتَأْجِرِ او په خلاف د هغه غلام د آزادولو کوم چې په اُجرت نيول سوی وي لِأَنَّ الْإِجَارَةَ تَبْقَى مُدَّتَهَا ځکه چې اجاره تر خپل مودته پورې باقي پاتيږي إِذِ الْحُرُّ يَقْبَلُهَا ځکه چې آزاد کس اجاره قبلوي أَمَّا لَا يَقْبَلُ الرَّهْنَ لېکن رهن نه قبلوي فَلَا يَبْقَى نو ځکه رهن به باقي نه پاتيږي وَلَنَا: أَنَّهُ مُخَاطَبٌ او زمورږ دليل دا دی: چې راهن [په شرعي احکامو] مخاطَب دی [عاقل او بالغ دی] أَعْتَقَ مِلْكَ نَفْسِهِ چې هغه خپل ملکيت آزاد کړی دی فَلَا يَلْغُو تَصَرُّفُهُ بِعَدَمِ إِذْنِ الْمُرْتَهِنِ نو د مرتهن د اجازت په نشتوالي سره به د هغه تصرف نه لغو کيږي كَمَا إِذَا أَعْتَقَ الْعَبْدَ الْمُشْتَرَى قَبْلَ الْقَبْضِ لکه کله

چيري رانيول سوى غلام تر قبضې مخکي آزاد کړي أَوْ أَعْتَقَ الْآبِقَ أَوْ الْمَغْصُوبَ يا [لكه] تښتېدلی يا غصب کړی سوی غلام آزاد کړي وَلَا خَفَاءَ فِيْ قِيَامِ مِلْكِ الرَّقَبَةِ او د رقبې [غلام] د ملکيت په موجود والي کي هيڅ پټوالي نسته لِقِيَامِ الْمُقْتَضِيْ ځکه چي [د هغه] تقاضا کونکی موجود دی وَعَارِضُ الرَّهْنِ لَا يُنْبِئُ عَنْ زَوَالِهِ او د رهن عارض کېدل د ملکيت د زوال خبر نه ورکوي.

**اللغات**: ﴿مُعتِق﴾ د افعال د باب فاعل دی: آزادونکی، ﴿معسر﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: تنګلاسی، غريب او مفلس، ﴿موسر﴾ مخکنۍ صيغه ده: پراخ لاسی، مالدار (شتمن)، ﴿تنفيذ﴾ د تفعيل مصدر دی: نافذول، جاري کول، معتبر ګرځول، ﴿قِيـام﴾ د نصر مصدر دی: قايمېدل، ثابتېدل او موجودېدل (موجود والی)، ثابت پاتېدل، ﴿لا يلغو﴾ د نصر له باب څخه د نفي صيغه ده: لغو او بېکاره کېدل، باطلېدل، ﴿زوال﴾ د نصر مصدر دی: زائلېدل، ليري کېدل او ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که چيري راهن خپل يو غلام مرتهن په رهن ورکړی وي، لېکن بيا د مرتهن له اجازې څخه بغير راهن هغه غلام آزاد کړي، نو په دې صورت کي د احنافو مسلک دا دی چي د راهن اعتاق (آزادول) صحيح دی او دا عتق نافذيږي، برابره ده راهن مالدار وي او که تنګلاسی وي، د دې په خلاف له امام شافعي رَحِمَهُ الله څخه په دې هکله درې قولونه نقل سوي دي:

① ... د احنافو په څېر د هغه په نېز هم دا عتق نافذيږي، برابره ده مُعتِق (راهن) مالدار وي او که تنګلاسی وي.

② ... عتق نه نافذيږي.

③ ... که چيري معتق يعني راهن تنګلاسی وي نو عتق نه نافذيږي؛ ځکه چي په دې صورت کي د مرتهن د حق باطلول سته او د بل چا حق باطلول صحيح نه دي، نو ځکه په دې صورت کي به عتق نه نافذيږي، خو که چيري راهن کوم چي مُعتق دی مالدار وي چي ضمان (تاوان) اداء کولای سي، نو په دې صورت کي د شوافعو په نېز هم عتق نافذيږي؛ ځکه چي دلته د معنیٰ په اعتبار سره د مرتهن حق نه باطليږي، نو د هغه دا حق به له عتق څخه مانع نه وي، د دې په خلاف که يو چا (مثلاً عُمر) يو غلام په اُجرت او مزدورۍ نيولی وي مثلاً د دوو مياشتو لپاره، لېکن بيا د اجارې په مودت (دوو مياشتو) کي دننه مُوجر يعني د غلام مالک دا مُستاجَر غلام آزاد کړي نو د هغه عتق نافذيږي، حال دا چي د دې صورت کي هم د مُستأجِر (عُمر) نقصان دی چي د اجارې له مودت څخه مخکي يې غلام آزاد کړی؟،

دا ګواکي پر شوافعو اعتراض دی او جواب يې دا دی چي په رهن او اجاره کي فرق دی او دواړه يو ګڼل

صحيح نه دي؛ ځکه چې په اجاره کې تر آزادۍ (آزادېدلو) وروسته هم دا غلام اجير (مزدور) پاتې کېږي او دا اجارې تر مودې (دوو مياشتو) پورې عقد اجاره باقي پاتېږي ځکه چې د اجارې او آزادۍ تر مينځ هيڅ منافات نشته، او بل د مُستأجِر هم نقصان پکښې نشته، نو ځکه د اجارې په صورت کې اعتاق صحيح دی او عتق نافذېږي.

د دې په خلاف د رهن او حُريت تر مينځ منافات شته او آزاد غلام چا ته په رهن ورکول صحيح نه دي، نو ځکه د اعتاق سره سمدستي رهن ختمېږي، او ښکاره خبره ده چې په دې کې د مرتهن د حق باطلول شته، نو ځکه د راهن اعتاق به نه نافذول کېږي.

ولنا أنه مخاطب إلخ: زموږ مسلک ذکر سو چې د راهن اعتاق صحيح او نافذ دی، په دې باره کې زموږ دليل دا دی چې راهن عاقل، بالغ او د شريعت په احکامو مکلف او مخاطب دی او د خپل اهليت او قابليت پر بناء په محل يعني په خپل ملکيت کې تصرّف کونکی دی، نو ځکه د هغه تصرّف به نه لغو کېږي بلکې صحيح او نافذ به وي؛ ځکه چې مرهون (غلام) په حقيقت کې د راهن ملکيت دی او که څه هم پر مرهون د هغه قبضه نشته، خو بيا هم د هغه اعتاق صحيح دی؛ ځکه چې د عتق د نافذېدو لپاره د مُعتَق (غلام) مقبوض کېدل ضروري نه دي. مثلاً که يو څوک غلام رانيسي او تر اوسه يې پر هغه قبضه نه وي کړې (يعني له بائع څخه اخيستی نه وي) چې هغه آزاد کړي، نو د هغه عتق نافذېږي که څه هم پر غلام د هغه قبضه نشته، همدارنګه که ديو سړي غلام تښتېدلی وي او په قبضه کې يې نه وي او په همدې حالت کې يې هغه آزاد کړي، نو د هغه عتق هم ثابتېږي او نافذېږي، همدارنګه که يو څوک له يو سړي څخه غلام غصب او په همدې حالت کې مالک خپل غصب کړی سوی غلام آزاد کړي، نو دا غلام هم آزادېږي، حال دا چې پر هغه د مالک قبضه نشته، لهذا څرنګه چې په دې درېو مثالو کې له قبضې څخه بغير محض د ملکيت (مالک والي) پر بناء هم عتق ثابتېږي، نو همداسې به په پورتنۍ مسئله کې هم د راهن له طرفه عتق ثابتېږي؛ ځکه چې مرهون (غلام) د هاغه په ملکيت کې دی او د مرهون (غلام) رهن صحيح کېدل د دې خبرې دليل دی چې هغه د راهن ملکيت دی، پاتې سوه د رهن په وجه چې پر مرهون (غلام) د مرتهن قبضه ده، نو هغه خو عارضي او ژر ختمېدونکې ده او راهن يې ختمولای سي، نو ځکه هغه د عتق لپاره مانع نه ګرځي.

## د مرهون غلام د آزادولو نتائج

ثُمَّ إِذَا زَالَ مِلْكُهُ فِي الرَّقَبَةِ بِإِعْتَاقِهِ بيا چې کله په رقبه [غلام] کې د راهن ملکيت زائل سو د غلام د آزادولو په وجه يَزُوْلُ مِلْكُ الْمُرْتَهِنِ فِي الْيَدِ بِنَاءً عَلَيْهِ نو په قبضه کې د مرتهن ملکيت زائلېږي پر هغه په بناء کولو سره كَإِعْتَاقِ الْعَبْدِ الْمُشْتَرَكِ لکه د مشترک غلام آزادول بَلْ أَوْلَى بلکې په برجه

اولیٰ [به زائلیږي] لِأَنَّ مِلْكَ الرَّقَبَةِ أَقْوٰى مِنْ مِلْكِ الْيَدِ ځکه چې د رقبې ملکیت د قبضې له ملکیت څخه ډېر قوي دی فَلَمَّا لَمْ يَمْنَعِ الْأَعْلٰى نو کله چې [د عتق له نافذېدو څخه] اعلیٰ مانع نه دی لَا يَمْنَعُ الْأَدْنٰى بِالطَّرِيْقِ الْأَوْلٰى نو ادنیٰ به په طريقه اولیٰ مانع نه وي وَامْتِنَاعُ النَّفَاذِ فِى الْبَيْعِ وَالْهِبَةِ لِانْعِدَامِ الْقُدْرَةِ عَلَى التَّسْلِيْمِ او په بيع او هبه کې د نفاذ ممتنع کېدل پر ورسپارلو د قدرت نه لرلو په وجه دي وَإِعْتَاقُ الْوَارِثِ الْعَبْدَ الْمُوْصٰى بِرَقَبَتِهِ لَا يَلْغُوْ او د وارث آزادول د داسې غلام [يعني چې وارث داسې غلام آزاد کړي] چې د هغه د رقبې وصيت سوی وي نه لغو کيږي بَلْ يُؤَخَّرُ إِلٰى أَدَاءِ السِّعَايَةِ عِنْدَ أَبِيْ حَنِيْفَةَ بلکې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز د آزادول [اعتاق] به د سعايه اداء کولو تر وخته پورې ځنډول کيږي وَإِذَا نَفَذَ الْإِعْتَاقُ او کله چې اعتاق نافذ سي بَطَلَ الرَّهْنُ لِفَوَاتِ مَحَلِّهِ نو د رهن د محل فوتېدلو په وجه به رهن باطليږي.

**اللغات:** ﴿رقبة﴾ غاړه، مملوک ذات، مراد غلام دی. ﴿اليد﴾ لاس، قبضه، تصرّف. ﴿ملک الرقبة﴾ د رقبې ملکيت (د غلام يا مينځې مالک کېدل) يعني چې غلام يا مينځه د انسان په ملکيت کې وي، دې ته ملکِ يمين هم وايي. ﴿السعاية﴾ د سمع مصدر دی: سعی او کوښښ کول، د يو چا د حق اداء کولو لپاره خواري کښل، د ځان آزادولو لپاره کسب او مزدوري کول او مال ګټل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري راهن خپل مرهون غلام (کوم چې يې مرتهن ته په رهن ورکړی وي) آزاد کړي، نو ښکاره خبره ده چې په هغه غلام کي د راهن ملکيت ختم او زائل سو او کله چې د راهن ملکيت ختم سو، نو د مرتهن د "يد استيفاء" ملکيت هم ختميږي يعني مرتهن ته چې په دې مرهون غلام سره د خپل قرض د ترلاسه کولو قبضه او ملکيت حاصل وو، هغه هم ختميږي؛ ځکه چې د مرتهن ملکيت د همدې راهن پر ملکيت مبني وي، لهذا کله چې د اصل ملکيت ختم سو، نو د فرع ملکيت هم ختميږي.

د دې مثال داسې دی لکه يو غلام چې د دوو کسانو تر مينځ مشترک وي او له دوی څخه يو شريک هغه آزاد کړي، نو د دويم شريک حصه هم آزاديږي او د دويم شريک ملک رقبه له اعتاق څخه نه مانع کيږي، لهذا کله چې ملک رقبه کوم چې اعلیٰ دی، د اعتاق له صحت او نفاذ څخه مانع نه ده، نو ملک يد کوم چې له ملک رقبه څخه د کمې درجې دی، دا خو به په درجه اولیٰ د راهن له اعتاق څخه مانع نه وي او د غلام عتق به نافذيږي چې د هغه په نتيجه کې د مرتهن "يد استيفاء" هم ختميږي.

**سوال:** د يوه شي سره د بل چا حق متعلق کېدل د تصرف له نفاذ څخه مانع وي، لکه د بيع او هبې په مثال کي چي مخکي ذکر سوه، نو بيا عتق ولي نافذيږي؟.

**جواب:** وامتناع النفاذ إلخ: د جواب حاصل دا دی چي د بيع او هبې نه نافذېدل فقط په دې وجه دي چي راهن لره پر تسليم قدرت نسته (يعني راهن د مبيع او موهوب غلام پر ورسپارلو قادر نه دی لکه مخکي چي ذکر سوه)، په همدې وجه د تبنتېدلي غلام بيع او د مستاجَر غلام بيع نه نافذيږي او عتق يې نافذيږي.

**سوال:** که چيري زيد خپل وارث (ميراث خور) ته وصيت وکړي چي زما په ميراث کي فلانکی غلام وخالد ته ورکړه! لېکن وارث خالد ته تر ورکولو مخکي هغه غلام آزاد کړي، نو دا اعتاق نه صحيح کيږي؛ ځکه وارث که څه هم د غلام مالک دی خو د هغه غلام سره د خالد حق متعلق دی، نو همداسي د راهن عتق هم نه صحيح کېدل پکار دي؟.

**جواب:** ستاسي مسئله موږ نه تسليموو، بلکي د وارث دغه اعتاق صحيح دی، لېکن دومره خبره سته چي دا غلام به موصیٰ لهٗ (خالد) ته د خپل قيمت لپاره سعي او ګټه کوي يعني خپل د قيمت په اندازه مال به ګټي او خالد ته به يې ورکوي نو بيا هغه آزاديږي، خو دا تأخير هم د امام صاحب رَحِمَهُ الله د قول مطابق دی، کنې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز في الحاله آزاديږي.

خلاصه د خبري دا چي د اعتاق تصرف لغو نه دی، بلکي هغه په هر حال کي نافذيږي. لهذا

- څرنګه چي غلام اوس آزاد سو، او آزاد د رهن محل نه دی، نو ځکه رهن باطليږي؛ ځکه چي آزاد کس رهن نه قبلوي.

## د غلام تر آزدی وروسته که راهن مالدار وي نو له هغه څخه به د قرض مطالبه کيږي

ثُمَّ بَعْدَ ذٰلِكَ إِنْ كَانَ الرَّاهِنُ مُوسِرًا بيا تر دې وروسته که چيري راهن مالدار وي وَالدَّيْنُ حَالًا او قرض حالي وي [يعني في الحاله واجبُ الاداء وي] طُوْلِبَ بِأَدَاءِ الدَّيْنِ نو له راهن څخه به د قرض اداء کولو مطالبه کيږي لِأَنَّهُ لَوْ طُوْلِبَ بِأَدَاءِ الْقِيمَةِ ځکه که چيري له راهن څخه د قيمت اداء کولو مطالبه وسي تَقَعُ الْمُقَاصَّةُ بِقَدْرِ الدَّيْنِ نو د قرض په مقدار به مقاصه واقع کيږي فَلَا فَائِدَةَ فِيهِ نو په دې کي څه فايده نسته وَإِنْ كَانَ الدَّيْنُ مُؤَجَّلًا او که قرض نېټه داره [ميادي] وي أُخِذَتْ مِنْهُ قِيمَةُ الْعَبْدِ نو له راهن څخه به د غلام قيمت اخيستل کيږي وَجُعِلَتْ رَهْنًا مَكَانَهُ او د غلام پر ځای به دا قيمت په رهن ايښوول کيږي حَتّٰى يَحِلَّ الدَّيْنُ تر دې چي د قرض اداء کولو وخت راسي لِأَنَّ سَبَبَ

الضَّمَانِ مُتَحَقِّقٌ ځکه چي د ضمان سبب موجود دی وَفِي التَّضْمِينِ فَائِدَةٌ او په ضمان واجبولو [ضامن ګرځولو] کي فايده شته فَإِذَا حَلَّ الدَّيْنُ لهذا کله چي د قرض اداء کولو وخت راغلی اِقْتَضَاهُ بِحَقِّهِ نو مرتهن دي هغه [ضمان] د خپل حق په عوض کي واخلي إِذَا كَانَ مِنْ جِنْسِ حَقِّهِ کله چي هغه [ضمان] د مرتهن د حق له جنس څخه وي وَرَدَّ الْفَضْلَ او زياتوب [زائد مقدار] دي واپس کړي.

**اللغات**: ﴿موسر﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: پراخ لاسی، مالدار (شتمن). ﴿حال﴾ نقد (نغد)، حال: (في الحاله او فوراً اداء کېدونکی. في الحاله واجبُ الاداء). ﴿طولب﴾ د افعال د باب ماضي مجهوله ده: مطالبه کول. ﴿المقاصة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: يو شی د بل شي سره مقابله کول. ادل بدل کول (د مثال په توګه که پر زيد د خالد لس درهمه قرض باندي وي او بيا د خالد هم پر زيد لس درهمه قرض باندي سي. نو دوی خپل قرضونه سره مقابله او ادل بدل کړي، دې ته مقاصه وايي)، تبادله کول، په برابرۍ سره يو شی د بل شي په مقابله کي راتلل. ﴿مؤجل﴾ د تفعيل د باب مفعول دی: نېټه داره، ميعادي (ميادي). د کوم عوض لپاره چي مياد او موده ټاکل سوې وي (چي دومره وخت وروسته يې ورکوم). ﴿الفضل﴾ اضافه (اضافي مقدار). زياتوب.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی که چيري راهن خپل مرهون غلام آزاد کړي، نو اوس به دې ته کتل کيږي چي راهن مالدار دی او که تنګلاسی دی، که راهن مالدار وي او قرض في الحاله واجبُ الاداء وي، نو له راهن څخه به د قرض اداء کولو مطالبه کيږي، او صرف د قرض مطالبه به ځني کيږي. نه د مرهون غلام د قيمت؛ ځکه کله چي د قرض اداء کولو وخت راغلی دی، نو اوس د قيمت د مطالبې کولو هيڅ فايده نسته؛ ځکه که چيري قيمت ځني واخيستل سي او قيمت او قرض دواړه متحدُ الجنس وي، نو د قرض په اندازه به مقاصه کيږي او که قيمت څه زيات وي نو هغه زائد مقدار به بيرته راهن ته واپس کول کيږي، نو له دې کړکيچ او نزاع څخه د بچ کېدلو لپاره به د قيمت مطالبه نه ځني کيږي، بلکي صرف د قرض اداء کولو مطالبه به ځني کيږي.

او که چيري قرض ميادي وي (يعني د هغه لپاره معلوم مياد او نېټه ټاکل سوې وي). نو په دې صورت کي به له راهن څخه د مرهون غلام قيمت اخيستل کيږي او همدا قيمت به د غلام پر ځای په رهن ايښوول کيږي او تر څو چي قرض اداء نه سي، تر هغه وخته همدا قيمت د غلام پر ځای رهن پاتيږي. او کله چي د قرض اداء کولو وخت راسي. نو که قرض او قيمت دواړه متحدُ الجنس وي، نو مرتهن به له هغه څخه خپله حصه او قرض اخلي. پاته سوه پر راهن د ضمان واجبېدلو مسئله نو ضمان ځکه پر واجب دی چي راهن د مرهون په آزادولو سره د مرتهن حق باطل کړی دی. او ښکاره خبره ده چي د بل چا حق باطلول د ضمان واجبېدلو سبب دي.

دا پورتني تفصيلات هغه وخت دي کله چي راهن مالدار (شتمن) وي.

**او که راهن غریب وي نو غلام به په خپل قیمت کې سعی کوي، او د مشترک غلام صورت**

وَإِنْ كَانَ مُعْسِرًا او که راهن تنګلاسی [غریب] وي سَعَى الْعَبْدُ فِي قِيمَتِهِ نو غلام به د خپل قیمت لپاره سعی [او کټه] کوي [خپل قیمت به ګټي] وَقَضَى بِهِ الدَّيْنَ او په هغه [ګټه] سره به قرض اداء کوي إِلَّا إِذَا كَانَ بِخِلَافِ جِنْسِ حَقِّهِ مګر دا چې قرض د مرتهن د حق د جنس په خلاف وي لِأَنَّهُ لَمَّا تَعَذَّرَ الْوُصُولُ إِلَى عَيْنِ حَقِّهِ مِنْ جِهَةِ الْمُعْتِقِ ځکه کله چې د مُعتِق [راهن] له طرفه [د مرتهن] خپل عینِ حق ته رسېدل مشکل سوه يَرْجِعُ إِلَى مَنْ يَنْتَفِعُ بِعِتْقِهِ وَهُوَ الْعَبْدُ نو مرتهن به پر هغه کس رجوع کوي کوم چې د راهن په عتق [آزادۍ] سره نفع اخلي او هغه غلام دی لِأَنَّ الْخَرَاجَ بِالضَّمَانِ ځکه چې نفع په ضمان [تاوان] سره ده [ګټه په تاوان ده] قَالَ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ: وَتَأْوِيلُهُ إِذَا كَانَتِ الْقِيمَةُ أَقَلَّ مِنَ الدَّيْنِ صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي: او د دې تأويل دا دی چې کله [د غلام] قيمت له قرض څخه کم وي أَمَّا إِذَا كَانَ الدَّيْنُ أَقَلَّ لیکن که چیرې قرض کم وي نَذْكُرُهُ إِنْ شَاءَ اللَّهُ تَعَالَى نو هغه به موږ ان شاء الله تعالیٰ [وروسته] ذکر کړو ثُمَّ يَرْجِعُ بِمَا سَعَى عَلَى مَوْلَاهُ إِذَا أَيْسَرَ بیا به غلام پر خپل مالک [مُعتِق راهن] رجوع کوي په هغه مقدار سره چې سعی يې پکښې کړې ده [ګټلی يې دی] کله چې مالک مالدار سي لِأَنَّهُ قَضَى دَيْنَهُ ځکه چې غلام د مالک [مُعتِق راهن] قرض اداء کړی دی وَهُوَ مُضْطَرٌّ فِيهِ بِحُكْمِ الشَّرْعِ او غلام په دې هکله د شریعت په حکم سره مجبوره دی فَيَرْجِعُ عَلَيْهِ بِمَا تَحَمَّلَ عَنْهُ نو ځکه غلام به پر همدې مالک [مُعتِق راهن] رجوع کوي په هغه مقدار سره کوم چې يې د مالک له طرفه زغملی دی بِخِلَافِ الْمُسْتَسْعَى فِي الْإِعْتَاقِ په خلاف د هغه غلام چې په هغه سره [د هغه] په آزادولو کې سعی [او کټه] کړل سوې وي [صورت به يې په تشريح کې ذکر سي] لِأَنَّهُ يُؤَدِّي ضَمَانًا عَلَيْهِ ځکه چې دا غلام هغه ضمان اداء کوي کوم چې پر ده لازم دی لِأَنَّهُ إِنَّمَا يَسْعَى لِتَحْصِيلِ الْعِتْقِ عِنْدَهُ ځکه د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز هغه غلام د آزادۍ حاصلولو لپاره سعی کوي وَعِنْدَهُمَا لِتَكْمِيلِهِ او د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله د آزادۍ پوره کولو لپاره سعی کوي وَهُنَا يَسْعَى فِي ضَمَانٍ عَلَى غَيْرِهِ بَعْدَ تَمَامِ إِعْتَاقِهِ او دلته غلام په داسې ضمان [قرض] کې سعی کوي کوم چې له هغه څخه

بغير پر بل چا [مُعتِق راهن] باندي لازم دی فَصَارَ كَمُعِيرِ الرَّهْنِ نو هغه [مستسعی غلام] داسي سو لکه د رهن [مرهون شي] عاريتاً ورکونکی.

**اللغات:** ﴿وصول﴾ د ضرب مصدر دی: رسېدل (خپل حق او مال ته رسېدل. حق ترلاسه کول). ﴿الخراج﴾ د دې لفظ څو معناوي دي چي له هغوی څخه ځيني دا دي: حاصلات. پيداوار. مراد: نفع او ګټه. ﴿الضمان﴾ تاوان، جرمانه. ﴿الخراج بالضمان﴾ ګټه په تاوان سره ده. دا يو محاوره ده. مطلب يې دا دی چي کوم څوک له يو شي څخه فايده او نفع اخلي د هغه شي خرچ او تاوان هم پر ده لازمېږي (لکه پښتو کي چي هم ځيني وخت د دې مقصد لپاره همداسي ويل کيږي چي "ګټه په تاوان ده"). ﴿تحمّل﴾ د تفعّل ماضي ده: پورته کول. زغمل (برداشت کول). ﴿مستسعٰی﴾ د استفعال د باب مفعول دی: هغه غلام چي د سعی کولو او مال ګټلو طلب ځني سوی وي، هغه غلام چي د خپل پاتي حصې د آزادولو لپاره سعی او خواري په کښل کيږي چي مال وګټي او د پاته حصې مالک ته يې ورکړي چي غلام په پوره توګه آزاد سي. ﴿معير﴾ د افعال د باب فاعل دی: عاريتاً ورکونکی (په عاريت ورکونکی). مثلاً که زيد خالد ته خواست وکړي چي فلانکی شی ما ته د يو څو وخت لپاره راکړه! زه به خپل کار ځني واخلم بيرته به يې درکړم او خالد هغه شی ورکړي، نو دې ته عاريتاً ورکول وايي. خالد ته مُعير وايي او زيد ته مُستعير وايي. ﴿الرهن﴾ مراد ځني مرهون شی دی. مُعير الرّهن: د مرهون شي عاريتاً ورکونکی.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که چيري راهن غريب او تنګلاسی وي، نو ښکاره خبره ده چي هغه د مرتهن قرض نه سي اداء کولای، لهذا اوس به د مرتهن حق په هغه آزاد کړی سوي غلام (مُعتَق) سره وزکول کيږي چي غلام به سعی او ګټه کوي، او د هغه په قيمت او قرض کي چي د کوم يوه مقدار کم وي، هغومره مقدار به مرتهن ته ورکوي؛ په غلام سره د سعی کولو وجه دا ده چي د راهن د غريب کېدلو په وجه اوس د راهن له طرفه مرتهن ته حق (قرض) ورکول کېدل مشکل او ستونزمن دي، او څرنګه چي دا ستونزه او مشکل د غلام د آزادولو په وجه پېښ سوی دی او راهن د مرتهن د حق (قرض) ضامن سوی دی، نو ځکه اوس به د هغه تلافي او تدارک هم د غلام په ذريعه کيږي؛ ځکه قاعده دا ده چي "الخراج بالضمان" يعني نفع او ګټه د ضمان (تاوان) سره متعلق ده. او څرنګه چي د آزادۍ نفع او مزه غلام اخيستې ده. نو ځکه د مرتهن حق به هم په هاغه ورکول کيږي.

**قال ﷺ:** فرمايي چي په دغه مسئله کي چي مورږ دا حکم کړی دی چي غلام به په خپل قيمت کي سعی کوي (سَعَی العبد في قيمته)، دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي قيمت له قرض څخه کم وي، لېکن که قرض کم وي، نو د هغه حکم به وروسته بيان کړو.

ثم يرجع إلخ: د دې حاصل دا دی چې په دې صورت کې سعی کونکی غلام چې کوم قرض اداء کړی دی، ښکاره خبره ده چې هغه پر غلام واجب او لازم نه وو بلکې هغه خو د غلام د مُعتَق مالک (راهن) قرض وو، او د مُعتَق (راهن) د قرض اداء کولو لپاره غلام سعی او کټه کړې ده. نو څکه کله چې مُعتَق مالدار وي، نو غلام به هغه مال (کوم چې يې ګټلی دی او مرتهن ته يې ورکړی دی) له خپل مُعتَق (راهن) څخه واپس اخلي.

بخلاف المستسعٰی إلخ: د دې په خلاف هغه غلام کوم چې د دوو کسانو تر مينځ مشترک وي او له دوی څخه يو شريک خپله حصه آزاد کړي او دويم شريک د خپلې حصې د قيمت په اندازه په غلام سعی او ګټه وکړي، نو دا غلام له مُعتَق شريک څخه يوه روپۍ هم نه سي اخيستلای، برابره ده مُعتَق شريک مالدار وي او که تنګلاسی وي؛ څکه چې په دې صورت کې غلام کومه ګټه کړې ده، په هغه ګټه سره يې هغه قرض او حق اداء کړی دی کوم چې پر غلام لازم دی، نه هغه قرض کوم چې پر مُعتَق شريک لازم دی، نو څکه دا غلام له خپل مُعتَق څخه د هيڅ شي مطالبه هم نه سي کولای، او څرنګه چې د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز په عتق کې تجزي نه سي کېدلای (آزادي جزء جزء او حصه حصه نه سي کېدلای يعني داسي نه سي کېدلای چې د غلام يوه حصه دې آزاده سي او په پاته حصه کې دې غلامتوب [رقيت] پاته سي)، نو د يوه شريک تر آزادولو وروسته د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله په نيز ګواکي ټوله غلام آزاد سو. لهذا اوس د غلام سعی او ګټه کول د دوی په نيز د آزادۍ د تکميل لپاره کيږي، او څرنګه چې د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز عتق متجزي کيږي، نو څکه د يوه شريک تر آزادولو وروسته د هغه په نيز د غلام سعی کول د آزادۍ د تحصيل لپاره کيږي؛ څکه چې د پاتي نيمي حصې آزادي تر اوسه باقي ده.

د دې په خلاف په پورتنۍ مسئله کې چې غلام کومه سعی او ګټه کړې ده، څرنګه چې هغه د بل چا يعني د مُعتَق مالک (راهن) د حق لپاره ده، نو څکه که چيري مالک (راهن) مالدار وي. نو هغه غلام به خپل اداء کړی سوی مال له مالک څخه واپس اخلي، همدا وجه ده چې که مالک د آزادولو په وخت کې مالدار وي، نو پر غلام هيڅ هم واجب نه دي.

د دې مثال داسي دی لکه رهن په عاريت ورکول، مثلاً زيد مجبوره دی او خالد هغه ته خپل يو شی په عاريت ورکړی چې ته دا يو چا ته په رهن ورکړه او له هغه څخه قرض واخله!، او زيد هغه شی مثلاً حامد ته په رهن ورکړی او قرض يې څني واخيستی، بيا خالد (مُعير) خپل شي ته محتاج سو نو د زيد له طرفه يې حامد (مرتهن) ته قرض اداء کړی او خپل شی يې له هغه څخه واخيستی، نو ښکاره ده چې خالد د زيد (مُستَعير) د غرض په وجه مجبوراً د زيد قرض اداء کړی دی، لهذا تر دې وروسته چې کله هم زيد مالدار سي او لاس ته يې مال راسي، نو خالد به د هغه اداء کړی سوي قرض

مقدار له زيد څخه واپس اخلي، نو همداسي په پورتني مسئله کي هم مذکوره غلام د خپل مُعتق (راهن) د غريب والي په وجه د مجبوري پر بناء د هغه قرض اداء کړي دي، لهذا کله چي هم د هغه مُعتق مالدار سي، نو غلام به له هغه څخه اداء کړي سوي مقدار واپس اخلي.

## د مشترک غلام د يوې حصې د آزادولو په هکله د امام صاحب رَحِمَهُ الله رايه

ثُمَّ أَبُوحَنِيفَةَ أَوْجَبَ السِّعَايَةَ فِي الْمُسْتَسْعَى الْمُشْتَرَكِ فِي حَالَتَي الْيَسَارِ وَالْإِعْسَارِ بيا امام صاحب رَحِمَهُ الله په هغه مشترک غلام کي چي سعی په کول کيږي د مالداري او تنګلاسي په دواړو حالتونو کي سعايه واجب کړې ده وَفِي الْعَبْدِ الْمَرْهُونِ شَرَطَ الْإِعْسَارَ او په مرهون غلام کي يې د تنګلاسي شرط لګولی دی لِأَنَّ الثَّابِتَ لِلْمُرْتَهِنِ حَقُّ الْمِلْكِ ځکه چي مرتهن لره د ملکيت حق ثابت دی وَأَنَّهُ أَدْنَى مِنْ حَقِيقَتِهِ الثَّابِتَةِ لِلشَّرِيكِ السَّاكِتِ او دا [د ملکيت حق] له هغه حقيقي ملکيت څخه د کمي درجې دی کوم چي د ساکت [نا آزادونکي] شريک لپاره ثابت دی فَوَجَبَ السِّعَايَةُ هُنَا فِي حَالَةٍ وَاحِدَةٍ نو دلته [په رهن کي] صرف په يوه حالت کي سعايه [سعی کول] واجب سوه إِظْهَارًا لِنُقْصَانِ رُتْبَتِهِ د هغه د مرتبې [درجې] د کموالي د ښکاره کولو لپاره بِخِلَافِ الْمُشْتَرِي قَبْلَ الْقَبْضِ إِذَا أَعْتَقَهُ الْمُشْتَرِي په خلاف د هغه رانيول سوي غلام کوم چي تر قبضې مخکي مشتري آزاد کړی وي حَيْثُ لَا يَسْعَى لِلْبَائِعِ په دې حيثيت سره چي هغه غلام به د بائع لپاره سعی [او کټه] نه کوي إِلَّا رِوَايَةً عَنْ أَبِي يُوسُفَ مګر له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه د يوه روايت مطابق وَالْمَرْهُونُ يَسْعَى او مرهون غلام به سعی کوي لِأَنَّ حَقَّ الْبَائِعِ فِي الْحَبْسِ أَضْعَفُ ځکه چي د حبس [مبيع راګرځولو] په هکله د بائع حق ضعيف دی لِأَنَّ الْبَائِعَ لَا يَمْلِكُهُ فِي الْآخِرَةِ ځکه چي بائع په مآل کي د حبس نه مالک کيږي وَلَا يَسْتَوْفِي مِنْ عَيْنِهِ او نه بائع د مبيع له عين څخه [خپل ثمن] ترلاسه کولای سي وَكَذَلِكَ يَبْطُلُ حَقُّهُ فِي الْحَبْسِ بِالْإِعَارَةِ مِنَ الْمُشْتَرِي همدارنګه مشتري ته [د مبيع] په عاريتاً ورکولو سره هم د حبس په هکله د بائع حق باطليږي وَالْمُرْتَهِنُ يَنْقَلِبُ حَقُّهُ مِلْكًا او د مرتهن حق په ملکيت سره بدليږي وَلَا يَبْطُلُ حَقُّهُ بِالْإِعَارَةِ مِنَ الرَّاهِنِ او راهن ته په عاريتاً ورکولو سره د مرتهن حق [هم] نه باطليږي حَتَّى يُمْكِنَهُ الِاسْتِرْدَادُ تر دې چي هغه ته [له راهن څخه د مرهون] واپس اخيستل ممکن دي [يعني هغه ته د دې

قدرت او اختيار سته] فَلَوْ أَوْجَبْنَا السِّعَايَةَ فِيهِمَا نو كه چيري موږ په دې دواړو صورتونو كي سعی كول واجب كړو لَسَوَّيْنَا بَيْنَ الْحَقَّيْنِ نو موږ به د دواړو حقونو تر مينځ برابري كونكي سو وَذٰلِكَ لَا يَجُوْزُ او دا جائز نه دي.

**اللغات:** ﴿مستسعٰی﴾ د تېر عبارت په لغاتو کي يې وضاحت وسو. ﴿يَسَار﴾ پراخ لاسي. مالداري (شتمن والی). ﴿إِعْسَار﴾ د افعال مصدر دی: تنګلاسي، غربت (غريبوالی). ﴿ساکت﴾ خاموش، چپ پاتېدونکی، نه آزادونکی (دلته دويم شريک ته ساکت ځکه ويل سوي دي چي هغه خپله حصه نه ده آزاده کړي بلکي له خپلي حصي څخه يې سکوت اختيار کړی دی)، ﴿حبس﴾ د ضرب مصدر دی: بندول، منع کول. (د ځان سره) راګرځول. ﴿اعارة﴾ د افعال د باب مصدر دی: عاريتاً ورکول. د دې معنیٰ هم په تېرو لغاتو کي د مُعير د لفظ په وضاحت کي ذکر سوه. ﴿استرداد﴾ د استفعال مصدر دی: واپس اخيستل. ﴿سوّينا﴾ د تفعيل له بابه د جمع متکلم ماضي صيغه ده: برابرول، برابري راوستل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي کوم غلام د دوو کسانو تر مينځ مشترک وي او له دوی څخه يو شريک (مثلاً خالد) خپله حصه آزاد کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز دويم شريک (مثلاً حامد) ته په دغه غلام سره د سعی کولو حق په هر حال کي سته، يعني برابره ده مُعتِق شريک (خالد) مالدار وي او که غريب وي، په هر صورت کي ساکت شريک (حامد) د خپلي حصې لپاره په دغه غلام سره سعی او کټه کولای سي. د دې په خلاف که چيري راهن مرهون غلام آزاد کړي، نو مرتهن ته صرف په هغه صورت کي په مرهون غلام سره د سعی کولو حق سته کله چي راهن غريب او تنګلاسی وي، لېکن که راهن مالدار وي، نو په دې صورت کي به مرتهن له همدې راهن څخه خپل حق (قرض) اخلي او په غلام سعی نه سي کولای، په همدې وجه ويل سوي دي چي "ولی العبد المرهون شرط الإعسار".

د مشترک غلام او مرهون غلام تر مينځ په سعی کي د فرق کولو وجه دا ده چي په دواړو غلامانو کي چي د حقدار کس لپاره کوم ملکيت ثابتيږي، اصلاً په هغه ملکيت کي فرق دی، په دې توګه چي په مرهون غلام کي د مرتهن لپاره صرف د ملکيت حق ثابت دی، نه حقيقي ملکيت، حال دا چي په مشترک غلام کي د ساکت شريک لپاره حقيقي ملکيت ثابت دی، او ښکاره خبره ده چي حقيقي ملکيت له حق ملکيت څخه اعلیٰ او اقویٰ دی، نو ځکه د دې حقيقي ملکيت مطالبه به په دواړو صورتونو کي کيږي او مُعتِق که مالدار وي او که تنګلاسی وي په دواړو صورتونو کي به ساکت شريک ته په غلام سره د سعی کولو حق وي، د دې په خلاف د مرتهن چي کوم ملکيت دی څرنګه

چي هغه د ساکت شريک له ملکيت څخه اضعف دی، نو ځکه د هغه مطالبه فقط د راهن د غريب والي په حالت کي له غلام څخه کېدلای سي او که چيري راهن مالدار وي، نو مرتهن فقط له راهن څخه مطالبه کولای سي، څرنګه چي د ملکيت په حواله سره مرهون غلام له مشترک غلام څخه د کمي درجې دي، نو ځکه د دغه فرق د څرګندولو لپاره مرهون غلام صرف په يوه حالت کي په سعايه سره مکلّف کړی سوی دی.

بخلاف المشتري إلخ: د دې حاصل دا دی چي که زيد مثلاً د خالد غلام رانيسي، لېکن د ثمن له اداء کولو او پر غلام له قبضې کولو څخه مخکي زيد (مشتري) هغه غلام آزاد کړي، نو عتق خو صحيح دی، لېکن خالد (بائع) ته چي تر اوسه ثمن نه دی ورکول سوی، آيا خالد د خپل ثمن لپاره په دې مبيع غلام سره سعی کولای سي؟.

فرمايي چي نه! خالد د خپل ثمن لپاره اوس په دې غلام سره سعی نه سي کولای، برابره ده مشتري يعني زيد مالدار وي او که غريب وي، همدا د جمهورو علماؤ قول دی او همدا ظاهر روايت دی، د دې په خلاف له امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله څخه يو روايت دا دی چي که مشتري غريب او تنګلاسی وي، نو بائع د خپل ثمن لپاره په هغه سعی کولای سي، بيا چي کله مشتري مالدار سي نو له هغه څخه دې خپل اداء کړی سوی مقدار واخلي، لېکن مونږ تاسي ته وويل چي په ظاهر روايت کي بائع ته په غلام سره د سعی کولو حق نسته، برابر ده مشتري مالدار وي او که غريب وي. حال دا چي که راهن مرهون غلام آزاد کړي او هغه غريب وي، نو مرتهن په هغه مرهون غلام سره سعی کولای سي، لکه په پوره تفصيل سره چي دا مسئله اوس تېره سوه.

نو ژآخر په دې دواړو کي د فرق وجه څه ده؟.

صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په "لأن حق البائع إلخ" سره همدا فرق بيان کړی دی فرمايي چي ورو ره! دلته هم اصلاً د بائع او مرتهن د حق او ملکيت تر مينځ فرق دی نو ځکه په حکم کي يې هم فرق دی، او هغه فرق په دې توګه دی چي د مرتهن په مقابله کي د بائع حق کمزوری دی او بائع ته صرف د حبس مبيع (مبيع راګرځولو) حق سته، لېکن د انجام او آخر په اعتبار سره بائع د دغه مبيع (غلام) مالک نه دی، همدا وجه ده که چيري دا مبيع (غلام) د بائع په قبضه کي هلاک سي، نو بائع د هغه نه مالک کيږي، ځکه چي مشتري خو له مخکي څخه لا هغه آزاد کړی دی، د دې په خلاف په مرهون غلام کي د مرتهن د حبس حق قوي دی او د نجام په اعتبار سره مرتهن د مرهون مالک کيږي هم، لهذا که چيري مرهون د مرتهن په قبضه کي هلاک سي، نو د مرتهن د قرض حق ساقطيږي او د دې

هلاکت په وجه هغه د خپل قرض ترلاسه کونکی شمېرل کېږي، نو ښکاره خبره ده چې د مرتهن حق له بائع څخه زيات دی.

همدارنګه بائع خپل ثمن په عينِ مبيع سره نه سي ترلاسه کولای (له عينِ مبيع څخه خپل ثمن نه سي اخيستلای)؛ ځکه چې د بائع ثمن خو د مشتري پر ذمه دی. لېکن مرتهن له عينِ مرهون څخه د ضرورت په وخت کې خپل قرض ترلاسه کولای سي، نو په دې حواله سره د بائع په مقابله کې د مرتهن حق قوي دی. همدارنګه که چيري بائع و مشتري ته مبيع په عاريت ورکړي، نو د بائع د حبس حق ختميږي، لېکن که مرتهن و راهن ته مرهون په عاريت ورکړي، نو د مرتهن د حبس حق نه ختميږي بلکې مرتهن چې کله هم وغواړي، مرهون ځني اخيستلای سي، له دې ټولو څخه دا خبره ښکاره سوه چې د مرتهن د حبس حق له بائع څخه اقوی دی، نو ځکه د مرتهن او د بائع په مسئله کې موږ فرق کړی دی چې د رهن په مسئله کې د راهن د غريب والي په صورت کې به په غلام سره سعی کول کېږي لېکن د بيع په مسئله کې به مطلقاً سعی نه په کول کېږي برابره ده مشتري مالدار وي او که غريب وي، کنې په دواړو کې به مساوات لازم سي، حال دا چې دلته مساوات جائز نه دی.

## د خپل غلام د رهن کېدلو اقرار او د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک

وَلَوْ أَقَرَّ الْمَوْلٰى بِرَهْنِ عَبْدِهٖ او که چيري مالک د خپل غلام د رهن کېدلو اقرار وکړي بِأَنْ قَالَ لَهُ: رَهَنْتُكَ عِنْدَ فُلَانٍ په دې توګه چې غلام ته ووايي: ما ته! فلانکي ته په رهن ورکړی يې [ما د فلانکي سره ته په رهن ايښی يې!] وَكَذَّبَهُ الْعَبْدُ او غلام د مالک تکذيب وکړي ثُمَّ أَعْتَقَهُ بيا مالک هغه آزاد کړي تَجِبُ السِّعَايَةُ عِنْدَنَا نو زموږ په نېز سعی کول واجبيږي خِلَافًا لِزُفَرَ ۞ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله وَهُوَ يَعْتَبِرُ بِإِقْرَارِهٖ بَعْدَ الْعِتْقِ او امام زفر رَحِمَهُ الله دا د مالک تر عتق وروسته والا اقرار باندې قياسوي وَنَحْنُ نَقُوْلُ: أَقَرَّ بِتَعَلُّقِ الْحَقِّ فِيْ حَالٍ يَمْلِكُ التَّعْلِيْقَ فِيْهِ او موږ [په جواب کې] وايو: چې مالک په داسې حالت کې د حق متعلق کېدلو اقرار کړی دی چې په هغه حالت کې مالک په غلام کې د حق د مُعلق کولو ملکيت [اختيار] لري لِقِيَامِ مِلْكِهٖ ځکه چې د هغه ملکيت موجود دی فَيَصِحُّ نو ځکه [د هغه] اقرار به صحيح وي بِخِلَافِ مَا بَعْدَ الْعِتْقِ په خلاف تر عتق [آزادی] وروسته حالت لِأَنَّهٗ حَالُ انْقِطَاعِ الْوِلَايَةِ ځکه چې هغه [له غلام څخه د مالک] د ولايت منقطع کېدلو حالت دی.

---

۞ القول الراجح: قولنا (قول الجمهور)، حيث أخّر دليلنا، وكذا في التبيين:... [القول الراجح ج:٢، ص:٣٣٠]

**اللغات:** ﴿أقر﴾ د افعال د باب ماضي ده: اقرار کول، منل. ﴿كذبه﴾ د تفعيل ماضي ده: تکذيب کول، درواغجن ګرځول، د يو چا خبره درواغ ګڼل. ﴿السعاية﴾ د سمع مصدر دی: سعی او کوښښ کول (خواري کښل)، د ځان آزادولو لپاره کسب او مزدوري کول او مال ګټل. ﴿انقطاع﴾ د انفعال د باب مصدر دی: منقطع کېدل (پرېکېدل او شکېدل)، ختمېدل. ﴿الولاية﴾ سرپرستي او مشري، اختيار.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی که يو مالک د خپل غلام د رهن کېدلو اقرار وکړي مثلاً داسي ووايي چي ما فلانکي کس (مثلاً حامد) لره ته په رهن ورکړی يې!، لېکن غلام د مالک د قول تکذيب وکړي، تر دې وروسته مالک هغه آزاد کړي، نو زموږ په نېز د مالک مخکينی اقرار صحيح او جائز دی او د مرتهن (حامد) لپاره پر غلام سعی او ګټه کول واجب دي، د دې په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز د مالک دغه اقرار صحيح نه دی، هغه فرمايي چي څرنګه د رهن تر اقرار مخکي که مالک غلام آزاد کړي او بيا د غلام د رهن کېدلو اقرار وکړي، نو د هغه دا اقرار معتبر نه دی، نو همداسي تر آزادولو مخکي هم که مالک د غلام د رهن کېدلو اقرار وکړي، نو دا اقرار به هم معتبر نه وي، ګواکي امام زفر رَحِمَهُ الله قبل العتق والا د رهن اقرار پر بعد العتق والا قرار باندي قياس کړی دی.

ونحن إلخ: زموږ دليل دا دی چي د قبل العتق والا اقرار د معتبر کېدلو وجه دا ده چي دا اقرار په داسي حالت کي سوی دی چي غلام د مالک په ملکيت کي دی او مالک لره هغه په رهن ورکول صحيح دي (يعني مالک لره دا جائز دي چي هغه په رهن ورکړي)، نو ځکه دا اقرار به معتبر وي، د دې په خلاف تر عتق وروسته له غلام څخه د مالک ولايت او ملکيت ختم سوی دی، نو ځکه بعد العتق والا اقرار صحيح او معتبر نه دی، په همدې حواله سره په دواړو کي فرق دی او يو پر بل قياسول صحيح نه دي.

## مرهون غلام مُدبَّر او أم ولد جوړول

قَالَ: وَلَوْ دَبَّرَهُ الرَّاهِنُ فرمايي: او که چيري راهن مرهون غلام مدبر جوړ کړي صَحَّ تَدْبِيرُهُ بِالِاتِّفَاقِ نو د هغه مدبر جوړول بالاتفاق صحيح دي أَمَّا عِنْدَنَا فَظَاهِرٌ هر چي زموږ په نېز خو ښکاره ده وَكَذَا عِنْدَهُ او همداسي د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نېز هم [دا حکم ښکاره دی] لِأَنَّ التَّدْبِيرَ لَا يَمْنَعُ الْبَيْعَ عَلَى أَصْلِهِ ځکه د امام شافعي رَحِمَهُ الله د اصل مطابق مدبر جوړول بيع نه منع کوي وَلَوْ كَانَتْ أَمَةً او که چيري مينځه رهن [مرهونه] وي فَاسْتَوْلَدَهَا الرَّاهِنُ بيا راهن هغه مينځه أم ولد جوړه کړي صَحَّ الِاسْتِيلَادُ بِالِاتِّفَاقِ نو دا أم ولد جوړول بالاتفاق صحيح دي لِأَنَّهُ يَصِحُّ بِأَدْنَى

الْعِتْقَيْنِ ځکه چي استيلاد له دوو حقونو څخه په ادنیٰ يوه سره [هم] صحيح کيږي وَهُوَ مَالِلْأَبِ فِي جَارِيَةِ الِابْنِ او دا [ادنیٰ] هغه حق دی کوم چي پلار لره د ځوی په مينځه کي دی فَيَصِحُّ بِالْأَعْلَى نو په اعلیٰ حق سره به [په درجه اولیٰ] صحيح کيږي وَإِذَا صَحَّا او کله چي دا دواړه [تدبير او استيلاد] صحيح سول خَرَجَا مِنَ الرَّهْنِ نو هغوی دواړه [مدبر او اُم ولد] له رهن څخه ووتل لِبُطْلَانِ الْمَحَلِّيَّةِ ځکه چي محل والی باطل سو [يعني هغوی د رهن محل پاته نه سول] إِذْ لَا يَصِحُّ اسْتِيفَاءُ الدَّيْنِ مِنْهُمَا ځکه چي په دوی دواړو سره قرض ترلاسه کول صحيح نه دي فَإِنْ كَانَ الرَّاهِنُ مُوسِرًا بيا که راهن مالدار وي ضَمِنَ قِيمَتَهُمَا نو د هغوی دواړو د قيمت ضامن کيږي عَلَى التَّفْصِيلِ الَّذِي ذَكَرْنَاهُ فِي الْإِعْتَاقِ د هغه تفصيل مطابق کوم چي مونږ د اعتاق په هکله ذکر کړی دی [يعني چي کله راهن مرهون غلام آزاد کړي].

**اللغات:** ﴿دبّر﴾ د تفعيل ماضي ده: دَبَّرَيُدَبِّرُتَدْبِيْرًا: مدبر جوړول، د غلام آزادي پر خپل مرګ معلقه کول (يعني چي مالک غلام ته ووايي: زما تر مرګ وروسته ته! آزاد يې)، ﴿استولد﴾ د استفعال ماضي ده: اُم ولد جوړول، يعني چي مالک د مينځي سره وطي وکړي او د هغې بچی وسي، ﴿محلية﴾ محل کېدل، (ديو څه لپاره) ځای کېدل، محل والی، ﴿استيفاء الدين﴾ د استفعال مصدر دی: قرض ترلاسه کول (قرض اخيستل او حاصلول).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که راهن خپل مرهون غلام مدبر جوړ کړي، نو بالاتفاق دا تدبير (مدبر جوړول) صحيح او جائز دي، زمونږ په نيز خو د هغه جواز ښکاره دی؛ ځکه کله چي د مرهون غلام اعتاق (آزادول) صحيح دي، نو تدبير کوم چي له اعتاق څخه ادنیٰ دی، هغه به په درجه اولیٰ صحيح وي، او د امام شافعي رَحِمَهُ الله په نيز هم دا تدبير جائز دی که څه هم اعتاق جائز نه دي؛ ځکه د هغه اصل دا دی چي د مدبر بيع جائز ده (يعني مدبّر خرڅول کېدلای سي)، نو ځکه دا تدبير به (د مرتهن) د بيع مانع نه وي.

همدارنګه که چيري راهن يوه مينځه په رهن ورکړي او بيا راهن هغه مينځه اُم ولد جوړه کړي، نو دا هم بالاتفاق صحيح او جائز دي؛ ځکه کله چي پلار د ځوی مينځه هم اُم ولد جوړولای سي حال دا چي په هغه مينځه کې د پلار حق ضعيف دی، نو خپله مينځه خو په درجه اولیٰ اُم ولد جوړولای

سي، ځکه چي دئ د هغې مالک دی او په هغې کې د ده حق اقوی دی، نو څرنګه چي مرهون غلام مدبر جوړول صحيح دي، همداسي مرهونه مينځه اُم ولد جوړول هم صحيح دي، او کله چي استيلاد او تدبير دواړه صحيح دي، نو ښکار خبره ده چي مرتهن اوس نه په مدبر سره قرض ترلاسه کولای او نه په اُم ولد سره، بلکي اوس دوی دواړه له رهن څخه ووتل، لهذا اوس که راهن مالدار وي، نو هغه د مرتهن لپاره د دوی د قيمت ضامن کيږي (يعني راهن به د دې تدبير او استيلاد په ضمان [تاوان] کي د دوی قيمت مرتهن ته ورکوي)؛ ځکه چي راهن د تدبير او استيلاد په وجه د مرتهن حق فوت کړی دی، نو ځکه د هغه ضمان به هم پر راهن وي.

## په پورتني صورت کي که راهن غريب وي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ كَانَ مُعْسِرًا او که راهن تنګلاسی وي اِسْتَسْعَى الْمُرْتَهِنُ الْمُدَبَّرَ وَأُمَّ الْوَلَدِ فِيْ جَمِيْعِ الدَّيْنِ نو مرتهن به په مدبر او اُم ولد سره په ټوله قرض کي سعی [او ګټه] کوي لِأَنَّ كَسْبَهُمَا مَالُ الْمَوْلٰى ځکه چي د دوی دواړو ګټه د مالک مال دی بِخِلَافِ الْمُعْتَقِ په خلاف د آزاد کړی سوي غلام حَيْثُ يَسْعٰى فِي الْأَقَلِّ مِنَ الدَّيْنِ وَمِنَ الْقِيْمَةِ ځکه چي هغه له قرض او قيمت څخه په ډېر کم يوه کي سعی کوي [يعني له قرض او قيمت څخه چي د کوم يوه مقدار کم او لږ وي د هغه لپاره سعی او ګټه کوي] لِأَنَّ كَسْبَهُ حَقُّهُ ځکه چي د مُعتَق [آزاد کړی سوي غلام] ګټه د هغه خپل حق دی وَالْمُحْتَبَسُ عِنْدَهُ لَيْسَ إِلَّا قَدْرَ الْقِيْمَةِ او کوم چي د مُعتَق سره محبوس دی هغه صرف د قيمت په اندازه دی فَلَا يُزَادُ عَلَيْهِ نو ځکه پر قيمت به اضافه نه کول کيږي وَحَقُّ الْمُرْتَهِنِ بِقَدْرِ الدَّيْنِ او د مرتهن حق د قرض په اندازه دی فَلَا تَلْزَمُهُ الزِّيَادَةُ نو ځکه زياتوب [زائد مقدار] به پر مُعتَق نه لازميږي وَلَا يَرْجِعَانِ بِمَا يُؤَدِّيَانِ عَلَى الْمَوْلٰى بَعْدَ يَسَارِهِ او دا دواړه [مدبر او اُم ولد] په خپل اداء کړی سوي مقدار سره پر مالک رجوع نه سي کولای د مالک تر مالداری وروسته لِأَنَّهُمَا أَدَّيَاهُ مِنْ مَالِ الْمَوْلٰى ځکه چي دوی دواړو هغه قرض د مالک له مال څخه اداء کړی دی وَالْمُعْتَقُ يَرْجِعُ او آزاد کړی سوی غلام رجوع کولای سي لِأَنَّهُ أَدّٰى مِلْكَهُ عَنْهُ ځکه چي هغه خپل ملکيت د مالک له طرفه اداء کړی دی وَهُوَ مُضْطَرٌّ او [په دې هکله] هغه [مُعتَق] مجبوره دی عَلٰى مَا مَرَّ د هغه تفصيل مطابق کوم چي [مخکي] تېر سو.

**اللغات:** ﴿استسعٰی﴾ د استفعال ماضي ده: (له غلام وغیره څخه) د سعی او خواری کښلو طلب کول. کسب او مزدوري په کول چي مال وګټي، ﴿کَسْب﴾ ګټه (ګټل سوی مال)، ﴿محتبس﴾ د افتعال مفعول دی: بند او محبوس، راګرځول سوی، ﴿مضطر﴾ د افتعال د باب مفعول دی: مجبور (مجبور کړی سوی).

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که هغه راهن کوم چي خپل غلام مدبر جوړ کړی وي یا یې خپله مرهونه مینځه اُم ولد جوړه کړې وي (که هغه) غریب او تنګلاسی وي. نو په دې صورت کي به مرتهن د خپل ټوله قرض ترلاسه کولو تر وخته پوري په مدبر او اُم ولد سعی او خواري کارې چي د ده لپاره د ټوله قرض په مقدار مال وګټي؛ ځکه چي د مدبر او اُم ولد ګټه د مالک ملکیت ده (یعني د راهن په ملکیت کي داخلیږي، نه د دوی)، او د مرتهن قرض پر همدې مالک (راهن) واجب دی. لهذا څرنګه چي مالک یعني راهن که قرض اداء کوي نو ټوله اداء کوي، نو همداسي به مدبر او اُم ولد هم د ټوله قرض لپاره سعی او ګټه کوي، د دې په خلاف که چیري راهن خپل مرهون غلام مدبر نه، بلکي آزاد یې کړي او راهن غریب وي، نو په دې صورت کي چي له قرض او د غلام له قیمت څخه د کوم یوه مقدار کم (لږ) وي، غلام به د هغومره مقدار لپاره سعی کوي، نه د ټوله قرض لپاره؛ ځکه چي دغه غلام خو آزاد کړی سوی دی، نو د هغه ګټه د هغه خپل ملکیت ده، نه د مالک، او مخکي ضمناً دا ذکر سوه چي مرهون د خپل مالیت او قیمت په اعتبار سره محبوس دی نو د دې مرهون غلام سره چي کوم د مرتهن مالیت محبوس دی هغه صرف د غلام د قیمت په اندازه دی یا په بله وینا دا چي د مرتهن سره د رهن په توګه صرف د غلام قیمت محبوس دی، نو ځکه مرتهن لره دا حق نسته چي د دې آزاد کړی سوي مرهون غلام له قیمت څخه د زیات مقدار لپاره په هغه سعی او ګټه وکړي، او که قیمت زیات وي او قرض کم وي نو څرنګه چي د مرتهن حق صرف د قرض په مقدار کي دی، نو ځکه په دې صورت کي مرتهن لره دا حق نسته چي په دې غلام سره د قرض له مقدار څخه زیات سعی وکړي بلکي غلام به صرف د مرتهن د قرض په اندازه سعی او ګټه کوي او مرتهن ته به یې ورکوي. نور هغه خلاص دی.

ولایرجعان إلخ: څرنګه چي د مدبر او اُم ولد ګټه د مالک ملکیت ده (یعني د مالک په ملکیت کي داخلیږي)، لهذا دوی چي کله په خپل ګټه (ګټل سوي مال) سره د مالک قرض اداء کړي، نو هغه بیا له خپل مالک څخه واپس نه سي اخیستلای، د دې په خلاف د مُعتَق (آزاد کړی سوی غلام) ګټه صرف د هغه ملکیت ده لهذا هغه په خپل مال سره د مالک قرض اداء کونکی دی. نو ځکه هغه ته له خپل مالک څخه د واپس اخیستلو حق سته.

## د مرهون مدبر او ام ولد د سعی کولو په هکله بل قول

وَقِيلَ: الدَّيْنُ إِذَا كَانَ مُؤَجَّلًا او ويل سوي دي: چي کله قرض ميعادي [مياد والا] وي يَسْعَى الْمُدَبَّرُ فِي قِيمَتِهِ نو مدبر به په خپل قيمت کي سعی [او ګټه] کوي لِأَنَّهُ عِوَضُ الرَّهْنِ ځکه چي قيمت د مرهون عوض دی حَتَّى تُحْبَسَ مَكَانَهُ تر دې چي قيمت د مرهون پر ځای محبوس کيږي فَيَتَقَدَّرُ بِقَدْرِ الْمُعَوَّضِ نو ځکه د معوض په مقدار به اندازه کيږي بِخِلَافِ مَا إِذَا كَانَ حَالًّا په خلاف د هغه صورت کله چي قرض حالي [فی الحاله واجبُ الاداء] وي لِأَنَّهُ يُقْضَى بِهِ الدَّيْنُ ځکه [په دې صورت کي] په ګټه سره به قرض اداء کول کيږي وَلَوْ أَعْتَقَ الرَّاهِنُ الْمُدَبَّرَ او که چيري راهن مدبر آزاد کړي وَقَدْ قُضِيَ عَلَيْهِ بِالسِّعَايَةِ أَوْ لَمْ يُقْضَ حال دا چي پر هغه مدبر د سعی کولو فيصله سوې وي يا نه وي سوې لَمْ يَسْعَ إِلَّا بِقَدْرِ الْقِيمَةِ نو [هم] به هغه سعی نه کوي مګر د قيمت په اندازه لِأَنَّ كَسْبَهُ بَعْدَ الْعِتْقِ مِلْكُهُ ځکه چي د هغه ګټه تر آزادېدلو وروسته د هغه خپل ملکيت دی وَمَا أَدَّاهُ قَبْلَ الْعِتْقِ او څه قرض چي هغه تر آزادېدلو مخکي اداء کړی دی لَا يَرْجِعُ بِهِ عَلَى مَوْلَاهُ په هغه سره به پر خپل مالک رجوع نه کوي [واپس به يې نه غني اخلي] لِأَنَّهُ أَدَّاهُ مِنْ مَالِ الْمَوْلَى ځکه چي مُدبر هغه د مالک له مال څخه اداء کړی دی.

**اللغات:** ﴿عوض﴾ بدل. ﴿مُعَوَّض﴾ د تفعيل اسم مفعول دی: د کوم شي چي عوض ورکول کيږي (هغه څه چي د هغه عوض او بدل اداء کيږي)، کوم شي چي د عوض په مقابله کي وي.

**تشريح:** مخکي چي کوم دا حکم ذکر سو چي مُدبر او اُم ولد به د مرتهن د ټوله قرض لپاره سعی کوي، د هغه په هکله د بعضي حضراتو رايه دا ده چي دا حکم په هغه صورت کي دی کله چي قرض في الحاله واجبُ الاداء وي، لېکن که قرض ميادي وي (مياد يې پاته وي) او في الحاله واجبُ الاداء نه وي، نو په دې صورت کي به په مدبر او اُم ولد سره د ټوله قرض لپاره سعی نه کول کيږي، بلکي صرف د دوی د قيمت په اندازه سعی به کوي؛ ځکه چي همدا قيمت د مرهون (مُدبر او اُم ولد) عوض دی. لهذا صرف همدومره عوض به واجب وي څومره چي معوّض (مرهون) دی، نو ځکه په دې صورت کي به صرف د خپل قيمت په اندازه په مدبر سره سعی کول کيږي.

**ولو أعتق إلخ:** د دې حاصل دا دی چي که يو راهن خپل مرهون غلام مدبر جوړ کړي، بيا هغه آزاد کړي، نو اوس پر هغه د مُعتَق (آزاد کړی سوي غلام) احکام جاري کيږي. برابره ده پر هغه مدبر تر اوسه د

سعی کولو فیصله شوې وي، که نه وي، لهذا اوس به صرف د قیمت په اندازه سعی کوي. ځکه چې آزاد سوی مرهون غلام صرف د خپل قیمت په اندازه سعی او ګټه وي او نوره ګټه د هغه خپل ملکیت کیږي، او که پر هغه مدبر (د مدبر کېدلو په حالت کي) د سعی فیصله سوې وي او هغه په دې حالت کي څه سعی او ګټه هم کړې او اداء کړې وي، نو وروسته هغه له خپل مالک (راهن) څخه واپس نه سي اخیستلای؛ ځکه چي په هغه حالت کي د ده ګټه صرف د مالک وه.

## که راهن مرهون شی هلاک کړي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَكَذٰلِكَ لَوِ اسْتَهْلَكَ الرَّاهِنُ الرَّهْنَ فرمایي: او همدارنګه [ضمان واجبیږي پر راهن] که چیري راهن رهن [مرهون] هلاک کړي لِأَنَّهُ حَقٌّ مُحْتَرَمٌ مَضْمُوْنٌ عَلَيْهِ بِالْإِتْلَافِ ځکه چي هغه [د مرتهن] حق محترم دی چي د هغه د تلفولو [هلاکولو] په وجه پر راهن ضمان واجب دی وَالضَّمَانُ رَهْنٌ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ او ضمان د مرتهن په قبضه کي رهن ګرځي لِقِيَامِهِ مَقَامَ الْعَيْنِ ځکه چي هغه د عین [مرهون] قائم مقام دی.

**اللغات:** ﴿استهلك﴾ د استفعال ماضي ده: هلاکول، تنول، ختمول. ﴿محترم﴾ د فتعال مفعول دی: د احترام او درناوي ور. ﴿حق محترم﴾ داسي حق چي د هغه خیال ساتل پر انسان لازم وي. ﴿إتلاف﴾ د افعال مصدر دی: تلفول، ضایع کول، هلاکول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی که چیري راهن مرهون هلاک کړي، نو پر هغه ضمان (تاوان) واجبیږي، لکه څرنګه چي که راهن مرهون آزاد کړي نو پر هغه ضمان واجبیږي (یعني د هلاکولو او آزادولو حکم یو دی)، بیا که چیري قرض فی الحاله واجبُ الاداء وي، نو له راهن څخه به قرض اخیستل کیږي، او که قرض میادي وي او فی الحاله واجبُ الاداء نه وي، نو له راهن څخه به د مرهون قیمت اخیستل کیږي او همدا قیمت به د مرهون پر ځای په رهن ایښوول کیږي، ځکه چي رهن د مرتهن حق محترم دی چي د هغه هلاکولو په وجه پر راهن ضمان واجبیږي، او قیمت د مرهون شي قائم مقام دی.

## که یو پردی (اجنبي) کس مرهون هلاک کړي نو د هغه حکم

فَإِنِ اسْتَهْلَكَهُ أَجْنَبِيٌّ بیا که یو اجنبي کس مرهون هلاک کړي فَالْمُرْتَهِنُ هُوَ الْخَصْمُ فِي تَضْمِيْنِهِ نو مرتهن د اجنبي کس په ضامن کولو [یعني له هغه څخه په ضمان اخیستلو] کي خصم دی فَيَأْخُذُ الْقِيْمَةَ نو ځکه مرتهن به قیمت اخلي وَتَكُوْنُ رَهْنًا فِي يَدِهِ او هغه قیمت د مرتهن په قبضه کي رهن کیږي

لِأَنَّهُ أَحَقُّ بِعَيْنِ الرَّهْنِ حَالَ قِيَامِهِ ځکه چې همدا مرتهن د مرهون د موجود والي په وخت کې د عين مرهون زيات حقدار وو فَكَذَا فِي اسْتِرْدَادِ مَا قَامَ مَقَامَهُ نو همداسې د مرهون د قائم مقام شي [قيمت] په اخيستلو کې به هم [هغه زيات حقدار] وي وَالْوَاجِبُ عَلَى هٰذَا الْمُسْتَهْلِكِ قِيمَتُهُ يَوْمَ هَلَكَ او پر دغه هلاکونکي [اجنبي کس] د مرهون هغه قيمت واجب دی کوم چې د هلاکېدلو په ورځ د هغه قيمت وي فَإِنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ يَوْمَ اسْتَهْلَكَهُ خَمْسَ مِائَةٍ بيا که د هلاکولو په ورځ د مرهون قيمت پنځه سوه وي وَيَوْمَ رَهَنَ أَلْفًا او د رهن اېښوولو په ورځ زر وي غَرِمَ خَمْسَ مِائَةٍ نو هلاکونکی [اجنبي] د پنځو سوو ضامن کېږي [پنځه سوه تاوان به اداء کوي] وَكَانَتْ رَهْنًا او دا پنځه سوه رهن کېږي وَسَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ خَمْسُ مِائَةٍ او له قرض څخه پنځه سوه ساقطېږي فَصَارَ الْحُكْمُ فِي الْخَمْسِ مِائَةِ الزِّيَادَةِ كَأَنَّهَا هَلَكَتْ بِآفَةٍ سَمَاوِيَّةٍ نو په هغه پنځو سوو کې کوم چې اضافه دي [په هغوی کې] حکم داسې گرځي چې هغوی په يو آفت سره هلاک سوي دي وَالْمُعْتَبَرُ فِي ضَمَانِ الرَّهْنِ الْقِيمَةُ يَوْمَ الْقَبْضِ لَا يَوْمَ الْفِكَاكِ او د رهن په ضمان کې د قبضې د ورځې قيمت معتبر دی، نه د رهن راخلاصولو د ورځې لِأَنَّ الْقَبْضَ السَّابِقَ مَضْمُونٌ عَلَيْهِ ځکه چې پر مرتهن مخکنۍ قبضه مضمونه ده لِأَنَّهُ قَبْضُ اسْتِيفَاءٍ ځکه چې هغه [د مرتهن قبضه] د (حق) ترلاسه کولو قبضه ده إِلَّا أَنَّهُ يَتَقَرَّرُ عِنْدَ الْهَلَاكِ مگر ضمان د هلاکېدلو په وخت کې مضبوطېږي.

**اللغات:** ﴿اجنبي﴾ پردی کس، (بېگانه)، له عقد څخه وتلی کس (کوم چې عاقد نه وي يا په بله وينا چې راهن يا مرتهن نه وي)، ﴿خصم﴾ مخالف فريق، مدعي او مدعیٰ عليه دواړو ته ويل کېږي (دوی يو د بل خصم دي)، ﴿آفة﴾ آفت، ناڅاپه او قدرتي مصيبت، ﴿غرم﴾ د سمع ماضي ده: تاوان ورکول، ضمان اداء کول، ضامن کېدل، ﴿فكاك﴾ د سمع د باب مصدر دی: رهن راخلاصول، مرهون شی له مرتهن څخه اخيستل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که د راهن پر ځای يو اجنبي کس مرهون هلاک کړي، نو پر هغه اجنبي کس د مرتهن لپاره ضمان (تاوان) واجبېږي (چې هغه د مرهون قيمت دی) نو مرتهن به له هغه څخه ضمان (تاوان) اخلي او د خپل ځان سره به يې په رهن اږدي؛ ځکه که مرهون موجود وي، نو ښکاره خبره ده چې د هغه زيات حقدار همدا مرتهن وي، او څرنگه چې د مرهون ضمان (کوم چې قيمت

دی) د مرهون قائم مقام دی، نو ځکه د هغه زیات حقدار به هم دا مرتهن وي او مرتهن به مُستهلک (اجنبي کس) تر ګرېوان نیسي او د مرهون تاوان به ځني اخلي.

والجواب إلخ: د دې حاصل دا دی چې پر مُستهلک د هلاکت د ورځې د قیمت ضمان واجبیږي. مثلاً که د مرهون قیمت د رهن په ورځ زر (۱۰۰۰) روپۍ وي او قرض هم زر (۱۰۰۰) روپۍ وي لېکن اجنبي کس چې په کومه ورځ دا مرهون هلاک کړی وي، په هغه ورځ د مرهون قیمت پنځه سوه (۵۰۰) روپۍ وي، نو اوس پر هغه اجنبي کس فقط پنځه سوه (۵۰۰) ضمان سته چې هغه پنځه سوه قیمت به دویم ځل د مرتهن سره په رهن اېښوول کیږي او پاتــه پنځه سوه (۵۰۰) لــه قرض څخه ساقطیږي؛ ځکه کله چې د مرهون تجدید وسو (یعني کله چې دیوه مرهون پر ځای مرتهن ته بل مرهون [قیمت] کښېښول سو)، نو د هغه مالیت صرف پنځه سوه (۵۰۰) وو، نو ځکه اوس به قرض صرف پنځه سوه وي، او داسي به ګڼل کیږي چې پاتــه پنځه سوه (۵۰۰) قرض د یو آفت په وجه هلاک سوی دی، او مخکي تاسو ته معلومه سوه چې که د مرتهن سره مرهون هلاک سي، هغه که په هره وجه وي، نو د مرهون د قیمت په اندازه قرض قرض ساقطیږي، نو همداسي په دې مسئله کي به هم پنځه سوه (۵۰۰) قرض ساقطیږي، او هغه پنځه سوه کوم چې مرتهن له اجنبي څخه په رهن اخیستي دي صرف د هغه په اندازه به د مرتهن قرض پاتیږي.

والمعتبر إلخ: د دې حاصل دا دی چې کله یو اجنبي کس مرهون هلاک کړی وي نو پر هغه د هلاکت د ورځي د قیمت ضمان واجبیږي، خو پر مرتهن د قبضې د ورځي د قیمت ضمان واجبیږي، نه د رهن خلاصېدلو د ورځي (یعني په کومه ورځ چې مرتهن له راهن څخه مرهون اخیستی وي او قبضه یې پر هغه کړې وي، د هغه ورځي د قیمت ضمان پرې لازمیږي، نه د هغه ورځي په کومه ورځ چې له مرتهن څخه مرهون خلاص سوی وي)؛ ځکه چې مرهون د مرتهن سره د هغه د مخکنۍ (سابقه) قبضې په وجه مضمون وي (یعني د مخکنۍ قبضې په اعتبار سره ضمان پرې لازمیږي) ځکه چې د مرتهن قبضه د استیفاء (حق ترلاسه کولو) قبضه وي او په همدې قبضه سره مرهون شی پر هغه مضمون وي، نو ځکه پر مرتهن د قبضې د ورځي د قیمت ضمان واجبیږي.

إلا أنه إلخ: دا د یو مقدّر سوال جواب دی، سوال دا دی چې کله پر مرتهن د قبضې د ورځي د قیمت ضمان واجب دی، نو که مرهون هلاک نه سي بلکي د هغه قیمت کم سي مثلاً له زرو څخه پنځه سوه روپۍ سي او قرض زر روپۍ وي، نو د دې حساب مطابق خو پنځه سوه له قرض څخه ساقطېدل پکار دي او صرف د پنځو سوو په اداء کولو سره راهن ته د مرهون اخیستلو اختیار حاصلېدل پکار دي، حالانکي داسي نه ده؟.

د همدې په جواب کې صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې سمه ده! مرهون د مرتهن سره د هغه د مخکنۍ (سابقه) قبضې په وجه مضمون وي او د مخکنۍ قبضې په اعتبار سره ضمان پرې لازمېږي خو د دغه ضمان ثبات او مضبوطي د مرهون په هلاکېدلو سره کیږي. او دلته مرهون هلاک سوی نه دی بلکې باقي پاته دی فقط د نرخ ټیټېدلو په وجه د هغه قیمت کم سوی دی. لهذا تر اوسه په ضمان کې ثبات او مضبوطي نه ده راغلې، لهذا که چیرې په دې حالت کې راهن دا مرهون راخلاصوي، نو ټوله قرض به اداء کوي. او پاته سو په پورتنۍ صورت کې د اجنبي سره مرهون هلاک سوی دی چې د هغه په وجه ضمان ثابت او متقرر سو. نو ځکه اوس به د قبضې د ورځې پوره قیمت معتبر وي.

## که قرض مؤجل وي او خپله مرتهن مرهون شی هلاک کړي

وَلَوِاسْتَهْلَكَهُ الْمُرْتَهِنُ وَالدَّيْنُ مُؤَجَّلٌ او که چیرې مرتهن مرهون هلاک کړي او قرض میعادي وي [يعني داسې قرض وي چې د هغه لپاره میاد او نېټه ټاکل سوې وي يعني في الحاله واجبُ الاداء نه وي] غَرِمَ الْقِيمَةَ نو مرتهن د قیمت ضامن کیږي لِأَنَّهُ أَتْلَفَ مِلْكَ الْغَيْرِ ځکه چې هغه د بل چا ملکیت تلف کړی دی وَكَانَتْ رَهْنًا فِي يَدِهِ حَتَّى يَحِلَّ الدَّيْنُ او هغه قیمت به د مرتهن سره رهن کیږي تر دې چې د قرض اداء کولو وخت راسي لِأَنَّ الضَّمَانَ بَدَلُ الْعَيْنِ ځکه چې ضمان د عَین بدل دی فَأَخَذَ حُكْمَهُ نو ضمان به د عَین حکم اخلي وَإِذَا حَلَّ الدَّيْنُ وَهُوَ عَلَى صِفَةِ الْقِيمَةِ او کله چې د قرض اداء کولو وخت راسي او قرض د قیمت پر صفت [جنس] وي اِسْتَوْفَى الْمُرْتَهِنُ مِنْهَا قَدْرَ حَقِّهِ نو مرتهن دې له قیمت څخه د خپل حق په اندازه واخلي لِأَنَّهُ جِنْسُ حَقِّهِ ځکه چې دا د هغه د حق جنس دی ثُمَّ إِنْ كَانَ فِيهِ فَضْلٌ بیا که په دې [قیمت] کې زیاتوب وي يَرُدُّهُ عَلَى الرَّاهِنِ نو هغه زیاتوب [زائد مقدار] به راهن ته واپس کوي لِأَنَّهُ بَدَلُ مِلْكِهِ ځکه چې دا [قیمت] د راهن د حق بدل دی وَقَدْ فَرَغَ عَنْ حَقِّ الْمُرْتَهِنِ او هغه [زیاتوب] د مرتهن له حق څخه فارغ سوی دی.

**اللغات**: ﴿استهلك﴾ د استفعال ماضي ده: هلاکول، تلفول، ختمول. ﴿يحلّ﴾ د ضرب مضارع ده: (وخت) راتلل.

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چې که خپله مرتهن مرهون هلاک کړي او قرض میعادي (میاد والا) وي يعني في الحاله واجبُ الاداء نه وي، نو پر مرتهن د مرهون قیمت واجبیږي: ځکه چې هغه د بل چا يعني د راهن مال هلاک کړی او د بل چا مال هلاکول د ضمان مُوجب دي. نو ځکه پر هغه د

هلاک کړی سوي مرهون قيمت واجبيږي او دا قيمت بيرته د مرتهن سره رهن کيږي (چې د مرهون په توګه به ورسره وي. تر دې چې راهن قرض اداء کړي)؛ ځکه مرتهن چې څرنګه د عين مرهون زيات حقداره وو. همداسي د هغه د قيمت به هم زيات حقداره وي، نو ځکه د قرض اداء کولو تر وخته پوري به دا قيمت د مرتهن سره رهن پاتيږي.

بيا چې کله د قرض وخت راسي او قيمت او قرض له يوه جنس څخه وي مثلاً قرض هم روپۍ وي او د هلاک سوي مرهون قيمت هم روپۍ وي، نو مرتهن به له دې قيمت څخه د خپل قرض په اندازه روپۍ واخلي او تر قرض اخيستلو وروسته که څه پاته سي، نو هغه دې راهن ته واپس کړي؛ ځکه چې د مرتهن حق صرف د قرض په مقدار کې دی، لهذا زائد مقدار به د راهن وي؛ ځکه چې هغه د راهن د ملکيت بدل دی. او بل دا چې هغه (زائد مقدار) د مرتهن له حق څخه فارغ سوی (خالي سوی) هم دی، نو ځکه اوس د زائد مقدار حقدار صرف همدا راهن دی. (احسن الهدايه)

## د پورتنې مسئلې نور وضاحت او تفريع

وَإِنْ نَقَصَتْ عَنِ الدَّيْنِ بِتَرَاجُعِ السِّعْرِ إِلَى خَمْسِ مِائَةٍ او که [د مرهون] قيمت د نرخ اوښتلو [بدليدلو] په وجه کم سي تر پنځو سوو پوري [راکښته سي] وَقَدْ كَانَتْ قِيمَتُهُ يَوْمَ الرَّهْنِ أَلْفًا حال دا چې د رهن په ورځ د مرهون قيمت زر [۱۰۰۰] وي وَجَبَ بِالِاسْتِهْلَاكِ خَمْسُ مِائَةٍ نو د هلاکولو په وجه پنځه سوه واجبيږي وَسَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ خَمْسُ مِائَةٍ او له قرض څخه پنځه سوه ساقطيږي لِأَنَّ مَا انْتَقَصَ كَالْهَالِكِ ځکه [د قيمت] کوم مقدار چې کم سوی دی هغه د هلاک سوي په څېر دی وَسَقَطَ الدَّيْنُ بِقَدْرِهِ نو د هلاک سوي مقدار په اندازه به قرض ساقطيږي وَتُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْقَبْضِ او [د مرهون] د قبضې د ورځې قيمت معتبر دی وَهُوَ مَضْمُونٌ بِالْقَبْضِ السَّابِقِ لَا بِتَرَاجُعِ السِّعْرِ [ځکه] مرهون د مخکنۍ قبضې په وجه پر مرتهن مضمون دی، نه د نرخ اوښتلو په وجه وَوَجَبَ عَلَيْهِ الْبَاقِي بِالْإِتْلَافِ او پاته مقدار پر هغه د تلفولو [هلاکولو] په واجب دی وَهُوَ قِيمَتُهُ يَوْمَ أُتْلِفَ او هغه د مرهون د تلف کېدلو د ورځې قيمت دی.

**اللغات**: ﴿نقصت﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده: کمېدل، لږېدل. ﴿تراجع﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: واپس راتلل، اوښتل، نرخ ټيټېدل (کښته کېدل). ﴿السعر﴾ نرخ، بيه. ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: تلفول، ضايع کول (له منځه وړل).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې که د بازار د نرخ اوښتلو او بدلېدلو په وجه د مرهون قيمت له قرض څخه کم سي، مثلاً قرض زر (۱۰۰۰) روپۍ وي او د مرهون قيمت هم د رهن په ورځ زر (۱۰۰۰) روپۍ وي لېکن بيا د نرخ اوښتلو له کبله د هغه قيمت پنځه سوه (۵۰۰) روپۍ کم سي، او په همدې حالت کې مرتهن هغه هلاک کړي، نو په دې صورت کې د قيمت کمېدلو نقصان مرتهن ته راجع کيږي، يعني څومره قيمت چې کم سوی دی چې هغه دلته پنځه سوه روپۍ دي د هغه په عوض کې د مرتهن قرض ساقطيږي، او د مرهون کم سوی قيمت (چې هغه هم پنځه سوه روپۍ دي) پر مرتهن د هغه ضمان واجبيږي، او هغه کم سوی قيمت به داسې ګڼل کيږي لکه چې هغه د يو آفت او مصيبت په وجه هلاک سوي وي، او ښکاره خبره ده چې د آفت په وجه د هلاکېدلو په صورت کې د هلاک سوي مرهون په اندازه قرض هم ساقطيږي، نو ځکه په پورتني صورت کې به د مرتهن له قرض څخه پنځه سوه (۵۰۰) ساقطيږي. او څرنګه چې مرهون پر مرتهن د مخکنۍ (سابقه) قبضې په وجه مضمون کيږي (يعني د مرهون شي ضمان د مخکنۍ قبضې په اعتبار سره پر مرتهن لازميږي). نو ځکه پر مرتهن به د قبضې د ورځې د قيمت ضمان لازم وي (لکه مخکې چې هم د دې وضاحت وسو). او د قبضې په ورځ د مرهون قيمت زر (۱۰۰۰) روپۍ وو، نو ځکه پر مرتهن به د پوره زرو روپو ضمان واجب وي چې له هغوی څخه د پنځو سوو ضمان د قيمت په شکل دی او د پنځو سوو ضمان د قرض ساقطېدلو په شکل دی، او مصنف رَحِمَهُ الله په "ووجب عليه الباقي إلخ" سره همدا د قيمت د ضمان وضاحت کړی دی. (احسن الهدايه)

## که مرتهن راهن ته مرهون عاريتاً ورکړي (حکم او تفصيل)

قَالَ: وَإِذَا أَعَارَ الْمُرْتَهِنُ الرَّهْنَ لِلرَّاهِنِ فرمايي: او کله چې مرتهن راهن ته مرهون [غلام] په عاريت ورکړي لِيَخْدُمَهُ أَوْ لِيَعْمَلَ لَهُ عَمَلًا د دې لپاره چې مرهون [غلام] د راهن خدمت وکړي يا د هغه لپاره يو کار وکړي فَقَبَضَهُ او راهن پر هغه قبضه وکړي خَرَجَ مِنْ ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ نو هغه د مرتهن له ضمان څخه وځي لِمُنَافَاةٍ بَيْنَ يَدِ الْعَارِيَةِ وَيَدِ الرَّهْنِ ځکه چې د عاريت د قبضې او د رهن د قبضې ترمينځ منافات دی فَإِنْ هَلَكَ فِي يَدِ الرَّاهِنِ بيا که مرهون د راهن په قبضه کې هلاک سي هَلَكَ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو هغه بغير له څه شي هلاکيږي لِفَوَاتِ الْقَبْضِ الْمَضْمُونِ ځکه چې مضمونه قبضه فوت سوه وَلِلْمُرْتَهِنِ أَنْ يَسْتَرْجِعَهُ إِلَى يَدِهِ او مرتهن ته دا حق سته چې هغه مرهون خپل لاس [قبضې] ته را واپس وکړي [يعني بيرته يې په خپله قبضه کې واخلي] لِأَنَّ عَقْدَ الرَّهْنِ بَاقٍ ځکه چې عقد رهن باقي

پاته دی إِلَّافِيْ حُكْمِ الضَّمَانِ فِي الْحَالِ خو د ضمان په حکم کي في الحاله [باقي پاته نه دی].

**اللغات:** ﴿أُعَارِ﴾ د افعال له باب څخه د ماضي صيغه ده: په عاريت ورکول، عاريتاً ورکول (د "اعارة" معنیٰ ده: "تمليكُ المنافع بلا عوضٍ على أن تردّ العين". يعني چي سړی يو چا ته يو شی مفت (بلا عوضه) ورکړي او هغه ته ووايي چي ته خپل نفع ځني واخله! او بيرته يې ما ته واپس کړه!. يا په بله وينا دا چي يو څوک يل چا ته خواست وکړي چي تر يو څو وخته پوري ستا فلانکی شی (مثلاً موټر سايکل) راکړه!. او هغه شی ورکړي چي ته خپل کار ځني واخله!. او تر کار اخيستلو وروسته يې بيرته ما ته وسپاره!. نو دې ته عاريتاً ورکول ته وايي).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که مرهون غلام د مرتهن سره وي، بيا مرتهن هغه غلام عاريتاً (په عاريت) راهن ته ورکړي د دې لپاره چي هغه د راهن خدمت وکړي، يا د راهن يو بل کار وکړي او راهن قبضه پرې وکړي (يعني مرهون غلام ځني واخلي)، نو په قبضې کولو (اخيستلو) سره سمدستي هغه مرهون غلام د مرتهن له ضمان څخه وځي؛ ځکه چي د راهن (مستعير) او مرتهن په قبضه کي منافات دی، ځکه چي د مرتهن قبضه د ضمان قبضه ده (يعني که د هغه په قبضه کي مرهون هلاک سي نو پر هغه ضمان لازميږي) او د راهن (مستعير) قبضه د امانت قبضه ده (چي که د دغه راهن سره مرهون هلاک سي نو ضمان نه پرې لازميږي)، او ښکاره خبره ده چي د امانت او ضمانت تر مينځ تضاد او منافات دی. نو ځکه کله چي هم راهن پر دې مرهون (غلام) قبضه وکړي نو هغه د مرتهن له ضمان څخه وځي، همدا وجه ده که اوس دغه مرهون د راهن په قبضه کي هلاک سي نو پر راهن د هغه هيڅ ضمان نه لازميږي، لهذا د دې مرهون د هلاکېدلو په وجه د مرتهن قرض نه ساقطيږي، بلکي پر خپل حال باقي پاتيږي. او مرتهن چي کله هم وغواړي، له راهن څخه مرهون يا د مرهون د هلاکېدو په صورت کي د هغه بدل (قيمت) اخيستلای سي چي د ځان سره يې په رهن کښېږدي؛ ځکه چي عقدِ رهن اوس هم باقي پاته دی، خو څرنګه چي مرتهن راهن ته مرهون واپس کړی وو، نو د هغه په وجه في الحاله پر مرتهن د ضمان حکم نسته يعني د ضمان له حکم څخه په ماسوا کي هم اوس عقدِ رهن باې پاته دی. (احسن الهدايه)

## د مخکنی مذکوره دعوې دليل

أَلَا تَرَىٰ أَنَّهُ لَوْ هَلَكَ الرَّاهِنُ قَبْلَ أَنْ يَرُدَّهُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ آيا ته نه ګورې! چي که راهن مړ سي مخکي تر دې چي راهن هغه [مرهون] مرتهن ته واپس کړي كَانَ الْمُرْتَهِنُ أَحَقَّ بِهِ مِنْ سَائِرِ الْغُرَمَاءِ نو مرتهن له ټولو قرضخواهانو څخه د هغه [مرهون] زيات حقدار دی وَهٰذَا لِأَنَّ يَدَ الْعَارِيَةِ لَيْسَتْ بِلَازِمَةٍ او دا [حکم] ځکه دی چي د عاريت قبضه لازمه نه ده وَالضَّمَانُ لَيْسَ مِنْ لَوَازِمِ الرَّهْنِ عَلَىٰ كُلِّ حَالٍ او

ضمان په هر حالت کي د رهن د لوازماتو څخه نه دی أَلَا تَرىٰ أَنَّ حُكْمَ الرَّهْنِ ثَابِتٌ فِيْ وَلَدِ الرَّهْنِ آیا ته نه ګورې! چي د رهن حکم د رهن په بچي کي ثابت دی وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَضْمُونًا بِالْهَلَاكِ که څه هم دا بچی په هلاکېدلو سره نه مضمون کیږي [یعني د رهن حکم خو پکښې ثابت دی لېکن که چیري هغه هلاک سي نو ضمان نه پې لازمیږي. لهذا معلومه سوه چي ضمان هر وخت د رهن د لوازماتو څخه نه دی] وَإِذَا بَقِيَ عَقْدُ الرَّهْنِ او کله چي عقد رهن باقي پاته دی فَإِذَا أَخَذَهُ نو کله چي مرتهن مرهون واخلي عَادَ الضَّمَانُ نو ضمان [بیرته] راګرځي لِأَنَّهُ عَادَ الْقَبْضُ فِي عَقْدِ الرَّهْنِ ځکه چي په عقد رهن کي قبضه را وګرځېدله فَيَعُوْدُ بِصِفَتِهٖ نو ځکه دا قبضه به د خپل صفت [ضمان] سره راګرځي.

**اللغات:** ﴿سائر﴾ دغه لفظ لره دوې معناوي دي: ټوله، باقي (نور).

**تشریح:** په تېر عبارت کي چي کوم دا دعویٰ سوې ده چي که مرتهن مرهون (غلام) راهن ته عاریتاً ورکړي نو بیا هم عقد رهن باقي پاتېږي، دلته د همدې دعوې دلیل بیان سوی دی چي د هغه حاصل دا دی چي که عاریتاً اخیستل سوی مرهون د راهن په قبضه کي وي او بیا مخکي تر دې چي راهن هغه مرتهن ته واپس کړي د راهن په قبضه کي هلاک سي او پر راهن صرف د مرتهن قرض نه وي بلکي د نورو کسانو هم پر هغه قرضونه باندي وي، نو په هغوی ټولو کسانو کي مرتهن د مرهون زیات حقدار دی. لهذا دا د دې خبري ښکاره دلیل دی چي اوس هم عقد رهن باقي پاته دی. همدارنګه مرتهن (مُعیر) ته هر وخت دا حق سته چي له راهن څخه مرهون واپس واخلي، نو له دې څخه هم معلومیږي چي عقد رهن باقي پاته دی.

**والضمان إلخ:** په دې سره د یو سوال جواب ورکول سوی دی، سوال دا دی چي کله ستاسو په قول عقد رهن باقي پاته دی نو بیا د هغه ضمان هم پاتېدل پکار دي، حال دا چي مخکي تاسو وویل "إلا فی حکم الضمان" چي هغه د ضمان په حکم کي باقي پاته نه دی.

د همدې په جواب کي صاحب د هدایې فرمایي چي سمه ده! ضمان د عقد رهن وصف خو دی لېکن دا ضروري نه ده چي دغه وصف دي هر ځای د رهن سره لازم وي. بلکي ضمان له عقد رهن څخه جلا کېدلای هم سي، مثلاً که یو سړي بل چا ته غوا په رهن ورکړې وي او هغه د رهن په دوران کي لنګه سي، نو د غوا سره د هغې بچی هم مرهون کیږي لېکن بچی نه مضمون کیږي یعني که د غوا بچی

د مرتهن سره هلاک سي نو پر هغه د بچي ضمان نه واجبيږي، له دې څخه معلومه سوه چي د عقد رهن لپاره ضمان لازم نه دی او هغه له ضمان څخه خالي کېدلای سي.

واذا بقي الخ: فرمايي کله چي په مذکوره مسئله کي عقد رهن باقي پاتــه دی، نو دويـم وار چي کله مرتهن (مُعير) هغه مرهون واپس اخلي، نو د هغه سره ضمان هم راګرځي؛ ځکه کله چي په عقد رهن کي پر مرهون قبضه وسي، نو اوس هغه قبضه د خپل صفت سره راګرځي او د هغې صفت ضمان دی، لهذا د همدې ضمان سره به قبضه راګرځي، ګواکي ضمان د قبضې سره لازم دی، نه د رهن سره، او د غه توجيه ته په کتلو سره مخکيني اعتراض لغو او بې بنياده دی.

## اجنبي کس ته مرهون عاريتاً يا په اجاره ورکول (حکم او تفصيل)

وَكَذٰلِكَ لَوْ أَعَارَهُ أَحَدُهُمَا أَجْنَبِيًّا بِإِذْنِ الْآخَرِ او همدارنګه که چيري له راهن او مرتهن څخه يو د بل په اجازه سره اجنبي کس ته مرهون په عاريت ورکړي سَقَطَ حُكْمُ الضَّمَانِ نو د ضمان حکم ساقطيږي لِمَا قُلْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا أَنْ يَرُدَّهُ رَهْنًا كَمَا كَانَ او له راهن او مرتهن څخه هر يوه ته دا اختيار سته چي هغه مرهون رهن ته واپس کړي لکه څرنګه چي [مخکي رهن] وو لِأَنَّ لِكُلِّ وَاحِدٍ حَقًّا مُحْتَرَمًا فِيهِ ځکه چي په مرهون کي د دوی هر يوه لپاره حق محترم سته وَهٰذَا بِخِلَافِ الْإِجَارَةِ وَالْبَيْعِ وَالْهِبَةِ مِنْ أَجْنَبِيٍّ او دا [د اجنبي سره د عاريت مسئله] د اجنبي سره د اجارې، بيع او هبې کولو په خلاف دي إِذَا بَاشَرَهَا أَحَدُهُمَا بِإِذْنِ الْآخَرِ کله چي له راهن او مرتهن څخه يوه د بل په اجازه سره دا عقدونه کړي وي حَيْثُ يَخْرُجُ عَنِ الرَّهْنِ نو مرهون له رهن څخه وځي فَلَا يَعُودُ إِلَّا بِعَقْدٍ مُبْتَدَإٍ بيا رهن نه راګرځي مګر په نوي [جديد] عقد سره وَلَوْ مَاتَ الرَّاهِنُ قَبْلَ الرَّدِّ إِلَى الْمُرْتَهِنِ او که چيري مرتهن ته [د مرهون] له واپس کولو څخه مخکي راهن مړ سي يَكُونُ الْمُرْتَهِنُ أُسْوَةً لِلْغُرَمَاءِ نو مرتهن د قرضخواهانو سره برابر ګرځي لِأَنَّهُ تَعَلَّقَ بِالرَّهْنِ حَقٌّ لَازِمٌ بِهٰذِهِ التَّصَرُّفَاتِ ځکه چي د دغه تصرّفاتو [عقدونو] په وجه د رهن سره لازم حق متعلق سو فَيَبْطُلُ بِهِ حُكْمُ الرَّهْنِ نو د هغه لازم حق په وجه د رهن حکم باطليږي أَمَّا بِالْعَارِيَةِ لَمْ يَتَعَلَّقْ بِهِ حَقٌّ لَازِمٌ ليکن د عاريت په وجه د رهن سره هيڅ لازم حق متعلق نه سو فَافْتَرَقَا نو ځکه دا دواړه سره جلا سول.

**اللغات:** ﴿أعار﴾ د تفعيل د باب ماضي ده: څه مخکي يې وضاحت وسو. ﴿باشر﴾ د مفاعلې د باب ماضي ده: يو کار خپله کول، معامله کول. ﴿مبتدأ﴾ د تفعيل د باب مفعو دی: له نوي سره کېدونکی، له شروع څخه سوی. ﴿أسوة﴾ برابر او مساوي، يو ډول. ﴿افترقا﴾ د افتعال له باب څخه د تثنيه مذکر غائب ماضي صيغه ده: سره جلا کېدل، بېلېدل.

**تشريح:** په مذکوره عبارت کي دوې مسئلې بيان سوي دي:

(١)... که چيري راهن يا مرتهن يو د بل په مشوره او اجازه سره يو اجنبي کس ته مرهون په عاريت ورکړي، نو په دې صورت کي هم مرهون د مرتهن له ضمان څخه وځي؛ ځکه چي د اجنبي کس قبضه د امانت قبضه ده او د مرتهن قبضه د ضمان قبضه ده او په دواړو کي تضاد او منافات دی (لکه مخکي

چي هم د دې وضاحت وسو) په "لِمَا قُلْنَا" سره همدې ته اشاره سوې ده. او له عاريتاً ورکولو څخه وروسته راهن او مرتهن هر يوه ته دا اختيار سته چي له اجنبي کس دا مرهون واپس واخلي او بيرته يې رهن وګرځوي؛ ځکه د مرهون سره د راهن حق متعلق دی ځکه چي هغه د راهن خپل ملکيت دی او د مرتهن حق هم ور سره متعلق دی ځکه چي مرتهن د هغه په ذريعه خپل قرض ترلاسه کوي؛ نو ځکه راهن او مرتهن هر يوه ته دا اختيار سته چي مرهون له اجنبي څخه واپس واخلي.

(٢)... دويمه مسئله دا ده چي که له راهن او مرتهن څخه يو د بل په اجازه سره مرهون اجنبي کس ته په اجاره ورکړي، يا هغه پر اجنبي کس خرڅ کړي، يا يې ورته هبه وکړي، نو په دې صورت کي مرهون له رهن څخه وځي او اوس که څه هم د مرتهن لاس او قبضې ته مرهون واپس راسي، نو صرف په قبضه سره هغه رهن نه ګرځي تر دې چي راهن او مرتهن دواړه د رهن عقد جديد نه وکړي.

ولوماتَ الراهن إلخ: د دې حاصل دا دی چي که چيري تر دې وروسته (يعني اجنبي کس ته په اجاره يا په بيع او هبه سره د مرهون تر ورکولو وروسته که چيري) راهن مړ سي، نو څرنګه چي اوس عقد رهن باطل سو، نو ځکه اوس د مرتهن حق ختميږي او هغه د راهن د عامو قرضخواهانو په فهرس کي داخليږي او د هغوی سره برابر شريک کيږي؛ ځکه چي د اجارې يا بيع يا هبې د تصرّف کولو په وجه د مرهون سره د اجنبي کس لازمي حق متعلق سو، نو د دغه حق په وجه عقد رهن باطل کړی سو. د دې په خلاف په مخکيني صورت کي يعني چي کله مرهون اجنبي کس ته په عاريت ورکول سوی وی نو په هغه صورت کي د مرهون سره د اجنبي کس حق لازم نه متعلق کيږي، نو ځکه په هغه صورت کي رهن هم نه باطليږي، او همدا وجه د فرق او حد فاصل دی د اجارې، بيع او هبې او د عاريت تر مينځ.

## كه مرتهن له راهن څخه مرهون په عاريت واخلي نو څه حكم دى؟

وَإِذَا اسْتَعَارَ الْمُرْتَهِنُ الرَّهْنَ مِنَ الرَّاهِنِ او كله چې مرتهن له راهن څخه مرهون په عاريت واخلي لِيَعْمَلَ بِهِ د دې لپاره چې په مرهون سره كار وكړي فَهَلَكَ قَبْلَ أَنْ يَأْخُذَ فِي الْعَمَلِ بيا مرهون هلاک سي مخكې تر دې چې هغه په كار شروع كړي هَلَكَ عَلَى ضَمَانِ الرَّهْنِ نو هغه د رهن پر ضمان هلاكيږي لِبَقَاءِ يَدِ الرَّهْنِ ځكه چې د رهن قبضه پاته ده وَكَذَا إِذَا هَلَكَ بَعْدَ الْفَرَاغِ مِنَ الْعَمَلِ او همدارنګه كله چې مرهون له كار څخه تر فارغېدلو وروسته هلاک سي لِارْتِفَاعِ يَدِ الْعَارِيَةِ ځكه چې د عاريت قبضه پورته سوې [ختمه] ده وَلَوْ هَلَكَ فِي حَالَةِ الْعَمَلِ او كه چيري مرهون د كار په حالت كې هلاک سي هَلَكَ بِغَيْرِ ضَمَانٍ نو هغه بغير له ضمان څخه هلاكيږي لِثُبُوتِ يَدِ الْعَارِيَةِ بِالِاسْتِعْمَالِ ځكه چې د استعمال په وجه د عاريت قبضه ثابته ده وَهِيَ مُخَالِفَةٌ لِيَدِ الرَّاهِنِ او دا [د عاريت قبضه] د رهن د قبضې مخالفه ده فَانْتَفَى الضَّمَانُ نو ځكه ضمان منفتي سو وَكَذَا إِذَا أَذِنَ الرَّاهِنُ لِلْمُرْتَهِنِ بِالِاسْتِعْمَالِ او همدارنګه كله چې راهن ومرتهن ته د استعمال اجازه وركړي لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه كوم چې موږ بيان كړى.

**اللغات**: ﴿استعار﴾ د استفعال د باب ماضي ده: په عاريت (عاريتاً) اخيستل، په خواست اخيستل. ﴿يأخذ﴾ د نصر له بابه د مضارع صيغه ده. كله چې د دې باب په صله كې "فِي" يا يو فعل راسي نو بيا د "شروع كولو" معنىٰ وركوي. مثلاً: أَخذ فِي الأَمر وَأخذ يَفْعَله. أي شَرَعَ فِيهِ. ﴿انتفى﴾ د افتعال ماضي ده: نفي كېدل، ختمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دى چې كه مرتهن له راهن څخه مرهون (غلام) په عاريت واخلي د دې لپاره چې په هغه سره يو كار وكړي، لېكن د كار تر شروع كولو مخكې مرهون هلاک سي، نو هغه مضمون بالدين كيږي؛ ځكه چې د رهن قبضه باقي ده. همدارنګه كه چيري له كار څخه تر فارغېدلو وروسته مرهون هلاک سي، نو هم هغه مضمون بالدين كيږي؛ ځكه كله چې مرهون له كار څخه فارغه سو، نو د عاريت قبضه ختمه سوه او د رهن قبضه راوګرځېده. او د رهن د قبضې په صورت كې د مرهون هلاكت مضمون كيږي (يعني كه په دې صورت كې هغه هلاک سي نو ضمان يې لازميږي چې په ضمان كې د مرتهن قرض ساقطيږي)، نو ځكه په دې صورت كې به د مرهون هلاكت مضمون بالدين كيږي.

د دې په خلاف که چیري د کار کولو په حالت کي مرهون هلاک سي، نو څرنګه چي هغه د عاریت د قبضې په حالت کي هلاک سوی دی، نو ځکه په دې صورت کي د مرهون هلاکت نه مضمون کیږي؛ ځکه چي د استعمال په وجه د عاریت قبضه ثابته ده، او د عاریت د قبضي او د رهن د قبضې تر مینځ منافات دی، نو ځکه په دې صورت کي ضمان هم منتفي دی.

وكذا إذا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که راهن له عاریت څخه بغیر و مرتهن ته د مرهون د استعمالولو اجازه ورکړي، نو په دې صورت کي هم د کار له شروع کولو څخه مخکي او د کار تر ختمېدلو وروسته د مرهون د هلاکېدلو په صورت هغه مضمون کیږي، او د کار په حالت کي د مرهون د هلاکېدلو په صورت کي هغه نه مضمون کیږي.

## په عاریت اخیستل سوی شی په رهن ایښوول (حکم او تفصیل)

وَمَنِ اسْتَعَارَ مِنْ غَيْرِهِ ثَوْبًا لِيَرْهَنَهُ او څوک چي له بل چا څخه یوه کپړه په عاریت واخلي د دې لپاره چي [یو چا ته] هغه په رهن ورکړي فَمَا رَهَنَهُ بِهِ مِنْ قَلِيلٍ أَوْ كَثِيرٍ نو د کوم لږ یا ډېر مقدار په عوض کي چي هغه دا کپړه په رهن ورکړي فَهُوَ جَائِزٌ نو دا جائز دي لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ بِإِثْبَاتِ مِلْكِ الْيَدِ ځکه چي هغه [عاریتاً ورکونکی] د ملکِ ید په ثابتولو سره تبرّع کونکی دی فَيُعْتَبَرُ بِالتَّبَرُّعِ بِإِثْبَاتِ مِلْكِ الْعَيْنِ وَالْيَدِ نو دا به قیاسول کیږي د ملکِ عین او ملکِ ید په ثابتولو سره په تبرّع کولو باندي وَهُوَ قَضَاءُ الدَّيْنِ او هغه قرض اداء کول دي وَيَجُوزُ أَنْ يَنْفَصِلَ مِلْكُ الْيَدِ عَنْ مِلْكِ الْعَيْنِ ثُبُوتًا لِلْمُرْتَهِنِ او جائز دي چي ملکِ ید له ملکِ عین څخه جلا سي د مرتهن لپاره د ثابتېدلو په اعتبار سره كَمَا يَنْفَصِلُ زَوَالًا فِي حَقِّ الْبَائِعِ لکه څرنګه چي د بائع په حق کي د زائلېدلو په اعتبار سره جلا کیږي وَالْإِطْلَاقُ وَاجِبُ الِاعْتِبَارِ خُصُوصًا فِي الْإِعَارَةِ او د اطلاق [مطلق والی] اعتبار کول واجب دي په ځانګړې توګه په عاریت کي لِأَنَّ الْجَهَالَةَ فِيهَا لَا تُفْضِي إِلَى الْمُنَازَعَةِ ځکه چي په عاریت کي جهالت نزاع ته رسول نه کوي [یا په بله وینا دا چي په عاریت کي جهالت د نزاع او ختلاف سبب نه ګرځي].

**اللغات:** ﴿متبرع﴾ د تفعّل د باب اسم فاعل دی: تبرّع کونکی، احسان کونکی، غیر واجب کار کونکی، بلا عوضه (مفت) ورکونکی یا کار کونکی. ﴿لا تفضي﴾ د افعال له بابه د نفي صیغه ده: رسول، رسېدل، سبب جوړېدل. ﴿مناعة﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی: جنګ او جګړه. (اختلاف او جنجال).

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې زيد يوه کپړه مثلاً څادر (پټو) له خالد څخه د يو څو ورځو لپاره عاريتاً او په خواست واخيستی، د دې لپاره چې يو چا ته يې په رهن (په ګرو) ورکړي او له هغه څخه قرض واخلي، او مُعير (عاريتاً ورکونکی) يعني خالد دا نه وويل چې د دومره مقدار قرض لپاره دا څادر په رهن ورکړه!. ګواکي خالد خپل څادر مطلقاً په عاريت ورکړی، او بيا زيد هغه څادر يو چا ته مثلاً عُمر ته په رهن ورکړی او قرض يې څني واخيستی، نو برابره ده زيد لږ روپۍ په قرض څني اخيستي وي او که ډيري (يا په بله وينا دا چې د لږ قرض په عوض کي يې په رهن ورکړی وي او که د ډېر قرض په عوض کي) په هر صورت کي دا عقد رهن جائز دی، او د دې د جواز دوه دليلونه دي:

(۱)... مُعير يعني خالد عاريتاً د څادر په ورکولو سره د مُستعير يعني د زيد لپاره د تبرّع په توګه ملک يد (د قبضې ملکيت) ثابت کړی دی، حال دا چې دا هم جائز ده چې خالد له عاريتاً ورکولو څخه بغير په هغه څادر سره د زيد قرض اداء کړي چې په دې سره د زيد لپاره په هغه څادر کي ملک عين او ملک يد دواړه ثابتيږي، نو د يوه ملکيت يعني د ملک يد ثبوت خو به په درجه اولیٰ جائز وي، او بل دا چې ملک يد له ملک عين څخه جلا کېدلای هم سي لکه بعضې مسئلې چې داسي دي چې ملک يد پکښي ثابتيږي لېکن ملک عين نه پکښي ثابتيږي، همدارنګه بعضې مسئلې داسي دي چې په هغوی کي ملک عين ثابتيږي لېکن ملک يد نه پکښي ثابتيږي. لکه څرنګه چې په دې پورتنۍ مسئله کي د مرتهن لپاره ملک يد ثابت دی، نه ملک عين، او بل مثال دا چې که چيري بائع يو شی خرڅ کړي لېکن مشتري پر هغه قبضه نه وکړي، نو د مشتري لپاره ملک عين خو ثابت دی لېکن ملک يد تر اوسه ثابت نه دی، نو له دې څخه معلومه سوه چې ملک عين له ملک يد څخه او ملک يد له ملک عين څخه جلا کېدلای سي.

(۲)... دويم دليل دا دی چې دلته مُعير (خالد) هغه څادر مطلقاً په عاريت ورکړی دی او مُستعير (زيد) ته يې دا نه دي ويلي چې هغه د دومره مقدار په عوض کي په رهن ورکړه!، نو ځکه د هغه د اطلاق اعتبار به کيږي، خصوصاً په عاريت کي؛ ځکه چې په عاريت کي چې کوم جهالت وي، هغه مفضي الی النزاع نه ګرځي.

**که مُعير د قرض مقدار متعيّن کړي نو تر هغه د زيات مقدار په عوض کي په رهن اېښوول**

| |
|---|
| وَلَوْعَيَّنَ قَدْرًا او که چيري مُعير يو مقدار متعيّن کړي لَايَجُوْزُ لِلْمُسْتَعِيْرِ أَنْ يَرْهَنَهُ بِأَكْثَرَ مِنْهُ وَلَا بِأَقَلَّ مِنْهُ نو د مُستعير لپاره جائز نه دي چې تر هغه د زيات مقدار په عوض کي مستعار شی په رهن ورکړي او نه تر هغه د کم مقدار په عوض کي لِأَنَّ التَّقْيِيْدَ مُفِيْدٌ ځکه چې قيد [و شرط] لګول |

مفيد دي وَهُوَيَنْفِي الزِّيَادَةَ او دا قيد لګول [مقدار متعينول] د زياتوب نفي کوي لِأَنَّ غَرَضَهُ الِاحْتِبَاسُ بِمَا تَيَسَّرَ أَدَاؤُهُ ځکه چيري د مُعير مقصد د دومره مقدار په عوض کي [د مستعار شي] محبوس کېدل وي چي د هغه اداء کول آسانه وي وَيَنْفِي النُّقْصَانَ أَيْضًا او دا قيد لګول د کمي نفي هم کوي لِأَنَّ غَرَضَهُ أَنْ يَصِيرَ مُسْتَوْفِيًا لِلْأَكْثَرِ بِمُقَابَلَتِهِ عِنْدَ الْهَلَاكِ ځکه [په دې صورت کي] د مُعير مقصد دا وي چي مرتهن [د مستعار مرهون] د هلاکېدلو پر وخت د هغه په مقابله کي د اکثر مقدار ترلاسه کونکی وګرځي لِيَرْجِعَ بِهِ عَلَيْهِ د دې لپاره چي مُعير پر مُستعير رجوع وکړی سي.

**اللغات:** ﴿التقييد﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: مقيد کول. قيد لګول. ﴿احتباس﴾ د افتعال د باب مصدر دی: بندي ساتل، محبوس کېدل. راګرځېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که په عاريت ورکونکی کس (خالد) يو مقدار متعين نه کړي، نو په دې صورت کي خو په عاريت اخيستونکي (زيد) لره د قليل او کثير دواړو په عوض کي د رهن ايښوولو اختيار سته. لېکن که مُعير (خالد) يو مقدار متعين کړي چي مثلاً د پنځه سوه روپو په عوض کي دا ځادر په رهن ورکړه!، نو بيا د مُستعير (زيد) لپاره نه له دې ځخه د زيات مقدار په عوض کي په رهن ورکول جائز دي او نه د کم مقدار په عوض کي؛ ځکه د مُعير (خالد) تعيين برابره ده د کم مقدار وي او که د زيات، په هر صورت کي مفيد او نافع دی او يو صورت هم له منفعت ځخه خالي نه دی؛ ځکه چي د زياتوب (زائد مقدار) په نفي کولو سره د مُعير مقصد دا وي چي مُستعير دي ځکه د دومره مقدار په عوض کي د هغه ځادر په رهن ورکړي چي بيا د مُستعير لپاره د قرض اداء کول آسانه وي او ما ته خپل ځادر حاصل سي، ښکاره خبره چي دا يو ښه تدبير او نېک مقصد دی. نو ځکه د مُستعير لپاره له دې ځخه د زائد مقدار په عوض کي په رهن ورکول جائز نه دي.

همدارنګه د مُعير دغه تعيين او تقييد په کم مقدار کي هم ځکه د رهن نفي کوي (چي له ټاکل سوي مقدار ځخه د کم قيمت په عوض کي يې په رهن مه ورکوه!)، ځکه که د ټاکل سوي مقدار ځخه د کم مقدار (مثلاً د ١٠٠ روپو) قرض په عوض کي په رهن ورکول سي او بيا مرهون (ځادر) د مرتهن سره هلاک سي (چي د هغه قيمت مثلاً ٥٠٠ روپۍ دي)، نو پر مرتهن فقط د قرض د مقدار (يعني د ١٠٠ روپو) ضمان لازميږي او د مرهون لا پاته قيمت (٤٠٠ روپو) ضمان نه پرې لازميږي؛ ځکه چي هغه د مرتهن سره امانت دی لهذا د امانت والا مقدار (٤٠٠ روپۍ) راهن ته نه حاصليږي نو مُعير ته هم نه حاصليږي؛ حال دا چي د کم مقدار په نفي کولو سره د مُعير مقصد دا وي چي رهن دي زما د شي (ځادر) سره برابر وي ځکه که دا شی د مرتهن سره هلاک سي نو مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی وګرځي او بيا زه

له مُستعير راهن څخه هغه مقدار حاصل او ترلاسه کړي. او د کم مقدار په صورت کې د ممکنه نه ده ... ځکه مُستعير لره د مُعير له تاکل سوي قيمت څخه د کم مقدار په عوض کې هم په رهن ورکول جائز نه دي.

## مُعير په عاريت کې نور کوم شرطونه لګولای سي؟

وَكَذٰلِكَ التَّقْيِيدُ بِالْجِنْسِ وَبِالْمُرْتَهِنِ وَبِالْبَلَدِ او همدارنګه په جنس او په مرتهن او په ښار سره د [رهن] مقيد کول [هم معتبر دي] لِأَنَّ كُلَّ ذٰلِكَ مُفِيدٌ ځکه چي دا هر يو [تقييد] فايده کونکې دي لِتَيَسُّرِ الْبَعْضِ بِالْإِضَافَةِ إِلَى الْبَعْضِ ځکه چي د بعضي جنسونو په نسبت د بعضو ترلاسه کول آسانه وي [يعني ځيني شيان داسي وي چي د هغوی ترلاسه کول د مُعير او مرتهن لپاره آسانه وي او د ځينو د مشکل وي. نو ځکه د شي د جنس قيد لګول مفيد دي] وَتَفَاوُتِ الْأَشْخَاصِ فِي الْأَمَانَةِ وَالْحِفْظِ او ځکه چي د امانت او حفاظت په هکله خلک متفاوت [او بېلا بېل] وي وَإِذَا خَالَفَ او کله چي مُستعير [د مُعير] د حکم مخالفت وکړي كَانَ ضَامِنًا نو ضامن کېږي ثُمَّ إِنْ شَاءَ الْمُعِيرُ ضَمَّنَ الْمُسْتَعِيرَ بيا که د مُعير خوښه وي نو له مُستعير [راهن] څخه دي ضمان واخلي وَيَتِمُّ عَقْدُ الرَّهْنِ فِيمَا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْمُرْتَهِنِ او د راهن [مُستعير] او مرتهن تر مينځ به عقد رهن مکمل سي لِأَنَّهُ مَلَكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ ځکه چي راهن [مُستعير] په ضمان اداء کولو سره د مرهون مالک سو فَتَبَيَّنَ أَنَّهُ رَهَنَ مِلْكَ نَفْسِهِ نو ښکاره سوه چي هغه د خپل ځان ملکيت [شی] په رهن ورکړی دی [نه د مُعير شی] وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْمُرْتَهِنَ او که مُعير وغواړي نو له مرتهن څخه دي ضمان واخلي وَيَرْجِعُ الْمُرْتَهِنُ بِمَا ضَمِنَ وَبِالدَّيْنِ عَلَى الرَّاهِنِ او مرتهن دي په مضمون او قرض سره پر راهن رجوع وکړي [يعني کوم مقدار چي يې مُعير ته په ضمان کې ورکړی دی هغه او خپل قرض دواړه دي له راهن څخه واخلي] وَقَدْ بَيَّنَّاهُ فِي الِاسْتِحْقَاقِ او دا مورد په استحقاق کې بيان کړي دي [يعني چي په مرهون شي کې ديو چا استحقاق ثابت سي، د هغه په بيان کې مورد دې يادونه هم کړې ده] وَإِنْ وَافَقَ او که مُستعير د مُعير [د حکم] موافقت وکړي بِأَنْ رَهَنَهُ بِمِقْدَارِ مَا أَمَرَهُ بِهِ په دې توګه چي مُستعير دا [مُستعار شی] د هغه مقدار په عوض کې په رهن ورکړي د کوم په هکله چي مُعير حکم کړی دی إِنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ مِثْلَ الدَّيْنِ أَوْ أَكْثَرَ نو که د مستعار مرهون قيمت د قرض په څېر يا تر هغه زيات وي فَهَلَكَ عِنْدَ الْمُرْتَهِنِ بيا هغه [مستعار مرهون] د مرتهن سره هلاک

سي يَبْطُلُ الْمَالُ عَنِ الرَّاهِنِ نو له راهن څخه مال [قرض] ساقطيږي لِتَمَامِ الِاسْتِيفَاءِ بِالْهَلَاكِ ځکه چي د هلاکېدلو په وجه (د قرض) ترلاسه کول پوره سوه وَوَجَبَ مِثْلُهُ لِرَبِّ الثَّوْبِ عَلَى الرَّاهِنِ او پر راهن د هغه په مثل سره د کپړې والا [مُعير] لپاره واجبيږي لِأَنَّهُ صَارَ قَاضِيًا دَيْنَهُ بِمَالِهِ بِهَذَا الْقَدْرِ ځکه چي راهن [مُستعير] په همدې مقدار د هغه [مُعير] په مال سره د خپل قرض اداء کونکی گرځېدلی دی وَهُوَ الْمُوجِبُ لِلرُّجُوعِ دُونَ الْقَبْضِ بِذَاتِهِ او همدا [د هغه په مال سره قرض اداء کول] د رجوع موجب دي، نه نفس قبضه لِأَنَّهُ بِرِضَاهُ ځکه چي قبضه خو د هغه [مُعير] په رضا سره سوې ده.

**اللغات**: ﴿جنس﴾ منطقي لفظ دی،مثلاً پسه يو جنس دی، غوا بل جنس دی، غنم يا اُوربشي بل جنس دی، ﴿تفاوت﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو له بل څخه جلا کېدل (مختلف کېدل)، توپير پکښې راتلل، ﴿مُوجِب﴾ د افعال د باب اسم فاعل دی: واجبونکی، سبب (علت).

**تشريح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي څرنګه د قرض د مقدار متعين کولو په هکله د مُعير قيد او شرط لګول مفيد او معتبر دي، همداسي که د قرض جنس متعين کړي چي خاص د غنمو د قرض په عوض کي دا شی (مثلاً څادر) په رهن ورکړه!، يا هغه مرتهن متعين کړي چي دغه مستعار شی (څادر) فلانکي کس ته په رهن ورکړه!، يا ښار متعين کړي چي په دغه ښار کي يې په رهن ورکړه!، نو دا هر تعيين او تقييد د مُعير له طرفه مفيد او معتبر دی. يا په بله وينا دا چي که مُعير د پسونو تاجر يا شپانه وي او دا شرط ولګوي چي خاص د پسه په عوض کي دا شی په رهن ورکړه! يعني پسه په قرض څني واخله!، يا فلانکي تقوا داره کس ته يې په رهن ورکړه!، يا په هرات کي يې يو چا ته په رهن ورکړه!، نو دا ټوله شرطونه او قيدونه مفيد دي؛ ځکه کېدلای سي چي وروسته راهن له قرض اداء کولو څخه عاجزه سي او خپله مُعير د قرض اداء کولو او د خپل مرهون شي راخلاصولو ته مجبوره سي، نو ښکاره خبره ده چي که قرض له هغه جنس څخه نه وي کوم چي مُعير متعين کړی دی (مثلاً په پورتني صورت کي که قرض غنم يا پسه نه وي. بلکي راهن له هغه څخه بغير د بل جنس په عوض کي د مُعير شی په رهن ورکړی وي)، نو د مُعير لپاره به د بل جنس قرض اداء کول مشکل وي، همدارنګه بعضي ښارونو ته تګ راتګ سانه وي او بعضو ته ډېر ګران پرېوځي، لهذا د ښار قيد لګول هم مفيد دي او پر مُستعير لازم دي چي د رهن ورکولو په وخت کي د مُعير د لګول سوي قيد او شرط خيال وساتي او د هغه مطابق کار وکړي، همدا وجه ده که مُستعير د مُعير د حکم مخالفت وکړي، نومعير به له مُستعير څخه ضمان (تاوان) اخلي او کله چي مُستعير د مستعار شي ضمان ورکړي، نو بيا د مُستعير (راهن) او

مرتهن تر مينځ عقد رهن تام او مکمل ګرځي: ځکه د ضمان اداء کولو په وجه ګوکي مستعير راهن د مستعار شي مالک سو او هغه د خپل شي په رهن ورکونکی سو.

وإن شاء ضمن إلخ: مُعير ته چي څرنګه له مُستعير څخه د ضمان اخيستلو حق او اختيار سته. همداسي له مرتهن څخه هم د ضمان اخيستلو حق ورته سته. نو که چيري مُعير له مرتهن څخه ضمان واخلي، نو بيا به مرتهن هم له راهن (مستعير) څخه د ضمان مقدار اخلي او خپل قرض به هم ځني اخلي، لېکن دا په ياد لرئ! چي مرتهن په همغه صورت کي له راهن څخه قرض اخيستلای سي کله چي راهن د مُعير د حکم مخالفت کړی وي او مستعار شی د مرتهن سره موجود وي يعني هلاک سوی نه وي: ځکه چي د هلاکېدلو په صورت کي خو مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی ګرځي.

وإن وافق إلخ: فرمايي که مُستعير د مُعير د حکم موافقت وکړي او د هغه مطابق مستعار شی په رهن ورکړي او بيا هغه د مرتهن سره هلاک سي، نو که چيري د مستعار شي قيمت او قرض سره برابر وي يا د هغه قيمت له قرض څخه زيات وي، نو په دې دواړو صورتونو کي مرتهن د خپل قرض ترلاسه کونکی شمېرل کيږي او راهن له قرض څخه بري کيږي. او بيا به مُعير پر راهن رجوع کوي چي راهن به د قرض په اندازه مُعير ته ضمان ورکوي: ځکه چي راهن ـ همدې مُعير په شي سره خپل قرض اداء کړی دی، لهذا راهن يعني مُستعير به هاغه مقدار مُعير ته واپس کوي، ځکه چي قرض اداء کول د ضمان واجبېدلو سبب دي يا په بله وينا د رجوع سبب دي چي دلته په قرض اداء کولو سره پر راهن ضمان واجبيږي او مُعير به پر هغه رجوع کوي، او پاته سو قبضه د وجوب سبب نه ده يعني نفس د قبضې په وجه پر مُستعير د مُعير حق او ضمان نه واجبيږي، ځکه چي قبضه خو د مُعير په رضا سره وه يعني مُستعير (راهن) د مُعير په رضا سره پر مستعار شي قبضه کړې وه، نو ځکه د مُعير د رجوع حق به د قرض د مقدار سره وي، نه د قبضې سره، لهذا څومره قرض چي مُستعير (راهن) د مُعير په مال او شي سره اداء کړی وي، هغومره ضمان پر مُستعير واجبيږي چي هغه به مُعير ته ورکوي.

## که مستعار (عاريتا اخيستل سوی) مرهون عيبداره سي نو څه حکم دی؟

وَكَذٰلِكَ إِنْ أَصَابَهُ عَيْبٌ او همدارنګه که چيري مرهون ته يو عيب ورسيږي ذَهَبَ مِنَ الدَّيْنِ بِحِسَابِهِ نو د هغه په حساب سره قرض ساقطيږي وَوَجَبَ مِثْلُهُ لِرَبِّ الثَّوْبِ عَلَى الرَّاهِنِ او پر راهن د هغه په مثل سره د کپړې والا [مُعير] لپاره واجبيږي عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصيل مطابق کوم چي موږ بيان کړی وَإِنْ كَانَتْ قِيمَتُهُ أَقَلَّ مِنَ الدَّيْنِ او که د مرهون قيمت له قرض څخه کم وي ذَهَبَ بِقَدْرِ الْقِيمَةِ نو د قيمت په اندازه قرض ختميږي وَعَلَى الرَّاهِنِ بَقِيَّةُ دَيْنِهِ لِلْمُرْتَهِنِ او پر راهن د

مرتهن پاتــه قرض لازم پاتیږي لِأَنَّهُ لَمْ يَقَعْ الِاسْتِيفَاءُ بِالزِّيَادَةِ عَلَى قِيمَتِهِ ځکه چي له قيمت ځخه دزیاتوب [زائد مقدار] ترلاسه کول واقع نه سوه وَعَلَى الرَّاهِنِ لِصَاحِبِ الثَّوْبِ مَا صَارَ بِهِ مُوفِيًا او پر راهن د کپړې والا [مُعِير] لپاره دومره مقدار واجيبږي په څومره مقداره سره چي هغه [د خپل قرض] اداء کونکی ګرځېدلی دی لِمَا بَيَّنَّاهُ د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی.

**اللغات**: ﴿موفی﴾ د افعال د باب فاعل دی: پوره کونکی، اداء کونکی.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چي که مُستعير له مُعير ځخه د هغه يو شی مثلاً څادر په عاريت واخلي او هغه د پنځو سوو (۵۰۰) قرض په عوض کي په رهن ورکړي او د څادر قيمت له پنځو سوو (۵۰۰) ځخه زيات وي او بيا د مرتهن سره په هغه څادر کي يو عيب پيدا سي مثلاً لږ څيري سي او د هغه عيب په وجه د څادر قيمت کم سي، نو په دې صورت کي حکم دا دی چي څومره قيمت يې کم سوی وي مثلاً درې سوه (۳۰۰) روپۍ قيمت يې د عيب په وجه کم سي، نو دا درې سوه روپۍ له قرض ځخه ساقطيږي او صرف دوه سوه (۲۰۰) روپۍ اوس پر راهن واجب پاتيږي، او ځرنګه چي دلته راهن د مُعير په شي (څادر) سره درې سوه روپۍ قرض اداء کړی دی، نو ځکه راهن به همدا درې سوه روپۍ د کپړې (څادر) مالک يعني مُعير ته واپس کوي؛ ځکه مخکي ذکر سوه چي د مُعير په مال سره چي مُستعير (راهن) څومره قرض اداء کړي، هغومره مقدار پر مُستعير واجيبږي.

وإن كانت إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د دغه مستعار څادر قيمت له قرض ځخه کم وي مثلاً قرض پنځه سوه (۵۰۰) روپۍ وي او د مستعار مرهون څادر قيمت درې سوه (۳۰۰) روپۍ وي او بيا هغه څادر د مرتهن سره هلاک سي، نو ښکاره ده چي همدا درې سوه (۳۰۰) له قرض ځخه ساقطيږي او دوه سوه (۲۰۰) قرض پر راهن باقي پاتيږي؛ ځکه چي دلته صرف د څادر قيمت يعني (۳۰۰) مقدار له قرض ځخه کم سوی دی چي د هغه په وجه د پاته (۲۰۰) روپو ترلاسه کول نه دي واقع سوي (يعني مرتهن د هغوی ترلاسه کونکی نه دی ګرځېدلی)، لهذا دا (۲۰۰) روپۍ په راهن باندي قرض پاتيږي. او ځرنګه چي مُستعير په څادر سره درې سوه روپۍ قرض اداء کړی دی، نو ځکه هغه به همدا مقدار (۳۰۰) د څادر مالک يعني مُعير ته واپس کوي.

## که د مُستعير پر ځای خپله مُعير دا مستعار مرهون شی را خلاص کړي نو څه حکم دی؟

وَلَوْ كَانَتْ قِيمَتُهُ مِثْلَ الدَّيْنِ او که چيري د مرهون قيمت د قرض برابر وي فَأَرَادَ الْمُعِيرُ أَنْ يَفْتَكَّهُ جَبْرًا عَنِ الرَّاهِنِ او د راهن د مجبورۍ [او تنګلاسۍ] په وجه مُعير د مرهون راخلاصول وغواړي [يعني راهن وس نه لري او مُعير وغواړي چي د هغه قرض زه اداء کړم او خپل مرهون شی له مرتهن ځخه واخلم] لَمْ

يَكُنْ لِلْمُرْتَهِنِ إذَا قَضَى دَيْنَهُ أَنْ يَمْتَنِعَ نو مرتهن ته حق نسته (كله چي مُعير قرض اداء كړي) چي منع سي [يعني كله چي مُعير د مرتهن قرض اداء كړي نو بيا مرتهن ته دا حق نسته چي د مرهون له وركولو څخه منع سي] لِأَنَّهُ غَيْرُ مُتَبَرِّعٍ ځكه چي مُعير تبرّع كونكى نه دى حَيْثُ يُخَلِّصُ مِلْكَهُ ځكه چي هغه خپل ملكيت راخلاصوي وَلِهَذَا يَرْجِعُ عَلَى الرَّاهِنِ بِمَا أَدَّى او په همدې وجه مُعير به په هغه مقدار سره پر راهن رجوع كوي كوم چي مُعير [د مرهون په راخلاصولو كي] اداء كړى دى فَأُجْبِرَ الْمُرْتَهِنُ عَلَى الدَّفْعِ نو ځكه مرتهن به [د مرهون] پر وركولو مجبورول كيږي بِخِلَافِ الْأَجْنَبِيِّ إذَا قَضَى الدَّيْنَ په خلاف د اجنبي كس كله چي هغه [د مرتهن] قرض اداء كړي [نو مرتهن ته دا حق سته چي د مرهون له وركولو څخه منع سي] لِأَنَّهُ مُتَبَرِّعٌ ځكه چي اجنبي تبرّع كونكى دى إذْ هُوَ لَا يَسْعَى فِي تَخْلِيصِ مِلْكِهِ ځكه هغه د خپل ملكيت په راخلاصولو كي هڅه نه كوي وَلَا فِي تَفْرِيغِ ذِمَّتِهِ او نه د خپلي ذمي په فارغولو كي [هڅه كوي] فَكَانَ لِلطَّالِبِ أَنْ لَا يَقْبَلَهُ نو ځكه طالب [مرتهن] ته به دا حق وي چي دا [د اجنبي له طرفه د قرض] اداء كېدل قبول نه كړي [او مرهون نه وركړي].

**اللغات:** ﴿تفريغ﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: فارغول، خالي كول. تفريغ الذمة: ذمه فارغول يا په بله وينا غاړه خلاصول، له مسؤوليته ځان خلاصول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي كه مُستعير راهن غريب وي او كوم شی (څادر) چي يې له مُعير څخه اخيستی او مرتهن ته يې وركړی، دئ د هغه پر خلاصولو قادر نه وي (يعني د دې قدرت نه لري چي د مرتهن قرض اداء كړي او له هغه څخه خپل مستعار شی [څادر] واخلي). بيا خپله مُعير اراده وكړي چي خپل شي (څادر) له مرتهن څخه خلاص كړي او د مرتهن قرض اداء كړي، نو حكم دا دی چي كله هغه د مرتهن قرض اداء كړي (كوم چي راهن ځني اخيستي وو)، نو مرتهن ته پكار دي چي بغير له څه نزاع او ټال متهول څخه مُعير ته د هغه شی (څادر) واپس كړي؛ ځكه كله چي مُعير دا شی مُستعير ته وركړی وو، په هغه وخت كي خو مُعير متبرّع وو، لېكن څرنګه چي اوس هغه دا مرهون شی راخلاصوي. نو ځكه اوس متبرّع نه دی بلكي د خپل حق اخيستونكی دی، او د حق مالک ته په هر صورت كي خپل حق وركول كيږي. نو ځكه كه چيري په دې صورت كي مرتهن ټال متهول كوي او د شي له وركولو څخه انكار كوي، نو هغه به د مرهون شي پر واپس كولو مجبورول كيږي.

د دې په خلاف كه د مُعير پر ځای يو بل اجنبي كس وغواړي چي د مرتهن قرض اداء كړي او له هغه څخه مرهون شی راخلاص كړي او مرتهن له وركولو څخه انكار كوي، نو مرتهن به پر هغه نه

مجبورول کيږي؛ ځکه اجنبي کس متبرّع دی. ځکه چې هغه نه د خپل ملکيت راخلاصولو سعی کوي او نه خپل غاړه خلاصوي (ځکه چې د هغه پر غاړه او ذمه هيڅ شی نسته). لهذا هغه په دې باره کې متبرّع دې او د تبرّع په هکله پر مرتهن جبر نه سي کېدلای. (احسن الهدایه)

## د راهن سره د مستعار شي د هلاکېدلو حکم

وَلَوْهَلَكَ الثَّوْبُ الْعَارِيَةُ عِنْدَ الرَّاهِنِ او که چيري د عاريت کپړه د راهن سره هلاکه سي قَبْلَ أَنْ يَرْهَنَهُ أَوْ بَعْدَ مَا افْتَكَّهُ مخکې تر دې چې راهن هغه په رهن ورکړي يا وروسته تر دې چې هغه [له مرتهن څخه] راخلاصه کړي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ نو پر هغه ضمان نسته لِأَنَّهُ لَا يَصِيرُ قَاضِيًا بِهٰذَا ځکه چې راهن په دې [کپړه] سره د خپل قرض اداء کونکی نه دی ګرځېدلی وَهُوَ الْمُوْجِبُ حال دا چې همدا [د رجوع او ضمان] موجب دي عَلٰى مَا بَيَّنَّاهُ د هغه تفصيل مطابق کوم چې موږ بيان کړی.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې که چيري مُستعير څادر په عاريت واخلي، خو په رهن تر ورکولو مخکې هغه د ده سره هلاک سي، يا هغه څادر په رهن ورکړي او بيا قرض اداء کړي او له مرتهن څخه يې راخلاص کړي، خو بيا هغه د ده سره هلاک سي، نو په دې دواړو صورتونو کې پر راهن هيڅ ضمان (تاوان) نه لازميږي يا په بله وينا دا چې مُعير پر هغه هيڅ رجوع نه سي کولای؛ ځکه چې د رجوع کولو او د ضمان واجبېدلو سبب او شرط دا دی چې مُستعير (راهن) به په دې مستعار شي (څادر) سره خپل قرض اداء کړی وي، حالانکې دلته دا سبب معدوم دی، نو ځکه پر مُستعير به هيڅ ضمان نه واجبيږي. (احسن الهدايه)

## د مُعير او مُستعير د اختلاف حکم

وَلَوِاخْتَلَفَا فِيْ ذٰلِكَ او که چيري مُعير او مُستعير دواړه په دې هکله اختلاف وکړي [چې مستعار مرهون شی د رهن په حالت کې هلاک سوی دی او که مخکې...] فَالْقَوْلُ لِلرَّاهِنِ نو قول د راهن [مُستعير] معتبر دی لِأَنَّهُ يُنْكِرُ الْإِيْفَاءَ بِدَعْوَاهُ الْهَلَاكَ فِيْ هَاتَيْنِ الْحَالَتَيْنِ ځکه چې راهن د قرض اداء کولو انکار کوي په دې دوو حالتونو کې [د مستعار مرهون] د هلاکېدلو د دعوې په وجه كَمَا لَوْ* اخْتَلَفَا فِيْ مِقْدَارِ مَا

---

* **يادونه**: دلته د هدايې په نسخو کې "كَمَا" دی. لېکن دا د ناسخينو سهو ده. صحيح لفظ "وَلَوْ" دی. کنې د "كَمَا" په صورت کې مطلب نه صحيح کيږي. ځکه په مسئله کې د مستعير (راهن) قول معتبر سوی دی او دلته د معير قول معتبر سوی دی، نو تشبيه نه صحيح کيږي. (اشرف الهدایه)

أَمَرَهُ بِالرَّهْنِ بِهِ لکه که چیري دوی دواړه اختلاف وکړي د هغه مقدار په هکله چي د هغه په عوض کي مُعیر ومُستعیر ته د رهن حکم کړی وي فَالْقَوْلُ لِلْمُعِيرِ نو قول د مُعیر معتبر دی لِأَنَّ الْقَوْلَ قَوْلُهُ فِي إِنْكَارِ أَصْلِهِ ځکه چي د اصل [عقد] په انکار کي [هم] د مُعیر قول معتبر دی فَكَذَا فِي إِنْكَارِ وَصْفِهِ نو همداسي به د هغه [عقد] د وصف په انکار کي [هم د مُعیر قول معتبر وي].

**اللغات:** ﴿إِيفَاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: (حق) پوره کول، اداء کول.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که د مُستعار مرهون شي (څادر) د هلاکېدلو د حالت په هکله مُعیر او مُستعیر اختلاف وکړي، مُعیر وواېي چي دغه مستعار شی د عقد رهن (مرهون کېدلو) په حالت کي هلاک سوی دی لهذا د هغه په ذريعه ستا قرض اداء دی، نو زما لپاره پر تا ضمان (تاوان) واجب دی چي هغه به ما ته راکوې!، لېکن مُستعیر وواېي چي نه! داسي نه ده بلکي مُستعار شی له عقد رهن څخه مخکي يا له عقد رهن څخه وروسته (چي کله ما مستعار مرهون راخلاص کړی) هلاک سوی دی او د مُعیر سره هيڅ گواه نه وي، نو په دې صورت کي د مُستعیر قول معتبر دی؛ ځکه چي مُستعیر د مستعار شي په ذريعه د خپل قرض له اداء کولو او پر خپل ځان د ضمان له واجبېدلو څخه منکر دی، او دا مشهوره قاعده ده چي که د مدعي سره بيّنه نه وي، نو قول د منکر معتبر دی، نو ځکه په دې صورت کي د مُستعیر راهن کوم چي منکر دی د هاغه قول به معتبر وي.

كما لو إلخ: د دې حاصل دا دی چي که مُعیر او مُستعیر د قرض په مقدار کي اختلاف وکړي، مثلاً مُعیر وواېي چي ما تا ته ویلي وه چي دا زما شی (مثلاً څادر) د پنځو سوو (۵۰۰) روپو په عوض کي په رهن ورکړه! او مُستعیر وواېي چي نه! تا ویلي وه چي د دريو سو (۳۰۰) روپو په عوض کي....، نو په دې صورت کي د مُعیر قول معتبر دی؛ ځکه که چيري مُعیر د اصل يعني د عقد عاريت يا عقد رهن انکار وکړي (يعني چي ما تا ته گردسره دا شی په عاريت درکړی نه دی، يا ما تا ته د دې اجازه درکړې نه ده چي دا شی په رهن ورکړه!) نو هم د مُعیر قول معتبر او مقبول دی، لهذا کله چي مُعیر د مُستعیر راهن د بيان سوي مقدار انکار وکړي، نو هم به د هاغه قول معتبر وي، ځکه چي مقدار خو د عقد رهن يو وصف دی او مورږ وويل چي د اصل په هکله د هغه قول لره اعتبار دی، نو ښکاره خبره ده چي د وصف په هکله به هم د هغه قول لره اعتبار وي.

## مُستعار شی د موعود قرض په عوض کي په رهن ورکول (حکم او تفصيل)

وَلَوْ رَهَنَهُ الْمُسْتَعِيرُ بِدَيْنٍ مَوْعُودٍ او که چیري مُستعیر د موعود قرض په عوض کي مُستعار په رهن ورکړي وَهُوَ أَنْ يَرْهَنَهُ بِهِ لِيُقْرِضَهُ كَذَا او هغه دا دی چي مُستعیر هغه [مستعار] د دې لپاره په رهن ورکړي چي مرتهن به [وروسته] دومره قرض ورکړي فَهَلَكَ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ قَبْلَ الْإِقْرَاضِ بیا له قرض ورکولو څخه مخکي د مرتهن په قبضه کي مرهون هلاک سي وَالْمُسَمَّى وَالْقِيمَةُ سَوَاءٌ او ټاکل سوی [قرض] او قیمت سره برابر وي يَضْمَنُ قَدْرَ الْمَوْعُودِ الْمُسَمَّى نو مرتهن د ټاکل سوي موعود [قرض] د مقدار ضامن کیږي [یعني موعود قرض چي څومره وي، مرتهن به هغومره مقدار ضمان (تاوان) ورکوي] لِمَا بَيَّنَّا أَنَّهُ كَالْمَوْجُودِ د هغه دلیل په وجه کوم چي موږ بیان کړی چي موعود د موجود په څېر دی وَيَرْجِعُ الْمُعِيرُ عَلَى الرَّاهِنِ بِمِثْلِهِ او مُعیر به پر راهن د هغه په مثل سره رجوع کوي لِأَنَّ سَلَامَةَ مَالِيَّةِ الرَّهْنِ بِاسْتِيفَائِهِ مِنَ الْمُرْتَهِنِ ځکه چي له مرتهن څخه د راهن د [ضمان] اخیستلو په صورت کي د رهن د مالیت سلامتي داسي ده [یعني چي راهن له مرتهن څخه ضمان واخلي نو د هلاک سوي مرهون مالیت داسي سالم پاتیږي] كَسَلَامَتِهِ بِبَرَاءَةِ ذِمَّتِهِ عَنْهُ لکه د هغه سلامتي له قرض څخه د راهن د ذمې د بري کېدلو په صورت کي [یعني لکه کله چي راهن قرض اداء کړي او مرهون له مرتهن څخه واخلي نو څرنګه چي هغه سالم پاتیږي، همداسي په پورتني صورت کي هم دي].

**اللغات:** ﴿موعود﴾ د ضرب د باب مفعول دی: وعده کړی سوی، د څه چي وعده سوې وي. ﴿مسمّٰی﴾ د تفعیل د باب مفعول دی: نومول سوی، ټاکل سوی. ﴿استیفاء﴾ (حق) ترلاسه کول. اخیستل. ﴿براءة﴾ بري کېدل، خلاصېدل، براءة الذمة: له ذمه واری څخه بري کېدل. ذمه او غاړه خلاصېدل.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چي زید له خالد څخه د رهن لپاره یو شی مثلاً څادر په عاریت واخیستی (چي زه یې بل چا مثلاً حامد ته په رهن ورکوم چي ما ته قرض راکړي)، بیا د زید او حامد تر مینځ خبره وسوه، حامد وویل چي دا څادر ما ته په رهن راکړه! زه به تا ته پنځه سوه (۵۰۰) روپۍ په قرض درکړم. زید په رهن ورکړی (دې ته د مَوعود قرض په عوض کي رهن وایي). خو حامد تر اوسه پنځه سوه روپۍ لا ورکړي نه وې، صرف هغه وعده یې ور سره کړې وه چي مرهون څادر د حامد سره هلاک سو، نو اوس به دې ته کتل کیږي چي که چیري د مرهون څادر قیمت د موعود قرض یعني د (۵۰۰) سره برابر وي یعني د څادر قیمت هم پنځه سوه (۵۰۰) روپۍ وي، نو مرتهن (حامد) به د پنځو سوو ضمان

راهن (زيد) ته ورکوي؛ ځکه چي د رهن په باب کي موجود د موعود په شېر دی او تاسي ته معلومه ده چي که قرض موجود وي يعني حامد زيد ته قرض ورکړي او د زيد مرهون څادر د حامد سره هلاک سي، نو هم په ضمان کي د مرتهن (حامد) قرض ساقطيږي يا په بله وينا پر مرتهن قرض لازميږي او راهن (زيد) بري کيږي، نو همداسي دلته هم پر مرتهن (حامد) د قرض مقدار لازميږي چي راهن (زيد) ته به يې ورکوي او راهن به يې څني اخلي؛ ځکه چي موعود د موجود په درجه کي دی.

بيا خالد (مُعير) به له زيد (راهن) څخه دا پنځه سوه روپۍ اخلي؛ ځکه که چيري تر قرض ورکولو وروسته مرهون څادر د حامد (مرتهن) سره هلاک سوي وای، نو به هم خالد له زيد څخه پنځه سوه روپۍ اخيستلای (ځکه چي څادر د خالد دی او په هغه سره د زيد يعني د راهن قرض اداء سوی دی)، نو همداسي دلته به يې هم اخلي.

خلاصه د خبري دا چي د راهن برائت من الدَين او د استيفاء من المرتهن تر مينځ هيڅ فرق نسته (يا په بله وينا دا چي له قرض څخه د راهن بري کېدل او له مرتهن څخه د راهن قرض اخيستل په دواړو کي هيڅ فرق نسته) بلکي د دواړو حکم يو دی.

مصنف رَحِمَهُ الله د همدې برائت او استيفاء برابر والی په دې عبارت سره بيان کړی دی "لأن سلامة مالية الرهن إلخ" يعني د مرهون څادر ماليت په دواړو صورتونو کي د راهن (زيد) سره صحيح سالم پاتيږي، بس فرق يې صرف دومره دی چي دلته يعني د موعود قرض په صورت کي له مرتهن څخه د اخيستلو په توګه دی او د موجود قرض په صورت کي د راهن د بري کيدلو په توګه دی.

## که د عاريت غلام مُعير آزاد کړي، نو څه حکم دی؟

وَلَوْكَانَتِ الْعَارِيَةُ عَبْدًا او که چيري عاريت غلام وي فَأَعْتَقَهُ الْمُعِيْرُ بيا مُعير هغه آزاد کړي جَازَ نو جائز دي لِقِيَامِ مِلْكِ الرَّقَبَةِ ځکه چي [د معير] ملکِ رقبه قائم [او موجود] دی [يعني په همدې د رهن په حالت کي هم دا مرهون غلام د مُعير په ملکيت کي دی او هغه يې مالک دی] ثُمَّ الْمُرْتَهِنُ بِالْخِيَارِ بيا مرتهن ته اختيار دی إِنْ شَاءَ رَجَعَ بِالدَّيْنِ عَلَى الرَّاهِنِ که وغواړي پر راهن دي په قرض سره رجوع وکړي لِأَنَّهُ لَمْ يَسْتَوْفِهِ ځکه چي هغه قرض نه دی ترلاسه کړی وَإِنْ شَاءَ ضَمَّنَ الْمُعِيْرُ قِيْمَتَهُ او که وغواړي نو له مُعير څخه دي د هغه د قيمت ضمان واخلي لِأَنَّ الْحَقَّ قَدْ تَعَلَّقَ بِرَقَبَتِهِ بِرِضَاهُ ځکه چي د مرتهن حق [قرض] د غلام د ذات سره د مُعير په رضا [په خوښه] متعلق سوی دی وَقَدْ أَتْلَفَهُ بِالْإِعْتَاقِ حال دا چي مُعير [د غلام] په آزادولو سره د مرتهن حق ضايع کړی دی وَتَكُوْنُ رَهْنًا عِنْدَهُ

إِلَى أَنْ يَقْبِضَ دَيْنَهُ او قيمت د مرتهن سره رهن کيږي تر دې چې مرتهن پر خپل قرض قبضه وکړي فَيَرُدُّهَا إِلَى الْمُعِيرِ بيا به دا قيمت مُعير ته واپس کوي لِأَنَّ اسْتِرْدَادَ الْقِيمَةِ كَاسْتِرْدَادِ الْعَيْنِ ځکه د قيمت واپس اخيستل د عين شي د واپس اخيستلو په څېر دي.

**اللغات:** ﴿العارية﴾ عاريت، مراد: عاريتاً (په عاريت) اخيستل سوی شی. ﴿ملك الرقبة﴾ د غلام د ذات ملکيت، د غلام يا د مينځې مالک کېدل، چې دې ته ملک يمين هم وايي. ﴿أتلف﴾ د افعال د باب ماضي ده: ضايع کول، له منځه وړل او ختمول. ﴿استرداد﴾ د استفعال د باب مصدر دی: واپس اخيستل، رجوع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که زيد له خالد څخه غلام عاريتاً اخيستی وي او حامد ته يې په رهن ورکړی وي، بيا مُعير (خالد) هغه آزاد کړي، نو څرنګه چې مُعير د هغه مالک دی، نو ځکه دا عتق صحيح سو، اوس به مرتهن (حامد) څه کوي؟، نو فرمايي چې هغه ته دوه اختيار دي: ① يو دا چې مرتهن دې له مُستعير راهن (زيد) څخه خپل قرض واخلي؛ ځکه د غلام د آزادېدلو په وجه مرتهن د خپل قرض تر لاسه کولو کې نه سو، لهذا د هغه حق (قرض) باقي پاته دی، نو ځکه له راهن څخه به خپل قرض واپس اخلي. ② يا مرتهن دې له مُعير (خالد) څخه د غلام د قيمت ضمان (تاوان) واخلي، يعني په تاوان کې دې د آزاد کړی سوي غلام قيمت ځني واخلي او هغه قيمت دې د ځان سره په رهن کښېږدي، کله چې راهن د مرتهن قرض اداء کړي، نو بيا دې هغه قيمت مُعير ته واپس کړي يا په بله وينا مُعير دې هغه واپس ځني واخلي.

اوس پاته سوه دا خبره چې له مُعير څخه به ضمان ولې اخلي؟، نو د دې جواب دا دی چې د مرتهن حق د غلام د ذات سره د مُعير په رضا (په خوښې) متعلق سوی دی او مُعير د غلام د آزادولو په وجه د مرتهن حق تلف کړی دی، نو په دې وجه مرتهن په ضمان (تاوان) کې له مُعير څخه د غلام قيمت اخيستلای سي.

او پاته سوه دا خبره چې تر قرض اداء کېدلو وروسته به دا قيمت ولې مُعير واپس اخلي؟، نو د دې په جواب کې فرمايي "لأن الاسترداد إلخ" يعني که عينِ مرهون (غلام) موجود وای، نو د قرض تر اداء کېدلو وروسته به مُعير عينِ مرهون واپس اخيستلای، نو همداسې قيمت کوم چې د عين قائم مقام دی هغه به هم مُعير واپس اخلي.

## كه غلام يا څاروى د رهن لپاره عاريتاً واخلي، بيا خپله هغه استعمال كړي (حكم او تفصيل)

وَلَوِ اسْتَعَارَ عَبْدًا أَوْ دَابَّةً لِيَرْهَنَهُ او كه چيري غلام يا څاروى يې عاريتاً [په عاريت] واخيستى دى لپاره چې په رهن يې وركړي فَاسْتَخْدَمَ الْعَبْدَ أَوْ رَكِبَ الدَّابَّةَ قَبْلَ أَنْ يَرْهَنَهُمَا بيا مُستعير له غلام څخه خدمت واخيستى يا پر څاروي سپور سو مخكې تر دې چې دا دواړه په رهن وركړي ثُمَّ رَهَنَهُمَا بِمَالٍ مِثْلِ قِيمَتِهِمَا بيا يې دوى په رهن وركړه د دوى د قيمت غوندې مال په عوض كې ثُمَّ قَضَى الْمَالَ بيا يې مال [قرض] اداء كړى فَلَمْ يَقْبِضْهُمَا حَتَّى هَلَكَا عِنْدَ الْمُرْتَهِنِ لېكن پر دوى يې قبضه نه وكړه تر دې چې دوى د مرتهن سره هلاک سول فَلَا ضَمَانَ عَلَى الرَّاهِنِ نو پر راهن [مُستعير] ضمان نسته لِأَنَّهُ قَدْ بَرِئَ مِنَ الضَّمَانِ حِينَ رَهَنَهُمَا ځكه چې راهن [مُستعير] له ضمان څخه بري سو كله چې يې دوى په رهن وركړل فَإِنَّهُ كَانَ أَمِينًا خَالَفَ ثُمَّ عَادَ إِلَى الْوِفَاقِ ځكه هغه داسي امين [امانت ساتونكى] دى چې هغه مخالفت كړى دى بيا بيرته موافقت ته راگرځېدلى دى وَكَذَا إِذَا افْتَكَّ الرَّهْنَ او همدارنگه كله چې رهن را خلاص كړي ثُمَّ رَكِبَ الدَّابَّةَ أَوِ اسْتَخْدَمَ الْعَبْدَ بيا پر څاروي سپور سي يا له غلام څخه خدمت اخلي فَلَمْ يَعْطَبْ او هغه [څاروى يا غلام] هلاک نه سي ثُمَّ عَطِبَ بَعْدَ ذَلِكَ مِنْ غَيْرِ صُنْعِهِ بيا تر دې وروسته د مُستعير له فعل څخه بغير هغه هلاک سي لَا يَضْمَنُ نو هم هغه نه ضامن كيږي لِأَنَّهُ بَعْدَ الْفِكَاكِ بِمَنْزِلَةِ الْمُودَعِ ځكه د رهن له را خلاصولو څخه وروسته هغه د مودَع [امين] په درجه كې دى لَا بِمَنْزِلَةِ الْمُسْتَعِيرِ نه د مُستعير په درجه كې لِانْتِهَاءِ حُكْمِ الِاسْتِعَارَةِ بِالْفِكَاكِ ځكه چې د رهن راخلاصولو په وجه د استعارې حكم ختم سو وَقَدْ عَادَ إِلَى الْوِفَاقِ او هغه موافقت ته راوگرځېدى فَيَبْرَأُ عَنِ الضَّمَانِ نو ځكه له ضمان څخه به بري كيږي.

**اللغات:** ﴿استعار﴾ د استفعال د باب ماضي ده: عاريتاً (په عاريت) اخيستل. ﴿دابة﴾ څاروى (مراد ځني د سپرتيا څاروى دى، لكه آس، خر او داسي نور)، ﴿استخدم﴾ د استفعال د باب ماضي ده: خدمت ځني اخيستل، كارول. ﴿برئ﴾ د سمع د باب ماضي ده: بري كېدل، له ذمه وارۍ څخه وتل (غاړه خلاصېدل)، ﴿وفاق﴾ موافقت (موافق كېدل)، مطابقت. ﴿فكاك﴾ د سمع د باب مصدر دى: (مرهونه

راخلاصول، مراد: د مرتهن قرض اداء کول او مرهون واپس ځني اخيستل. ﴿مودَع﴾ د افعال د باب مفعول دی: چا ته چي امانت ايښوول سوی (څوک چي امين جوړ کړی سوی وي).

**تشريح :صورت د مسئلي**: دا دی چي که زيد له خالد څخه د رهن لپاره غلام يا آس عاريتاً اخيستی وي، بيا زيد مخکي تر دې چي غلام په رهن ورکړي له هغه څخه خدمت واخلي يا پر آس سپور سي، بيا يې په رهن ورکړي او بيا د مرتهن قرض اداء کړي. لېکن تر اوسه راهن (زيد) پر غلام يا آس قبضه نه وي کړې چي هغه د مرتهن سره هلاک سي، نو په دې صورت کي پر راهن (زيد) ضمان نه لازميږي؛ ځکه چي په دې صورت کي د مُعير (خالد) په مال يعني د هغه په غلام يا د هغه په آس سره دراهن قرض نه دی اداء سوی.

**سوال**: سمه ده! د مُعير په مال سره خو د هغه قرض نه دی اداء سوی، لېکن د خدمت اخيستلو او استعمالولو په وجه خو هغه تعدی کړې ده، نو د دغه تعدی په وجه پر راهن (زيد) ضمان واجبېدل پکار دي؛ ځکه چي په امانت کي په تعدی سره ضمان واجبيږي؟.

**جواب**: کله چي مُستعير راهن (زيد) دا مستعار مال يعني غلام يا آس په رهن ورکړی، نو اوس هغه له ضمان څخه بري سو؛ ځکه اُصول دا دی چي کله امين د مالک مخالفت وکړي او بيا يې موافقت وکړي. نو پر هغه ضمان نه واجبيږي، او دلته همدا صورت پېښ سوی دی، نو ځکه ضمان به نه واجبيږي.

وكذا إذا افتك إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله مُستعير راهن (زيد) دا مستعار مرهون مال راخلاص کړي او بيا هغه استعمال کړي او د استعمال په وجه هلاک نه سي، خو وروسته هغه خپله هلاک سي، نو په دې صورت کي هم مُستعير راهن نه ضامن کيږي؛ ځکه کله چي هغه رهن را خلاص کړی، نو اوس هغه مُستعير پاته نه سو، بلکي مودَع او امين وګرځېدی، او د مُودَع او امين حکم دا دی چي که هغه د مالک (مُودِع) تر مخالفت کولو وروسته د مالک موافقت وکړي او بيا د هغه له تعدی څخه بغير وديعت هلاک سي، نو پر مودَع ضمان نه لازميږي، او په مذکوره مسئله کي چي څرنګه د مال د هلاک کېدلو همدغه کيفيت دی او مستعير مودَع ګرځېدلی دی، نو ځکه په دې صورت کي به هم د مال په هلاکېدلو سره پر هغه ضمان نه واجبيږي.

## د رهن والا مُستعير او خالص مستعير حکم سره جلا دی

وَهٰذَا بِخِلَافِ الْمُسْتَعِيْرِ او دا د مُستعير په خلاف دي لِأَنَّ يَدَهٗ يَدُ نَفْسِهٖ ځکه چي د مُستعير قبضه د هغه خپل ذاتي قبضه ده فَلَا بُدَّ مِنَ الْوُصُوْلِ إِلٰى يَدِ الْمَالِكِ نو ځکه د مالک [مُعير] لاس ته [د مستعار شي] رسېدل ضروري دي أَمَّا الْمُسْتَعِيْرُ لِلرَّهْنِ او کوم چي د رهن مُستعير دی فَيَحْصُلُ مَقْصُوْدُ

الآمر نو هغه دآمر [مُعیر] مقصود حاصلوي وَهُوَ الرُّجُوْعُ عَلَيْهِ عِنْدَ الْهَلَاكِ وَتَحَقُّقِ الِاسْتِيْفَاءِ او دآمر مقصود پر هغه [راهن مستعیر] رجوع کول دي [د مرتهن سره د مرهون]. د هلاکېدلو په وخت کي او د [قرض] ترلاسه کېدلو په وخت کي.

**اللغات**: ﴿تَحَقُّق﴾ د تفعّل د باب مصدر دی: موجودېدل، ثابتېدل

**تشریح**: **صورت د مسئلې**: دا دی چي مُستعیر دوه ډوله دی: ① یو هغه مُستعیر دی کوم چي د رهن لپاره شی په عاریت واخلي، ② او بل هغه مُستعیر دی کوم چي خالص د خپل کار لپاره شی په عاریت واخلي.

د دواړو حکم سره جلا دی، د رهن والا مُستعیر حکم هغه دی کوم چي مخکي ذکر سو چي که هغه تر مخالفت وروسته موافقت وکړي او تر موافقت وروسته مستعار شی هلاک سي، نو پر هغه ضمان نه لازمیږي؛ ځکه چي هغه د مودَع (امین) په درجه کي دی او مودَع چي کله موافقت وکړي، نو ګواکي اوس حکماً پر امانت د مالک (معیر) قبضه راغله او کله چي حکماً د مالک قبضه راغله، نو ځکه اوس د هلاکېدلو په وجه پر امین ضمان نه واجبیږي.

او د خالص مُستعیر قبضه خپل ذاتي قبضه ده (ځکه چي هغه د خپل ذاتي استعمال لپاره شی په عاریت اخیستی دی) نو هلته حکماً د مالک قبضه نه راغله، بلکي د مالک قبضه به هغه وخت راسي کله چي مُستعیر د مالک (مُعیر) لاس ته مُستعار شی ورسوي او صحیح سلامت یې ورته وسپاري، او تر دې مخکي مُستعار شی د مُستعیر په ضمان کي پاتیږي، لهذا که چیري هغه هلاک سي نو پر مُستعیر د هغه ضمان واجبیږي، چي د هلاکت په صورت کي د هلاک کړی سوي شي ضمان او د تعدی په صورت کي د تعدی ضمان پرې واجبیږي، او د رهن والا پر مُستعیر نه واجبیږي.

اوس پاته سوه دا خبره چي د رهن والا مُستعیر په صورت کي دآمر (مُعیر) قبضه څرنګه حکماً منل سوې ده (او ویل سوي دي چي پر مستعار شي [امانت] حکماً د هغه قبضه راغله)؟.

نو د دې جواب دا دی چي د رهن والا مُستعیر چي کوم څه کوي یعني مُستعار شی مرتهن ته په رهن اېښوول، هغه یې دآمر (مُعیر) د مقصود حاصلولو لپاره کوي؛ ځکه کله چي مُستعیر (راهن) د مرتهن قرض اداء کړي نو مُستعار شی مُعیر ته واپس حاصلیږي او که مُستعار شی د مرتهن سره هلاک سي، نو مُعیر ته د هغه قیمت حاصلیږي.

نو په دې وجهو سره د رهن والا او خالص مُستعیر تر مینځ فرق دی او دواړو حکم سره جلا دی.

## په مرهون باندې د راهن د جنايت کولو حکم

قَالَ: وَجِنَايَةُ الرَّاهِنِ عَلَى الرَّهْنِ مَضْمُوْنَةٌ فرمايي: او د راهن جنايت پر مرهون ضمان والا دی [يعني پر راهن د هغه ضمان لازميږي] لِأَنَّهُ تَفْوِيْتُ حَقٍّ لَازِمٍ مُحْتَرَمٍ ځکه چې دا [جنايت] د لازم محترم حق ضايع کول دي وَتَعَلُّقُ مِثْلِهِ بِالْمَالِ يَجْعَلُ الْمَالِكَ كَالْأَجْنَبِيِّ فِي حَقِّ الضَّمَانِ او د مال سره د داسې حق متعلق کېدل [د مال] مالک د اجنبي په څېر ګرځوي د ضمان په حق کې كَتَعَلُّقِ حَقِّ الْوَرَثَةِ بِمَالِ الْمَرِيْضِ مَرَضَ الْمَوْتِ يَمْنَعُ نَفَاذَ تَبَرُّعِهِ فِيْمَا وَرَاءَ الثُّلُثِ لکه په مرضُ الموت کې د مريض د مال سره د وارثانو د حق متعلق کېدل له ثلث مال څخه ماسوا په نور مال کې د مريض د تبرّع [وصيت وغيره] نافذېدل منع کوي وَالْعَبْدُ الْمُوْصٰى بِخِدْمَتِهِ إِذَا أَتْلَفَهُ الْوَرَثَةُ او هغه غلام چې د هغه د خدمت کولو وصيت سوی وي کله چې وارثان هغه ضايع کړي ضَمِنُوْا قِيْمَتَهُ لِيُشْتَرٰى بِهَا عَبْدٌ يَقُوْمُ مَقَامَهُ نو وارثان د هغه د قيمت ضامن کيږي د دې لپاره چې په هغه قيمت سره يو [بل] غلام رانيول سي چې د اول غلام قائم مقام سي.

**اللغات:** ﴿جناية﴾ جرم، د ګناه کار. ﴿مضمونة﴾ د سمع د باب مفعول دی: د کوم شي ضمان (تاوان) چې پر انسان لازم سي، د کوم شي چې ضمان ورکول کيږي. ﴿تفويت﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: فوتول، ضايع کول. ﴿حق محترم﴾ داسې حق چې د هغه خيال ساتل پر انسان لازم وي. ﴿ضمنوا﴾ د سمع له باب د جمع غائب صيغه ده: ضامن کېدل، ضمان (تاوان) پرې لازمېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که چيرې راهن پر مرهون يو جنايت وکړي (مثلاً د مرهون غلام غابن وباسي)، نو راهن به د هغه ضمان (تاوان) اداء کوي؛ ځکه که څه هم مرهون (غلام) د راهن په ملکيت کې دی او راهن يې مالک دی، خو د عقدِ رهن په وجه د هغه سره د بل چا (يعني د مرتهن) محترم او لازم حق متعلق سوی دی، او قاعده دا ده چې که د مالک د شي سره د بل چا لازم حق متعلق سي، نو مالک د اجنبي په څېر ګرځي (يعني لازم حق مالک د اجنبي په څېر ګرځوي).

د مثال په توګه که چيرې يو څوک په مرضُ الموت مبتلا وي او د هغه سره مال وي، نو دا مال که څه هم د هغه په ملکيت کې دی خو د هغه سره د وارثانو حق متعلق سوی دی، نو اوس که دا مريض په خپل مال کې له ثلث څخه د زيات مال وصيت يا تبرّع وکړي (مثلاً تر ثلث زيات مال يو چا ته صدقه کړي يا هبه کړي)، نو له ثلث څخه بغير په نور مال کې هغه وصيت او تبرّع نه نافذيږي؛ ځکه چې له ثلث څخه بغير د نور مال سره د وارثانو حق متعلق سوی دی. همدارنګه که يو څوک وصيت وکړي

چي زما فلانکی غلام به مثلاً د زيد خدمت کوي او تر دې وروسته وارثانو هغه غلام تلف کړی (مثلاً خرڅ يې کړي)، نو پر هغو په ضمان (تاوان) کي د غلام قيمت واجبيږي، د دې لپاره چي د هغه په قيمت سره بل غلام رانيول سي او د زيد خدمت کوي، حال دا چي هغه د وارثانو په ملکيت کي دی، خو څرنګه چي د هغه سره د مُوصیٰ لهٗ (زيد) لازم حق متعلق سوی دی، نو ځکه مالکان (وارثان) د اجنبي په څېر ګرځول سوي دي او ضمان پرې لازم سوی دی، نو همدغسي په مذکوره پورتني مسئله کي هم راهن که څه هم د خپل مرهون (غلام) مالک دی، لېکن څرنګه چي د هغه سره د مرتهن لازم حق متعلق سوی دی، نو ځکه موږ وايو چي که چيري راهن پر هغه يو جنايت وکړي، نو په راهن باندي ضمان لازميږي.

## د مرتهن د جنايت حکم

قَالَ: وَجِنَايَةُ الْمُرْتَهِنِ عَلَيْهِ تُسْقِطُ مِنْ دَيْنِهِ بِقَدْرِهَا فرمايي: او پر مرهون د مرتهن جنايت د مرتهن قرض ساقطوي د هغه د جنايت په اندازه وَمَعْنَاهُ أَنْ يَكُوْنَ الضَّمَانُ عَلٰى صِفَةِ الدَّيْنِ او د دې مطلب دا دی چي ضمان د قرض پر صفت وي [يعني د قرض له جنس څخه وي] وَهٰذَا لِأَنَّ الْعَيْنَ مِلْكُ الْمَالِكِ او دا ځکه چي عينِ مرهون د مالک [راهن] ملکيت دی وَقَدْ تَعَدّٰى عَلَيْهِ الْمُرْتَهِنُ حال دا چي مرتهن پر هغه تعدي [او زياتوب] کړی دی فَيَضْمَنُهُ لِمَالِكِهِ نو ځکه مرتهن به د عينِ مرهون د مالک لپاره ضامن کيږي [ضمان به ورکوي].

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که چيري مرتهن پر مرهون يو جنايت وکړي، نو که قرض او مرهون له يوه جنس څخه وي (مثلاً دواړه غلامان وي، داسي نه وي چي مرهون غلام وي او قرض مکيلي يا موزوني شی وي)، نو په ضمان کي د مرتهن له قرض څخه د جنايت په اندازه مقدار ساقطيږي، او که قرض او مرهون متحد الجنس نه وي (مثلاً قرض مکيلي شی [غنم] وي او مرهون غلام وي)، نو په دې صورت کي قرض نه ساقطيږي بلکي له مرتهن څخه به د جنايت په اندازه ضمان اخيستل کيږي او هغه ضمان به هم مرتهن ته د مرهون (غلام) سره په رهن اېښوول کيږي؛ او له مرتهن څخه به دا ضمان ځکه اخيستل کيږي، ځکه چي مرهون د راهن ملکيت دی او مرتهن په جنايت کولو سره په هغه کي تعدي او ناحقه تصرّف کړی دی، نو ځکه مرتهن به راهن (مالک) ته د دغه جنايت ضمان (تاوان) ورکوي.

## خپله د مرهون د جنايت حکم

قَالَ: وَجِنَايَةُ الرَّهْنِ عَلَى الرَّاهِنِ وَالْمُرْتَهِنِ وَعَلَى مَالِهِمَا هَدْرٌ فرمايي: او د رهن [مرهون غلام] جنايت پر [نفس د] راهن او مرتهن او د دوی پر مال باندې بې ځايه [او باطل] دی [معتبر نه دی] وَهٰذَا عِنْدَ أَبِيْ حَنِيفَةَ❁ او دا [حکم] د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دی وَقَالَا: جِنَايَتُهُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ مُعْتَبَرَةٌ او صاحبين رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چې د مرهون جنايت پر [نفس د] مرتهن معتبر دی وَالْمُرَادُ بِالْجِنَايَةِ عَلَى النَّفْسِ مَا يُوْجِبُ الْمَالَ او پر نفس له جنايت څخه مراد هغه جنايت دی کوم چې مال واجبوي أَمَّا الْوِفَاقِيَّةُ کوم چې اتفاقي مسئله ده [چې د مرهون غلام جنايت پر راهن هدر او نا معتبره دی] فَلِأَنَّهَا جِنَايَةُ الْمَمْلُوْكِ عَلَى الْمَالِكِ نو ځکه چې هغه پر مالک د مملوک جنايت دی أَلَا تَرٰى أَنَّهُ لَوْ مَاتَ آيا ته نه گورې! چې که چيرې مرهون غلام مړ سي كَانَ الْكَفَنُ عَلَيْهِ نو [د هغه] کفن پر راهن دی بِخِلَافِ جِنَايَةِ الْمَغْصُوْبِ عَلَى الْمَغْصُوْبِ مِنْهُ په خلاف پر مغصوب منهٔ [يعني د مغصوب پر مالک] د مغصوب د جنايت لِأَنَّ الْمِلْكَ عِنْدَ أَدَاءِ الضَّمَانِ يَثْبُتُ لِلْغَاصِبِ مُسْتَنِدًا ځکه چې د ضمان اداء کولو په وخت کې غاصب لره ملکيت [د غصب وخت ته] په منسوب کېدلو سره ثابتيږي [يعني چې کله غاصب ضمان (تاوان) اداء کړي، نو بيا هغه د غصب له وخته وخت څخه د مغصوب مالک شمېرل کيږي] حَتّٰى يَكُوْنَ الْكَفَنُ عَلَيْهِ همدا وجه ده چې [د مغصوب] کفن پر غاصب دی فَكَانَتْ جِنَايَةً عَلَى غَيْرِ الْمَالِكِ نو دا [پر مغصوب منهٔ د مغصوب جنايت] پر غير مالک جنايت دی فَاعْتُبِرَتْ نو ځکه معتبر به وي.

**اللغات:** ﴿هدر﴾ د نصر او ضرب له باب څخه اسمِ مصدر دی، هَدَر هم راځي: ضايع، بې ځايه او فضول، باطل. ﴿وفاقية﴾ اتفاقي مسئله (متفقه مسئله).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که يو مرهون غلام خطاءً راهن يا مرتهن قتل کړي، يا خطاءً د دوی يو اندام پرېکړي، يا د دوی مال ضايع کړي، نو د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نيز دا جنايت نامعتبره

❁ القول الراجح: قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله، كما قال العلامة قاضيخان رَحِمَهُ الله: وجناية الرهن على المرتهن في ما دون النفس أو في ماله هدرٌ في قول أبي حنيفة رَحِمَهُ الله (ملتقى ج:۴، ص:۳۰۰)، وكذا في كشف الأستار (ج:۲، ص:۲۷۶). [القول الراجح ج:۲، ص:۳۳۱]

او معاف دی او په دې سره پر هغه (مرهون غلام) هیڅ ضمان نه واجبیږي، د دې په خلاف د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله مسلک دا دی چې که مرهون پر راهن جنایت وکړي، نو هغه خو معاف دی، لېکن که هغه پر مرتهن جنایت وکړي (یعني د مرتهن پر نفس یا مال) او د نفس جنایت داسې وي چې مال واجبوي، نه قصاص (لکه پورتني جنایتونه، او که قصاص واجبوي نو بیا د مرتهن لپاره قصاص واجبیږي، لېکن که مال واجبوي) نو پر مرهون غلام د مرتهن لپاره د هغه ضمان واجبیږي، لېکن که پر راهن جنایت وکړي، نو د ټولو په اتفاق سره هغه نا معتبره او معاف دی؛ او د دې اتفاقي مسئلې دلیل دا دی چې دغه جنایت د مملوک جنایت دی یعني د داسې چا جنایت دی کوم چې د مالک تر ملکیت لاندې دی او پر مالک د مملوک جنایت معتبر نه دی. او پاته سو د دې خبرې دلیل چې مرهون غلام د راهن تر ملکیت لاندې دی او هغه یې مالک دی (دلیل یې) دا دی چې که هغه مرهون غلام مړ سي نو د هغه کفن دفن پر راهن واجبیږي، نو دا د دې خبرې دلیل دی چې هغه غلام اوس هم د راهن په ملکیت کې دی او همدا راهن یې مالک دی.

بخلاف جناية المغصوب إلخ: که چیرې سوال وسي چې که مغصوب پر خپل مالک یعني پر مغصوب منهٔ باندې جنایت وکړي، نو پر مغصوب ضمان واجبیږي، حال دا چې هغه د مغصوب منهٔ مملوک دی او مغصوب منهٔ یې مالک دی؟، نو جواب دا دی چې کله غاصب ضمان اداء کړي، نو بیا غاصب د غصب له وخت څخه د مغصوب مالک شمېرل کیږي (او د مغصوب منهٔ ملکیت ختمیږي) لهذا کله چې غاصب مالک سو، نو مغصوب منهٔ د اجنبي په څېر سو یعني د مغصوب مالک پاته نه سو بلکې د هغه په حق کې اجنبي سو، او کوم جنایت چې پر اجنبي کس واقع سي هغه معتبر وي او د هغه ضمان واجبیږي، نو ځکه پر مغصوب منهٔ د جنایت کولو په صورت کې پر مغصوب ضمان واجبیږي.

## په مذکوره مسئله کې د صاحبینو او د امام صاحب دلیل

وَلَهُمَا فِي الْخِلَافِيَّةِ: أَنَّ الْجِنَايَةَ حَصَلَتْ عَلَى غَيْرِ مَالِكِهِ او په اختلافي مسئله کې د صاحبینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی: چې دا جنایت له خپل مالک څخه بغیر پر بل چا واقع سوی دی وَفِي الِاعْتِبَارِ فَائِدَةٌ او د جنایت په اعتبار کولو کې فایده ده وَهُوَ دَفْعُ الْعَبْدِ إِلَيْهِ بِالْجِنَايَةِ او هغه [فایده] د جنایت په وجه غلام مرتهن ته ورکول دي فَتُعْتَبَرُ نو ځکه دا جنایت به معتبر وي ثُمَّ إِنْ شَاءَ الرَّاهِنُ وَالْمُرْتَهِنُ بیا که راهن او مرتهن وغواړي أَبْطَلَا الرَّهْنَ وَدَفَعَاهُ بِالْجِنَايَةِ إِلَى الْمُرْتَهِنِ نو رهن دې باطل کړي او د جنایت په وجه دې غلام مرتهن ته ورکړي وَإِنْ قَالَ الْمُرْتَهِنُ: لَا أَطْلُبُ الْجِنَايَةَ او که مرتهن ووایي:

چي زه د جنايت [عوض] طلب نه کوم فَهُوَ رَهْنٌ عَلٰى حَالِهٖ نو هغه [مرهون غلام] پر خپل حال رهن پاتيږي وَلَهُ: أَنَّ هٰذِهِ الْجِنَايَةَ لَوِ اعْتَبَرْنَا لِلْمُرْتَهِنِ او د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دى: چي که موږ د مرتهن لپاره د دغه جنايت اعتبار وکړو كَانَ عَلَيْهِ التَّطْهِيْرُ مِنَ الْجِنَايَةِ نو له جنايت څخه [د مرهون غلام] پاکول [او خلاصول] به د همدې مرتهن پر ذمه [واجب] وي لِأَنَّهَا حَصَلَتْ فِيْ ضَمَانِهٖ ځکه چي جنايت د مرتهن په ضمان کي واقع سوى دى فَلَا يُفِيْدُ وُجُوْبُ الضَّمَانِ لَهُ مَعَ وُجُوْبِ التَّخْلِيْصِ عَلَيْهِ نو د مرتهن لپاره د ضمان وجوب به پر هغه د خلاصولو د وجوب سره مفيد نه وي وَجِنَايَتُهُ عَلٰى مَالِ الْمُرْتَهِنِ لَا تُعْتَبَرُ بِالْاِتِّفَاقِ او د مرهون جنايت د مرتهن پر مال بالاتفاق معتبر نه دى إِذَا كَانَتْ قِيْمَتُهُ وَالدَّيْنُ سَوَاءً کله چي د مرهون قيمت او قرض سره برابر وي لِأَنَّهُ لَا فَائِدَةَ فِيْ اعْتِبَارِهَا ځکه چي د دې جنايت په اعتبار کولو کي هيڅ فايده نسته لِأَنَّهُ لَا يَتَمَلَّكُ الْعَبْدَ ځکه چي مرتهن خو د غلام نه سي مالک کېدلای وَهُوَ الْفَائِدَةُ او همدا فايده ده [يعني فايده په همدې کي ده چي د غلام مالک سي].

**اللغات:** ﴿خلافية﴾ اختلافي مسئله، ﴿حصلت﴾ د نصر له بابه د واحد مؤنث غائب ماضي صيغه ده، د دې باب څو معناوي دي: حاصلېدل (ترلاسه کېدل)، ثابتېدل، واقع کېدل، واجبېدل، ﴿تخليص﴾ د تفعيل د باب مصدر دى: خلاصول، نجات ورکول.

**تشريح:** د صاحبينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دى چي پر مرتهن د مرهون جنايت ځکه معتبر دى چي دا پر خپل مالک د مرهون جنايت نه دى، ځکه چي مرهون د راهن په ملکيت کي دى، نه د مرتهن، او بل دا چي د دغه جنايت په معتبر کولو کي د مرتهن فايده هم ده؛ ځکه چي د دې جنايت په وجه به مرهون غلام مرتهن ته حاصل سي (ځکه چي د جنايت د معتبر کېدلو په صورت کي غلام مجني عليه [مرتهن] ته ورکول کېږي)، که څه هم د دې جنايت په وجه د مرتهن قرض خو ساقطيږي، لېکن مقصود حاصليږي، او که چيري مرتهن په دې کي نفع نهويني نو غلام دي نه اخلي، د همدې اختيار ورکولو په هکله مصنف رَحِمَهُ الله فرمايلي دي "وإن شاء...إلخ". يعني که چيري د راهن سره مرتهن هم د عقد رهن په باطلولو او ماتولو راضي سي او مرتهن د دې مرهون غلام اخيستل قبول کړي نو بيا خو همدا پورتني

خبره ده چي قرض هم ساقط سو او د جنايت تاوان هم اداء سو. کنې که مرتهن ووايي چي زه د جنايت تاوان نه غوارم، نو بيا غلام د مخکي په څېر پز خپل حال مرهون پاتيږي.

وله إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله په نېز پر مرتهن د مرهون جنايت معتبر نه دی. د هغه د دليل حاصل دا دی چي مرهون غلام د مرتهن په ضمان او امان کي جنايت کړی دی او د هغه تر سايه لاندي د دغه جرم مرتکب سوی دی، نو له دغه جنايت او جرم څخه خلاصول که د مرتهن پر ذمه سي، نو له يوه طرفه به د مرتهن لپاره ضمان وي او بل طرف ته به پر مرتهن ضمان وي (يعني تاوان به هم ورکوي او تاوان به هم څني اخلي) او په دې کي هيڅ فايده نسته، نو ځکه د دې جنايت اعتبار نه دی سوی.

وجنايته على مال إلخ: مخکيني تفصيل د جنايت فی نفس المرتهن سره متعلق وو. خو که چيري مرهون غلام د مرتهن پر مال جنايت وکړي، نو بيا که قرض او د مرهون غلام قيمت سره برابر وي، نو په دې صورت کي د امام صاحب او صاحبينو ټولو په نېز دا جنايت معتبر نه دی؛ ځکه چي د دغه جنايت په معتبر کولو کي هم هيڅ فايده نسته؛ ځکه د مرتهن حق صرف د غلام په ماليت کي دی. نه د هغه په ذات کي او د مرتهن دا حق هر وخت پاتيږي، برابره ده مونږ دا جنايت معتبر ومنو، که نه، او داسي نه سي کېدلای چي د جنايت په معتبر منلو سره د غلام په ذات کي د مرتهن حق ثابت سي، نو ځکه بلا وجه به هغه ولي معتبر منل کيږي!؟. (احسن الهدايه)

**که مرهون په راهن باندي جنايت وکړي او د مرهون قيمت له قرض څخه زيات وي: (حکم او تفصيل)**

وَإِن كَانَتِ الْقِيمَةُ أَكْثَرَ مِنَ الدَّيْنِ او که [د مرهون] قيمت له قرض څخه زيات وي فَعَنْ أَبِي حَنِيفَةَ أَنَّهُ يُعْتَبَرُ بِقَدْرِ الْأَمَانَةِ نو له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه روايت دی چي هغه د امانت په اندازه د جنايت اعتبار کوي لِأَنَّ الْفَضْلَ لَيْسَ فِي ضَمَانِهِ ځکه چي زياتوب [زائد مقدار] د مرتهن په ضمان کي نه دی فَأَشْبَهَ جِنَايَةَ الْعَبْدِ الْوَدِيعَةِ عَلَى الْمُسْتَوْدَعِ نو دا پر مستودع د وديعت والا غلام د جنايت کولو په څېر سوه [يعني دا داسي سوه لکه د وديعت غلام چي پر مستودع جنايت وکړي] وَعَنْهُ أَنَّهَا لَا تُعْتَبَرُ او له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه بل روايت دا دی چي دا جنايت معتبر نه دی لِأَنَّ حُكْمَ الرَّهْنِ وَهُوَ الْحَبْسُ فِيهِ ثَابِتٌ ځکه چي د رهن حکم يعني حبس [محبوس کېدل] په دې زياتوب کي [هم] ثابت دی [يعني زائد مقدار هم د مرتهن سره محبوس دی] فَصَارَ كَالْمَضْمُونِ نو هغه [زائد مقدار] د مضمون مقدار په څېر سو وَهٰذَا بِخِلَافِ جِنَايَةِ الرَّهْنِ عَلَى ابْنِ الرَّاهِنِ أَوِ ابْنِ الْمُرْتَهِنِ او دا د راهن يا مرتهن پر ځوی د

مرهون د جنايت کولو په خلاف دي لِأَنَّ الْأَمْلَاكَ حَقِيْقَةً مُتَبَايِنَةٌ ځکه چي په حقيقت کي [د څوی او پلار] ملکيتونه سره جلا دي فَصَارَ كَالْجِنَايَةِ عَلَى الْأَجْنَبِيِّ نو دا پر اجنبي کس د جنايت کولو په څېر سوه.

**اللغات:** ﴿الفضل﴾ اضافه او زياتوب (اضافي او زائد مقدار)، ﴿الوديعة﴾ امانت، په امانت ايښوول سوی شی، ﴿مستودَع﴾ د استفعال د باب مفعول دی: چا ته چي امانت ايښوول سوی وي، کوم چا ته چي امانتاً (په امانت) يو څه ورکول سوي وي (امانت ساتونکی)، چي هغه ته مُودَع (بفتح الدال) هم وايي، ﴿متباينة﴾ د تفاعل له بابه د مؤنث فاعل صيغه ده: يو له بل څخه جلا، سره جلا.

**تشريح: صورت د مسئلي:** دا دی چي زيد مثلاً له خالد څخه زر (۱۰۰۰) درهمه په قرض واخيستل او خالد ته يې خپل يو غلام په رهن ورکړی چي د هغه قيمت دوه زره (۲۰۰۰) درهمه دی يعني د مرهون (غلام) قيمت له قرض څخه (نيم) زيات دی يا په بله وينا دا چي قرض له مرهون څخه نصف کم دی، نو په دې صورت کي دا مرهون غلام چي د هغه قيمت له قرض څخه زيات دی د مرتهن (خالد) يو مال ضايع کړي مثلاً د مرتهن پُسه يا غلام هلاک کړي، نو د دې جنايت څه حکم دی؟. په دې باره کي له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه دوه قوله نقل سوي دي: (له هغه څخه مخکي تاسي په دې قاعده ځان پوه کړئ! کوم چي مخکي هم څو ځله ضمناً ذکر سوې ده چي د مرهون څومره مقدار چي له قرض څخه زيات [زائد] وي، هغه د مرتهن سره امانت دی [يعني که هغه د مرتهن سره هلاک سي نو پر مرتهن د هغه ضمان نه واجبيږي]، او نور مقدار يعني د قرض په اندازه مقدار مضمون دی [يعني که هغه هلاک سي نو پر مرتهن د هغه ضمان واجبيږي]، اوس د امام صاحب رَحِمَهُ الله دوو قولونو ته ګورئ!).

①... يو قول دا دی چي د مرهون غلام څومره مقدار چي له قرض څخه زيات وي کوم چي امانت دی، په هغه مقدار کي به د دې جنايت اعتبار کيږي، او دلته د دې غلام نصف امانت دی يا په بله وينا دا چي د مرتهن (خالد) سره د غلام نيمه حصه مضمونه ده او پاته زائده نيمه حصه امانت ده (ځکه چي د مرتهن قرض زر درهمه دی او د غلام قيمت دوه زره درهمه دی او مضمون صرف د قرض مقدار وي او زائد مقدار امانت وي).

لهذا دلته به د غلام په زائد نصف کي (کوم چي امانت دی) د دې جنايت اعتبار کيږي يعني دا نصف به د جنايت په عوض کي مرتهن (مجنی عليه) ته ورکول کيږي او کوم نصف چي مضمون دی په هغه سره د مرتهن قرض اداء کيږي، په بله وينا دا چي د جنايت په وجه به دغه جنايتکاره غلام مرتهن ته ورکول کيږي چي د هغه قيمت دوه زره درهمه دی نو د هغه نصف کوم چي زر درهمه قيمت لري هغه د مرتهن د قرض (زر درهمه) په عوض کي راځي نو په هغه سره يې قرض اداء سو او پاته نصف (کوم چي امانت دی) مرتهن ته د جنايت په عوض کي حاصل سو.

او دلته د امانت په مقدار کي ضمان ځکه واجبیږي چي په دې مقدار کي مرتهن د مستودَع په څېر دی (یعني ګواکي راهن هغه ته نصف غلام په ودیعت ورکړی دی). او که د ودیعت غلام د مستودَع په مال کي جنایت وکړي، نو ضمان واجبیږي.

②... د امام صاحب رَحِمَهُ الله دویم قول دا دی چي د امانت په مقدار کي هم جنایت معتبر نه دی: ځکه د امانت مقدار (یا په بله وینا له قرض څخه زائد مقدار) هم د مرتهن سره محبوس دی. نو هغه ته به هم د مضمون درجه ورکول کیږي، او د مضمون مقدار جنایت معتبر نه دی. نو ځکه د امانت د مقدار جنایت به هم معتبر نه وي او ضمان به یې نه واجبیږي.

د دې په خلاف که چیري مرهون د راهن یا د مرتهن پر ځوی جنایت وکړي، نو دا جنایت معتبر او مضمون دی چي ضمان یې واجبیږي؛ ځکه چي د ځوی او پلار ملکیتونه په حقیقیت کي یو له بل څخه جلا دي که څه هم دوی یو ځای سره اوسیږي، لهذا دا پر اجنبي کس د جنایت کولو په څېر سوه او جنایت علی الاجنبي معتبر دی، نو ځکه دا جنایت به هم معتبر وي چي ضمان (تاوان) به یې واجبیږي.

## په رهن د ورکول سوي غلام د قیمت ټیټېدلو حکم

قَالَ: وَمَنْ رَهَنَ عَبْدًا يُسَاوِيْ أَلْفًا بِأَلْفٍ إِلَى أَجَلٍ فرمايي: او چا چي د زرو درهمو مساوي غلام د زرو درهمو په عوض کي تر یو مودې پوري په رهن ورکړی فَنَقَصَ فِي السِّعْرِ بیا په نرخ کي کمي راغله فَرَجَعَتْ قِيْمَتُهُ إِلَى مِائَةٍ او د غلام قیمت سلو درهمو ته را کښته سو ثُمَّ قَتَلَهُ رَجُلٌ بیا یو سړي دا غلام قتل کړی وَغَرِمَ قِيْمَتَهُ مِائَةً او هغه سړی د دې غلام د قیمت یعني د سلو درهمو تاوان [ضمان] ورکړی ثُمَّ حَلَّ الْأَجَلُ بیا موده راغلې فَإِنَّ الْمُرْتَهِنَ يَقْبِضُ الْمِائَةَ قَضَاءً عَنْ حَقِّهِ نو مرتهن به د خپل حق [قرض] ترلاسه کولو په توګه پر دې سلو درهمو قبضه کوي وَلَا يَرْجِعُ عَلَى الرَّاهِنِ بِشَيْءٍ او پر راهن به په هیڅ شي سره رجوع نه کوي [یعني له راهن څخه به د خپل قرض هیڅ حصه هم نه اخلي] وَأَصْلُهُ أَنَّ النُّقْصَانَ مِنْ حَيْثُ السِّعْرُ لَا يُوْجِبُ سُقُوْطَ الدَّيْنِ عِنْدَنَا او د دې اصل دا دی چي نقصان [کمېدل] د نرخ په اعتبار سره [یعني د نرخ کمېدل] د قرض ساقطېدل نه واجبوي خِلَافًا لِزُفَرَ ❁ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله هُوَ يَقُوْلُ: إِنَّ الْمَالِيَّةَ قَدِ انْتَقَصَتْ هغه فرمايي: چي [د مرهون] مالیت کم

❁ القول الراجح: قولنا (قول الجمهور)، کما ظهر من داب المصنف رَحِمَهُ الله، انظر للتفصیل [القول الراجح ج:۲، ص:۳۳۳]

سوی دی فَأَشْبَهَ اِنْتِقَاصَ الْعَيْنِ نو دا د عَين مرهون د کمېدلو په شان سوه وَلَنَا: أَنَّ نُقْصَانَ السِّعْرِ عِبَارَةٌ عَنْ فُتُوْرِ رَغَبَاتِ النَّاسِ او زمونږ دليل دا دی: چي د نرخ کمېدل عبارت دي د خلکو د رغباتو له سړېدلو [کمېدلو] څخه [يعني د نرخونو ټيټوالی او زياتوالی د خلکو پر رغبت منحصر دي] وَذٰلِكَ لَا يُعْتَبَرُ فِي الْبَيْعِ او په بيع کي دا معتبر نه دي حَتّٰى لَا يَثْبُتَ بِهِ الْخِيَارُ همدا وجه ده چي د هغه [نرخ کمېدلو] په وجه خيار نه ثابتيږي وَلَا فِي الْغَصْبِ او نه په غصب کي هغه [د نرخ کمېدل] معتبر دی حَتّٰى لَا يَجِبَ الضَّمَانُ همدا وجه ده چي ضمان نه واجبيږي بِخِلَافِ نُقْصَانِ الْعَيْنِ په خلاف د عَين د کمېدلو لِأَنَّ بِفَوَاتِ جُزْءٍ مِنْهُ يَتَقَرَّرُ الِاسْتِيْفَاءُ فِيْهِ ځکه چي د عَين د يو جزء په فوتېدلو سره په هغه جزء کي [د مرتهن لپاره] استيفاء ثابتيږي [يعني ګواکي په فوت سوي جزء سره مرتهن خپل څه قرض ترلاسه کړی نو د هغه فوت سوي جزء په اندازه د ده قرض ساقط سو] إِذِ الْيَدُ يَدُ الِاسْتِيْفَاءِ ځکه چي [د مرتهن] قبضه د استيفاء قبضه ده.

**اللغات:** ﴿غرم﴾ د سمع د باب ماضي ده: تاوان ورکول، تاوان (ضمان) پر لازمېدل، ضامن کېدل. ﴿السعر﴾ نرخ، ريټ، ﴿فتور﴾ د نصر او ضرب مصدر دی: له تېزي څخه وروسته کرارېدل، سستېدل، کمېدل، ﴿الرغبات﴾ جمع د رغبة ده: خواهش او لېوالتيا، طلب او غوښتنه، مېل. ﴿يتقرر﴾ د تفعل د باب مضارع ده: ثابتېدل، مضبوطېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که يو سړی د زرو (۱۰۰۰) درهمو په عوض کي خپل غلام په رهن ورکړي او د رهن په ورځ د دې غلام قيمت هم د زرو (۱۰۰۰) درهمو سره مساوي وي (يعني زردرهمه وي)، تر دې وروسته په بازاري نرخونو او قيمتونو کي سخت بدلون راسي او د دې غلام قيمت راکښته سي فقط سل (۱۰۰) درهمه پاته سي، بيا يو څوک دا غلام د مرتهن سره قتل کړي، او د قتل کولو په وجه پر قاتل د قتل د ورځي قيمت يعني سل (۱۰۰) درهمه ضمان (تاوان) واجب سي، نو دا ضمان (۱۰۰ درهمه) د مرتهن سره رهن پاتيږي (يعني د مقتول غلام پر ځای اوس دا سل درهمه ضمان مرهون ګرځي) او کله چي د قرض اداء کولو وخت راسي، نو مرتهن به دا سل (۱۰۰) درهمه اخلي او په همدې به اکتفا کوي او هغه ته له راهن څخه د پاته نهو سوو (۹۰۰) درهمو د مطالبې حق نسته؛ ځکه کله چي غلام د مرتهن په قبضه کي هلاک سو، نو د هغه قرض ساقط سو، برابره ده مرتهن هغه

هلاک کړی وي یا بل چا هلاک کړی وي، نو ځکه اوس مرتهن ته له راهن څخه د قرض په نامه دیوې اتانې هم داخیستلو حق نسته..

دا تفصیل زموږ په نېز دی، د نرخ کمېدلو او زیاتېدلو په هکله اصل دا دی چې که محض د مرهون نرخ ټیټ او کم سي او هغه هلاک نه سي.نو په دې سره زموږ په نېز قرض نه ساقطیږي، بلکې که مرهون (غلام) موجود وي.نو کله چې د قرض اداء کولو وخت راسي.نو مرتهن به له راهن څخه خپل پوره قرض اخلي او مرهون (غلام) به راهن ته واپس کوي.برابره ده د هغه قیمت کم سوي وي او که زیات سوی وي. لېکن که مرهون هلاک سي او له منځه ولاړ سي، نو ښکاره خبره ده چې د مرتهن قرض ساقطیږي، لکه څرنګه چې په دې پورتنۍ مسئله کي همدا حکم دی.

د دې په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله په نېز اصل دا دی چې د نرخ په کمېدلو سره قرض هم کمېږي اوساقطیږي، یا په بله وینا دا چې د نرخ ټیټېدلو اثر پر قرض پرېوځي او د هغه په وجه پر مرتهن ضمان واجبیږي؛ ځکه چې د شي مالیت کمېدل د شي د عین (ذات) د کمېدلو په څېر دي نو ګواکي عینِ مرهون کم سوی دی، او که چیرې د عینِ مرهون یو جزء هلاک او کم سي یعني د هغه یو جزء ضایع سي،نو د هغه په اندازه د مرتهن قرض ساقطیږي، لهذا کله چې په قیمت او مالیت کي څه کمي راسي، نو د هغه په اندازه به هم د مرتهن قرض ساقطیږي.

ولنا إلخ: په دې سلسله کي زموږ دلیل دا دی چې نرخ خو د مرتهن په وجه نه دی کم سوی، بلکې دا خبره خو د خلګو په رغبت او لېوالتیا پاندې منحصره ده چې په کوم شي کي د خلکو رغبت زیات سي نو خود بخود د هغه شي نرخ زیاتیږي او له کوم شي څخه چې د خلکو نظر واوړي او هغه نه رانیسي، نو خپله د هغه نرخ کښته کیږي، همدا وجه ده چې فقهاؤ په بیع او غصب کي د دې اعتبار نه دی کړی، مثلاً که څوک په سل (۱۰۰) درهمه یو شی رانیسي او سبا ورځ د هغه نرخ را کم سي او پنځوس (۵۰) درهمه سي، نو مشتري ته دا خیار [اختیار] نه حاصلیږي چې هغه شی بائع ته واپس کړي. همدارنګه که یو سړی دیو چا شی غصب کړي چې د غصب په ورځ د هغه قیمت څلوېښت (۴۰) درهمه وي او په بله ورځ چې غاصب هغه شی ومغصوب منهٔ (د شي مالک ته) واپس کوي نو د هغه قیمت کم سوی وي او شل (۲۰) درهمه وي، نو په دې صورت کي مغصوب منهٔ ته دا حق نسته چې له غاصب څخه نور شل (۲۰) درهمه واخلي، نو همداسې په پورتنۍ مسئله کي هم د مرهون (غلام) د قیمت کمېدلو او ټیټېدلو لره هیڅ اعتبار نسته او د هغه په وجه به د مرتهن له قرض څخه هیڅ حصه نه ساقطیږي.

بخلاف نقصان إلخ: په دې سره د امام زفر رَحِمَهُ الله د قیاس تردید کوي چې هغه د قیمت نقصان (کمېدل) د عین پر نقصان قیاس کړي دي، حاصل د عبارت دا دی چې د عین او قیمت په نقصان کې فرق دی او یو پر بل قیاسول صحیح نه دي؛ ځکه چې پر مرهون د مرتهن قبضه د استیفاء قبضه وي (لکه مخکې چې څو ځله دا خبره سوې ده) او که ټوله مرهون د مرتهن سره هلاک سي نو د هغه ټوله قرض ساقطیږي، همداسې که د مرهون یو جزء د مرتهن سره هلاک سي، نو د هغه هلاک سوي جزء په اندازه قرض ساقطیږي، لېکن د قیمت په کمېدلو یا ختمېدلو سره خو د هغه د قرض یوه اټانې هم نه ساقطیږي. (احسن الهدایه)

## د پورتني مسئلې نور وضاحت او د هغه مرهون غلام د قتل کېدلو حکم

وَإِذَا لَمْ يَسْقُطْ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ بِنُقْصَانِ السِّعْرِ او کله چې د نرخ کمېدلو په وجه څه قرض ساقط نه سو بَقِيَ مَرْهُونًا بِكُلِّ الدَّيْنِ نو مرهون [غلام] د ټوله قرض په عوض کې مرهون پاتېږي فَإِذَا قَتَلَهُ حُرٌّ بیا کله چې یو آزاد کس هغه قتل کړي غَرِمَ قِيمَتَهُ مِائَةً نو هغه د غلام د سلو درهمو د قیمت ضامن کېږي لِأَنَّهُ تُعْتَبَرُ قِيمَتُهُ يَوْمَ الْإِتْلَافِ فِي ضَمَانِ الْإِتْلَافِ ځکه چې د اتلاف [هلاکولو] په ضمان کې د هغه د اتلاف د ورځې قیمت معتبر کېږي لِأَنَّ الْجَابِرَ بِقَدْرِ الْفَائِتِ ځکه چې د نقصان پوره کونکی شی د فوت سوي [هلاک سوي] په مقدار سره وي [یعني د هلاک سوي جزء په مقدار سره واجبیږي] وَأَخَذَهُ الْمُرْتَهِنُ او دا قیمت به مرتهن اخلي لِأَنَّهُ بَدَلُ الْمَالِيَّةِ فِي حَقِّ الْمُسْتَحِقِّ ځکه چې هغه د مرتهن په حق کې د مالیت بدل دی وَإِنْ كَانَ مُقَابَلًا بِالدَّمِ عَلَى أَصْلِنَا که څه هم زموږ د اصل مطابق هغه [قیمت] د وینې بدل دی حَتَّى لَا يَزْدَادُ عَلَى دِيَةِ الْحُرِّ همدا وجه ده چې هغه [قیمت] د آزاد کس پر دیت نه زیاتیږي لِأَنَّ الْمَوْلَى اسْتَحَقَّهُ بِسَبَبِ الْمَالِيَّةِ ځکه چې مالک د مالیت په وجه د هغه مستحق سوی دی وَحَقُّ الْمُرْتَهِنِ مُتَعَلِّقٌ بِالْمَالِيَّةِ او د مرتهن حق د مالیت سره متعلق دی فَكَذَا فِيمَا قَامَ مَقَامَهُ نو همداسې په هغه څه کې کوم چې د عین قائم مقام دی ثُمَّ لَا يَرْجِعُ عَلَى الرَّاهِنِ بِشَيْءٍ بیا مرتهن به په هیڅ شي سره پر راهن رجوع نه کوي لِأَنَّ يَدَ الرَّهْنِ يَدُ الِاسْتِيفَاءِ مِنَ الِابْتِدَاءِ ځکه چې له شروع څخه د رهن قبضه د استیفاء [حق ترلاسه کولو] قبضه ده وَبِالْهَلَاكِ يَتَقَرَّرُ او [د مرهون] په هلاکېدلو سره استیفاء نوره ثابتیږي وَقِيمَتُهُ كَانَتْ فِي الِابْتِدَاءِ أَلْفًا او د هغه قیمت په شروع کې

زر درهمه وو فَيَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا لِلْكُلِّ مِنَ الِابْتِدَاءِ نو مرتهن به له شروع څخه د ټوله [زر درهمو] ترلاسه کونکی وي أَوْ نَقُولُ: لَا يُمْكِنُ أَنْ يُجْعَلَ مُسْتَوْفِيًا الْأَلْفَ بِمِائَةٍ يا مونږ به [په جواب کي] وايو: چي دا خو ممکنه نه ده چي هغه د سلو درهمو په بدله کي د زرو درهمو ترلاسه کونکی وګرځول سي لِأَنَّهُ يُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا ځکه چي دا د سُود طرف ته رسول کوي [د سُود سبب ګرځي] فَيَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا الْمِائَةَ نو مرتهن به د سلو درهمو ترلاسه کونکی وګرځي وَبَقِيَ تِسْعُ مِائَةٍ فِي الْعَيْنِ او نهه سوه درهمه په عين مرهون کي پاته سوه فَإِذَا هَلَكَ نو کله چي عين مرهون هلاک سو يَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا تِسْعَ مِائَةٍ بِالْهَلَاكِ نو د هلاکېدلو په وجه به مرتهن د نهو سوو ترلاسه کونکی وګرځي بِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتَ مِنْ غَيْرِ قَتْلِ أَحَدٍ په خلاف د هغه صورت کله چي هغه د يو چا له قتل څخه بغير [خپله] مړ سي لِأَنَّهُ يَصِيرُ مُسْتَوْفِيًا الْكُلَّ بِالْعَبْدِ ځکه چي [په دې صورت کي] مرتهن د غلام په وجه د ټوله قرض [زرو درهمو] ترلاسه کونکی ګرځي لِأَنَّهُ لَا يُؤَدِّي إِلَى الرِّبَا ځکه چي دا د سُود طرف ته رسول نه کوي.

**اللغات:** ﴿إتلاف﴾ د افعال د باب مصدر دی: ضايع کول، بربادول، هلاکول. ﴿جابر﴾ تلافي کونکی (هغه شی چي د تاوان پر ځای ودرېږي)، د تاوان او نقصان خليفه (د تاوان په عوض کي درېدونکی شی). ﴿يؤدي﴾ د تفعيل مضارع ده، د دې باب په صله کي چي "إلى" ذکر سي، نو معنیٰ يې ده: رسول، سبب جوړېدل (سبب ګرځېدل).

**تشريح:** د عبارت حاصل دا دی چي له مخکيني بحث او بيان څخه دا خبره څرګنده سوه چي د مرهون په نرخ کمېدلو سره هيڅ قرض نه ساقطيږي، نو ښکاره ده چي مرهون (غلام) د مخکي په څېر مرهون پاتېږي، او که په همدې حالت کي راهن د مرتهن قرض اداء کړي، نو راهن به خپل مرهون واپس ځني اخلي.

لېکن که يو څوک هغه مرهون (غلام) د مرتهن په قبضه کي قتل کړي، نو د قتل په ورځ چي د هغه څومره قيمت وي کوم چي مونږ سل (۱۰۰) درهمه فرض کړی دی، نو پر قاتل د هغه سلو (۱۰۰) درهمو ضمان واجبيږي؛ ځکه چي قاتل د همدومره مقدار ماليت هلاک کړی دی، نو د "الجابر بقدر الفائت" پر بناء به د همدومره مقدار ضمان واجبيږي، او دا سل (۱۰۰) درهمه د مرتهن سره مرهون پاتيږي (لکه مخکي چي ذکر سول) او داغه د ټوله قرض عوض دی؛ ځکه سل درهمه د اصل بدل او نائب

دی، نو څرنګه چې اصل یعني مرهون د ټوله قرض په عوض کي وو، نو همداسي د مرهون نائب یعني سل (۱۰۰) درهمه به هم د ټوله قرض عوض وي او هغه به د مرتهن سره رهن پاتیږي؛ ځکه چي دا د هغه په حق کي د ماليت بدل دي، او که څه هم دا سل (۱۰۰) درهمه د مقتول غلام د ويني (خون) بدل دي، لېکن د مرتهن په حق کي د غلام د ماليت بدل دي.

لکه که چيري يو څوک د يو سړي غلام قتل کړي، نو پر قاتل د غلام قيمت واجبيږي چي هغه به د غلام مالک ته د غلام قيمت ورکوي، حالانکي دا قيمت د غلام د ويني (خون) بدل دی، خو څرنګه چي د مالک حق د غلام د ماليت سره متعلق دی، نو ځکه دا قيمت د غلام د ماليت بدل ګرځول سو دی، په همدې وجه دا قيمت د آزاد کس له ديت څخه نه زياتول کيږي، لهذا څرنګه چي دغه د خالص غلام په مسئله کي ديت د ماليت بدل شمېرل سوې دي، نو همداسي په پورتني مسئله کي به هم د مرهون مقتول غلام ديت د مرهون د ماليت بدل شمېرل کيږي او بيا به مرتهن ته له راهن څخه د هيڅ شي داخيستلو حق نه وي؛ ځکه پر مرهون (غلام) له شروع څخه د مرتهن قبضه د استيفاء قبضه وه او د مرهون د هلاکېدلو په وجه استيفاء (د قرض ترلاسه کول) نور هم ثابت او مضبوط سوه.

او څرنګه چي مرتهن په شروع کي د مرهون د قيمت او ماليت (زرو درهمو) حاصلونکی ګرځېدلی دی لېکن د زرو درهمو سره هغه ته نور سل درهمه هم حاصل سوي دي او دا خو په ظاهره ربوا (سُود) معلوميږي، نو آخر د دې څه حل دی؛ ځکه په دې کي خو د ربوا خبره راغله.

د همدې په جواب کي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي دا توجيه زياته غوره ده چي د ديت په توګه چي مرتهن ته کوم سل درهمه حاصل سوي دي، هغه دي د يد استيفاء (قرض ترلاسه کولو د قبضې) بدل وشمېرل سي او د مرهون غلام په هلاکېدلو سره چي د قرض ساقطېدلو په شکل مرتهن ته کوم مقدار حاصل سوی دی (يا په بله وينا دا چي د مرهون غلام په هلاکېدلو سره چي د مرتهن کوم قرض ساقط سوی دی) هغه دي نهه سوه (۹۰۰) وګڼل سي، او سل (۱۰۰) او نهه سوه (۹۰۰) ټوله زر درهمه کيږي، او څرنګه چي همدا زر درهمه د هغه قرض وو، او هغه مرتهن ته حاصل سو نو د ربوا شبهه ختمه سوه.

د دې په خلاف که مرهون غلام خپله مړ سي او بل څوک يې قتل نه کړي، نو په دې صورت کي هيڅ نزاع او اختلاف نسته؛ ځکه چي قرض هم زر درهمه دی او د غلام ماليت هم زر درهمه دی، لهذا د غلام په مړ کېدلو سره مرتهن د خپل ټوله قرض ترلاسه کونکی سو او د ربوا وغيره احتمال ختم سو. (احسن الهدايه)

## د مرهون غلام په قیمت سره قرض ترلاسه کول

قَالَ: وَإِنْ كَانَ أَمَرَهُ الرَّاهِنُ أَنْ يَبِيعَهُ فرمايي: او كه راهن مرتهن ته حكم وكړي چي مرهون خرڅ كړي فَبَاعَهُ بِمِائَةٍ او مرتهن هغه په سل درهمه خرڅ كړي وَقَبَضَ الْمِائَةَ قَضَاءً مِنْ حَقِّهِ او د خپل حق اداء كېدلو [او ترلاسه كولو] لپاره پر هغه قبضه وكړي فَيَرْجِعُ بِتِسْعِ مِائَةٍ نو مرتهن به په نهو سوو [۹۰۰] درهمو سره رجوع كوي [يعني مرتهن به نهه سوه له راهن څخه واپس اخلي] لِأَنَّهُ لَمَّا بَاعَهُ بِإِذْنِ الرَّاهِنِ ځكه كله چي مرتهن د راهن په اجازه سره مرهون خرڅ كړى صَارَ كَأَنَّ الرَّاهِنَ اسْتَرَدَّهُ وَبَاعَهُ بِنَفْسِهِ نو داسي سو لكه راهن چي هغه واپس واخيستى او پر ځان يې خرڅ كړى وَلَوْ كَانَ كَذَلِكَ او كه چيري داسي سوي واى يَبْطُلُ الرَّهْنُ نو رهن به باطل سوي واى وَيَبْقَى الدَّيْنُ إِلَّا بِقَدْرِ مَا اسْتَوْفَى او قرض به باقي پاته واى مگر د هغه مقدار په اندازه كوم چي مرتهن ترلاسه كړى دى كَذَا هَذَا نو همداسي به دا هم وي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** خو بالكل ښكاره دى چي كه مرتهن د راهن په حكم سره مرهون (غلام) په سل (۱۰۰) درهمه خرڅ كړي او د مرتهن قرض زر (۱۰۰۰) درهمه وي چي د هغه په عوض كي مرتهن دا سل درهمه د ځان سره په رهن كښېږدي، نو مرتهن ته وروسته له راهن څخه د نهو سوو (۹۰۰) درهمو د اخيستلو حق سته؛ ځكه د راهن په حكم او اجازه سره د مرتهن خرڅول داسي دي لكه راهن چي خپله مرهون له مرتهن څخه واپس واخلي او خرڅ يې كړي، او كه راهن خپله هغه په سل (۱۰۰) درهمه خرڅ كړي او هغه سل درهمه د مرتهن سره په رهن كښېږدي، نو ښكاره ده چي د هغه پر ذمه د مرتهن نهه سوه (۹۰۰) درهمه باقي پاتيږي، نو همداسي په دې مسئله كي به هم د راهن پر مرتهن نهه سوه درهمه باقي پاته وي او مرتهن ته به له راهن څخه د هغوى د اخيستلو حق او اختيار وي. (احسن الهدايه)

## كه د مرهون غلام قاتل هم غلام وي (حكم او تفصيل)

قَالَ: وَإِنْ قَتَلَهُ عَبْدٌ قِيمَتُهُ مِائَةٌ فرمايي: او كه يو داسي غلام دا [مرهون غلام] قتل كړي چي د هغه قيمت [هم] سل درهمه وي فَدُفِعَ مَكَانَهُ بيا قاتل غلام د هغه [مقتول غلام] پر ځاى وركول سي افْتَكَّهُ بِجَمِيعِ الدَّيْنِ نو راهن به هغه د ټوله قرض په عوض كي راخلاصوي وَهَذَا عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ

وَأَبِيْ يُوْسُفَ او دا [حکم] د شيخينو رَحِمَهُمَا الله په نيز دی وَقَالَ مُحَمَّدٌ ❁ : هُوَ بِالْخِيَارِ او امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي: چي راهن ته اختيار دی إِنْ شَاءَ افْتَكَّهُ بِجَمِيعِ الدَّيْنِ که وغواړي نو هغه [قاتل غلام] دي د ټوله قرض په عوض کي راخلاص کړي وَإِنْ شَاءَ سَلَّمَ الْعَبْدَ الْمَدْفُوعَ إِلَى الْمُرْتَهِنِ بِمَالِهِ او که وغواړي نو ورکول سوی [قاتل] غلام دي مرتهن ته د هغه د مال [قرض] په عوض کي وسپاري وَقَالَ زُفَرُ: يَصِيرُ رَهْنًا بِمِائَةٍ او امام زفر رَحِمَهُ الله فرمايي: چي هغه غلام د سلو (۱۰۰) درهمو په عوض کي رهن کيږي لَهُ: أَنَّ يَدَ الرَّهْنِ يَدُ اسْتِيفَاءٍ د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي د رهن قبضه د استيفاء [حق ترلاسه کولو] قبضه ده وَقَدْ تَقَرَّرَ بِالْهَلَاكِ او د هلاکېدلو په وجه استيفاء ثابته سوه إِلَّا أَنَّهُ أَخْلَفَ بَدَلًا بِقَدْرِ الْعُشْرِ ليکن مرتهن د لسمي حصې [سلو درهمو] په اندازه ترلاسه کړي دي فَيَبْقَى الدَّيْنُ بِقَدْرِهِ نو ځکه قرض به د لسمي حصې په اندازه باقي پاتيږي وَلِأَصْحَابِنَا عَلَى زُفَرَ أَنَّ الْعَبْدَ الثَّانِيَ قَائِمٌ مَقَامَ الْأَوَّلِ لَحْمًا وَدَمًا او د امام زفر رَحِمَهُ الله په خلاف زموږ د ملګرو دليل دا دی چي دويم غلام د غوښي او وينې دواړو په اعتبار سره د اول غلام قائم مقام دی وَلَوْ كَانَ الْأَوَّلُ قَائِمًا وَانْتَقَصَ السِّعْرُ او که چيري اول غلام موجود وای او نرخ کم سوي وای لَا يَسْقُطُ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ عِنْدَنَا نو زموږ په نيز له قرض څخه به هيڅ هم نه ساقطېدلای لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ کړی دی فَكَذَلِكَ إِذَا قَامَ الْمَدْفُوعُ مَكَانَهُ نو همداسي کله چي ورکول سوی [قاتل] غلام د اول غلام قائم مقام سي.

**اللغات:** ﴿افْتَكَّ﴾ د افتعال د باب ماضي ده: (مرهون) راخلاصول، يعني قرض ورکول او مرهون څني اخيستل. ﴿أخلف﴾ د افعال د باب ماضي ده: شاته پرېښوول، شاته پاته کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که يو غلام د مرتهن سره هغه مرهون غلام مړ کړي کوم چي راهن د زرو درهمو قرض په عوض کي په رهن ورکړی وو (چي د نرخ اوښتلو په وجه د هغه قيمت ۱۰۰ درهمو ته را ټيټ سوی وو)، او د قاتل غلام قيمت سل (۱۰۰) درهمه وي او بيا همدا قاتل غلام د مقتول غلام پر ځای په رهن ورکول سي، نو په دې هکله د شيخينو رَحِمَهُمَا الله فتوىٰ دا ده چي کله د قرض

❁ القول الراجح: قول الشيخين رَحِمَهُمَا الله، انظر للتفصيل الكتاب المعروف بالقول الراجح [ج:۲، ص:۳۳۲]

اداء کولو وخت راسي، نو راهن دي د ټوله قرض په عوض کي هغه راخلاص کړي يعني راهن دي د مرتهن ټوله قرض (زر درهمه) اداء کړي او بيا دي قاتل غلام له مرتهن څخه واخلي.

د امام محمد رَحِمَهُ الله مسلک دا دی چي دغه راهن ته له دوو اختياراتو څخه يو اختيار سته:

①... که چيري د هغه خوښه وي، نو د مرتهن د ټوله قرض په عوض کي دي قاتل غلام راخلاص کړي لکه څرنګه چي شيخين رَحِمَهُمَا الله فرمايي.

②... او که وغواړي نو قاتل غلام (کوم چي د مقتول غلام پر ځای مرهون دي، هغه) دي د مرتهن د قرض په عوض کي د مرتهن سره پرېږدي.

د امام زفر رَحِمَهُ الله رايه دا ده چي قاتل غلام د مقتول غلام پر ځای مرهون خو دی، لېکن د ټوله قرض يعني د زرو درهمو په عوض کي مرهون نه دی، بلکي دا غلام به د سلو (١٠٠) درهمو په عوض کي مرهون وي.

د امام زفر رَحِمَهُ الله دليل دا دی چي پر مرهون د مرتهن قبضه د استيفاء قبضه وي (چي د هغه په ذريعه مرتهن خپل قرض ترلاسه کوي) او کله چي مرهون هلاک سي نو استيفاء پوره کيږي، او څرنګه چي په دې مسئله کي مرهون هلاک سوی دی، نو په اصولي توګه خو د مرتهن ټوله قرض ساقطېدل پکار دي، خو څرنګه چي مرتهن ته د مرهون مقتول غلام په عوض کي د سلو درهمو والا غلام حاصل سوی دی او دا د هغه مقتول غلام پر ځای مرهون دی، نو اوس به د مرتهن له ساقط سوي قرض څخه عُشر يعني د زرو لسمه حصه کوم چي سل درهمه دي واپس راګرځي او قاتل غلام به د همدې سلو درهمو په عوض کي رهن پاتيږي، او راهن به د سلو درهمو په ورکولو سره دا غلام له مرتهن څخه واپس اخلي.

<u>ولأصحابنا إلخ</u>: په دې سره د نورو احنافو له طرفه امام زفر رَحِمَهُ الله ته جواب ورکول سوی دی، حاصل يې دا دی چي زموږ په نېز د مرهون (غلام) په نرخ کمېدلو او ټيټېدلو سره هيڅ قرض نه ساقطيږي (لکه مخکي چي ذکر سوه) او دلته چي د مقتول غلام په قائم مقام (قاتل غلام) کي د قيمت کومه کمي راغلې ده هغه د نرخ کمېدلو او نرخ اوښتلو له قبيل څخه ده او مقتول غلام که چيري موجود وای او نرخ يې کم سوي وای، نو هم به راهن هغه د ټوله قرض په عوض کي له مرتهن څخه اخيستلای، لهذا کوم چي د مقتول غلام قائم مقام دی، هغه به هم راهن د ټوله قرض په عوض کي اخلي او د هغه د قيمت د کمېدلو په وجه به يوه روپۍ هم نه ساقطيږي. (احسن الهدايه)

## په پورتني صورت کي د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل

وَلِمُحَمَّدٍ فِي الْخِيَارِ: أَنَّ الْمَرْهُوْنَ تَغَيَّرَ فِيْ ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ او د اختيار ورکولو په هکله د امام محمد رَحِمَهُ الله دليل دا دی چې مرهون د مرتهن په ضمان کي متغير سوی دی فَيُخَيَّرُ الرَّاهِنُ نو ځکه راهن ته به اختيار ورکول کيږي كَالْمَبِيْعِ إِذَا قُتِلَ قَبْلَ الْقَبْضِ لکه مبيع [خرڅ کړی سوی غلام] چي کله تر قبضي مخکي قتل کړی سي وَالْمَغْصُوْبِ إِذَا قُتِلَ فِيْ يَدِ الْغَاصِبِ او لکه مغصوب [غصب کړی سوی غلام] چي کله د غاصب په قبضه کي قتل کړی سي يُخَيَّرُ الْمُشْتَرِيْ وَالْمَغْصُوْبُ مِنْهُ نو مشتري او مغصوب منهٔ [يعني د مغصوب مالک] ته اختيار ورکول کيږي كَذَا هٰذَا نو همداسي دا [هم] دي.

**تشريح**: په مخکيني صورت کي امام محمد رَحِمَهُ الله راهن ته دوه اختياره ورکړي دي، په دې عبارت کي د هغه دليل بيانوي، حاصل د دليل دا دی چي کله راهن و مرتهن ته مرهون (غلام) ورکړی وو په هغه وخت کي د مرهون قيمت زر درهمه وو، لېکن د مرتهن په قبضه او ضمان کي په مرهون کي تغيّر راغلی او د هغه قيمت نهه سوه درهمه کم سو، نو ځکه د دغه تغيّر په وجه به راهن ته د هغه غلام د اخيستلو او نه اخيستلو اختيار وي (چي د هغه خوښه ده غلام اخلي او که يې نه اخلي)، او دا ځه نوې خبره نه ده بلکي په شريعت کي د دې نور مثالونه هم سته:

①... که يو سړی غلام رانيسي او د غلام ثمن بائع ته ورکړي او بيا هغه تر اوسه پر غلام قبضه نه وي کړې چي يو څوک دا غلام د بائع سره قتل کړي او قاتل غلام بائع ته ورکول سي. نو دلته هم مشتري ته اختيار حاصليږي چي که خوښه يې نو د ټوله ثمن په عوض کي دي قاتل غلام واخلي، او که وغواړي نو له بائع څخه دي خپل ثمن واپس واخلي او قاتل غلام دي د هغه سره پرېږدي.

②... که يو سړی د بل چا غلام غصب کړي او بيا يو څوک د غاصب سره هغه مغصوب غلام قتل کړي او قاتل غلام د مقتول غلام په عوض کي غاصب ته ورکول سي. نو که غاصب و مغصوب منهٔ (د غلام مالک) ته د هغه غلام واپس کول وغواړي، نو مغصوب منهٔ ته اختيار دی که خوښه يې نو هغه دي د خپل مغصوب غلام په عوض کي واخلي، او که وغواړي نو له غاصب څخه دي د هغه قيمت واخلي. نو څرنګه چي په دغه دوو مثالونو کي شريعت حقدار کس (مشتري او د مغصوب مالک) ته اختيار ورکړی دی، نو همداسي په پورتني مسئله کي به هم حقدار کس (راهن) ته اختيار ورکول کيږي. (احسن الهدايه)

## د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل

وَلَهُمَا: أَنَّ التَّغَيُّرَ لَمْ يَظْهَرْ فِي نَفْسِ الْعَبْدِ او د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل دا دی: چې په نفس غلام کې تغیّر نه دی ښکاره سوی لِقِيَامِ الثَّانِي مَقَامَ الْأَوَّلِ لَحْمًا وَدَمًا ځکه چې دويم غلام د غوښې او وينې دواړو په اعتبار سره د اول غلام قائم مقام دی كَمَا ذَكَرْنَاهُ مَعَ زُفَرَ لکه څرنګه چې موږ دا د امام زفر رَحِمَهُ الله سره [په اختلاف] کې ذکر کړي دي وَعَيْنُ الرَّهْنِ أَمَانَةٌ عِنْدَنَا او عينِ مرهون زموږ په نېز امانت دی فَلَا يَجُوزُ تَمْلِيكُهُ مِنْهُ بِغَيْرِ رِضَاهُ نو دا جائز نه دي چې راهن مرتهن د هغه مالک جوړ کړي د مرتهن له رضاء څخه بغير [يا په بله وينا دا چې راهن په زوره مرتهن د هغه مالک جوړ کړي] وَلِأَنَّ جَعْلَ الرَّهْنِ بِالدَّيْنِ حُكْمٌ جَاهِلِيٌّ او ځکه چې رهن د قرض په عوض کې ګرځول د جهاليت د زمانې حکم دی وَأَنَّهُ مَنْسُوخٌ او هغه منسوخ دی بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّ الْخِيَارَ فِيهِ حُكْمُهُ الْفَسْخُ ځکه چې په بيع کې د خيار حکم د فسخ دی وَهُوَ مَشْرُوعٌ او دا مشروع دي وَبِخِلَافِ الْغَصْبِ او په خلاف د غصب لِأَنَّ تَمَلُّكَهُ بِأَدَاءِ الضَّمَانِ مَشْرُوعٌ ځکه چې په ضمان اداء کولو سره د مغصوب مالک جوړېدل مشروع دي وَلَوْ كَانَ الْعَبْدُ تَرَاجَعَ سِعْرُهُ حَتَّى صَارَ يُسَاوِي مِائَةً او که چيرې د غلام نرخ راکښته سي تر دې چې هغه د سلو درهمو سره برابر سي ثُمَّ قَتَلَهُ عَبْدٌ يُسَاوِي مِائَةً بيا يو داسې غلام هغه قتل کړي چې هغه [هم] د سلو درهمو سره برابر وي فَدُفِعَ بِهِ بيا قاتل غلام د هغه [مقتول غلام] په عوض کې ورکول سي فَهُوَ عَلَى هٰذَا الْخِلَافِ نو هغه هم پر دغه اختلاف دي.

**اللغات**: ﴿مشروع﴾ د فتح د باب اسم مفعول دی: په شريعت کې نافذ او جاري، په شريعت کې جائز. ﴿تراجع السعر﴾ نرخ او ښتل، نرخ ټيټېدل (کښته کېدل).

**تشريح**: له دې ځايه د شيخينو رَحِمَهُمَا الله دليل بيان سوی دی، حاصل يې دا دی چې کله دويم غلام د نفس او ځان او د وينې او غوښې په هر اعتبار سره د اول غلام قائم مقام دی، نو بيا په نفس مرهون غلام کې تغيّر نه دی راغلی. بلکې صرف د هغه په قيمت کې کمي راغلې ده او موږ څو ځله مخکې ويلي دي چې د قيمت په کمېدلو او ټيټېدلو سره د قرض هيڅ حصه نه ساقطېږي، نو ځکه په دې مخکنۍ مسئله کې زموږ فيصله همدا ده چې راهن به د ټوله قرض په عوض کې هغه راخلاصوي يعني د

مرتهن ټوله قرض په اداء کوي بيا به قاتل غلام څني اخلي. نور له قرض څخه به يوه روپۍ هم نه ساقطيږي کوم چي د امام زفر رَحِمَهُ الله مسلک دی او نه به راهن ته اختيار حاصليږي کوم چي امام محمد رَحِمَهُ الله فرمايي.

د امام زفر رَحِمَهُ الله جواب خو مخکي موږ کړی دی، دلته صرف د امام محمد رَحِمَهُ الله د اختيار ورکولو خبره څېړو، نو د هغه دا خبره هم صحيح نه ده: ځکه چي د کتاب الرهن په شروع کي دا خبره تېره سوه چي عينِ مرهون د مرتهن په قبضه کي امانت دی او د مرتهن حق صرف د مرهون د ماليت سره متعلق دی، اوس که موږ په دې مخکنۍ مسئله کي راهن ته اختيار ورکړو او راهن هغه قاتل غلام (کوم چي د مقتول پر ځای د مرتهن سره مرهون دی) له مرتهن څخه واپس نه واخلي او د مرتهن سره يې پرېږدي او په دې سره د مرتهن قرض ساقط سي، نو دا به د جبر او زور تمليک وي چي مرتهن له خپلي خوښۍ او رضا څخه بغير په زوره د هغه قاتل غلام مالک جوړول کيږي. حال دا چي تمليک په رضا او خوښۍ سره ثابتيږي، نه په جبر او زور سره، او په داسي کولو سره بله خرابي دا هم لازميږي چي رهن (مرهون) به د قرض بدل وګرځول سي، حالانکي دا د جاهليت د زمانې عادت وو چي رهن به يې د قرض بدل ګرځوی او بيا شريعت د جاهليت هر حکم منسوخ کړی (لکه مخکي چي هم د دې وضاحت وسو)، نو ځکه دا حکم به هم منسوخ وي او راهن ته به اختيار نه ورکول کيږي.

او امام محمد رَحِمَهُ الله چي دا مسئله د بيع پر مسئلې قياس کړې ده، نو دا هم صحيح نه دي: ځکه په بيع کي چي بائع ته کوم اختيار حاصليږي، هغه د بيع د فسخ کولو لپاره وي (چي که د بائع دا بيع او سودا خوښه نه سي نو هغه فسخ او ماته کړي)، حال دا چي په عقد رهن کي اختيار د فسخ کولو لپاره نه وي، بلکي پر مرتهن د عقدِ رهن د لازمولو لپاره وي، نو ځکه دا قياس مع الفارق دی او صحيح نه دی.

همدارنګه د غصب پر مسئله هم دا مسئله قياسول صحيح نه دي: ځکه چي په غصب کي غاصب د ضمان په اداء کولو سره د مغصوب مالک جوړيږي، حال دا چي د قرض په اداء کولو سره مرتهن د مرهون نه مالک کيږي، نو ځکه دا هم قياس مع الفارق دی او صحيح نه دی.

ولوكان العبد إلخ: د دې حاصل دا دی چي که د مرهون غلام قيمت د رهن په وخت کي زر درهمه وي لېکن بيا په نرخ کي سخت بدلون راسي او د هغه قيمت سلو درهمو ته راکښته سي، بيا يو داسي غلام هغه قتل کړي چي د هغه قيمت هم سل درهمه وي، نو اوس څه حکم دی؟ فرمايي چي په دې صورت کي هم د شيخينو او د امام محمد او امام زفر رَحِمَهُمَاالله هاغه اختلاف دی کوم چي مخکي بيان سوی دی. (احسن الهدايه)

## که چیري مرهون غلام یو څوک خطاءً قتل کړي نو دیت پر چا لازم دی؟

وَإِذَا قَتَلَ الْعَبْدُ الرَّهْنُ قَتِيْلًا خَطَأً او کله چي مرهون غلام په خطاء سره يو څوک قتل کړي فَضَمَانُ الْجِنَايَةِ عَلَى الْمُرْتَهِنِ نو د جنايت ضمان پر مرتهن دی وَلَيْسَ لَهُ أَنْ يَدْفَعَ او مرتهن ته دا حق نسته چي [په ضمان کي] غلام ورکړي لِأَنَّهُ لَا يَمْلِكُ التَّمْلِيْكَ ځکه چي مرتهن د مالک جوړولو ملکيت [اختيار] نه لري وَلَوْ فَدَى او که چیري مرتهن فديه اداء کړي طَهُرَ الْمَحَلُّ نو محل پاک سو فَبَقِيَ الدَّيْنُ عَلَى حَالِهِ نو قرض پر خپل حال باقي پاته سو وَلَا يَرْجِعُ عَلَى الرَّاهِنِ بِشَيْءٍ مِنَ الْفِدَاءِ او مرتهن د فديې په هيڅ حصه سره پر راهن رجوع نه سي کولای [يعني د فديې هيڅ حصه واپس نه سي ځني اخيستلای] لِأَنَّ الْجِنَايَةَ حَصَلَتْ فِي ضَمَانِهِ ځکه چي جنايت د مرتهن په ضمان کي حاصل سوی دی فَكَانَ عَلَيْهِ إِصْلَاحُهَا لهذا د جنايت اصلاح کول به پر همدې مرتهن وي.

**اللغات:** ﴿قتيل﴾ قتل کړی سوی (وژل سوی)، مقتول، ﴿الفداء﴾ فديه، ديت، تاوان او جرمانه، تاکلی مقدار کوم چي (د قاتل غلام) د ځان ژغورني لپاره ورکول کيږي.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که مرهون غلام د مرتهن په قبضه کي وي او په همدې دوران کي يو څوک خطاءً قتل کړي، نو د هغه ضمان (تاوان) پر مرتهن لازميږي چي د دې جنايت په بدله کي به مرتهن د مقتول وارثانو ته فديه ورکوي، او دلته د ضمان اداء کولو همدا يو صورت دی. لهذا مرتهن ته دا حق او اختيار نسته چي هغه د جنايت په بدله کي قاتل غلام د مقتول وارثانو ته ورکړي، بلکي هغه ته صرف د فديه ورکولو حق سته، او کله چي مرتهن فديه ورکړي. نو اوس مرهون غلام له جنايت څخه پاکيږي او د خپل مخکيني حال په څېر مرهون پاتيږي. او د جنايت له فديې اداء کولو څخه وروسته مرتهن ته دا اختيار نه حاصليږي چي له راهن څخه د فديې په نامه څه واخلي: ځکه چي جنايت صرف د مرتهن په ضمان کي واقع سوی دی، لهذا د هغه وبال او تاوان به هم صرف د مرتهن پر ذمه وي او راهن به له هغه څخه بري وي.

## که مرتهن له ديت ورکولو څخه انکار وکړي نو راهن به څه کوي؟

وَلَوْ أَبَى الْمُرْتَهِنُ أَنْ يَفْدِيَ او که چیري مرتهن انکار وکړي چي فديه ورکړي قِيْلَ لِلرَّاهِنِ: اِدْفَعِ الْعَبْدَ نو راهن ته به ويل کيږي: چي غلام ورکړه! أَوْ افْدِهِ بِالدِّيَةِ يا په ديت سره د هغه فديه ورکړه! لِأَنَّ الْمِلْكَ فِي الرَّقَبَةِ قَائِمٌ لَهُ ځکه چي په رقبه [غلام] کي د راهن ملکيت موجود دی وَإِنَّمَا

إِلَى الْمُرْتَهِنِ الْفِدَاءُ لِقِيَامِ حَقِّهِ او مرتهن لره ځکه د فديې حکم دی چې د هغه حق موجود دی فَإِذَا امْتَنَعَ عَنِ الْفِدَاءِ لېکن کله چې هغه له فديه ورکولو څخه منع سو يُطَالَبُ الرَّاهِنُ بِحُكْمِ الْجِنَايَةِ نو له راهن څخه به د جنايت د حکم مطالبه کيږي وَمِنْ حُكْمِهَا التَّخْيِيرُ بَيْنَ الدَّفْعِ وَالْفِدَاءِ او د جنايت حکم اختيار ورکول دي [د غلام] ورکولو او فديه ورکولو تر مينځ فَإِنِ اخْتَارَ الدَّفْعَ نو که هغه [د غلام] ورکول اختيار کړي سَقَطَ الدَّيْنُ نو [د مرتهن] قرض ساقطيږي لِأَنَّهُ اسْتُحِقَّ لِمَعْنًى فِي ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ ځکه چې مرهون غلام په داسي سبب [قتل] سره مستحق سوی دی کوم چې د مرتهن په ضمان کي حاصل سوی دی فَصَارَ كَالْهَلَاكِ نو دا [استحقاق] د هلاکېدلو په څېر سو وَكَذَلِكَ إِنْ فَدَى او همدارنګه که راهن فديه ورکړي لِأَنَّ الْعَبْدَ كَالْحَاصِلِ لَهُ بِعِوَضٍ كَانَ عَلَى الْمُرْتَهِنِ ځکه [په دې صورت کي] غلام به راهن ته په داسي عوض سره حاصلېدونکي وي کوم چې پر مرتهن دی وَهُوَ الْفِدَاءُ او هغه عوض فديه ورکول دي.

**اللغات:** ﴿أبي﴾ د فتح د باب ماضي ده: انکار کول. ﴿الدية﴾ ديت، خون بها، هغه مالي بدل چې قاتل يې د مقتول وارثانو ته ورکوي. که چيري يو سړی په خطاء سره يو څوک قتل کړي چې هغه ته "قتلِ خطاء" وايي، نو په هغه کي د مقتول ديت سل اوښان دي، هغه پر ټوله عاقله وو لازميږي او پر ټولو به تقسيمول کيږي او په درې کاله کي دننه به اداء کول کيږي. ﴿تخيير﴾ د تفعيل د باب مصدر دی: اختيار ورکول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که په مخکيني صورت کي (يعني کله چې مرهون غلام د مرتهن په قبضه يو څوک قتل کړي) مرتهن له فديې ورکولو څخه انکار وکړي، نو په دې صورت کي راهن ته دوه اختياره حاصليږي:

①... که خوښه يې وي نو همدا قاتل مرهون غلام دې د مقتول وارثانو ته ورکړي. ځکه چې راهن د دې غلام مالک دی يعني اوس (د رهن په حالت کي) هم د راهن ملکيت په دې مرهون غلام کښې موجود او قائم دی، او تاسي ته معلومه ده چې مالک ته په خپل مملوک کي د هر ډول تصرّف کولو اختيار وي، نو ځکه راهن ته به هم د دې پوره اختيار وي چې غلام د مقتول وارثانو ته ورکړي.

②... دويم اختيار راهن ته دا حاصليږي چې که وغواړي نو قاتل غلام دې د ځان سره راوګرځوي او د هغه په عوض کي دې د هغه د جنايت او جرم فديه د مقتول وارثانو ته ورکړي.

او په دې دواړو صورتونو کې د مرتهن قرض ساقطيږي؛ ځکه په اول صورت کې چې هغه غلام ورکړی دی، دا يې د هغه جنايت او جرم پر بناء ورکړی دی کوم چې غلام د مرتهن په قبضه او ضمان کې دننه کړی دی، نو دا د هلاکت په درجه کې سوه (يعني لکه مرهون غلام چې د مرتهن په قبضه کې هلاک سي، نو هلته ښکاره ده چې د مرتهن قرض ساقطيږي فکذا ههنا). او په دويم صورت کې که څه هم غلام د راهن سره دی خو مفت (بلاعوضه) نه دی بلکې دا غلام د هغه عوض (فديه) په بدله کې دی چې د هغه اداء کول د مرتهن پر ذمه وه (ځکه چې غلام د مرتهن په قبضه کې جنايت کړی دی نو د هغه فديه پر مرتهن وه).

خلاصه د کلام دا چې راهن ته دوه اختياره د ملکيت په وجه حاصليږي او مرتهن د مرهون (غلام) مالک نه دی، بلکې په مرهون کې د هغه صرف حق سته، نو ځکه هغه ته صرف د فديه ورکولو اختيار سته، نه د غلام ورکولو.

## د مرهون بچی که قتل وکړي يا مال هلاک کړي نو ضمان يې پر چا دی؟

بِخِلَافِ وَلَدِ الرَّهْنِ إِذَا قَتَلَ إِنْسَانًا په خلاف د مرهون د ځوی کله چې يو انسان قتل کړي أَوِ اسْتَهْلَكَ مَالًا يا يو مال هلاک کړي حَيْثُ يُخَاطَبُ الرَّاهِنُ بِالدَّفْعِ أَوِ الْفِدَاءِ فِي الِابْتِدَاءِ نو له ابتداء څخه به راهن [د مرهون د ځوی] په ورکولو يا فديه ورکولو سره مخاطب کيږي لِأَنَّهُ غَيْرُ مَضْمُونٍ عَلَى الْمُرْتَهِنِ ځکه چې هغه [د مرهون ځوی] پر مرتهن مضمون نه دی فَإِنْ دَفَعَ بيا که راهن هغه [د مرهون ځوی] ورکړي خَرَجَ مِنَ الرَّهْنِ نو هغه له رهن څخه وځي وَلَمْ يَسْقُطْ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ او له قرض څخه هيڅ حصه نه ساقطيږي كَمَا لَوْ هَلَكَ فِي الِابْتِدَاءِ لکه چې يري هغه [د مرهون ځوی] په ابتداء کې هلاک سوي وای وَإِنْ فَدَى او که راهن فديه ورکړي فَهُوَ رَهْنٌ مَعَ أُمِّهِ عَلَى حَالِهِمَا نو هغه د خپلې مور سره دواړه پر خپل [مخکني] حالت رهن پاتيږي.

**اللغات**: ﴿استهلك﴾ د استفعال د باب ماضي ده: هلاکول، ضايع کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چې راهن مثلاً حامله مينځه په رهن ورکړې وه او د هغې بچی وسو اوبيا څو وخت وروسته چې د هغې بچی غټ سو نو يو څوک يې قتل کړي يا د چا مال يې هلاک او ضايع کړی، نو د هغه ضمان (تاوان) پر راهن دی، نه پر مرتهن. نو د ديت او فديې مطالبه به له راهن څخه کيږي: ځکه د مرهون بچی د مرتهن په ضمان کې نه داخليږي، لهذا د هغه د جرم او جنايت ضمان به هم پر مرتهن نه وي، بيا که راهن په ضمان کې هغه قاتل بچی د مقتول وارثانو ته ورکړي. نو هغه بچی د مخکې په څېر د خپلې مور سره رهن پاتيږي، لېکن په دواړو صورتونو کې د مرتهن د

قرض يوه اټاني، هم نه ساقطيږي (بلکي مرتهن ته به خپل پوره قرض ورکول کيږي)؛ ځکه چي د مرهون د بچي سره د مرتهن هيڅ تعلق نسته.

## که مرهون غلام د خپل ځان د قيمت په اندازه مال هلاک کړي نو څه حکم دی؟

وَلَوِ اسْتَهْلَكَ الْعَبْدُ الْمَرْهُوْنُ مَالًا يَسْتَغْرِقُ رَقَبَتَهُ او که چيري مرهون غلام دومره مال هلاک کړي کوم چي د هغه ټولي رقبې لره محيط وي فَإِنْ أَدَّى الْمُرْتَهِنُ الدَّيْنَ الَّذِيْ لَزِمَ الْعَبْدَ نو که مرتهن هغه قرض اداء کړي کوم چي پر غلام لازم سوی دی فَدَيْنُهُ عَلٰى حَالِهٖ نو د مرتهن قرض پر خپل حال باقي پاتيږي كَمَا فِي الْفِدَاءِ لکه د فديه ورکولو په صورت کي وَإِنْ أَبٰى او که مرتهن انکار وکړي قِيْلَ لِلرَّاهِنِ: بِعْهُ فِي الدَّيْنِ نو راهن ته به ويل کيږي: چي دا غلام په قرض کي خرڅ کړه! إِلَّا أَنْ يَخْتَارَ أَنْ يُؤَدِّيَ عَنْهُ مگر دا چي راهن د غلام له طرفه ضمان [فديه] ورکول اختيار کړي فَإِنْ أَدّٰى نو که راهن ضمان اداء کړي بَطَلَ دَيْنُ الْمُرْتَهِنِ نو د مرتهن قرض باطليږي كَمَا ذَكَرْنَا فِي الْفِدَاءِ لکه څرنګه چي په فديه ورکولو کي موږ ذکر کړه وَإِنْ لَمْ يُؤَدِّ وَبِيْعَ الْعَبْدُ فِيْهِ او که راهن ضمان اداء نه کړي او په هغه ضمان کي غلام خرڅ کړی سي [يعني د هلاک سوي مال ضمان کوم چي پر غلام قرض دی که چيري راهن هغه اداء نه کړي بلکي د هغه ضمان (قرض) اداء کولو لپاره غلام خرڅ کړي] يَأْخُذُ صَاحِبُ دَيْنِ الْعَبْدِ دَيْنَهُ نو د غلام د قرض مالک [قرضخواه] به خپل قرض اخلي [يعني غلام چي د کوم سړي مال هلاک کړی دی چي هغه پر غلام قرض ګرځېدلي دی، نو تر ټولو مخکي به هغه سړی د غلام ثمن په خپل قرض کي واخلي] لِأَنَّ دَيْنَ الْعَبْدِ مُقَدَّمٌ عَلٰى دَيْنِ الْمُرْتَهِنِ وَحَقِّ وَلِيِّ الْجِنَايَةِ ځکه چي د غلام قرض د مرتهن پر قرض او د جنايت د ولي پر حق مخکي دی لِتَقَدُّمِهٖ عَلٰى حَقِّ الْمَوْلٰى ځکه چي د غلام قرض د مالک پر حق لا مخکي دی فَإِنْ فَضَلَ شَيْءٌ بيا که څه مقدار اضافه [زائد] پاته سي وَدَيْنُ غَرِيْمِ الْعَبْدِ مِثْلُ دَيْنِ الْمُرْتَهِنِ أَوْ أَكْثَرُ او د غلام د قرضخواه قرض د مرتهن د قرض په څېر وي [يعني دواړه سره برابره وي] يا زيات وي فَالْفَضْلُ لِلرَّاهِنِ نو اضافه [زائد مقدار] د راهن دی وَبَطَلَ دَيْنُ الْمُرْتَهِنِ او د مرتهن قرض باطليږي لِأَنَّ الرَّقَبَةَ اُسْتُحِقَّتْ لِمَعْنًى هُوَ فِيْ ضَمَانِ الْمُرْتَهِنِ ځکه چي رقبه [غلام] د داسي سبب په وجه مستحق ختلی دی چي هغه د مرتهن په ضمان کي دی فَأَشْبَهَ الْهَلَاكَ نو دا د هلاکېدلو سره مشابه سوه.

**اللغات:** ﴿فَضَلَ﴾ د نصر د باب ماضي ده: اضافه کېدل. زیاتېدل. باقي پاتېدل (مصباح منیر).

﴿یستغرق﴾ د استفعال د باب مضارع ده: په پوره توګه نیول. غرقول. په پوره توګه احاطه کول.

﴿رقبة﴾ غاړه. مراد: ذات.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که مرهون غلام د یو چا دومره مال هلاک کړي چې هغه او د غلام قیمت سره برابر وي یا هغه مال د غلام له قیمت څخه زیات وي. نو په دې صورت کې به هم اول مرتهن ته ویل کېږي چې ورو‌ره! غلام دغه جنایت ستا په ضمان کې کړی دی.نو ځکه د هغه ضمان (تاوان) او فدیه به ته اداء کوې!. که چیرې هغه ضمان اداء کړي. نو د مخکې په څېر د مرتهن قرض پر راهن باقي پاتېږي، او که مرتهن له ضمان ورکولو څخه انکار وکړي. نو بیا راهن ته هاغه مخکېني دوه اختیاره حاصلېږي: ① چې که خوښه یې وي نو ضمان (قرض) دې اداء کړي. ② او که وغواړي نو غلام دې خرڅ کړي. او له دې دواړو څخه چې راهن کوم یو هم اختیار کړي. د مرتهن قرض د هغه له غاړې څخه ساقطېږي. اوس که چیرې راهن ضمان اداء کړي،نو ښکاره ده چې هغه د یو داسې جنایت ضمان ورکړی کوم چې پر مرتهن واجب دی. نو ځکه په ضمان اداء کولو سره راهن د مرتهن له قرض څخه بري کېږي او د مرتهن قرض باطلېږي. او که چیرې راهن په دې ضمان (غلام) کې غلام خرڅ کړي، نو د غلام له ثمن څخه به تر ټولو مخکې د صاحبُ الدَین (د قرض د مالک) حق ورکول کېږي (یعني غلام چې د چا مال هلاک کړی دی. تر ټولو مخکې به هغه ته خپل حق ورکول کېږي): او مرتهن ته به څه نه ورکول کېږي، ځکه چې غلام د همدې صاحبُ الدَین د قرض لپاره خرڅ کړی سوی دی، او ځکه چې دا قرض د غلام ذاتي قرض دی او پر مرتهن چې د راهن کوم قرض دی هغه د غلام ذاتي قرض نه دی، نو ځکه د غلام له ثمن څخه به تر ټولو مخکې د غلام ذاتي قرض اداء کول کېږي، همدارنګه که غلام یو بل جنایت هم کړی وي (مثلاً د زید غابښ یې ایستلی وي). نو د هغه دا ذاتي قرض به د جنایت د ولي (زید) له حق څخه هم مخکې کول کېږي په دې توګه چې کله غلام د جنایت ولي (زید) ته وسپارل سي نو هغه ته به حکم کېږي چې دا غلام خرڅ کړه! او تر ټولو مخکې د صاحبُ الدَین قرض اداء کړه!، لنډه دا چې د صاحبُ الدَین حق به د جنایت د ولي تر حق هم مخکې کول کېږي؛ د دې وجه دا ده چې د غلام د مقروض کېدلو په صورت کې د قرض د مالک (صاحبُ الدَین) حق د غلام د مالک له حق څخه هم مخکې دی (یعني اول به د هغه کس حق اداء کول کېږي چې پر غلام یې قرض باندي دی، او بیا د غلام د مالک حق...)، لهذا کله چې د صاحبُ الدَین حق د غلام د مالک (راهن) له حق څخه هم مخکې دی، نو د مرتهن او د جنایت د ولي له حق څخه خو به په درجه اولیٰ د صاحبُ

الدَين حق مخکي وي، نو ځکه دلته حکم دا دی چې د غلام له ثمن څخه به تر ټولو مخکي د هغه ذاتـي قرض اداء کول کیږي.

**فإن فضل شيءٌ إلخ:** بیا که د غلام د ذاتي قرض تر اداء کولو وروسته د غلام له ثمن څخه لږ ثمن زائد پاته سي او حالت دا وي چې د صاحبُ الدَين قرض (یا په بله وینا د غلام ذاتي قرض) د مرتهن دقرض سره برابر وي یا تر هغه زیات وي، نو پاته زائد ثمن د راهن حق کیږي. نه د مرتهن. او د مرتهن حق (قرض) باطلیږي یعني هغه ته به د خپل قرض په عوض کي هیڅ نه ورکول کیږي: ځکه چې غلام د همدې مرتهن په ضمان کي مقروض سوی دی او د بل چا مستحق ختلی دی (یعني کله چې مرهون غلام د مرتهن په قبضه کي د بل چا مال هلاک کړی، نو هغه مال پر غلام قرض سو او غلام د مال د مالک [صاحبُ الدَین] مُستحَق وختی، یعني په غلام کي د مال د مالک حق ثابت سو). نو دا د مرهون غلام د هلاکېدلو په څېر سوه (ګواکي مرهون غلام هلاک سو). او تاسي ته معلومه ده چې که مرهون غلام د مرتهن سره هلاک سي. نو د هغه قرض ساقطیږي، نو ځکه په دې پورتنی مسئله کي به هم د مرتهن قرض ساقطیږي.

**که د غلام قرض (هلاک سوی مال) د مرتهن له قرض څخه کم وي نو څه حکم دی؟**

وَإِنْ كَانَ دَيْنُ الْعَبْدِ أَقَلَّ او که د غلام قرض [د مرتهن له قرض څخه] کم وي سَقَطَ مِنْ دَيْنِ الْمُرْتَهِنِ بِقَدْرِ دَيْنِ الْعَبْدِ نو د مرتهن له قرض څخه د غلام د قرض په اندازه ساقطیږي وَمَا فَضَلَ مِنْ دَيْنِ الْعَبْدِ او څه چې د غلام له قرض څخه اضافه [زائد] پاته سي يَبْقَى رَهْنًا كَمَا كَانَ نو هغه رهن پاتیږي لکه څرنګه چې [مخکي] رهن وو ثُمَّ إِنْ كَانَ دَيْنُ الْمُرْتَهِنِ قَدْ حَلَّ بیا که د مرتهن د قرض اداء کېدلو وخت راغلی وي أَخَذَهُ بِهِ نو مرتهن دي هغه واخلي لِأَنَّهُ مِنْ جِنْسِ حَقِّهِ ځکه چې دا د هغه د حق له جنس څخه دي وَإِنْ كَانَ لَمْ يَحِلَّ او که د قرض اداء کېدلو وخت نه وي راغلی أَمْسَكَهُ حَتَّى يَحِلَّ نو مرتهن دې هغه راوګرځوي تر دې چې د قرض اداء کېدلو وخت راسي وَإِنْ كَانَ ثَمَنُ الْعَبْدِ لَا يَفِي بِدَيْنِ الْغَرِيمِ او که د غلام ثمن د قرضخواه [صاحبُ الدَين] قرض نه پوره کوي أَخَذَ الثَّمَنَ نو قرضخواه دي ثمن واخلي وَلَمْ يَرْجِعْ بِمَا بَقِيَ عَلَى أَحَدٍ او څه چې پاته سي په هغه سره دي پر هیچا رجوع نه کوي حَتَّى يُعْتَقَ الْعَبْدُ تر دې چې غلام آزاد سي لِأَنَّ الْحَقَّ فِي دَيْنِ الِاسْتِهْلَاكِ يَتَعَلَّقُ بِرَقَبَتِهِ ځکه په دینِ استهلاک کي حق د غلام د رقبې [ذات] سره متعلق وي وَقَدِ اسْتُوفِيَتْ او رقبه تر لاسه سوې ده [ځکه چې خرڅه کړل سوې ده] فَيَتَأَخَّرُ إِلَى مَا بَعْدَ الْعِتْقِ نو ځکه دا حق به تر آزادی

وروسته پوري مؤخر كيږي ثُمَّ إِذَا أَدَّى بَعْدَهُ بيا كله چي تر آزادئ وروسته غلام (هغه حق) اداء كړي لَا يَرْجِعُ عَلَى أَحَدٍ نو هغه به پر هيچا رجوع نه كوي لِأَنَّهُ وَجَبَ عَلَيْهِ بِفِعْلِهِ ځكه چي دا حق د خپل فعل په وجه پر هغه واجب سوى دى.

**اللغات:** ﴿فضل﴾ د نصر د باب ماضي ده، د تېر عبارت په لغات كي د دې وضاحت وسو. ﴿أمسكه﴾ دافعال د باب ماضي ده: نيول. راګرځول. ﴿الغريم﴾ دا لفظ له اضدادو څخه دى مقروض او قرضخواه دواړو ته وايي، دلته قرضخواه (د قرض مالک) څني مراد دى چي په تېر عبارت كي هغه په صاحبُ الدَين سره نومول سوى دى. ﴿دين الاستهلاک﴾ كه يو څوک د بل چا مال هلاک كړي چي د هغه په وجه مال پر هلاكونكي كس قرض پاته سي، نو داسي قرض ته "دَين الاستهلاك" وايي.

**تشريح:** مخكي چي كوم حكم او تفصيل ذكر سو، دا هغه وخت دى كله چي د غلام د قرضخواه يعني د صاحبُ الدَين (صاحبُ المال) قرض او د مرتهن قرض سره برابر وي يا د صاحبُ الدَين قرض زيات وي، او كه پر غلام د صاحبُ الدَين قرض د مرتهن له قرض څخه كم وي او د مرتهن قرض زيات وي، نو حكم دا دى چي د صاحبُ الدَين د قرض په اندازه د مرتهن له قرض څخه ساقطيږي، يا په بله وينا دا چي كه مرهون غلام د يو چا (مثلاً د خالد) دوه سوه درهمه مال هلاک كړي نو دا دوه سوه درهمه پر دې مرهون غلام قرض سو، او د غلام قيمت زر درهمه دى او د مرتهن قرض هم زر درهمه دى، نو په دې صورت كي د مرتهن له قرض څخه دوه سوه درهمه ساقطيږي چي هغه به صاحبُ الدَين (خالد) ته وركول كيږي او باقي اته سوه درهمه د مرتهن سره رهن پاتيږي.

اوس د مرتهن سره چي كوم اته سوه درهمه دي، د هغه حكم دا دى چي كه د قرض اداء كېدلو وخت راغلى وي، نو مرتهن دي د خپل قرض په عوض كي هغه (اته سوه درهمه) واخلي: ځكه چي هغه د مرتهن د حق يعني د قرض له جنس څخه دي او كه تر اوسه د قرض اداء كېدلو وخت نه وي راغلى، نو هغه (اته سوه درهمه) دي مرتهن د خپل ځان سره د رهن په توګه وساتي، او كله چي وخت راسي نو د خپل قرض په عوض كي دي هغه واخلي.

وإن كان إلخ: د دې حاصل دا دى چي كه د بل چا (مثلاً د خالد) د مال هلاكولو په وجه غلام خرڅ كړى سو ليكن هلاک سوى مال (يعني د صاحبُ الدَين [خالد] قرض) دوه زره درهمه دى او د غلام ثمن صرف زر درهمه دى او د مرتهن قرض هم زر درهمه دى يعني هغه د صاحبُ الدَين (خالد) له قرض څخه كم دي، نو اوس حكم دا دى چي د مرتهن قرض ساقط سو، او هغه زر درهمه كوم چي د غلام ثمن دى، هغه دي صاحبُ الدَين (خالد) ته وركول سي او هغه ته دي وويل سي چي دا زر درهمه واخله او په

همدې اکتفاء وکړه او له راهن یا مرتهن شخخه د نور مال مطالبه مه کوه!. ها! کله چې غلام یو وخت آزادسي، نو هغه به تا ته ستا ماباقي حق هم درکړي: ځکه چې ستا حق د رقبې یعني د غلام سره متعلق دی او غلام خرځ کړی سوی دی. او څرنګه چې په دې رقبه سره د قرضخواه ټوله مال (قرض) نه دی ترلاسه سوی (بلکې زر درهمه لا پاته یی)، نو ځکه باقي مانده مال به غلام (رقبه) تر آزادېدلو وروسته اداء کوي. او کله چې بعد العتق غلام د قرضخواه باقي مانده مال اداء کړي. نو بیا غلام ته دا حق نسته چې له راهن یا مرتهن شخخه د هغه مال مطالبه وکړي: ځکه چې هغه مال (قرض) د غلام د خپل فعل او جنایت (هلاکولو) په وجه پر هغه واجب سوی دی. نو ځکه د هغه اداء کول به هم د غلام پر ذمه وي. (احسن الهدایه)

## د مذکوره غلام د قیمت زیاتېدلو صورت

وَإِنْ كَانَتْ قِيمَةُ الْعَبْدِ أَلْفَيْنِ او که د غلام قیمت دوه زره درهمه وي وَهُوَ رَهْنٌ بِأَلْفٍ او هغه د زرو درهمو په عوض کې رهن وي [یعني د مرتهن قرض زر درهمه وي] وَقَدْ جَنَى الْعَبْدُ او غلام یو جنایت کړی وي يُقَالُ لَهُمَا: اِفْدِيَاهُ نو راهن او مرتهن دواړو ته به ویل کیږي: چې د هغه فدیه اداء کړئ! لِأَنَّ النِّصْفَ مِنْهُ مَضْمُونٌ وَالنِّصْفُ أَمَانَةٌ ځکه چې [دلته] د غلام د نصف ضمان لازم دی او نصف یې امانت دی وَالْفِدَاءُ فِي الْمَضْمُونِ عَلَى الْمُرْتَهِنِ او په مضمون کې [یعني د کوم مقدار چې ضمان لازم وي د هغه] فدیه پر مرتهن ده وَفِي الْأَمَانَةِ عَلَى الرَّاهِنِ او په امانت کې پر راهن ده فَإِنْ أَجْمَعَا عَلَى الدَّفْعِ بیا که دوی دواړه د غلام پر ورکولو اتفاق وکړي دَفَعَاهُ نو دوی دې غلام ورکړي وَبَطَلَ دَيْنُ الْمُرْتَهِنِ او د مرتهن قرض باطلیږي وَالدَّفْعُ لَا يَجُوزُ فِي الْحَقِيقَةِ مِنَ الْمُرْتَهِنِ او غلام ورکول په حقیقت کې د مرتهن له طرفه جائز نه دي لِمَا بَيَّنَّا د هغه دلیل په وجه کوم چې موږ بیان کړی وَإِنَّمَا مِنْهُ الرِّضَا بِهِ او د هغه له طرفه خو صرف د غلام په ورکولو راضي کېدل دي فَإِنْ تَشَاحَّا بیا که دوی دواړه تنازع وکړي فَالْقَوْلُ لِمَنْ قَالَ: أَنَا أَفْدِي نو قول د هغه یوه معتبر دی کوم چې ووایي: زه فدیه ورکوم رَاهِنًا كَانَ أَوْ مُرْتَهِنًا برابره ده هغه راهن وي او که مرتهن وي أَمَّا الْمُرْتَهِنُ فَلِأَنَّهُ لَيْسَ فِي الْفِدَاءِ إِبْطَالُ حَقِّ الرَّاهِنِ کوم چې مرتهن دی نو ځکه چې په فدیه ورکولو کې د راهن د حق باطلول سته وَفِي الدَّفْعِ الَّذِي يَخْتَارُهُ الرَّاهِنُ إِبْطَالُ حَقِّ الْمُرْتَهِنِ او په هغه ورکړه د غلام کې کوم چې یې راهن اختیار کړي د مرتهن د حق باطلول سته.

**اللغات**: ﴿جنی﴾ د ضرب د باب ماضي ده: جنایت کول، جرم کول. داسي کار کول چي د هغه په وجه ضمان (تاوان) لازمیږي. ﴿تشاحا﴾ د تفاعل له بابه د تثنیه غائب ماضي صیغه ده. په اصل کي له شُحّ څخه مشتق دی کوم چي بخل او حرص ته وایي، لکه څرنګه چي په عربي کي ویل کیږي: "تَشَاحَّ الرَّجُلَانِ عَلٰی هٰذَا الْأَمْرِ" دوو خلکو پر دغه شي حرص وکړی یعني هر یوه دا غوښتل چي زما څخه فوت نه سي "أَيْ حَرَصَ کُلُّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا عَلٰی أَنْ لَا یَفُوْتَهُ هٰذَا الْأَمْرُ"، دلته ځني مراد تنازع ده یعني جګړه او جنجال کول دي. لکه څرنګه چي په حاشیه کي ذکر سوي دي.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي یو غلام د زرو درهمو په عوض کي رهن (مرهون) دی او د هغه قیمت دوه زره رهمه دي او بیا هغه یو جنایت (جرم) وکړی، نو راهن او مرتهن دواړو ته دوه اختیاره حاصلیږي:

①... یا دواړه دي فدیه اداء کړي، ②... یا دي دواړه هغه جنایتکاره غلام ولي د جنایت ته ورکړي.

که چیري دواړه فدیه اختیار کړي، نو پر مرتهن او راهن دواړو نصف، نصف فدیه واجبیږي: ځکه چي د مرتهن قرض د غلام د نصف قیمت په اندازه دی (ځکه د مرتهن قرض زر درهمه دي او د غلام قیمت دوه زره درهمه دی)، نو د مرتهن سره د غلام نصف مضمون دی او د مضمون مقدار فدیه پر مرتهن واجب ده، نو ځکه نصف فدیه به هغه اداء کوي او د پاته نصف فدیه پر راهن واجب ده، نو ځکه نصف فدیه به راهن اداء کوي.

او که چیري دوی دواړه د غلام ورکول اختیار کړي چي ولي د جنایت ته دا جنایتکاره غلام ورکوو، نو دا هم جائز دي، لیکن په دې صورت کي د مرتهن قرض باطلیږي او ساقطیږي، ځکه چي په حقیقت کي د مرتهن له طرفه غلام ورکول نا معتبر او نا جائز دي؛ ځکه چي دا د مالک (راهن) کار دی چي غلام د جنایت ولي ته ورکړي او هغه ته یې وسپاري، حالانکي مرتهن د غلام مالک نه دی (مالک خو یې راهن دی)، نو ځکه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د دې وضاحت کړی دی چي د مرتهن کار د غلام پر ورکولو رضا او خوښي ښکاره کول دي (وانما منه الرضا إلخ). او ښکاره خبره ده چي که مرتهن (د خپل حق په ساقطولو) راضي سي نو د مرتهن حق ساقطیږي او باطلیږي.

فإن تشاحا إلخ: د دې حاصل دا دی چي که راهن او مرتهن اختلاف سره وکړي او راهن ووایي چي زه غلام ولي د جنایت ته ورکوم او مرتهن ووایي چي زه فدیه ورکوم. یا د دې برعکس دواړه ووایي. نو په دې صورت کي د هغه یوه قول معتبر دی کوم چي فدیه ورکول اختیار کړي، برابره ده هغه راهن وي او که مرتهن وي؛ ځکه په فدیه ورکولو کي نه د راهن نقصان دی او نه د مرتهن، حال دا چي د غلام په

ورکولو کي د مرتهن نقصان دی چي د هغه حق يعني قرض باطليږي، او شريعت موږ ته د داسي لاري داختيارولو حکم کړی دی چي په هغه کي د هيڅ ضرر او نقصان نه وي، نو ځکه د اختلاف په صورت کي به د فديه ورکونکي قول معتبر وي.

## که د مرهون اولاد جنايت وکړي نو فديه به څوک ورکوي؟

وَكَذَا فِيْ جِنَايَةِ وَلَدِ الرَّهْنِ إِذَا قَالَ الْمُرْتَهِنُ: أَنَا أَفْدِيْ او همدارنګه د مرهون د بچي په جنايت کي چي کله مرتهن ووايي: زه فديه ورکوم لَهُ ذٰلِكَ نو هغه ته د دې اختيار سته وَإِنْ كَانَ الْمَالِكُ يَخْتَارُ الدَّفْعَ که څه هم مالک [راهن] د بچي ورکول اختيار کړي لِأَنَّهُ إِنْ لَمْ يَكُنْ مَضْمُوْنًا ځکه بچی که څه هم مضمون نه دی فَهُوَ مَحْبُوْسٌ بِدَيْنِهِ خو [بيا هم] هغه د مرتهن د قرض په عوض کي محبوس دی وَلَهُ فِي الْفِدَاءِ غَرَضٌ صَحِيْحٌ او په فديه ورکولو کي د مرتهن صحيح غرض دی وَلَا ضَرَرَ عَلَى الرَّاهِنِ او پر راهن هيڅ ضرر هم نسته فَكَانَ لَهُ أَنْ يَفْدِيَ نو ځکه هغه ته به دا اختيار وي چي[مرتهن ته] فديه ورکړي وَأَمَّا الرَّاهِنُ فَلِأَنَّهُ لَيْسَ لِلْمُرْتَهِنِ وِلَايَةُ الدَّفْعِ او کوم چي راهن دی نو ځکه چي مرتهن لره د ورکولو ولايت نسته لِمَا بَيَّنَّا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ بيان کړی فَكَيْفَ يَخْتَارُهُ نو مرتهن څرنګه هغه [دفع] اختيارولای سي وَيَكُوْنُ الْمُرْتَهِنُ فِي الْفِدَاءِ مُتَطَوِّعًا فِيْ حِصَّةِ الْأَمَانَةِ او د امانت والا د حصې په فديه ورکولو کي به مرتهن متبرع وي حَتّٰى لَا يَرْجِعَ عَلَى الرَّاهِنِ تر دې چي پر راهن رجوع نه سي کولای لِأَنَّهُ يُمْكِنُهُ أَنْ لَا يَخْتَارَهُ ځکه چي مرتهن لره دا ممکن دي [يعني هغه ته دا اختيار هم سته] چي فديه ورکول اختيار نه کړي فَيُخَاطَبُ الرَّاهِنُ نو راهن به [په هغه سره] مخاطب وای فَلَمَّا الْتَزَمَهُ وَالْحَالَةُ هٰذِهِ نو کله چي مرتهن د فديې ورکول پر ځان لازم کړه او حالت دا دی [چي راهن به مخاطب وای] كَانَ مُتَبَرِّعًا نو مرتهن به متبرع وي وَهٰذَا عَلٰى مَا رُوِيَ عَنْ أَبِيْ حَنِيْفَةَ أَنَّهُ لَا يَرْجِعُ مَعَ الْحُضُوْرِ او دا له امام صاحب رَحِمَهُ الله څخه د نقل سوي يوه روايت مطابق دي چي متبرع به د راهن د حاضر والي په وخت کي رجوع نه کوي وَسَنُبَيِّنُ الْقَوْلَيْنِ إِنْ شَاءَ اللهُ تَعَالٰى او موږ به دواړه قولونه ان شاء الله تعالیٰ ژر بيان کړو.

**اللغات:** ﴿محبوس﴾ د ضرب د باب مفعول دی: راګرځول سوی. بند (بندي). ﴿متطوع﴾ د تفعل د باب فاعل دی: غیرلازم کار کونکی، احسان کونکی، یا په بله وینا بلاعوضه مفت ورکونکی. احساناً (د مرستې په توګه) ورکونکی. متبرّع. داسې کس د رجوع (واپس اخیستلو) حق نه لري.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که د مرهون (مثلاً د مرهونه مینځې) ځوی څه جنایت وکړي. نو د هغه فدیه پر مرتهن نه واجبیږي، ځکه چې د مرهون ځوی د مرتهن سره مضمون نه وي بلکې امانت وي او پر مرتهن صرف د مضمون مقدار فدیه او ضمان واجبیږي. نه د امانت. خو بیا هم که مرتهن د هغه فدیه اداء کول وغواړي. نو هغه ته د دې اختیار سته، ځکه چې د مرهون ځوی د مرتهن د قرض په عوض کې محبوس دی او په فدیه اداء کولو کې د هغه مقصد هم غوره او نېک غرض دی یعني تبرّع کول دي او د راهن په دې کې هیڅ ضرر نسته. بلکې د هغه ګټه ده چې: راهن له غارې څخه یو بار لیرې کیږي. نو ځکه که د ځوی د جنایت په فدیه ورکولو کې د راهن او مرتهن تر مینځ اختلاف راسي او مرتهن فدیه اداء کړي. نو مرتهن ته د دې اختیار سته: ځکه مرتهن د جنایت په عوض کې د مرهون ځوی نه سي ورکولای ځکه چې هغه د مرهون د ځوی مالک نه دی. نو ځکه هغه ته به د فدیې ورکولو حق او اختیار وي.

او که صورت د دې په خلاف وي یعني مرتهن وغواړي چې د مرهون ځوی ورکړي او راهن وغواړي چې فدیه ورکړي. نو په دې صورت کې د فدیې ورکول یعني د راهن قول معتبر دی: ځکه چې د مرتهن له طرفه د مرهون ځوی ورکول ممکن نه دي ځکه چې هغه یې مالک نه دی (لکه مخکې چې هم ذکر سوه). په همدې وجه فرمایي چې که مرتهن فدیه اداء کړي. نو هغه متبرّع کڼل کیږي او هغه ته بیا دا حق نسته چې له راهن څخه د فدیې مال واپس واخلي.

وهٰذا على ما روي إلخ: فرمايي چې په دې مسئله کې د مرتهن د فدیې ورکولو په صورت کې د هغه د متبرّع کېدلو حکم مطلق دی یعني راهن برابره ده حاضر وي او که غائب وي د امام صاحب رَحِمَهُ الله د یوه قول مطابق په هر صورت کې مرتهن متبرّع دی، لېکن په بعضې روایتونو کې قول د دې په خلاف ذکر سوی دی چې هغه به وروسته ذکر سي، لکه څرنګه چې صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایلي دي: وسنبيّن القولين إن شاء الله تعالى.

## د مرهون غلام د جنایت له فدیې ورکولو څخه د نکار کولو حکم

وَلَوْ أَبَى الْمُرْتَهِنُ أَنْ يَفْدِيَ او که چیري مرتهن انکار وکړي [له دې څخه] چې فدیه ورکړي وَفَدَاهُ الرَّاهِنُ او راهن د هغه فدیه ورکړي فَإِنَّهُ يُحْتَسَبُ عَلَى الْمُرْتَهِنِ نِصْفُ الْفِدَاءِ مِنْ دَيْنِهِ نو پر مرتهن به د هغه له قرض څخه نیمه فدیه حساب کیږي لِأَنَّ سُقُوطَ الدَّيْنِ أَمْرٌ لَازِمٌ ځکه چې د قرض

ساقطېدل يو لازمي امر دی فَدیٰ أَوْ دَفَعَ برابره ده راهن فديه ورکړي او که غلام ورکړي. فَلَمْ يُجْعَلِ الرَّاهِنُ فِي الْفِدَاءِ مُتَطَوِّعًا نو راهن به په فديه ورکولو کي متبرع نه ګرځول کيږي ثُمَّ يُنْظَرُ إِنْ كَانَ نِصْفُ الْفِدَاءِ مِثْلَ الدَّيْنِ أَوْ أَكْثَرَ بيا به کتل کيږي چي که نصف فديه د قرض په څېر يا تر هغه زيات وي بَطَلَ الدَّيْنُ نو قرض باطليږي وَإِنْ كَانَ أَقَلَّ او که قرض کم وي سَقَطَ مِنَ الدَّيْنِ بِقَدْرِ نِصْفِ الْفِدَاءِ نو له قرض څخه د نيمي فديې په اندازه ساقطيږي وَكَانَ الْعَبْدُ رَهْنًا بِمَا بَقِيَ او د پاته مقدار په عوض کي دا غلام رهن [مرهون] کيږي لِأَنَّ الْفِدَاءَ فِي نِصْفٍ كَانَ عَلَيْهِ ځکه چي نيمه فديه ورکول پر مرتهن لازمه وه فَإِذَا أَدَّاهُ الرَّاهِنُ وَهُوَ لَيْسَ بِمُتَطَوِّعٍ نو کله چي راهن هغه اداء کړه حال دا چي هغه متبرع نه دی كَانَ لَهُ الرُّجُوعُ عَلَيْهِ نو ځکه راهن ته به پر مرتهن د رجوع کولو حق وي فَيَصِيرُ قِصَاصًا بِدَيْنِهِ بيا به هغه د مرتهن د قرض په عوض کي مقاصه کيږي كَأَنَّهُ أَوْفَى نِصْفَهُ ګواکي راهن د مرتهن نيم قرض اداء کړی فَيَبْقَى الْعَبْدُ رَهْنًا بِمَا بَقِيَ نو ځکه غلام به د پاته مقدار په عوض کي رهن [مرهون] پاتيږي.

**اللغات:** ﴿فداه﴾ د ضرب د باب ماضي ده: فديه ورکول. ﴿يحتسب﴾ د افتعال له باب څخه د مضارع مجهولي صيغه ده: حسابېدل، حسابول، شمېرل (شمارل). ﴿فداء﴾ فديه، تاوان او جرمانه. تاکلی مقدار کوم چي (د جنايتکاره غلام) د ځان ژغورني لپاره ورکول کيږي. ﴿قصاص﴾ د مفاعلې د باب مصدر دی چي بل مصدر يې مُقاصة راځي دد يې څو معناوي دي: په بدله کي راګرځول او بدله اخيستل، يو شی د بل شي سره تبادله کول، ادل بدل کول (مثلاً پر زيد د خالد لس درهمه قرض باندي وي، او بيا د خالد هم پر زيد لس درهمه قرض باندي سي، نو دوی خپل قرضونه سره مقابله او ادل بدل کړي. دې ته مقاصه وايي). ﴿أوفى﴾ د افعال د باب ماضي ده: پوره اداء کول.

**تشريح:** د عبارت تر حلّ مخکي په دې ځان پوه کړئ! چي دا مسئله د مرهون د جنايت کولو سره متعلق ده، نه د هغه د ځوی د جنايت کولو سره، نو که چيري مرهون غلام (چي د هغه قيمت دوه زره درهمه دي) يو جنايت وکړي او مرتهن د هغه له فديه ورکولو څخه انکار وکړي چي د هغه په وجه تولـه فديه راهن اداء کړي، نو څرنګه چي پر مرتهن نصف فديه (يعني د مضمون مقدار فديه) واجب ده. نو ځکه راهن به له مرتهن څخه د نصف فديې مقدار واپس واخلي، يا راهن به هغه مقدار د مرتهن له قرض څخه ساقطوي: ځکه چي راهن د هغه له طرف په فديه ورکولو کي متبرع نه دی. لهذا څرنګه چي د

غلام ورکولو په صورت کي د مرتهن قرض باطليږي او ساقطيږي. نو همداسي که راهن د مرتهن د حصې فديه اداء کړي، نو هم د هغه له قرض څخه د نصف فديې په اندازه قرض ساقطيږي.

ثم ينظر إلخ: د دې حاصل دا دی چي کله د نصف فديې ورکول پر مرتهن لازم دي. نو تر ټولو مخکي به دې ته کتل کيږي چي د مرتهن قرض او د فديې نصف (کوم چي راهن د هغه له طرفه اداء کړی دی) سره برابر دي او که د فديې نصف تر زيات دی، که چيري برابر وي يا تر زيات وي. نو په دې دواړو صورتونو کي ټوله قرض باطليږي او ساقطيږي، او که قرض زيات وي مثلاً قرض زر درهمه وي او نصف فديه پنځه سوه درهمه وي. نو په دې صورت کي له قرض څخه د نصف فديې په اندازه ساقطيږي او غلام د پاته قرض يعني د پنځو سوو درهمو په عوض کي د مرتهن سره رهن (مرهون) پاتيږي: ځکه کله چي د نصف فديې ورکول پر مرتهن واجب دي او هغه اداء نه کړه بلکي د هغه پر ځای راهن اداء کړه او راهن متبرّع هم نه دی. نو ښکاره خبره ده چي هغه ته به دا اختيار وي چي له مرتهن څخه د نصف فديې مقدار واخلي، بيا که مرتهن هغه ورکړي، نو سمه ده، کنې د دې نصف فديې په اندازه د مرتهن قرض ساقطيږي او د راهن او مرتهن تر مينځ به داسي مقاصه کيږي چي ګواکي راهن د مرتهن نصف قرض اداء کړی دی او اوس فقط د پنځو سوو درهمو په عوض کي غلام مرهون دی.

## که مرتهن د راهن په موجوديت کي فديه اداء کړي (حکم)

وَلَوْ كَانَ الْمُرْتَهِنُ فَدَى وَالرَّاهِنُ حَاضِرٌ او که مرتهن فديه ادء کړي او راهن حاضر وي فَهُوَ مُتَطَوِّعٌ نو مرتهن متبرّع دی وَإِنْ كَانَ غَائِبًا ليکن که راهن غائب وي لَمْ يَكُنْ مُتَطَوِّعًا نو هغه متبرّع نه دی وَهَذَا قَوْلُ أَبِي حَنِيفَةَ او دا د امام صاحب رَحِمَهُ الله قول دی وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ وَمُحَمَّدٌ وَالْحَسَنُ وَزُفَرُ: او امام ابو يوسف، امام محمد، امام حسن او امام زفر رَحِمَهُمُ الله فرمايي الْمُرْتَهِنُ مُتَطَوِّعٌ فِي الْوَجْهَيْنِ چي مرتهن په دواړو صورتونو کي متبرّع دی لِأَنَّهُ فَدَى مِلْكَ غَيْرِهِ بِغَيْرِ أَمْرِهِ ځکه مرتهن د بل چا د ملکيت فديه اداء کړې ده د هغه له حکم څخه بغير فَأَشْبَهَ الْأَجْنَبِيَّ نو دا د اجنبي کس په شان سو.

وَلَهُ: أَنَّهُ إِذَا كَانَ الرَّاهِنُ حَاضِرًا د امام صاحب رَحِمَهُ الله دليل دا دی: چي کله راهن حاضر وي أَمْكَنَهُ مُخَاطَبَتُهُ نو راهن [په فديه سره] مخاطب کول ممکن دي [يا په بله وينا دا چي کله راهن حاضر وي. نو هغه په فديه اداء کولو مکلف کول ممکن دي] فَإِذَا فَدَاهُ الْمُرْتَهِنُ نو کله چي مرتهن فديه اداء کړه فَقَدْ تَبَرَّعَ كَالْأَجْنَبِيِّ نو د اجنبي کس په شان هغه تبرّع وکړه فَأَمَّا إِذَا كَانَ الرَّاهِنُ غَائِبًا ليکن کله چي راهن

غائب وي تَعَذَّرَ مُخَاطَبَتُهُ نو هغه مخاطب کول [په فديه ادا، کولو مکلف کول] ممکن نه دي وَالْمُرْتَهِنُ يَحْتَاجُ إِلَىٰ إِصْلَاحِ الْمَضْمُونِ او مرتهن د مضمون مقدار و اصلاح ته محتاج دی وَلَا يُمْكِنُهُ ذٰلِكَ إِلَّا بِإِصْلَاحِ الْأَمَانَةِ او مرتهن لره دا [د مضمون اصلاح] ممکنه نه ده مګر د امانت په اصلاح سره [یعني د امانت مقدار له اصلاح څخه بغیر مرتهن لره د مضمون مقدار اصلاح ممکنه نه ده] فَلَا يَكُونُ مُتَبَرِّعًا نو ځکه هغه به متبرع نه وي.

**اللغات**: ﴿متطوع﴾ د تفعل د باب فاعل دی: په خپله رضا بلا عوضه اداء کونکی. یا په بله وینا بلاعوضه مفت ورکونکی، احساناً (د مرستي په توګه) ورکونکی. متبرع. داسي کس د رجوع حق نه لري. ﴿تعذّر﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: مشکل کېدل. نا ممکن کېدل.

**تشریح**: **صورت د مسئلي**: دا دی چي که مرهون غلام یو جنایت وکړي او د غلام قیمت له قرض څخه زیات وي، نو له هغه څخه د مضمون مقدار (یعني د قرض د مقدار) فدیه پر مرتهن واجب ده او د زائد مقدار (کوم چي امانت دی) فدیه پر راهن واجب ده. اوس که چیري مرتهن د راهن فدیه هم اداء کړي. نو د دې څه حکم دی؟.

فرمایي چي په دې باره کي د امام صاحب رَحِمَهُ الله رایه دا ده چي که د راهن په موجودیت کي مرتهن د هغه فدیه اداء کړې وي، نو هغه متبرّع دی او که د راهن په نا موجودیت کي یې اداء کړې وي، نو متبرّع نه دی، د دې په خلاف د صاحبینو، امام زفر او امام حسن رَحِمَهُمُ الله رایه دا ده چي مرتهن په دواړو صورتونو کي متبرع دی برابره ده هغه د راهن په موجودیت کي د راهن د حصې فدیه اداء کړې وي او که د هغه په نا موجودیت کي؛ د دې حضراتو دلیل دا دی چي پر مرتهن (د قرض له مقدار څخه) د زائد مقدار (کوم چي د راهن حصه ده او د مرتهن سره امانت ده) فدیه ورکول لازم نه دي. او هغه د راهن له حکم څخه بغیر د هغه د حصې فدیه ادا کړې ده، نو ځکه په دې سلسله کي هغه د اجنبي په څېر دی، او که چیري اجنبي کس د بل چا له حکم څخه بغیر د هغه د حصې ضمان اداء کړي. نو هغه متبرّع کیږي، برابره ده هغه بل څوک موجود وي او که غائب وي. نو همداسي به په مذکوره مسئله کي هم په هر صورت کي مرتهن متبرّع وي.

وله إلخ: د امام صاحب رَحِمَهُ الله دلیل دا دی چي که راهن موجود وي. نو هغه د فدیې په اداء کولو مکلف کول ممکن دي، لهذا د راهن په موجودیت کي چي مرتهن فدیه اداء کړي. نو هغه به تبرّع وي او له تبرّع څخه بغیر بل څه نه سي کېدلای. لېکن که راهن موجود نه وي. نو هغه په فدیه اداء کولو مکلف کول نا ممکن دي او د مضمون مقدار (یعني د قرض) د حفاظت او اصلاح لپاره مرتهن د هغه فدیه اداء کولو ته محتاج او مجبوره دی، خو څرنګه چي د امانت مقدار (یعنيَ له قرض څخه د زائد مقدار) له

فديې اداء کولو څخه بغير دا ممکن نه دي (چي مرتهن د مضمون مقدار فديه اداء کړي). نو ځکه د امانت مقدار د فديې اداء کولو په باره کي هم مرتهن مجبوره دی. او مجبور متبرع کېدلای نه سي. په همدې وجه مونږ وايو چي که د راهن په ناموجوديت کي مرتهن د هغه د حصې (امانت مقدار) فديه اداء کړي. نو هغه متبرع نه دی او هغه ته دا حق سته چي د راهن د حصې په فديه کي چي څومره مقدار ورکړي. هغه بيرته له راهن څخه واخلي.

**که راهن مړ سي او د هغه وصي مرهون خرڅ کړي او قرض په اداء کړي نو څه حکم دی؟**

قَالَ: وَإِذَا مَاتَ الرَّاهِنُ فرمايي: او کله چي راهن مړ سي بَاعَ وَصِيُّهُ الرَّهْنَ وَقَضَى الدَّيْنَ نو د هغه وصي دي مرهون خرڅ کړي او قرض دي اداء کړي لِأَنَّ الْوَصِيَّ قَائِمٌ مَقَامَهُ ځکه چي وصي د راهن قائم مقام دی وَلَوْ تَوَلَّى الْمُوصِيُّ حَيًّا بِنَفْسِهِ او که خپله موصي [راهن] د ژوند په حالت کي متولي وای كَانَ لَهُ وِلَايَةُ الْبَيْعِ بِإِذْنِ الْمُرْتَهِنِ نو د مرتهن په اجازه سره به هغه لره د بيع [يعني د مرهون د خرڅولو] ولايت وای فَكَذَا الْوَصِيُّ نو همداسي به وصي لره هم [دا ولايت] وي وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَصِيٌّ او که د راهن هيڅ وصي نه وي نَصَبَ الْقَاضِي لَهُ وَصِيًّا نو قاضي دي د هغه لپاره يو وصي ودروي [مقرر کړي] وَأَمَرَهُ بِبَيْعِهِ او هغه ته دي د مرهون د خرڅولو حکم وکړي لِأَنَّ الْقَاضِيَ نُصِبَ نَاظِرًا لِحُقُوقِ الْمُسْلِمِينَ إِذَا عَجَزُوا عَنِ النَّظَرِ لِأَنْفُسِهِمْ ځکه چي قاضي د مسلمانانو د حقوقو لپاره د نګران [او محافظ] په توګه درول سوی دی کله چي مسلمانان له خپل مصلحت [او حفاظت] څخه عاجزه سي وَالنَّظَرُ فِي نَصْبِ الْوَصِيِّ لِيُؤَدِّيَ مَا عَلَيْهِ لِغَيْرِهِ او د وصي په درولو [مقرر کولو] کي مصلحت دا دی چي وصي هغه حق اداء کړي کوم چي پر موصي د بل چا لپاره دی [يعني د وصي پر موصي چي د بل چا کوم حق باندي دی. وصي هغه اداء کړي] وَيَسْتَوْفِيَ مَالَهُ مِنْ غَيْرِهِ او چي د موصي مال له بل چا څخه ترلاسه کړي.

**اللغات:** ﴿وصي﴾ هغه کس چي مړي (راهن) وصيت ورته کړی وي (چا ته چي مړي يو کار سپارلی وي).

﴿نَصَبَ﴾ د ماضي صيغه ده. له ضرب او نصر دواړو څخه راځي همدارنګه د تفعيل له باب څخه هم ويل کېدلای سي يعني نَصَّبَ: درول، مقرّر کول (ټاکل). ﴿ناظر﴾ نګران، ساتونکی او پام کونکی. د

مصلحت رعايت کونکی (مصلحت غوښتونکی)، ﴿النظر﴾ مصلحت (ښېګڼه)، ﴿يستوفی﴾ د استفعال د باب مضارع ده: (حق) ترلاسه کول، اخيستل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که راهن مړ سي، نو تر دې وروسته د راهن د وصي ذمه واري دا ده چې مرهون خرڅ کړي او د مرتهن قرض اداء کړي: ځکه وصي د موصي (مړي) قائم مقام دي، او که چيري خپله راهن ژوندی وای، نو ښکاره ده چې هغه به هم دغه کار کولای، لهذا کله چې اصل (راهن) ته د مرتهن په اجازه سره د مرهون د خرڅولو ولايت حاصل دی، نو د هغه نائب او قائم مقام يعني وصي ته به هم دا ولايت حاصل وي.

لېکن که چې د راهن وصي نه وي، نو قاضي دي د هغه له طرفه يو وصي مقرر کړي او هغه ته دي د مرهون د خرڅولو حکم وکړي؛ ځکه چې قاضي د مسلمانانو د معاملاتو او حقوقو لپاره د مُحافظ او مُنتظِم په توګه ټاکل سوی دی چې د هغوی د حقوقو حفاظت وکړي او د هغو تر مينځ د مصلحت او انصاف فيصلې وکړي، لهذا کله چې يو مسلمان د ځان لپاره له مصلحت اختيارولو څخه محروم سي (لکه دلته چې راهن د مرګ په وجه محروم سوی دی)، نو د قاضي فريضه دا ده چې د هغه په حق کې پر مصلحت او شفقت مبني فيصله وکړي. او په دې پورتني صورت کې د راهن له طرفه د وصي مقرر کولو فايده دا ده چې که پر دغه مړه راهن د يو چا حق باندي وي، نو وصي به هغه ورکړي او که د راهن پر بل چا حق باندې وي، نو هغه به ځني ترلاسه کړي چې د راهن حساب وکتاب بالکل صفا او ختم سي.

## د مړي په خو قرضخواهانو کې يوه ته رهن ايښوول (حکم او تفصيل)

وَإِنْ كَانَ عَلَى الْمَيِّتِ دَيْنٌ او که پر مړي قرض باندي وي فَرَهَنَ الْوَصِيُّ بَعْضَ التَّرِكَةِ عِنْدَ غَرِيمٍ مِنْ غُرَمَائِهِ نو [د مړي] وصي د ميراث بعضي حصه [د مړي] له قرضخواهانو څخه يوه قرضخواه ته په رهن ورکړي لَمْ يَجُزْ نو دا جائز نه دي وَلِلْآخَرِينَ أَنْ يَرُدُّوهُ او نورو قرضخواهانو ته دا حق سته چې هغه [مرهونه حصه] را واپس کړي [يعني د ميراث بعضي حصه له مرتهن قرضخواه څخه واپس واخلي] لِأَنَّهُ آثَرَ بَعْضَ الْغُرَمَاءِ بِالْإِيفَاءِ الْحُكْمِيِّ ځکه چې وصي په حکمي ايفاء [حکماً قرض اداء کولو] سره بعضي د قرضخواهانو [مرتهن قرضخواه] ته ترجيح ورکړې ده [ځکه قرضخواه ته يو شی په رهن ورکول

حکماً داسي دي لکه قرض ورکول] فَأَشْبَهَ الْإِيْثَارَ بِالْإِيْفَاءِ الْحَقِيْقِيِّ نو دا په حقيقي ايفاء سره د ترجيح ورکولو په شان سوه فَإِنْ قَضٰى دَيْنَهُمْ قَبْلَ أَنْ يَرُدُّوْهُ بيا که وصي د قرضخوهانو قرض اداء کړي مخکي تر دې چي دوی هغه [مرهونه حصه] راواپس کړي جَازَ نو جائز دي لِزَوَالِ الْمَانِعِ بِوُصُوْلِ حَقِّهِمْ إِلَيْهِمْ ځکه دوی ته د خپل حق [قرض] د رسېدلو په وجه مانع زائل سو وَلَوْلَمْ يَكُنْ لِلْمَيِّتِ غَرِيْمٌ آخَرُ او که چيري د مړي لپاره بل قرضخواه نه وي جَازَ الرَّهْنُ نو رهن جائز دی اِعْتِبَارًا بِالْإِيْفَاءِ الْحَقِيْقِيِّ پر حقيقي ايفاء په قياس کولو سره وَبِيْعَ فِيْ دَيْنِهِ او مرهون [مرهونه حصه] به د هغه په قرض کي خرڅول کيږي لِأَنَّهُ يُبَاعُ فِيْهِ قَبْلَ الرَّهْنِ ځکه چي هغه تر رهن مخکي هم په قرض کي خرڅول کېدلای سي فَكَذَا بَعْدَهُ نو همداسي تر رهن وروسته [به هم خرڅول کېدلای سي].

**اللغات:** ﴿غرماء﴾ جمع د "غَرِيْمٌ": د قرض مالک، قرضخواه (قرض غوښتونکی)، چا چي بل چا ته قرض ورکړی وي. ﴿آثر﴾ د افعال د باب ماضي: ترجيح او فضيلت ورکول. ﴿وصول﴾ د ضرب د باب مصدر دی: رسېدل. ﴿إيفاء﴾ د افعال د با مصدر دی: (حق) اداء کول.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که يو سړی مړ سي او پر هغه د څو خلګو قرض باندي وي. بيا د مړي وصي په هغه خلګو (قرضخواهانو) کي يوه ته د مړي څه ميراث په رهن ورکړي. نو دا جائز نه دي او نورو قرضخواهانو ته دا حق سته چي هغه مرهون ميراث له مرتهن څخه واپس واخلي؛ ځکه په رهن ورکول حکماً داسي دي لکه قرض اداء کول، او په حکماً قرض اداء کولو سره هم ترجيح بلا مرجح لازميږي، لهذا څرنګه چي دا جائز نه دي چي بعضي قرضخواهانو ته قرض ورکول سي او بعضي پرېښوول سي چي په دې کي ترجيح بلا مرجح لازميږي او چي کوم بعضي پرېښوول سي د هغو حق مانع ګرځي. نو همداسي په حکماً قرض اداء کولو سره هم دا خرابي پېښيږي. نو ځکه دا هم جائز نه دي. ها! که چيري نورو قرضخواهانو تر اوسه هغه مرهون ميراث له مرتهن څخه اخيستی نه وي چي په دې دوران کي وصي د هغو قرض اداء کړي. نو څرنګه چي اوس هغو ته خپل حق ورسېدی او د هغو د حق مانع کېدل زائل سوه. نو ځکه اوس دا رهن جائز او صحيح دی.

ولم لم يکن إلخ: د دې حاصل دا دی چې که پر مړي فقط د يوه کس قرض باندي وي او بيا وصي د مړي څه ميراث هغه ته په رهن ورکړي، نو جائز دي: ځکه چې د هغه يوه کس (قرضخواه) هيڅ مقابل نسته چې د هغه په وجه د ده حق باطل سي. او بل دا چې کله د يوه قرضخواه په حق کي حقيقي ايفاءً (حقيقتاً قرض اداء کول) جائز دي. نو حکمي ايفاء خو به په درجه اولیٰ جائز وي.

ويبيع في دينه إلخ: يعني که د قرض اداء کولو لپاره دا مرهون ميراث خرڅ کړی سي. نو دا هم جائز دي: ځکه کله چې د قرض لپاره تر رهن مخکي د هغه خرڅول جائز دي. نو تر رهن وروسته به هم جائز وي.

## که وصي د مړي د قرض په عوض کي رهن (مرهون) واخلي (حکم)

وَإِذَا ارْتَهَنَ الْوَصِيُّ بِدَيْنٍ لِلْمَيِّتِ عَلَى رَجُلٍ او کله چي وصي رهن واخلي د هغه قرض په عوض کي کوم چي د مړي [موصي] پر يو سړي باندي وي جَازَ نو جائز دي لِأَنَّهُ اِسْتِيفَاءٌ ځکه چي رهن اخيستل [ګواکي قرض] ترلاسه کول دي وَهُوَ يَمْلِكُهُ او وصي د دې ملکيت [او اختيار] لري اچي د مړي قرض ترلاسه کړي] قَالَ ﷺ: وَفِي رَهْنِ الْوَصِيِّ تَفْصِيلَاتٌ نَذْكُرُهَا فِي كِتَابِ الْوَصَايَا إِنْ شَاءَ اللّٰهُ تَعَالىٰ او د وصي په رهن کي نور تفصيلات [او مباحث] سته چي هغه به موږ ان شاء الله تعالیٰ په کتابُ الوصايا کي بيان کړو.

**اللغات**: ﴿ارتهن﴾ د افتعال د باب ماضي ده: رهن اخيستل (د رهن په توګه يو شی اخيستل).

﴿استيفاء﴾ (حق) ترلاسه کول، اخيستل.

**تشريح**: د عبارت حاصل دا دی چې که د مړي پر يو کس (مثلاً پر زيد) قرض باندي وي. بيا د مړي وصي د هغه قرض په عوض کي له مقروض (زيد) څخه يو شی د رهن په توګه اخلي؛ نو دا هم جائز دي: ځکه چې دا استيفاء ده يعني د دې په ذريعه د مړي قرض ترلاسه کول کيږي. او وصي د استيفاء اختيار لري، نو ځکه دا عمل جائز دی. صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چې د وصي د رهن په هکله نور تفصيلات به موږ ان شاء الله په کتابُ الوصايو کي بيان کړو. فانتظروا إني معكم من المنتظرين.

❀❀❀

# فَصْلٌ (فِيْ بَيَانِ الْمَسَائِلِ الْمُتَفَرِّقَةِ)

## (دا) فصل (د بېلابېلو مسئلو په بيان كې) دى

**تشريح:** څرنګه چې په داسې فصل كې هغه بېلابېلې مسئلې ذكر كول كېږي كوم چې له مصنف او مؤلف څخه په مخكينيو بابونو او فصلونو كې پاته شوي وي (يعني مسائل متروكة) چې هغوى بايد ذكر كړل شي، نو ځكه دا فصل په آخر كې بيان كړى شوى دى چې د مخكې سره اړوند ټول مسائل متروكة په كښې بيان كړل شي.

### د مرهون شي د بدلېدلو حكم

قَالَ: وَمَنْ رَهَنَ عَصِيْرًا بِعَشَرَةٍ قِيْمَتُهُ عَشَرَةٌ فرمايي: او څوک چې د لسو درهمو په عوض كې د انګورو [دومره] رَسْ په رهن وركړي چې د هغه قيمت لس درهمه وي فَتَخَمَّرَ بيا هغه [رَسْ] شراب وګرځي ثُمَّ صَارَ خَلًّا يُسَاوِيْ عَشَرَةً بيا سركه وګرځي چې هغه [هم] د لسو درهمو سره برابره وي فَهُوَ رَهْنٌ بِعَشَرَةٍ نو هغه د لسو درهمو په عوض كې رهن ده لِأَنَّ مَا يَكُوْنُ مَحَلًّا لِلْبَيْعِ ځكه كوم شى چې د بيع محل كېدلاى شي يَكُوْنُ مَحَلًّا لِلرَّهْنِ هغه د رهن [هم] محل كېدلاى شي إِذِ الْمَحَلِّيَّةُ بِالْمَالِيَّةِ فِيْهِمَا ځكه چې په دې دواړو [بيع او رهن] كې محل والى د مال كېدلو په اعتبار سره دى وَالْخَمْرُ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ مَحَلًّا لِلْبَيْعِ ابْتِدَاءً او شراب كه څه هم ابتداءً محل د بيع نه دي فَهُوَ مَحَلٌّ لَهُ بَقَاءً ليكن بقاءً [او انتهاءً] هغه محل د بيع دي حَتّٰى أَنَّ مَنِ اشْتَرٰى عَصِيْرًا .همدا وجه ده كه څوک د انګورو رَسْ رانيسي فَتَخَمَّرَ قَبْلَ الْقَبْضِ بيا هغه تر قبضې مخكې شراب وګرځي يَبْقَى الْعَقْدُ نو [هم] عقد بيع باقي پاتېږي إِلَّا أَنَّهُ يَتَخَيَّرُ فِي الْبَيْعِ لِتَغَيُّرِ وَصْفِ الْمَبِيْعِ خو د بيع په هكله مشتري اختيارمن كېږي د مبيع د وصف متغيّر كېدلو په وجه بِمَنْزِلَةِ مَا إِذَا تَعَيَّبَ لكه كله چې مبيع عيبجنه شي.

**اللغات:** ﴿عصير﴾ له انګورو څخه نچوړل شوي اوبه، د انګورو رَسْ. ﴿تخمّر﴾ د تفعّل ماضي ده: شراب كېدل، شراب ګرځېدل. ﴿تعيّب﴾ د تفعّل د باب ماضي ده: عيبناک كېدل، عيبجن كېدل.

**تشريح : صورت د مسئلې :** دا دی چې که یو څوک د لس درهمه قرض په عوض کې د انګورو رَسْ په رهن ورکړي او د رَسْ قيمت هم لس درهمه وي، بيا هغه رَسْ شراب وګرځي او بيا سرکه وګرځي او اوس هم د هغه قيمت لس درهمه وي، نو دا سرکه د مخکينې لسو درهمو په عوض کې رهن (مرهونه) کيږي او داسې عقد رهن جائز او صحيح دی؛ ځکه قاعده دا ده چې کوم شی د بيع محل (يعني مبيع) کېدلای سي، هغه شی د رهن محل (يعني مرهون) هم کېدلای سي. او د انګورو رَسْ او سرکه دواړه مبيع کېدلای سي، نو ځکه هغه دواړه به مرهون کېدلای هم سي، نو ځکه د هغوی رهن جائز دی. او بيا دا چې د مبيع او مرهون محليّت (محل کېدل) په رَسْ او سرکه کې د ماليت (مال کېدلو) سره متعلق دي يا په بله وينا دا چې د بيع او رهن محل کېدل په ماليت سره کيږي (چې کوم شی مال وي هغه مبيع او مرهون کېدلای سي) او دا دواړه شيان مال دي، نو په دې حواله سره د هغوی رهن جائز دی.

او شراب که څه هم ابتداءً د بيع محل نه سي کېدلای، لېکن په بقاء (انتهاء) کې هغه د بيع محل کېدلای سي، همدا وجه ده چې که يو کس د انګورو رَسْ رانيسي لېکن تر اوسه يې پر هغه قبضه کړې نه وي چې هغه شراب وګرځي، نو په دې صورت هم عقد بيع باقي پاتيږي؛ ځکه چې شراب هم مال دي که څه هم هغه د مسلمان په حق کې متقوّم (قيمت لرونکې) مال نه دی، او څرنګه چې د بيع او رهن تعلق د ماليت (مال کېدلو) سره دی، نو ځکه په دې صورت کې عقد بيع جائز ده. لهذا کله چې د دې شرابو کوم چې بقاءً متقوّم نه دي بيع جائز ده، نو هغه شراب کوم چې په بقاء (انتهاء) کې سرکه ګرځېدلي دي، د هغه بيع خو به په درجه اولیٰ جائز وي، خو د عقد بيع په مسئله کې مشتري ته د بيع کولو او ماتولو (فسخ کولو) اختيار سته (چې که خوښه يې بيع دې نافذ پرېږدي. کنې بيع دې ماته کړي)؛ ځکه چې د مبيع وصف له رَسْ (عصير) څخه په سرکه بدل سوی دی، نو څرنګه چې د مبيع د معيوب کېدلو په صورت کې مشتري ته اختيار حاصليږي، نو همداسې په دې مسئله کې به هم هغه ته اختيار حاصليږي. (احسن الهدايه)

## د مرهون خاروي د مړ کېدلو حکم

وَلَوْ رَهَنَ شَاةً قِيْمَتُهَا عَشَرَةٌ بِعَشَرَةٍ او که چيري څوک داسې بزه په رهن ورکړي چې د هغه قيمت لس درهمه وي، د لسو درهمو په عوض کې [يې په رهن ورکړي] فَمَاتَتْ بيا هغه بزه مړه سي فَدُبِغَ جِلْدُهَا او د هغه څرمن ته دباغت ورکول سي فَصَارَ يُسَاوِيْ دِرْهَمًا نو [د دباغت په وجه] هغه څرمن د يوه درهم برابره وګرځي فَهُوَ رَهْنٌ بِدِرْهَمٍ نو هغه د يوه درهم په عوض کې رهن ده لِأَنَّ الرَّهْنَ يَتَقَرَّرُ

بِالْهَلَاكِ ځکه چي [د مرهون] د هلاکېدلو په وجه رهن نور ثابتيږي فَإِذَا حَيِيَ بَعْضُ الْمَحَلِّ لېکن کله چي د محل [مرهون] بعضي حصه [څرمن] موجوده پاته سوه يَعُوْدُ حُكْمُهُ بِقَدْرِهِ نو د هغه په اندازه به د رهن حکم راګرځي بِخِلَافِ مَا إِذَا مَاتَتِ الشَّاةُ الْمَبِيْعَةُ قَبْلَ الْقَبْضِ په خلاف د هغه صورت کله چي خرڅ کړې سوې پسه تر قبضې مخکي مړ سي فَدُبِغَ جِلْدُهَا او د هغه څرمن ته دباغت ورکول سي حَيْثُ لَا يَعُوْدُ الْبَيْعُ نو بيع نه راګرځي لِأَنَّ الْبَيْعَ يُنْتَقَضُ بِالْهَلَاكِ قَبْلَ الْقَبْضِ ځکه چي تر قبضې مخکي [د مبيع] په هلاکېدلو سره بيع ماتيږي وَالْمُنْتَقَضُ لَا يَعُوْدُ او ماته سوې بيع [سودا] نه راګرځي أَمَّا الرَّهْنُ يَتَقَرَّرُ بِالْهَلَاكِ کوم چي رهن دی نو هغه [د مرهون] په هلاکېدلو سره نور ثابتيږي عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ لکه څرنګه چي [څه مخکي] موږ بيان کړه وَمِنْ مَشَايِخِنَا مَنْ يَمْنَعُ مَسْأَلَةَ الْبَيْعِ او زموږ له مشايخو څخه بعضي د بيع دا مسئله منع کوي وَيَقُوْلُ: يَعُوْدُ الْبَيْعُ او وايي: چي بيع [هم] راګرځي.

**اللغات:** ﴿شاة﴾ مخکي ذکر سوه چي دا عام اسم دی: پسه، وزکړي، بزه (وزه) ټولو باندي يې اطلاق کيږي. ﴿دُبِغَ﴾ ماضي مجهوله ده. له نصر، فتح او ضرب ټولو څخه راځي، دَبَغَ يَدْبَغُ دِبَاغَةً: دباغت ورکول پوست ته رنګ ورکول. يعني څرمن وچول او پخول (د مسالې، مالګي يا د لمر او داسي نورو شيانو په ذريعه د پوست لوندوالی او بدبويي ورختمول). ﴿جلد﴾ څرمن (څرمنه). پوست.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که زيد مثلاً له خالد څخه لس درهمه په قرض واخلي او هغه ته خپل يو پسه په رهن ورکړي چي د هغه قيمت لس درهمه وي، بيا هغه پسه د مرتهن سره هلاک سي خو مرتهن له هغه څخه څرمن وکاږي او دباغت ورکړي چي په دې سره هغه څرمن د يوه درهم قيمت والا سي، نو حکم دا دی چي د مرتهن له قرض څه نهه درهمه ساقطيږي او يو درهم پاتيږي چي د هغه په عوض کي دا څرمن رهن (مرهون) پاتيږي؛ ځکه د رهن حکم دا دی چي د مرهون شي په هلاکت سره هغه نور ثابتيږي او مضبوطي پکښې راځي، بيا که چيري د مرتهن قرض د هلاک سوي مرهون شي د قيمت سره برابر وي، نو د هغه ټوله قرض ساقطيږي. خو څرنګه چي په مذکوره مسئله کي پاته مرهون د يوه عُشر يعني د يوه درهم سره برابر دی. نو ځکه د مرتهن قرض هم په همدې مقدار سره باقي پاتيږي او نور ساقطيږي او دا د يوه درهم څرمن د يوه درهم قرض په عوض کي رهن (مرهونه) ګرځي.

بخلاف إلخ: د دې حاصل دا دی چي د بيع حکم له رهن څخه جلا دی. چي که د بيع په صورت کي تر قبضې مخکي رانيول سوی پسه مړ سي او بيا د هغه څرمن وېستل سي او دباغت ورکول سي. نو که

څه هم هغه څرمن د مبيع د قيمت سره برابره سي. لېکن بيا هم هغه مبيـع نه ګرځي (لکه چي د رهن په صورت کي هغه مرهونه ګرځي). ځکه چي د مبيع (پسه) د هلاکېدلو په وجه بيع فسخ سوه (ماته سوه) او فسخ سوی شی عود نه کوي. حال دا چي د مرهون د هلاکېدلو په وجه رهن نه فسخ کيږي بلکي نور ثابتيږي او پوره کيږي. نو ځکه رهن عود کوي او په همدې حواله سره د رهن او بيع تر مينځ فرق دی او دواړه يو ګڼل صحيح نه دي. حال دا چي بعضې مشايخو رهن او بيع دواړه په دې هکله يو ګڼلي دي او ويلي يې دي چي داسي بيع هم عود کوي. لېکن اصح او معتمد قول په دواړو کي د فرق او په بيع کي د عدم عود دی.

## که مرهون شی وده وکړي او اضافه سي نو څه حکم دی؟

قَالَ: وَنَمَاءُ الرَّهْنِ لِلرَّاهِنِ فرمايي: او د مرهون وده [او اضافه] د راهن ده وَهُوَ مِثْلُ الْوَلَدِ وَالثَّمَرِ وَاللَّبَنِ وَالصُّوْفِ او وده [اضافه] مثلاً بچي، مېوه، شيدې، وړۍ. لِأَنَّهُ مُتَوَلِّدٌ مِنْ مِلْكِهِ ځکه چي نماء [وده] د همدې راهن له ملکيت څخه پيدا کېدونکې ده وَيَكُونُ رَهْنًا مَعَ الْأَصْلِ او نماء د اصل سره رهن کيږي لِأَنَّهُ تَبَعٌ لَهُ ځکه چي نماء د اصل تابع ده وَالرَّهْنُ حَقٌّ لَازِمٌ او رهن يو لازم حق دی فَيَسْرِي إِلَيْهِ نو ځکه هغه به د تابع وطرف ته [هم] سرايت کوي فَإِنْ هَلَكَ بيا که نماء [وده] هلاکه سي يَهْلِكُ بِغَيْرِ شَيْءٍ نو بغير له څه عوض څخه هلاکيږي لِأَنَّ الْأَتْبَاعَ لَا قِسْطَ لَهَا مِمَّا يُقَابَلُ بِالْأَصْلِ ځکه چي توابعو لره هيڅ حصه نسته له هغه قرض څخه کوم چي د اصل مقابل وي [يعني کوم قرض چي د اصل مرهون په مقابله کي وي. په هغه کي د اتباعو لپاره هيڅ حصه نسته] لِأَنَّهَا لَمْ تَدْخُلْ تَحْتَ الْعَقْدِ مَقْصُوْدًا ځکه اتباع په قصدي توګه تر عقد لاندي نه داخليږي إِذِ اللَّفْظُ لَا يَتَنَاوَلُهَا ځکه چي [د عقد] لفظ هغوی لره نه شامليږي.

**اللغات:** ﴿نماء﴾ وده، اضافه وزياتوب. نمو. ﴿صوف﴾ وړۍ. د پسونو او مېږو وربښته. ﴿يسري﴾ د ضرب مضارع ده: سرايت کول. ﴿يهلك﴾ د مضارع صيغه ده. له ضرب. فتح او سمع تړلو بابونو څخه راځي: هلاکېدل. فنا کېدل. نيست ونابود کېدل.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که مرهون د مرتهن سره وده وکړي او يو ډول اضافه پکښې راسي، نو هغه د راهن کيږي. مثلاً که مرهونه مينځه بچي وزېږوي نو هغه د راهن کيږي. ځکه چي دا اضافه د همدې راهن د ملکيت (يعني د مرهون) پيداوار دی او مرهون د راهن په ملکيت کي دی. نو ځکه د هغه اضافه به هم د راهن په ملکيت کي وي. خو د مرهون سره دا اضافه هم رهن ګرځي (چي د مرتهن

په قبضه کي به دواړه پرېښوول کيږي)؛ ځکه چي دا اضافه (وده) د هغه تابع ده او عقد رهن لازم حق دی. نو ځکه هغه د خپل تابع وطرف ته هم سرایت کوي او د اصل سره تابع هم رهن ګرځوي. خو څرنګه چي د دې تابع (اضافه) په مقابله کې د اصل مرهون او قرض هیڅ حصه نسته. نو ځکه که دا هلاکه سي. نو پر مرتهن نه د هغه څه عوض واجبيږي او نه د هغه په هلاکېدلو سره څه قرض ساقطيږي؛ ځکه کوم قرض چي د اصل په مقابله کي، په هغه کي تابع لره هیڅ حصه نه وي، او بیا تابع په مقصودي توګه تر عقد لاندي داخليږي هم نه. او لفظ د عقد صرف اصل لره شامليږي، نه تابع لره. لهذا کله چي په عقد کي توابعو لره هیڅ شمار او اعتبار نسته. نو ښکاره خبره ده چي څرنګه هغوی مفت (ببلا عوضه) راغلي دي، هغسي به مفت ساقطيږي هم. (احسن الهدايه)

## که مرهون شی هلاک سي او اضافه يې پاته سي نو څه حکم دی؟

وَإِنْ هَلَكَ الْأَصْلُ وَبَقِيَ النَّمَاءُ او که اصل هلاک سي او وده [اضافه] باقي پاته سي اِفْتَكَّهُ الرَّاهِنُ بِحِصَّتِهِ نو راهن به هغه [وده] د هغه د حصې په عوض کي راخلاصوي يُقَسَّمُ الدَّيْنُ عَلَى قِيمَةِ الرَّهْنِ يَوْمَ الْقَبْضِ [يعني] قرض به تقسيمول کيږي د مرهون د قبضې د ورځې پر قيمت وَقِيمَةِ النَّمَاءِ يَوْمَ الْفِكَاكِ او د نماء د راخلاصولو د ورځي پر قيمت لِأَنَّ الرَّهْنَ يَصِيرُ مَضْمُونًا بِالْقَبْضِ ځکه چي رهن [مرهون] په قبضې سره مضمون ګرځي وَالزِّيَادَةُ تَصِيرُ مَقْصُودَةً بِالْفِكَاكِ او زياتوب [نماء] په راخلاصولو سره مقصود ګرځي إِذَا بَقِيَ إِلَى وَقْتِهِ [په دې شرط] کله چي د راخلاصولو تر وخته پوري باقي پاته وي وَالتَّبَعُ يُقَابِلُهُ شَيْءٌ إِذَا صَارَ مَقْصُودًا او تابع چي کله مقصود وګرځي نو د هغه په مقابله کي هم [د مال] څه حصه راځي كَوَلَدِ الْمَبِيعِ لکه د مبيع بچی فَمَا أَصَابَ الْأَصْلَ نو کوم مقدار چي اصل مرهون ته ورسيږي يَسْقُطُ مِنَ الدَّيْنِ نو هغه له قرض څخه ساقطيږي لِأَنَّهُ يُقَابِلُهُ الْأَصْلُ مَقْصُودًا ځکه هغه مقدار په قصدي توګه د اصل په مقابله کي دی وَمَا أَصَابَ النَّمَاءَ او کوم مقدار چي نماء ته ورسيږي اِفْتَكَّهُ الرَّاهِنُ نو هغه به راهن راخلاصوي لِمَا ذَكَرْنَا د هغه دليل په وجه کوم چي موږ ذکر کړی وَصُوَرُ الْمَسَائِلِ عَلَى هَذَا الْأَصْلِ تُخَرَّجُ او پر دغه قاعده کليه د مسئلو د ډېرو صورتونو تخريج کيږي وَقَدْ ذَكَرْنَا بَعْضَهَا فِي كِفَايَةِ الْمُنْتَهِي او له هغوی څخه بعضي موږ په کفاية المنتهي کي ذکر کړي دي وَتَمَامُهُ فِي الْجَامِعِ وَالزِّيَادَاتِ او د دې پوره تفصيل په جامع کبير او زيادات کي دی.

**اللغات:** ﴿افتكه﴾ دافتعال د باب ماضي ده: (مرهون) راخلاصول. يعني د مرتهن حق (قرض) اداء کول او مرهون ځني اخيستل. ﴿تَبَع﴾ تابع، جمع: أتباع.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که اصل (مرهون شی) هلاک سي او د هغه نماء او اضافه پاته سي، مثلاً مرهونه مينځه مړه سي او د هغې بچی پاته سي، نو په دې صورت کې به اول دې ته کتل کيږي چې قرض څو دی او د اصل (مرهونه مينځې) او نماء (بچي) قيمت څو دی؟، نو د نماء په مقابله کې چې کوم قيمت راسي، راهن به هغه مرتهن ته ورکوي او خپل مرهون يعني نماء به واپس ځني اخلي، او د مرهون د يومُ القبض والا قيمت معتبر دی (په کومه ورځ چې مرتهن له راهن څخه مرهون اخيستی او قبضه کړی وي) او د نماء د يومُ الفكاک والا قيمت معتبر دی (په کومه ورځ چې نماء [بچی] له مرتهن څخه خلاصول کيږي)؛ ځکه چې مرهون په همدې قبضه سره مضمون ګرځي او نماء په خلاصولو (فکاک) سره مقصود ګرځي. نو ځکه على الترتيب به په دوی کې د يومُ القبض او يومُ الفكاک قيمت معتبر وي.

كوله المبيع إلخ: دا د پورتنۍ مسئلې لپاره مثال دی. وضاحت يې دا دی چې که زيد له خالد څخه زر درهمه په قرض واخلي او هغه ته خپل يوه مينځه په رهن وکړي چې د هغې قيمت هم زر درهمه وي، بيا هغه مينځه يو بچی (غلام) وزيږوي او د هغه قيمت پنځه سوه درهمه وي، بيا مينځه هلاک سي او د مينځې پر ځای بچی د مرتهن په قبضه کې پاته سي، اوس که چيرې راهن (زيد) وغواړي چې له مرتهن (خالد) څخه هغه بچی واخلي، نو د پورتنۍ مسئلې په څېر دلته به هم قرض او د اصل او بچي د قيمت تناسب ته کتل کيږي، څرنګه چې دلته د اصل قيمت د نماء د قيمت دوچنده دی يعني د اصل (مرهونه مينځې) قيمت زر درهمه دی او د نماء (بچي) قيمت پنځه سوه درهمه دی (لهذا د اصل قيمت دوچنده سو)، او څرنګه اصل هلاک سوی دی، نو ځکه له قرض څخه به د دوچنده قيمت په اندازه ساقطيږي او د نماء د قيمت په اندازه قرض به باقي پاتيږي، ګواکي دا زر درهمه قرض به ټوله درې حصې کيږي چې له هغه څخه دوې حصې يعني شپږ سوه شپږ شپېته (٦٦٦) درهمه به ساقطيږي او يوه حصه درې سوه درو دېرش (٣٣٣) درهمه به باقي پاتيږي چې هغه به راهن و مرتهن ته ورکوي او د مرهون بچی به ځني خلاصوي، همدا د "فما أصاب الأصل يسقط من الدين" او د "وما أصاب النماء افتكه الراهن" وضاحت دی.

وصور المسائل إلخ: فرمايي چې په دې مسئله کې مورږ داسي قاعدهٔ کُليه بنوولې ده چې پر هغه ډير صورتونه متفرّع کيږي، چې له هغوی څخه بعضي صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله په كفاية المنتهي کې [illegible] کړي دي او د هغوی بشپړ وضاحت په جامع كبير او زيادات کې مذکوره دی.

## د مرهونه خاروي شيدې استعمالول

وَلَوْ رَهَنَ شَاةً بِعَشَرَةٍ او كه چيري څوک يوه بزه د لسو درهمو په عوض کي په رهن ورکړي وَقِيْمَتُهَا عَشَرَةٌ او د هغې قيمت [هم] لس درهمه وي وَقَالَ الرَّاهِنُ لِلْمُرْتَهِنِ: او راهن مرتهن ته ووايي اِحْلِبِ الشَّاةَ فَمَا حَلَبْتَ فَهُوَلَكَ حَلَالٌ چي بزه لوښه! او ته چي کوم څه [شيدې] ولوښې نو هغه ستا لپاره حلال [روا] دي فَحَلَبَ وَشَرِبَ بيا مرتهن شيدې ولوښي او هغه وڅيښي فَلَا ضَمَانَ عَلَيْهِ فِي شَيْءٍ مِنْ ذٰلِكَ نو پر مرتهن له هغه څخه د هيڅ شي ضمان [تاوان] نسته أَمَّا الْإِبَاحَةُ فَيَصِحُّ تَعْلِيقُهَا بِالشَّرْطِ وَالْخَطَرِ کوم چي اباحت [رواکول] دي نو هغه پر شرط مُعلق کول صحيح دي لِأَنَّهَا إِطْلَاقٌ وَلَيْسَ بِتَمْلِيْكٍ ځکه چي اباحت خو اطلاق [يعني جائز کول] او تمليک [مالک کول] نه دي [ځکه ښکاره خبره ده چي راهن د مرتهن لپاره صرف شيدې روا کړي دي. او د هغه يې مالک کړی نه دی] فَتَصِحُّ مَعَ الْخَطَرِ نو ځکه هغه [اباحت] به د شرط سره [هم] صحيح وي وَلَا يَسْقُطُ شَيْءٌ مِنَ الدَّيْنِ او له قرض څخه هيڅ هم نه ساقطيږي لِأَنَّهُ أَتْلَفَهُ بِإِذْنِ الْمَالِكِ ځکه چي مرتهن هغه [شيدې] د مالک په اجازه سره تلف کړي دي.

**اللغات**: ﴿شاة﴾ څه مخکي د دې وضاحت وسو. ﴿احلب﴾ د نصر له بابه د واحد مذکر امر حاضر صيغه ده: لوښل. ﴿إباحة﴾ د افعال د باب مصدر دی: روا کول. حلال کول.

**تشريح: صورت د مسئلې**: دا دی چي که يو څوک د لسو درهمو قرض په عوض کي خپله بزه په رهن ورکړي او د بزې قيمت هم لس درهمه وي، بيا راهن مرتهن ته وايي چي تا ته زما له طرفه د دې اجازه ده چي دغه بزه لوښې او شيدې يې خورې او هغه ستا لپاره حلالي دي، بيا مرتهن بزه ولوښي او شيدي يې وخوري، نو اوس پر هغه نه څه ضمان (تاوان) واجبيږي او نه د هغه څه قرض ساقطيږي. ځکه چي د "فما حلبتَ فهولك حلالٌ" په وينا سره راهن د مرتهن لپاره د شيدو لوښلو او څيښلو حلت او اباحت ثابت کړی دی. او څرنګه چي دا تمليک نه دی بلکي صرف اباحت او د جواز اطلاق دی. نو ځکه د لوښلو په شرط سره هم صحيح دی. او بيا کله چي خپله راهن په خپل رضا او خوښی سره مرتهن ته د شيدو لوښلو اجازه ورکړې ده. نو ښکاره خبره ده چي د دغه کار په وجه به د مرتهن له قرض څخه يوه اټانی هم نه ساقطيږي.

## په پورتني صورت کې د مرهونه خاروي د مر کېدلو حکم

فَإِنْ لَمْ يَفْتَكِ الشَّاةَ حَتَّى مَاتَتْ فِيْ يَدِ الْمُرْتَهِنِ بیا که راهن بزه [له مرتهن څخه] راخلاصه نه کړي تر دې چې هغه د مرتهن په قبضه کې مړه سي قُسِّمَ الدَّيْنُ عَلَى قِيمَةِ اللَّبَنِ الَّذِيْ شَرِبَ وَعَلَى قِيمَةِ الشَّاةِ نو قرض به د شیدو پر قیمت کوم چې مرتهن چیښلي دي او د بزې پر قیمت تقسیمول کیږي فَمَا أَصَابَ الشَّاةَ نو کوم مقدار چې بزې ته ورسیږي [یعني د قرض کوم مقدار چې د بزې په حصه کې راسي] سَقَطَ هغه ساقطیږي وَمَا أَصَابَ اللَّبَنَ او کوم مقدار چې شیدو ته ورسیږي أَخَذَهُ الْمُرْتَهِنُ مِنَ الرَّاهِنِ نو هغه به مرتهن له راهن څخه اخلي لِأَنَّ اللَّبَنَ تَلِفَ عَلَى مِلْكِ الرَّاهِنِ بِفِعْلِ الْمُرْتَهِنِ ځکه چې شیدې د راهن پر ملکیت د مرتهن په فعل سره تلف سوي دي وَالْفِعْلُ حَصَلَ بِتَسْلِيطٍ مِنْ قِبَلِهِ او [د مرتهن] فعل د راهن له طرفه په قدرت ورکولو سره حاصل سوی دی [ځکه چې همدې راهن هغه ته د شیدو لوښلو او چیښلو اجازه ورکړې ده] فَصَارَ كَأَنَّ الرَّاهِنَ أَخَذَهُ وَأَتْلَفَهُ نو داسې سو لکه راهن چې خپله هغه اخیستي وي او تلف کړي یې وي فَكَانَ مَضْمُونًا عَلَيْهِ نو ځکه پر راهن به د هغه ضمان [تاوان] لازم وي فَيَكُونُ لَهُ حِصَّتُهُ مِنَ الدَّيْنِ نو د مرتهن لپاره به له قرض څخه د هغه [لبن] حصه وي فَبَقِيَ بِحِصَّتِهِ نو قرض به د هغه [لبن] د حصې په اندازه پاتیږي وَكَذٰلِكَ وَلَدُ الشَّاةِ إِذَا أَذِنَ لَهُ الرَّاهِنُ فِيْ أَكْلِهِ او همدارنګه د بزې بچی کله چې راهن مرتهن ته د هغه د خوړلو اجازه ورکړې وي وَكَذٰلِكَ جَمِيْعُ النَّمَاءِ الَّذِيْ يَحْدُثُ عَلَى هٰذَا الْقِيَاسِ او همدارنګه هغه ټوله نماوي [ودې] کوم چې [له مرهون] څخه پیدا کیږي پر همدغه قیاس دي.

**اللغات:** ﴿تلف﴾ د سمع ماضي ده: تلف کېدل، ضایع کېدل او ختمېدل. ﴿تسلیط﴾ د تفعیل مصدر دی: مسلط کول (ګومارل)، قدرت ورکول، اختیار ورکول. ﴿نماء﴾ وده، اضافه وزیاتوب.

**تشریح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که مرتهن د راهن په اجازه سره د مرهونه بزې شیدې وچیښې او بزه تر اوسه د مرتهن سره وي او راهن څنې اخیستې نه وي چې په همدې دوران کې هغه د مرتهن سره هلاکه سي، نو څرنګه چې دلته د بزې سره د نماء یعني د شیدو مسئله هم سته. نو ځکه د شیدو حساب به کیږي او مرتهن چې څومره شیدې چیښلي وي که چیرې د هغه قیمت د قرض او د بزې د نصف قیمت سره برابر وي یعني پنځه درهمه وي (ځکه قرض او د بزې قیمت لس درهمه وو). نو په دې

صورت کي هم د مخکنۍ مسئلې په څېر د قرض دوې حصې ساقطيږي او پاتـه يـوه حصـه د نماء يعني د شيدو (لبن) مقابل کيږي. او څرنګه چې دلته مرتهن خپله د مالک (راهن) په تسليط او حکم سره شيدې استعمال کړي دي، نو ځکه پر مرتهن د هغه نه څه ضمان واجبيږي او نه د هغه په عوض کي يې قرض ساقطيږي، بلکي خپله مرتهن ته د هغه فايده حاصليږي، او داسي به ګڼل کيږي چي دا شيدي راهن څيښلي دي، او که چيري راهن د بزې شيدې وڅيښي، نو ښکاره خبره ده چي پر هغه ضمان واجبيږي، نو ځکه په مذکوره مسئله کي به هم پر راهن ضمان واجبيږي چي له قرض څخه څومره حصه د شيدو په مقابله کي راسي، پر راهن د هغه ضمان واجبيږي کوم چي به مرتهن څخني اخلي.

وكذلك إلخ: فرمايي که چيري راهن و مرتهن ته د مرهونه بزې يا د بل مرهون شي د بچي د خوړلو اجازه ورکړي او مرتهن هغه وخوري، نو هم دغه پورتنی حکم دی. همدارنګه په هر هغه صورت کي دغه حکم دی چي هلته د راهن په حکم او اجازه سره د مرهون شي پيدا سوې نماء تلف او ضايع کړل سي (لکه څرنګه دلته چي د مرهون بچی تلف کړی سوی دی).

## په مرهون او قرض کي د زياتوب کولو حکم

قَالَ: وَتَجُوزُ الزِّيَادَةُ فِي الرَّهْنِ وَلَا تَجُوزُ فِي الدَّيْنِ فرمايي: او په رهن کي زياتوب [اضافه کول] جائز دي او په قرض کي جائز نه دي عِنْدَ أَبِي حَنِيفَةَ وَمُحَمَّدٍ د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز وَلَا يَصِيرُ الرَّهْنُ رَهْنًا بِهَا او مرهون د زياتوب [اضافې] په عوض کي رهن نه ګرځي وَقَالَ أَبُو يُوسُفَ ۞: تَجُوزُ الزِّيَادَةُ فِي الدَّيْنِ أَيْضًا او امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله فرمايي: چي په قرض کي هم زياتوب جائز دی وَقَالَ زُفَرُ وَالشَّافِعِيُّ: لَا تَجُوزُ فِيهِمَا او امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله فرمايي: چي په دې دواړو کي زياتوب جائز نه دی وَالْخِلَافُ مَعَهُمَا فِي الرَّهْنِ وَالثَّمَنِ وَالْمُثَمَّنِ وَالْمَهْرِ وَالْمَنْكُوحَةِ سَوَاءٌ او د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله سره [زموږ] اختلاف په رهن، ثمن، مبيع، مهر او منکوحه [ټولو] کي سره برابر دی وَقَدْ ذَكَرْنَاهُ فِي الْبُيُوعِ او دا موږ په کتاب البيوع کي ذکر کړي دي [په باب المرابحة والتولية کي].

**اللغات:** ﴿ثمن﴾ قيمت، پيسې، ﴿مثمن﴾ کوم څه چي په ثمن رانيول سوي وي (کوم شی چي د ثمن په عوض کي وي) يعني مبيع.

۞ القول الراجح: قول الطرفين رَحِمَهُمَا الله، انظر للتفصيل الكتاب المعروف بالقول الراجح [ج: ۲، ص: ۳۳۶۵]

**تشريح : صورت د مسئلې** :دا دی چې د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز په مرهون شي کې اضافه کول خو جائز دي،لیکن په قرض کې اضافه کول جائز نه دي. او د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز په قرض کې هم اضافه کول جائز دي، لهذا که راهن د سلو درهمو قرض په عوض کې یوه بزه (وزه) په رهن ورکړې وي او بیا راهن پر هغه بزې یوه بله بزه هم اضافه کړي یعني بله بزه هم د هغې سره په رهن ورکړي. نو د ټولو په نیز دا جائز دي. لیکن که مرتهن پر هغه سلو درهمو نور سل درهمه هم اضافه کړي یعني په هغه رهن کې راهن ته سل درهمه نور په قرض ورکړي. نو د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نیز خو جائز نه دي. لیکن د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله په نیز دا هم جائز دي.

د دې په خلاف د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نیز نه په رهن کې اضافه جائز ده او نه په قرض کې، صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله فرمایي چې زموږ او د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله اختلاف فقط په رهن او قرض کې منحصر نه دی،بلکې دا اختلاف په ثمن، مبیع. مهر او منکوحه ټولو کې جاري دی. نو زموږ په نیز په دغو شیانو کې اضافه او زیاتوب جائز دی. لیکن د دې حضراتو په نیز جائز نه دی، په ثمن او مهر کې اضافه کول خو ښکاره ده او په فهم کې راځي، او په منکوحه کې د اضافه کولو صورت دا دی چې مثلاً یو مالک (مولیٰ) د پنځه سوه درهمو مهر په عوض کې خپله مینځه زید ته په نکاح ورکړي،بیا د همداغه مهر په عوض کې بله مینځه هم هغه ته په نکاح ورکړي، نو دا په منکوحه کې اضافه کول دي چې زموږ په نیز جائز دي او د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله په نیز جائز نه دي.

## په پورتنی مسئله کې د امامانو دلائل

وَلِأَبِي يُوسُفَ فِي الْخِلَافِيَّةِ الْأُخْرَىٰ او په دویمه اختلافي مسئله کې د امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله دلیل دا دی أَنَّ الدَّيْنَ فِي بَابِ الرَّهْنِ كَالثَّمَنِ فِي الْبَيْعِ چې قرض د رهن په باب کې داسې دی لکه په بیع کې ثمن وَالرَّهْنُ كَالْمُثَمَّنِ او رهن [مرهون] داسې دی لکه مبیع فَتَجُوزُ الزِّيَادَةُ فِيهِمَا كَمَا فِي الْبَيْعِ نو ځکه په دې دواړو کې به زیاتوب [اضافه کول] جائز وي لکه څرنګه چې په بیع کې جائز دي وَالْجَامِعُ بَيْنَهُمَا الِالْتِحَاقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ او د دې دواړو ترمینځ جامع علت د اصل عقد سره لاحق کېدل دي لِلْحَاجَةِ وَالْإِمْكَانِ د ضرورت او امکان په وجه وَلَهُمَا وَهُوَ الْقِيَاسُ: أَنَّ الزِّيَادَةَ فِي الدَّيْنِ تُوجِبُ الشُّيُوعَ فِي الرَّهْنِ او د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل (او همدا قیاس دی) دا دی : چې په قرض کې

اضافه کول شیوع واجبوي وَهُوَغَيْرُمَشْرُوعٍ عِنْدَنَا او هغه زمونږ په نيز مشروع نه دي وَالزِّيَادَةُ فِي الرَّهْنِ تُوجِبُ الشُّيُوعَ فِي الدَّيْنِ او په رهن کې اضافه کول په قرض کې شیوع واجبوي وَهُوَغَيْرُ مَانِعٍ مِنْ صِحَّةِ الرَّهْنِ او هغه د رهن له صحت [صحيح کېدلو] څخه مانع نه دي أَلَا تَرَى أَنَّهُ لَوْ رَهَنَ عَبْدًا بِخَمْسِ مِائَةٍ مِنَ الدَّيْنِ آيا ته نه ګورې! چې که راهن د قرض د پنځو سوو درهمو په عوض کې یو غلام په رهن ورکړي جَازَ وَإِنْ كَانَ الدَّيْنُ أَلْفًا نو جائز دي که څه هم قرض زر درهمه وي وَهٰذَا شُيُوعٌ فِي الدَّيْنِ او دا په قرض کې شیوع دی وَالِالْتِحَاقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ غَيْرُ مُمْكِنٍ فِي طَرَفِ الدَّيْنِ او د قرض په طرف کې د اصل عقد سره [د زیاتوب] لاحق کېدل ممکن نه دي لِأَنَّهُ غَيْرُ مَعْقُودٍ عَلَيْهِ وَلَا مَعْقُودٍ بِهِ ځکه چې قرض نه معقود علیه دی او نه معقود به دی بَلْ وُجُوبُهُ سَابِقٌ عَلَى الرَّهْنِ بلکې د قرض وجوب پر رهن مخکې دی وَكَذَا يَبْقَى بَعْدَ انْفِسَاخِهِ همدارنګه د عقد رهن تر فسخ کېدلو وروسته هم هغه [قرض] پاتېږي وَالِالْتِحَاقُ بِأَصْلِ الْعَقْدِ فِي بَدَلَيِ الْعَقْدِ او د اصل عقد سره لاحق کېدل د عقد په دواړو بدلونو کې کېږي بِخِلَافِ الْبَيْعِ په خلاف د بيع لِأَنَّ الثَّمَنَ بَدَلٌ يَجِبُ بِالْعَقْدِ ځکه چې ثمن داسې بدل دی کوم چې د عقد په وجه واجبېږي.

**اللغات**: ﴿شيوع﴾ د ضرب مصدر دی: شرکت (نا تقسيم سوی اشتراک. لکه څرنګه چې مشاع هغه مشترک شي ته وايي کوم چې تر اوسه تقسيم سوی او حصه، حصه سوی نه وي. يا په بله وينا دا چې د هر شريک حصه پکښې معلومه سوې نه وي). ﴿معقود عليه﴾ پر کوم شي چې عقد (معامله) واقع کېږي. مبيع. ﴿معقود به﴾ د کوم شي په ذريعه چې عقد واقع کېږي. ثمن. ﴿التحاق﴾ د افتعال مصدر دی: لاحق کېدل. يو شی د بل شي سره يو ځای کېدل (متصل کېدل. جمع کېدل).

**تشريح**: په دې عبارت کې د مخکنۍ مسئلې سره اړوند د امامانو دلائل بيان سوي دي. او صاحب د هدايې د امام زفر او امام شافعي رَحِمَهُمَا الله اختلاف ته ارښت نه دی ورکړی نو د هغو له دلائلو څخه يې هيڅ بحث نه دی کړی، خو د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله اختلاف قوي دی او د هغه دليل يې بيان کړی دی. د امام ابو يوسف رَحِمَهُ الله د دليل حاصل دا دی چې د رهن په باب کې قرض داسې دی لکه په بيع کې چې ثمن دی او کوم حال چې د مبيع دی، هاغه حال د مرهون هم دی. او په مبيع او مرهون کې د طرفينو رَحِمَهُمَا الله په نيز هم زياتوب جائز دی، نو ځکه په قرض او رهن کې به هم زياتوب او اضافه

جائز وي او پر بیع د رهن د قیاسولو علت دا دی چې ځرنګه کله په مبیع او ثمن کې د زیاتوب امکان سته او زیاتوب ته ضرورت پېښیږي، همداسې په مرهون او قرض کې هم د هغه امکان او ضرورت سته. نو ځکه د رهن او ثمن په څېر په قرض کې هم زیاتوب او اضافه کول جائز دي.

ولهما إلخ: د طرفینو رَحِمَهُمَا الله دلیل دا دی چې مخکې دا خبره تېره سوه چې د مرهون شیوع د رهن د صحت او جواز لپاره مانع دي، لېکن په قرض کې شیوع د رهن پر صحت هیڅ اثر نه کوي، او ځرنګه چې د قرض په زیاتوب سره په مرهون کې شیوع راځي، په دې توګه چې مرتهن په قرض کې کوم زیاتوب وکړي، ښکاره ده چې هغه زیاتوب به خامخا د مرهون د یوې حصې په مقابله کې وي چې مرهون به د دغه زیاتوب په عوض کې هم رهن سي او په هغه کې به شیوع راسي. نو ځرنګه چې دا خبره په قرض کې د زیاتوب کولو په وجه لازمیږي. نو ځکه د طرفینو رَحِمَهُمَا الله په نېز د قرض زیاتوب ممنوع ګرځول سوی دی، د دې په خلاف کوم زیاتوب چې په رهن (مرهون) کې وي. په هغه سره په قرض کې شیوع لازمیږي او د قرض شیوع د رهن د صحت او جواز لپاره مضر نه دي، مثلاً که یو سړی د زرو درهمو قرض په عوض کې داسې غلام په رهن ورکړي چې د هغه قیمت پنځه سوه درهمه وي، نو هغه پنځه سوه خو د قرض د پنځو سوو مقابل کیږي او د قرض پاته پنځه سوه له رهن څخه خالي کیږي او دا د قرض شیوع دي. لېکن ځرنګه چې د قرض شیوع د رهن د صحت لپاره مانع نه دي نو ځکه صحیح دی، لهذا دا شیوع چې د کوم څه په سبب راځي یعني اضافه فی الرهن (په رهن کې زیاتوب کول) هغه هم صحیح دي.

والالتحاق إلخ: امام ابو یوسف رَحِمَهُ الله اضافه فی الدین د اصل عقد سره لاحق کړې ده او هغه یې جائز ګرځولې ده. له دې ځایه صاحب د هدایې رَحِمَهُ الله د هغه تردید کوي فرمایي چې د قرض اضافه او زیاتوب د رهن په باب کې د اصل عقد سره نه سي لاحق کېدلای؛ ځکه چې د اصل عقد سره د معقود علیه او معقود بهٖ التحاق کېدلای سي، او قرض خو نه معقود علیه دی او نه معقود بهٖ دی. معقود بهٖ خو ځکه نه دی چې که قرض معقود بهٖ وای، نو قرض به د عقد رهن په وجه واجب کېدلای، حال دا چې د قرض وجوب له عقد رهن څخه مخکې دی، همدارنګه د عقد رهن تر فسخ کېدلو وروسته هم قرض باقي پاتیږي، نو په دې وجه هغه معقود بهٖ نه سي کېدلای. او قرض معقود علیه ځکه نه سي کېدلای چې پر قرض هیڅ عقد نه سي منعقد کېدلای. د دې په خلاف د بیع معامله ده، نو ځرنګه چې په بیع کې ثمن معقود بهٖ وي؛ ځکه چې هغه د عقد په وجه واجبیږي، نو ځکه د اصل عقد سره د ثمن اضافه او التحاق خو صحیح او ممکن دي. لېکن د قرض اضافه او التحاق د اصل عقد سره ممکن نه دي.

## د مخکنی مسئلې نور وضاحت

ثُمَّ إِذَا صَحَّتِ الزِّيَادَةُ فِي الرَّهْنِ بيا کله چې په مرهون کې اضافه کول صحيح دي وَتُسَمَّى هٰذِهِ زِيَادَةً قَصْدِيَّةً او دا اضافه کول په قصدي اضافه سره نومول کيږي يُقَسَّمُ الدَّيْنُ عَلٰى قِيمَةِ الْأَوَّلِ يَوْمَ الْقَبْضِ نو قرض به تقسيمول کيږي داول [اصل] د قبضې دورځې پر قيمت وَعَلٰى قِيمَةِ الزِّيَادَةِ يَوْمَ قُبِضَتْ او داضافې [زياتوب] د قبضې دورځې پر قيمت حَتّٰى لَوْ كَانَتْ قِيمَةُ الزِّيَادَةِ يَوْمَ قَبْضِهَا خَمْسَ مِائَةٍ تر دې چې که داضافې [زياتوب] قيمت د قبضې په ورځ پنځه سوه درهمه وي وَقِيمَةُ الْأَوَّلِ يَوْمَ الْقَبْضِ أَلْفًا او د اول [اصل] قيمت زر درهمه وي وَالدَّيْنُ أَلْفًا او قرض [هم] زر درهمه وي يُقَسَّمُ الدَّيْنُ أَثْلَاثًا نو قرض به پر دريو حصو تقسيمول کيږي فِي الزِّيَادَةِ ثُلُثُ الدَّيْنِ وَفِي الْأَصْلِ ثُلُثَا الدَّيْنِ په اضافه کې به د قرض يو ثلث [دريمه حصه] وي او په اصل کې به د قرض دوه ثلثه وي اِعْتِبَارًا بِقِيمَتِهِمَا فِي وَقْتَي الْاِعْتِبَارِ ددې دواړو د قيمت په اعتبار کولو سره داعتبار [قبض کولو] په وخت کې وَهٰذَا لِأَنَّ الضَّمَانَ فِي كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا يَثْبُتُ بِالْقَبْضِ او دا ځکه چې ضمان په دوی هريوه کې په قبضې کولو سره ثابتيږي فَتُعْتَبَرُ قِيمَةُ كُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا وَقْتَ الْقَبْضِ نو ځکه د دوی هريوه د قبضې دوخت قيمت به معتبر وي.

**اللغات:** ﴿تُسمّٰى﴾ د تفعيل له بابه د مضارع مجهولې صيغه ده: نومول (نوم ورکول). ﴿قصدية﴾ په قصدي توګه. بالاراده.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې کله په مرهون کې اضافه کول (زياتوب کول) صحيح او معتبر دي. نو که چيرې اضافه هلاکه سي. نو د اصل او اضافې د قبضې په ورځ چې کوم قيمت وي (يعني په کومه ورځ چې پر اصل او پر اضافې (زياتوب) قبضه کړل سوې وي. په هغه ورځ چې د دوی کوم قيمت وي) هغه به پر قرض تقسيم کړی سي. نو که د قبضې په ورځ داضافې (مثلاً داضافه کړل سوي بزې) قيمت پنځه سوه درهمه وي او د اصل (اولې بزې) قيمت زر درهمه وي او قرض هم زر درهمه وي. بيا اضافه (بزه) هلاکه سي. نو څرنګه چې دلته د اصل قيمت دوچنده دی (يعني د اصل بزې قيمت دومره دی لکه د اضافه بزې قيمت دوه واره). نو ځکه اوس به قرض پر دريو حصو تقسيمول کيږي چې له هغه څخه به يو ثلث يعني (۳۳۳ درهمه) داضافې په مقابله کې وي چې هغه به د مرتهن سره رهن (مرهون) پاتيږي. او د اصل په مقابله کې به د قرض دوه ثلثه (۶۶۶ درهمه) وي. او د دې دواړو به هاغه قيمت معتبر وي کوم قيمت چې يې د قبضې په ورځ وي: ځکه چې د همدې قبضې په وجه په دوی کې ضمان ثابتيږي نو ځکه د ضمان واجبېدلو په هکله به هم د قبضې د ورځې قيمت معتبر وي. (احسن الهدايه)

## كه مرهونه مينځه بچى وزيږوي او راهن د هغه سره يو غلام هم اضافه كړي (حكم او تفصيل)

وَإِذَا وَلَدَتِ الْمَرْهُونَةُ وَلَدًا [او كله چي مرهونه [مينځه] بچى وزيږوي ثُمَّ إِنَّ الرَّاهِنَ زَادَ مَعَ الْوَلَدِ عَبْدًا بيا راهن د بچي سره يو [بل] غلام اضافه كړي وَقِيمَةُ كُلِّ وَاحِدٍ أَلْفٌ او د هر يوه قيمت زر درهمه وي فَالْعَبْدُ رَهْنٌ مَعَ الْوَلَدِ خَاصَّةً نو غلام فقط د بچي سره رهن [مرهون] كيږي يُقَسَّمُ مَا فِي الْوَلَدِ عَلَيْهِ نو تقسيمول كيږي به د قرض هغه مقدار كوم چي د بچي په حصه كي دى پر بچي وَعَلَى الْعَبْدِ الزِّيَادَةُ او [له هغه ځخه] زائد مقدار پر غلام [يعني كله چي غلام فقط د مينځي د بچي سره رهن (مرهون) دى. نو د بچي په حصه كي چي د قرض كوم مقدار راځي. هغه به پر بچي او پاته مقدار به پر غلام تقسيمول كيږي] لِأَنَّهُ جَعَلَهُ زِيَادَةً مَعَ الْوَلَدِ دُونَ الْأُمِّ ځكه چي راهن دا غلام د بچي سره اضافه كړى دى. نه د مور سره وَلَوْ كَانَتِ الزِّيَادَةُ مَعَ الْأُمِّ او كه [د غلام] اضافه د مور سره وي يُقَسَّمُ الدَّيْنُ عَلَى قِيمَةِ الْأُمِّ يَوْمَ الْعَقْدِ نو قرض به تقسيمول كيږي د عقد د ورځي والا د مور پر قيمت وَعَلَى قِيمَةِ الزِّيَادَةِ يَوْمَ الْقَبْضِ او د قبض د ورځي والا د اضافې [غلام] پر قيمت فَمَا أَصَابَ الْأُمَّ نو كوم مقدار چي مور ته ورسيږي قُسِّمَ عَلَيْهَا وَعَلَى وَلَدِهَا نو هغه به پر مور او د هغې پر بچي تقسيمول كيږي لِأَنَّ الزِّيَادَةَ دَخَلَتْ عَلَى الْأُمِّ ځكه چي اضافه پر مور داخله سوې ده [يعني غلام د مور سره اضافه كړى سوى دى].

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دى چي كه زيد له خالد ځخه زر درهمه په قرض واخلي او د هغه په عوض كي خپل يوه مينځه خالد ته په رهن وركړي او د مينځي قيمت هم زر درهمه وي. بيا دا مرهونه مينځه د مرتهن (خالد) سره بچى وزيږوي او له نېكه مرغه د هغې بچى هم زر درهمه قيمت لري. تر دې وروسته راهن (زيد) په رهن كي اضافه وكړي چي د مينځي سره مرتهن (خالد) ته يو غلام هم په رهن وركړي خو دا د غلام اضافه خصوصاً د مينځې د بچي سره وكړي مثلاً داسي ووايي "زِدْتُكَ هٰذَا الْعَبْدَ مَعَ الْوَلَدِ رَهْنًا". نو دلته دويم (اضافه سوي) غلام فقط د بچي سره مرهون كيږي. لهذا زر درهمه قرض به اول په پر مينځه او د هغې پر بچي تقسيمول كيږي چي د هر يوه په عوض كي پنځه سوه (۵۰۰) راځي. تر دې وروسته به د بچي والا پنځه سوه د بچي او اضافه سوي غلام په مينځ كي تقسيمول كيږي چي په دې سره د هر يوه په عوض كي دوه نيم سوه (۲۵۰) راځي. نو له قرض ځخه د (۵۰۰) درهمو په عوض كي به مينځ رهن وي. د (۲۵۰) درهمو په عوض كي به بچى رهن وي او د (۲۵۰) درهمو په عوض كي به اضافه سوى غلام رهن وي.

ولوكانت الزيادة إلخ: د دې حاصل دا دی چې که چيرې راهن اضافه سوی غلام د بچي سره خاص نه کړي بلکې د هغې د مور سره يې خاص کړي يعني د غلام اضافه خصوصاً د مور سره وکړي. نو په دې صورت کې به قرض اول د مور او د هغې د بچي په مينځ کې تقسيمول کيږي او بيا د مور په حصه کې چې کوم پنځه سوه راسي، هغه به د مور او د اضافه سوي غلام په مينځ کې تقسيمول کيږي: ځکه دلته راهن اضافه شده غلام د مور سره لاحق کړی دی، نو ځکه هغه اضافه شده غلام به د مور يعني د مرهونه مينځې په حصه کې داخليږي او هريو به د قرض د (۲۵۰) په عوض کې رهن وي. لکه په مخکنۍ مسئله کې چې اضافه شده غلام د بچي سره لاحق سوی دی او هريو د (۲۵۰) درهمو په عوض کې رهن دی.

## مرهون بدلول (حکم او تفصيل)

قَالَ: فَإِنْ رَهَنَ عَبْدًا يُسَاوِيْ أَلْفًا بِأَلْفٍ فرمايي: او که راهن داسې غلام په رهن ورکړي کوم چې د زرو درهمو سره برابر وي، د زرو درهمو په عوض کې ثُمَّ أَعْطَاهُ عَبْدًا آخَرَ قِيْمَتُهُ أَلْفٌ رَهْنًا مَكَانَ الْأَوَّلِ بيا راهن د دې اول غلام پر ځای مرتهن ته بل غلام په رهن ورکړي چې د هغه قيمت زر درهمه وي فَالْأَوَّلُ رَهْنٌ حَتّٰى يَرُدَّهُ إِلَى الرَّاهِنِ نو اول غلام [تر هغه وخته پورې] رهن [مرهون] پاتيږي تر دې چې مرتهن هغه راهن ته واپس کړي وَالْمُرْتَهِنُ فِي الْآخَرِ أَمِيْنٌ حَتّٰى يَجْعَلَهُ مَكَانَ الْأَوَّلِ او [تر هغه وخته پورې] مرتهن په هغه بل [دويم] غلام کې امين دی تر دې چې هغه د اول غلام پر ځای وګرځوي لِأَنَّ الْأَوَّلَ إِنَّمَا دَخَلَ فِيْ ضَمَانِهِ بِالْقَبْضِ وَالدَّيْنِ ځکه چې اول غلام د مرتهن په ضمان کې په قبضه او قرض دواړو سره داخل سوی دی وَهُمَا بَاقِيَانِ او دا دواړه شيان باقي پاته دي فَلَا يَخْرُجُ عَنِ الضَّمَانِ إِلَّا بِنَقْضِ الْقَبْضِ مَا دَامَ الدَّيْنُ بَاقِيًا نو هغه [اول غلام] له ضمان څخه نه وځي مګر د قبضې په ماتولو سره تر څو چې قرض باقي پاته وي [يعني تر څو چې قرض پاته وي. تر هغه وخته پورې له قبضې ماتولو څخه بغير هغه اول د مرتهن له ضمانه نه وځي] وَإِذَا بَقِيَ الْأَوَّلُ فِيْ ضَمَانِهِ او کله چې اول غلام د مرتهن په ضمان کې باقي پاته دی لَا يَدْخُلُ الثَّانِيْ فِيْ ضَمَانِهِ نو دويم غلام د هغه په ضمان کې نه داخليږي لِأَنَّهُمَا رَضِيَا بِدُخُوْلِ أَحَدِهِمَا فِيْهِ لَا بِدُخُوْلِهِمَا ځکه چې راهن او مرتهن دواړه له دوی څخه د يوه غلام په داخلېدلو راضي سوي دي په ضمان کې، نه د دواړو غلامانو په داخلېدلو فَإِذَا

رُدَّ الْأَوَّلُ لهذا كله چې اول غلام واپس کړی سي دَخَلَ الثَّانِي فِي ضَمَانِهِ نو بيا دويم غلام د هغه په ضمان کې داخليږي.

**اللغات:** ﴿ضمان﴾ ضمانت. ذمه واري.

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چې که زيد له خالد څخه زر درهمه په قرض واخلي او د هغه په عوض کې خالد ته خپل يو غلام په رهن ورکړي چې د هغه قيمت هم زر درهمه وي. بيا راهن (زيد) وغواړي چې له مرتهن (خالد) څخه هغه غلام واپس واخلي او يو بل د زرو درهمو والا غلام په رهن ورکړي، نو داسې کول جائز او صحيح دي، خو تر څو چې مرتهن اول غلام راهن ته واپس نه کړي، تر هغه وخته تبادله نه ثابتيږي؛ ځکه چې اول غلام د قرض او قبضې دواړو په جهت سره د مرتهن سره مرهون دی او څرنګه چې قرض تر اوسه پاتې دي. نو ځکه د هغه پر ځای د بل غلام د مرهون کېدلو لپاره له هغه څخه د مرتهن قبضه ختمېدل ضروري دي او تر څو چې له اول غلام څخه د مرتهن قبضه ختمه نه سي، تر هغه وخته پورې اول غلام مرهون شمېرل کيږي او دويم غلام امانت پاتېږي، لهذا که چيرې اول غلام د مرتهن سره هلاک سي نو د مرتهن قرض ساقطيږي. لېکن که دويم غلام هلاک سي نو له قرض څخه يوه روپۍ هم نه ساقطيږي؛ ځکه دويم غلام امانت دی او مضمون نه دی. او د امانت په هلاکېدلو سره ضمان نه لازميږي؛ ځکه چې راهن او مرتهن دواړه همدا يو غلام مرهون مني، نه دواړه غلامان. نو ځکه موږ وايو چې د دويم غلام د مرهون کېدلو لپاره راهن ته د اول غلام واپس کېدل ضروري دي. (احسن الهدايه)

## په پورتنۍ مسئلې کې د قبضې نوي کولو شرط

ثُمَّ قِيلَ: يُشْتَرَطُ تَجْدِيْدُ الْقَبْضِ بيا ويل سوي دي: چې د قبضې نوي کول شرط دي لِأَنَّ يَدَ الْمُرْتَهِنِ عَلَى الثَّانِيْ يَدُ أَمَانَةٍ ځکه چې پر دويم غلام د مرتهن قبضه د امانت قبضه ده وَيَدُ الرَّهْنِ يَدُ اِسْتِيْفَاءٍ وَضَمَانٍ او د رهن قبضه د (حق) ترلاسه کولو او د ضمان قبضه ده فَلَا يَنُوْبُ عَنْهُ نو د امانت قبضه به د هغه [ضمان والا قبضې] نه قائم مقام کيږي كَمَنْ لَهُ عَلَى آخَرَ جِيَادٌ لکه د يو کس چې پر بل ښه کَرَه دراهم بانده وي فَاسْتَوْفَى زُيُوْفًا ظَنَّهَا جِيَادًا بيا هغه کس کوټه دراهم د کَرَه دراهمو په ګومان [له هغه مقروض څخه] ترلاسه کړي ثُمَّ عَلِمَ بِالزِّيَافَةِ بيا [د دراهمو] په کوټه والي خبر سي وَطَالَبَهُ بِالْجِيَادِ وَأَخَذَهَا او له هغه [مقروض] څخه د کَرَه دراهمو مطالبه وکړي او هغوی

واخلي ﴿فَإِنَّ الْجِيَادَ أَمَانَةٌ فِي يَدِهِ مَا لَمْ يَرُدَّ الزُّيُوفَ وَيُجَدِّدَ الْقَبْضَ﴾ نو کره دراهم د هغه په قبضه کي امانت دي تر څو چي هغه کوټه دراهم واپس نه کړي او قبضه نوې نه کړي ﴿وَقِيلَ: لَا يُشْتَرَطُ﴾ او ويل سوي دي: چي د قبضې نوي کول شرط نه دي ﴿لِأَنَّ الرَّهْنَ تَبَرُّعٌ كَالْهِبَةِ﴾ ځکه چي رهن هم د هبې په څېر تبرّع ده ﴿عَلَى مَا بَيَّنَّاهُ مِنْ قَبْلُ﴾ لکه څرنګه چي مخکي موږ دا بيان کړه ﴿وَقَبْضُ الْأَمَانَةِ يَنُوبُ عَنْ قَبْضِ الْهِبَةِ﴾ او د امانت قبضه د هبې د قبضې قائم مقام کيږي ﴿وَلِأَنَّ الرَّهْنَ عَيْنَهُ أَمَانَةٌ﴾ او ځکه چي د مرهون عين [ذات] خو امانت دی ﴿وَالْقَبْضُ يَرِدُ عَلَى الْعَيْنِ﴾ او قبضه پر عين وارديږي ﴿فَيَنُوبُ قَبْضُ الْأَمَانَةِ عَنْ قَبْضِ الْعَيْنِ﴾ نو د امانت قبضه به د عين د قبضې له طرفه قائم مقام کيږي.

**اللغات:** ﴿تجديد﴾ د تفعيل مصدر دی: نوي کول. له نوي سره کول. ﴿استيفاء﴾ د استفعال مصدر دی: (حق) ترلاسه کول. اخيستل. ﴿لا ينوب﴾ د نصر له بابه د نفي صيغه ده: نائب کېدل. قائم مقام کېدل. ﴿جِيَاد﴾ جمع د جَيِّدٌ ده: ښه. کره. اصلي. ﴿زيوف﴾ جمع د زَيْفٌ ده: کوټه. ردي. جعلي او ناچله.

**تشريح:** په مخکنی مسئله کي ذکر سوه چي د اول غلام تر واپس کولو مخکي پر دويم غلام د مرتهن قبضه د امانت قبضه ده، اوس دلته دا ذکر کوي چي آيا د اول غلام تر واپس کولو وروسته دويم غلام خپله مضمون (ضمان والا) ګرځي او که د دې لپاره د قبضې تجديد (نوي کول) شرط دي (چي پر دويم غلام به له نوي سره قبضه کوي)؟. نو فرمايي چي په دې هکله دوه قولونه دي:

(۱)... اول قول دا دی چي د قبضې تجديد شرط او ضروري دی: ځکه کله چي پر دويم غلام د مرتهن قبضه له شروع څخه د امانت قبضه ده، نو ښکاره خبره ده چي د ضمان په قبضې سره د بدلولو لپاره د قبضې تجديد ضروري دی: ځکه چي پر مرهون د مرتهن قبضه د استيفاء او ضمان قبضه وي او د ضمان قبضه د امانت له قبضې څخه اقوی وي، او مخکي ضمناً دا خبره ذکر سوې ده چي اقوی د اضعف نائب (قائم مقام) کېدلای سي، لېکن اضعف د اقوی نائب کېدلای نه سي. نو ځکه موږ وايو چي د امانت والا قبضه د ضمان والا قبضې نه قائم مقام کيږي بلکي د قبضې تجديد شرط دی.

د دې مثال داسی دی چي پر زيد مثلاً د خالد کره دراهم باندي دي. بيا خالد له زيد څخه د هغه دراهمو مطالبه وکړه او زيد په چل او دوکه سره خالد ته کوټه دراهم ورکړل او خالد پر هغه اعتماد وکړی او دا يې کره دراهم وګڼل. لېکن وروسته خالد ته معلومه سوه چي دا خو کوټه دراهم دي. نو له زيد څخه يې د کره دراهمو مطالبه وکړه او زيد ور سره ومنل. نو تر څو چي خالد کوټه دراهم زيد ته

واپس نه کړي او پر کَره دراهمو قبضه نه وکړي (يعني تر څو چي له زيد څخه کره دراهم وانه خلي). تر هغه وخته پوري کوټه دراهم د خالد سره امانت پاتيږي. نو همداسي په دې پورتنۍ مسئله کي هم چي تر څو مرتهن د قبضې تجديد نه وکړي يعني له نوي سره پر دويم غلام قبضه نه وکړي، تر هغه وخته پوري دويم غلام د مرتهن سره امانت پاتيږي او هغه د امانت والا قبضه د ضمان والا قبضې نه قائم مقام کيږي.

(۲)... دويم قول دا دی چي په دې مسئله کي د امانت قبضه د ضمان والا قبضې قائم مقام کيږي او د قبضې تجديد لره ضرورت نسته؛ ځکه موږ مخکي هم داويلي دي چي د هبې په څېر عقد رهن هم تبرع ده او د امانت قبضه د هبې د قبضې قائم مقام کيږي. لهذا د امانت قبضه به د رهن هم قائم مقام کيږي. مثلاً که يو څوک زيد ته خپل يو شی په امانت ورکړي. بيا هغه شی زيد ته هبه کړي. نو په دې صورت کي اوله قبضه کافي ده او د نوې قبضې ضرورت نسته. لهذا همداسي په دې مذکوره مسئله کي پر دويم غلام د مرتهن قبضه د امانت قبضه ده نو همدا قبضه به هم د ضمان د قبضې قائم مقام کيږي او د قبضې تجديد لره به ضرورت نه وي.

په دې سلسله کي دويم دليل دا دی چي د مرتهن سره د مرهون عين (ذات) امانت وي او دا مسلمه خبره ده. او تاسي ته معلومه ده چي قبضه د مرهون پر عين کيږي. نو په دې حواله سره به هم د امانت قبضه د ضمان د قبضې قائم مقام کيږي؛ ځکه څرنګه چي د امانت قبضه پر عين کيږي. همداسي ضمان والا قبضه هم پر عين واقع کيږي.

## که مرتهن د راهن قرض معاف کړي (حکم او تفصيل)

وَلَوْ أَبْرَأَ الْمُرْتَهِنُ الرَّاهِنَ عَنِ الدَّيْنِ او که چيري مرتهن له قرض څخه راهن بري کړي [قرض معاف کړي] أَوْ وَهَبَهُ مِنْهُ يا راهن ته قرض هبه کړي ثُمَّ هَلَكَ الرَّهْنُ فِي يَدِ الْمُرْتَهِنِ بيا رهن [مرهون] د مرتهن په قبضه کي هلاک سي يَهْلِكُ بِغَيْرِ شَيْءٍ اِسْتِحْسَانًا نو استحساناً هغه بغير له څه عوضه هلاکيږي خِلَافًا لِزُفَرَ په خلاف د امام زفر رَحِمَهُ الله لِأَنَّ الرَّهْنَ مَضْمُونٌ بِالدَّيْنِ ځکه چي رهن د قرض په وجه مضمون وي [يعني د رهن (مرهون) ضمان د قرض په سبب لازميږي] أَوْ بِجِهَتِهِ عِنْدَ تَوَهُّمِ الْوُجُودِ يا د قرض د جهت په وجه د قرض د وجود متوهم کېدلو په وخت کي كَمَا فِي الدَّيْنِ الْمَوْعُودِ لکه په موعود قرض کي وَلَمْ يَبْقَ الدَّيْنُ بِالْإِبْرَاءِ أَوِ الْهِبَةِ وَلَا جِهَتُهُ لِسُقُوطِهِ او د بري کولو يا هبه کولو په وجه نه قرض باقي پاته سو او نه د قرض ساقطېدلو په وجه د قرض جهت باقي پاته سو إِلَّا إِذَا أَحْدَثَ مَنْعًا

مګر کله چي مرتهن د منع احداث وکړي [يعني تر بري کولو يا هبه کولو وروسته د مرهون شي له ورکولو څخه انکار او منع وکړي] لِأَنَّهُ يَصِيرُبِهِ غَاصِبًا ځکه د منع [انکار] په وجه مرتهن غاصب ګرځي إِذْ لَمْ تَبْقَ لَهُ وِلَايَةُ الْمَنْعِ ځکه چي د مرتهن لپاره د منع کولو ولايت پاته نه سو وَكَذَا إِذَا ارْتَهَنَتِ الْمَرْأَةُ رَهْنًا بِالصَّدَاقِ او همدانګه کله چي ښځه د مهر په عوض کي رهن واخلي [يعني له خاوند څخه يو شی په رهن واخلي] فَأَبْرَأَتْهُ أَوْ وَهَبَتْهُ بيا ښځه خاوند [له مهر څخه] بري کړي يا مهر خاوند ته هبه کړي أَوِ ارْتَدَّتْ وَالْعِيَاذُ بِاللهِ قَبْلَ الدُّخُولِ يا ښځه تر دخول مخکي (العياذ بالله) مرتده سي أَوِ اخْتَلَعَتْ مِنْهُ عَلٰى صَدَاقِهَا يا ښځه د خپل مهر په عوض کي د خاوند سره خلع وکړي ثُمَّ هَلَكَ الرَّهْنُ فِي يَدِهَا بيا رهن [مرهون شی] د ښځي په قبضه کي هلاک سي يَهْلِكُ بِغَيْرِ شَيْءٍ فِي هٰذَا كُلِّهِ نو په دې ټولو صورتونو کي هغه [مرهون شی] بغير له څه عوضه هلاکيږي وَلَمْ تَضْمَنْ شَيْئًا او ښځه د هيڅ شي نه ضامنه کيږي لِسُقُوطِ الدَّيْنِ د قرض د ساقطېدلو په وجه كَمَا فِي الْإِبْرَاءِ لکه په بري کولو کي [يعني کله چي مرتهن راهن له قرض څخه بري کړي].

**اللغات:** ﴿أبرأ﴾ د افعال د باب ماضي ده: بري کول، معاف کول. ﴿صداق﴾ مهر (ولور).

**تشريح: صورت د مسئلې:** دا دی چي که زيد مثلاً له خالد څخه زر درهمه په قرض واخلي او خالد ته خپل يو شی په رهن ورکړي، تر دې وروسته مرتهن (خالد) خپل قرض يعني زر درهمه معاف کړي او مقروض راهن (زيد) له قرض څخه بري کړي. يا مرتهن خپل قرض راهن ته هبه کړي. بيا مرتهن تر او سه هغه مرهون شی راهن ته واپس کړی نه وي چي هغه د مرتهن سره هلاک سي. نو زموږ په نيز دا هلاکت نه مضمون کيږي يعني پر مرتهن د دغه مرهون شي هيڅ ضمان (تاوان) نه لازميږي. همدا استحسان هم دی؛ ځکه چي مرهون خو يا د قرض په وجه مضمون کيږي يا د وجود قرض د موهوم کېدلو په صورت کي د قرض په جهت سره مضمون کيږي لکه څرنګه چي په موعود قرض کي د قرض جهت موجود دی (د موعود قرض مثال دا چي خالد مثلاً زيد ته ووايي چي ته! ما ته يو شی په رهن راکړه! زه به څو وخت وروسته قرض درکړم. نو دلته که څه هم د قرض وجود موهوم دی چي خالد به زيد ته قرض ورکړي، که نه. خو د قرض د جهت په خاطر هغه مرهون شی مضمون دی [يعني که هلاک سي نو ضمان يې لازميږي]). او دلته د بري کولو يعني د قرض معافولو يا هبه کولو په وجه ګردسره قرض ساقط سوی دی، لهذا نه قرض پاته دی او نه د قرض جهت. نو ځکه د مرهون شي هلاکت به نه مضمون کيږي. او که څه هم د هلاکېدلو په وخت کي پر مرهون شي د مرتهن قبضه ده او د قبضې په وجه هغه مضمون

کېدل پکار دي، خو څرنګه چي د مرهون ضمان د قبضې او د قرض دواړو په وجه سره ثابت سوی وي او دلته د ضمان ثابتېدلو یوه اهمه وجه (یعني قرض) ختم سوی دی. او قاعده دا ده چي "الحکم الثابت بعلة ذات وصفین ینعدم بانعدام أحدهما" (یعني هغه حکم چي په دوو وصفونو والا علت سره ثابت سوی وي. هغه حکم دیوه وصف په ختمېدو سره ختمیږي). نو دغه قاعدې ته په کتلو سره به دلته د ضمان حکم ساقطیږي او د مذکوره مرهون شي هلاکت به نه مضمون کیږي. (کفایه)

إلا إذ أحدث إلخ: د دې حاصل دا دی چي که تر بري کولو یا هبه کولو وروسته راهن له مرتهن څخه د مرهون شي مطالبه وکړي او مرتهن له ورکولو څخه انکار وکړي، بیا هغه د مرتهن سره هلاک سي. نو په دې صورت کي د هغه هلاکت مضمون کیږي (یعني پر مرتهن یې ضمان لازمیږي)؛ ځکه چي تر بري کولو او هبه کولو وروسته د مرتهن حق حبس (د راګرځولو حق) ختم سو (یعني په ابراء یا هبې سره اوس د مرتهن دا حق ختم سو چي مرهون شی له راهن څخه راوګرځوي او د ځان سره یې وساتي). نو په دې وجه اوس د مرتهن انکار غصب شمېرل کیږي، او که چیري د غاصب سره مغصوب شی هلاک سي. نو هغه مضمون کیږي، نو ځکه مرهون شی به هم په دغه صورت کي مضمون کیږي.

وکذا إلخ: فرمایي که چیري زید مثلاً د زرو درهمو مهر په عوض کي د یوې ښځې سره نکاح وکړي او د مهر په عوض کي ښځې ته خپل یو شی په رهن ورکړي، بیا هغه ښځه مهر معاف کړي. یا خاوند (زید) ته مهر هبه کړي، یا نعوذبالله له دخول څخه مخکي ښځه مرتده سي، یا ښځه د مهر په عوض د خاوند سره خلع وکړي، تر دې وروسته مرهون شی د مرتهن یعني د ښځې سره هلاک سي. نو څرنګه چي د بري کولو (ابراء) په صورت کي پر مرتهن ضمان نه واجبیږي، همداسي په دغه صورتونو کي هم پر ښځې هیڅ ضمان نه واجبیږي؛ ځکه چي د هغې مهر کوم چي د قرض په شکل پر خاوند واجب دی، هغه د مرهون شي د هلاکېدو په وجه ساقط سو.

## له قرض تر لاسه کولو څخه وروسته د مرهون د هلاکېدلو حکم

| |
|---|
| وَلَوِ اسْتَوْفَى الْمُرْتَهِنُ الدَّيْنَ او که چیري مرتهن قرض ترلاسه کړي بِإِيْفَاءِ الرَّاهِنِ أَوْ بِإِيْفَاءِ مُتَطَوِّعٍ د راهن په اداء کولو یا د یو متبرع په اداء کولو سره [یعني یا راهن (مقروض) د مرتهن قرض اداء کړي. یا د راهن له طرفه یې بل څوک د تبرع په توګه اداء کړي او مرتهن خپل قرض ترلاسه کړي] ثُمَّ هَلَكَ الرَّهْنُ فِي يَدِهِ بیا رهن [مرهون] د مرتهن په قبضه کي هلاک سي يَهْلِكُ بِالدَّيْنِ نو هغه د قرض په عوض کي هلاکیږي وَيَجِبُ عَلَيْهِ رَدُّ مَا اسْتَوْفَى إِلَى مَا اسْتَوْفَى مِنْهُ او پر مرتهن د هغه مال [قرض] واپس کول |

واجب دي کوم چي یې ترلاسه کړی وي او هغه کس ته یې [illegible] چي [illegible]

ترلاسه کړی وي یعني د قرض په نسبت خپل سوی مال [illegible] هغه کس ته ورکوي [illegible]

خپل شوی وي چي هغه راهن (مقروض) یا متبرع وي وَهُوَ مَنْ عَلَيْهِ أَوْ مُتَبَرِّعٌ او د هغه کس وي چي پر هغه

د مال ورکول لازم دي یا متبرع وي یعني راهن (مقروض) یا متبرع وي [illegible] بِخِلَافِ الْإِبْرَاءِ په

خلاف د بري کولو وَوَجْهُ الْفَرْقِ أَنَّ بِالْإِبْرَاءِ يَسْقُطُ الدَّيْنُ أَصْلًا او وجه د فرق دا ده چي په بري کولو

سره قرض بالکل ساقطیږي كَمَا ذَكَرْنَا لکه مخکي چي موږ ذکر کړه وَبِالْاِسْتِيفَاءِ لَا يَسْقُطُ او په

استیفاء (قرض ترلاسه کولو سره) قرض بالکلیه نه ساقطیږي یعني چي مرتهن له راهن (مقروض) څخه

قرض ترلاسه کړي نو بالکلیه قرض نه ساقطیږي او اصل حق باقي پاتیږي لِقِيَامِ الْمُوجِبِ د موجب د باقي

پاتېدلو په وجه (وهو العقد الذی لزم الدین به... (حاشیه)) إِلَّا أَنَّهُ يَتَعَذَّرُ الْاِسْتِيفَاءُ بَعْدَ مَا تَقَدَّمَ خو د

فایدې د نشتوالي په وجه استیفاء ناممکنه ده لِأَنَّهُ يُعْقِبُ مُطَالَبَةً مِثْلَهُ ځکه چي دا استیفاء د

خپل مثل مطالبه شاته راوړي ایا په بله وینا داچي دا استیفاء تر ځان وروسته د بلې استیفاء مطالبه ثابتوي

فیفضی الی الدور. یعني په دې صورت کي تر یوې مطالبې او استیفاء وروسته بله مطالبه او استیفاء واقع کیږي. ځکه

چي که قرضخواه (مرتهن) د خپل اصل حق مطالبه کوي نو مقروض (راهن) به د خپل ورکړل سوي مال مطالبه کوي.

وضاحت به یې په تشریح کي وسي! فَأَمَّا هُوَ فِي نَفْسِهِ فَقَائِمٌ او پاته سره نفس استیفاء نو هغه

موجوده ده فَإِذَا هَلَكَ لهذا کله چي مرهون هلاک سي يَتَقَرَّرُ الْاِسْتِيفَاءُ الْأَوَّلُ نو اوله استیفاء ثابتیږي

ثابتیږي فَانْتَقَضَ الْاِسْتِيفَاءُ الثَّانِي نو ځکه دویمه استیفاء به ماتیږي وَكَذَا إِذَا اشْتَرَى بِالدَّيْنِ عَيْنًا او

همدارنګه کله چي مرتهن د قرض په عوض کي یو شی رانیسي أَوْ صَالَحَهُ عَنْهُ عَلَى عَيْنٍ یا له قرض څخه پر

یو شي [د راهن سره] صلح وکړي لِأَنَّهُ اسْتِيفَاءٌ ځکه چي دا (یعني له دې دارو څخه پر یو) هم استیفاء ده.

**اللغات:** ﴿إیفاء﴾ د افعال د باب مصدر دی: (حق) پوره اداء کول. ورکول. ﴿استیفاء﴾ د استفعال د باب مصدر دی: (حق) پوره اخیستل. ترلاسه کول. ﴿یتعذر﴾ د تفعل د باب مضارع ده. د دغه باب دوې معناوي دي: مشکل کېدل. ناممکن کېدل. ﴿یُعقب﴾ د افعال او تفعیل دواړو له باب څخه ویل کېدلای سي: یو شی تر بل شي وروسته کول. تر شا کول. وروسته راوړل. وروسته ثابتول.

**تشريح**: مخکي دا حکم ذکر سو چي که مرتهن راهن له قرض څخه بري کړي او بيا مرهون شی د مرتهن سره هلاک سي نو پر مرتهن ضمان نه واجبيږي. لېکن که مرتهن قرض ترلاسه کړي برابره ده راهن قرض ورکړي يا يې بل څوک د راهن له طرفه د تبرع په توګه ورکړي. بيا مرهون شی د مرتهن سره هلاک سي نو پر هغه ضمان واجبيږي او ضمان دا چي په دې صورت کي هغه مرهون شی د قرض په عوض کي هلاکيږي يعني د هغه د هلاکېدلو په وجه د مرتهن قرض ساقطيږي او مرتهن چي له راهن يا متبرع څخه د قرض په نامه کومي پيسې اخيستي دي.هغه به واپس ورکوي. د دې په خلاف د ابراء (بري کولو) يعني د قرض معافولو په صورت کي که مرهون شی هلاک سي نو پر مرتهن ضمان نه واجبيږي (لکه اوس چي ذکر سوه).

**ووجه الفرق إلخ**: صاحب د هدايې رَحِمَهُ الله فرمايي چي د ابراء او استيفاء تر مينځ د فرق وجه دا ده چي په ابراء (بري کولو) کولو سره قرض په بشپړه توګه ساقطيږي او کله چي قرض ساقط سو. نو ښکاره ده چي د مرهون شي هلاکېدل به د قرض موجب نه ګرځي، د دې په خلاف د استيفاء (قرض ترلاسه کولو) په صورت قرض بالکليه نه ساقطيږي.بلکي مرتهن ته د هغه د قرض مثل ترلاسه کيږي (ځکه ښکاره خبره ده چي کله مقروض (راهن) يا متبرع د قرضخواه (مرتهن) قرض اداء کوي نو خاص هغه پيسې نه ورکوي کوم چي قرضخواه ورکړي وي بلکې د هغوی مثل ورکوي). لهذا تر استيفاء ورروسته هم د مرتهن اصلي حق (اصلي قرض) د راهن پر غاړه باقي پاتيږي، لېکن څرنګه چي مرتهن ته د خپل حق مثل ترلاسه سوی دی. نو ځکه اوس مرتهن دوباره هغه (اصلي حق) ترلاسه کولای هم نه سي: ځکه کله چي قرضخواه د خپل اصلي حق مطالبه کوي نو ښکاره ده چي مقروض به خپل ورکړل سوي پيسې (د حق مثل) واپس ځني اخلي او همداسي به له دواړو طرفونو څخه دا مطالبه کېدونکې وي او په دې مطالبه کي هيڅ فايده نسته، خو څرنګه چي دلته استيفاء في نفسه موجوده او ثابته ده يعني مرتهن ته د خپل حق (قرض) مثل ترلاسه سوی دی، نو ځکه تر دې استيفاء ورروسته که مرهون شی د مرتهن سره هلاک سو. نو د مرتهن سره د هغه د هلاکېدلو په وجه به اوله مخکني. استيفاء (مرهون ترلاسه کول) متحققه او ثابته سي (يعني مرتهن چي کوم مخکي پر مرهون شي قبضه کړې ده او له راهن څخه يې ترلاسه کړی دی. هغه متحقق او بشپړ سوه چي ګواکي مرتهن د خپل قرض پر ځای مرهون شی ترلاسه کړی). لهذا کله چي اوله استيفاء ثابته سوه. نو دويمه حقيقي استيفاء (قرض ترلاسه کول) به مات او ختم سي (ځکه چي مرتهن د هغه پر ځای مرهون شی ترلاسه کړی). نو ځکه مرتهن چي د قرض په نامه کومي پيسې ترلاسه کړي دي. هغه به بيرته راهن ته واپس کوي.

وکذا إلخ: د دې حاصل دا دی چې څرنګه په حقيقي استيفاء سره مرتهن د خپل حق ترلاسه کونکی (اخيستونکی) شمېرل کيږي، همداسې که د قرض په بدله کې مرتهن له راهن څخه يو شی رانيسي، يا د قرض په عوض کې د راهن سره پر يو شي صلح وکړي، نو په دې دواړو صورتونو کې هم مرتهن د خپل حق ترلاسه کونکی ګرځي او د مرهون شي هلاکت مضمون کيږي. (احسن الهدايه)

## په عقد رهن کې د قرض د حواله کولو بيان

وَكَذَا إِذَا أَحَالَ الرَّاهِنُ الْمُرْتَهِنَ بِالدَّيْنِ عَلَى غَيْرِهِ او همدارنګه کله چې راهن په قرض سره مرتهن پر بل چا حواله کړي ثُمَّ هَلَكَ الرَّهْنُ بيا رهن [مرهون] هلاک سي بَطَلَتِ الْحَوَالَةُ نو حواله باطليږي وَيَهْلِكُ بِالدَّيْنِ او هغه [مرهون] د قرض په عوض کې هلاکيږي لِأَنَّهُ فِي مَعْنَى الْبَرَاءَةِ بِطَرِيقِ الْأَدَاءِ ځکه چې حواله د اداء کېدلو پر طريقه د بري کېدلو په معنیٰ سره ده لِأَنَّهُ يَزُولُ بِهِ عَنْ مِلْكِ الْمُحِيلِ مِثْلُ مَا كَانَ لَهُ عَلَى الْمُحْتَالِ عَلَيْهِ ځکه چې د حوالې په وجه د محيل [راهن] له ملکيت څخه د هغه [مال] په مثل سره زايليږي کوم [مال] چې د محيل پر محتال عليه باندې وي [دا په هغه صورت کې کله چې پر محتال عليه د محيل مال يعنې قرض باندې وي] أَوْ مَا يَرْجِعُ عَلَيْهِ بِهِ يا [د حوالې په وجه د محيل له ملکيت څخه د هغه مقدار په مثل سره زايليږي] په کوم مقدار سره چې محتال عليه پر محيل رجوع کوي [يعنې کوم مقدار چې هغه له محيل څخه اخلي] إِنْ لَمْ يَكُنْ لِلْمُحِيلِ عَلَى الْمُحْتَالِ عَلَيْهِ دَيْنٌ [دا په هغه صورت کې] که پر محتال عليه د محيل [راهن] قرض باندې نه وي لِأَنَّهُ بِمَنْزِلَةِ الْوَكِيلِ ځکه چې محتال عليه د وکيل په درجه کې دی وَكَذَا لَوْ تَصَادَقَا عَلَى أَنْ لَا دَيْنَ او همدارنګه که چېرې راهن او مرتهن دواړه يو د بل تصديق وکړي [اتفاق وکړي] پر دې خبره چې قرض نسته ثُمَّ هَلَكَ الرَّهْنُ بيا مرهون هلاک سي يَهْلِكُ بِالدَّيْنِ نو هغه [مرهون] د قرض په عوض کې هلاکيږي لِتَوَهُّمِ وُجُوبِ الدَّيْنِ بِالتَّصَادُقِ عَلَى قِيَامِهِ ځکه چې [په دې صورت کې] د قرض پر قيام [موجود والي] باندې يو د بل په تصديق کولو سره د قرض واجبېدلو وهم سته [يعنې په دې صورت کې دا وهم سته چې دوی به وروسته پر دې خبره اتفاق وکړي چې قرض خو سته نو قرض به بيرته واجب سي] فَتَكُونُ الْجِهَةُ بَاقِيَةً نو [په دې صورت کې] د قرض جهت باقي پاته دی بِخِلَافِ الْإِبْرَاءِ په خلاف د بري کولو [يعنې چې مرتهن راهن له قرض څخه بري کړي او قرض معاف کړي].

**اللغات**: ﴿أحال﴾ د افعال د باب ماضي ده: حواله کول. قرض د بل چا پر ذمه کول (خپل قرض د بل چا غاړي ته اړول)، عقد حواله خو به تاسي ته معلوميږي چي که پر زيد مثلاً د خالد قرض باندي وي. بيا زيد(مقروض) دا قرض له خپلي ذمې څخه د بل چا مثلاً د عُمر ذمې ته واړوي يا په بله وينا دا چي قرض پر عُمر حواله کړي او خالد ته ووايي چي ستا قرض به عُمر درکړي او عُمر دا قبوله کړي. نو دغه عقد او تړون ته "حواله" وايي. مقروض (زيد) کوم چي حواله کړې ده هغه ته "مُحِيْل" وايي او عُمر کوم چي حواله قبوله کړې ده هغه ته "مُحْتَالٌ عَلَيْه" وايي او خالد کوم چي د قرض مالک دی هغه ته "مُحْتَالٌ لَهٗ" وايي. ﴿براءة﴾ د سمع د باب مصدر دی: بري کېدل. له ذمه واري څخه خلاصېدل. ﴿التصادق﴾ د تفاعل د باب مصدر دی: يو د بل تصديق کول. پر يو خبره اتفاق کول.

**تشريح**: د دې عبارت مسئله هم په حقيقت کي د مخکنى مسئلې لپاره د مثال په توګه پېښه کړل سوې ده (يعني د مخکني مسئلې لپاره مثال ده)، حاصل د مسئلې دا دی چي که راهن د خپل قرض اداء پر بل چا مثلاً پر عُمر حواله کړي او مرتهن ته ووايي چي ستا قرض به عُمر اداء کړي (درکړي) او عمر دا قبوله کړي، لېکن د هغه د قرض تر اداء کولو مخکي مرهون شی د مرتهن سره هلاک سي. نو ښکاره ده چي حواله باطليږي او مرهون شی د قرض په عوض کي هلاکيږي يعني د هغه د هلاکېدلو په ضمان(تاوان) کي د مرتهن قرض ساقطيږي، ځکه چي حواله د اداء په طريقه سره د ابراء او برائت (بري کېدلو) په معنیٰ سره ده؛ ځکه که چيري محتال عليه (عُمر) د محيل (راهن) قرض اداء کړي او محتال لهٗ(مرتهن) ته د قرض پيسې ورکړي، نو بيا وروسته محتال عليه له محيل (راهن) څخه هغه پيسي بيرته اخلي کوم چي ده محتال لهٗ (مرتهن) ته ورکړي وي، که چيري پر محتال عليه د محيل قرض باندي نه وي، او که د محيل (راهن) پر محتال عليه قرض باندي وي، نو محتال عليه هغه پيسې د هاغه قرض په عوض کي شمېري (يا په بله وينا دا چي د هغه پيسو په اندازه قرض يې ساقطيږي)؛ ځکه چي محتال عليه د قرض او پيسو په اداء کولو کي د محيل له طرفه وکيل وي. او وکيل چي (په قرض اداء کولو کي) خپلي پيسې مصرف کړي نو هغه ته د واپس اخيستلو اختيار حاصليږي. لېکن څرنګه چي دلته محتال عليه د مرتهن قرض نه دی اداء کړی، نو ځکه حواله باطله ده او د مرهون هلاکېدل مضمون بالدَين دی (يعني د مرهون د هلاکېدلو په ضمان کي د مرتهن دَين [قرض] ساقطيږي).

**يادونـه**: د عبارت چي کومه تشريح وسوه، همدا د عبارت آسانه مطلب دی، او د هدايې په عربي شروحاتو کي يې همداسي وضاحت سوی دی، په توجه سره يې ولولئ!. کنې د هدايې په نورو شروحو کي دلته څه خلط ملط سوی دی او په ګرانه توګه مذکوره عبارت پېش کړی سوی دی.

وكذا لو تصادقا إلخ: دا دويم مثال دى. حاصل يې دا دى چې که راهن او مرتهن دواړه پر دې خبره اتفاق وکړي چې پر راهن د مرتهن هيڅ قرض نشته او بيا مرهون شي د مرتهن سره هلاک سي. نو دا هلاکت هم مضمون بالدين کيږي (يعني د مرهون د هلاکيدلو په ضمان کې د مرتهن دين [قرض] ساقطيږي) ځکه که څه هم د دوی په اتفاق سره د قرض صورت ختم سوی دی خو د قرض جهت پاته دی. په دې توگه چې کېدلای سي دوی دواړه څه وخت وروسته د قرض پر پاته کېدو اتفاق (تصادق) وکړي چې پر راهن د مرتهن قرض پاته دی. او د قرض د جهت په بقاء سره هم مرهون مضمون کيږي. نو ځکه په دې صورت کې به هم د مرتهن سره د مرهون هلاکت مضمون کيږي.

د دې په خلاف د ابراء (بري کولو) په مسئله کې چې څرنگه نه قرض باقي پاتيږي او نه د هغه جهت باقي پاتيږي. نو ځکه د ابراء په مسئله کې فقهاؤ د مرتهن سره د مرهون هلاکت استحساناً مضمون بالدين نه دی گرځولی. خو څرنگه چې په مذکوره مسئله کې د قرض جهت باقي پاتيږي. نو ځکه دلته د راهن او مرتهن دواړو تر تصادق وروسته هم د مرهون هلاکت مضمون بالدين کيږي يعني د هغه د هلاکيدلو په ضمان کې د مرتهن قرض ساقطيږي.

ربنا تقبل منا إنك أنت السميع العليم وتب علينا إنك أنت التواب الرحيم

وصلى الله على خير خلقه محمد وأصحابه وأهل بيته

وعترته أجمعين برحمتك يا أرحم الراحمين

احقر حبيب الرحمن مدني